قال الله تبارک وتعالی

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿فَسْئَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِن كُنتُمْ لَا تَعْلَمُونَ﴾

وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم

إِنَّمَا شِفَاءُ الْعِيِّ السُّؤَال (الحدیث)

# احسن الفتاوی

## شپږم جلد

(له کتاب الاجارې څخه تر آخر د کتاب الدیات پورې)

تالیف: فقیه العصر مفتی اعظم حضرت مفتی رشید احمد صاحب رحمه الله تعالی

ناشرین

مولوی محمد ظفر ((حقانی)) مولوی امیر الله ((شیرانی))

د ملاویدو پته

د کتاب نوم : احسن الفتاوی (شپږم جلد) (له کتاب الاجارې څخه تر آخر د کتاب الدیات پورې) .

د مؤلف نوم : فقیه العصر مفتی اعظم حضرت مفتی رشید احمد صاحب رحمه الله تعالی

پښتو ترجمه : مولانا عبدالولی ((غزنوی))

کمپوز : مولوی حسین احمد هزارناوی .

ډیزاین ، اصلاح او نظر ثانی : حافظ محمد ولی (بغلانی)

د چاپ کال : ۲۰۱۲

د چاپ شمیر : ۱۰۰۰ ټوکه

**ناشرین** : مولوی محمد ظفر ((حقانی)) مولوی امیر الله ((شیرانی))

د ملاویدو پته : مکتبه فریدیه محله جنګی قصه خوانی پیښور

د مکتبې مسؤل : مولوی محمد ظفر ((حقانی)) صاحب .

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ ٱنفِرُواْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ٱثَّاقَلْتُمْ إِلَى ٱلْأَرْضِ ۚ أَرَضِيتُم بِٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا مِنَ ٱلْءَاخِرَةِ ۚ فَمَا مَتَٰعُ ٱلْحَيَوٰةِ ٱلدُّنْيَا فِي ٱلْءَاخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ ﴿٣٨﴾ إِلَّا تَنفِرُواْ يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّوهُ شَيْـًٔا ۗ وَٱللَّهُ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٣٩﴾ إِلَّا تَنصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ ٱللَّهُ إِذْ أَخْرَجَهُ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ثَانِيَ ٱثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي ٱلْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَٰحِبِهِۦ لَا تَحْزَنْ إِنَّ ٱللَّهَ مَعَنَا ۖ فَأَنزَلَ ٱللَّهُ سَكِينَتَهُۥ عَلَيْهِ وَأَيَّدَهُۥ بِجُنُودٍ لَّمْ تَرَوْهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ ٱلَّذِينَ كَفَرُواْ ٱلسُّفْلَىٰ ۗ وَكَلِمَةُ ٱللَّهِ هِيَ ٱلْعُلْيَا ۗ وَٱللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٤٠﴾ ٱنفِرُواْ خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَٰهِدُواْ بِأَمْوَٰلِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ ٱللَّهِ ۚ ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٤١﴾ ﴾

***********
********
*******

# كتاب الاجارة

## په دې شرط باندې مزدور نيول چې که د ټاکلې شوی وخت نه وړاندې ئې کار پرېښودلو د اجرت حق دار به نه وی

**سوال**:- يو زميندار (دهقان) سړی سره يو سړې دمياشتې د تنخوا په حساب سره مزدوری وکړه په دې شرط باندې چې که چيرې دې د کال د پوره کيدلو نه وړاندې کار پريږدی نو د تير شوی وخت د اجرت حق دار به نۀ وی، نو ددې څه حکم دې؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: په دې شرط سره اجاره فاسده شوه، د دې حکم دا دې چې په اجر مثل يا په مقرر شوی اجرت کښې کوم اقل وی نو دې به د هغې حق دار وی.

قال فی الهندية: وان تکاراها الی بغداد علی انها ان بلغته بغداد فله اجر عشرة دراهم و الا فلا شیء له فالاجارة فاسدة و عليه اجر مثلها بقدر ما سار عليها کذا فی المبسوط (عالمگيرية ص ٣٣٣ ج ٢)

وقال ایضا: فالفاسد یجب فیه اجر المثل ولا یزاد علی المسمی ان سمی فی العقد مالا معلوما وان لم یسم یجب اجر المثل بالغا وفی الباطل لا یجب الاجر.(عالمگیریة ص۴۳۹ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

٤ جمادی الاخره ١٣٧٢ هجری

## په کومه زمکه کښې چه ونې وی نو د هغې اجاره روا نهٔ ده

**سوال**:- یو سړی زمکه په اجاره باندې ورکړه، اوس په دې زمکه کښې چې کوم ځنګل دې هغه به د زمیندار ملک وی او که نه د اجارې اخستونکی؟بینوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق والصواب** : په دې صورت کښې دا اجاره صحیح نهٔ شوه،ځنګل د زمیندار مملوک دې،ځکه چې که چیرې د اجارې د عقد په وخت کښې د اجاره دار د پاره د ځنګل تملیک نهٔ وی شرط کړې شوې نو ظاهره خبره ده چې دا ځنګل د زمیندار دې.

د دې تفصیل دا دې،چې که چیرې په زمکه کښې د زمیندار(یعنی د زمکې د خاوند) د میوې ونې موجودې وی،د کومو د پرې کولو نه چې د زمیندار نقصان کیږی نو بیا د دې زمکې په اجارې باندې ورکول روا نهٔ دی۔

قال فی الشامیة:عن البزازیة تحت(قوله ویساق علی اشجارها)استاجر ارضا فیها اشجار او اخذها زراعة و فیها اشجار ان کان فی وسطها لا یجوز الا اذا کان فی الوسط شجرتان صغیرتان مضی علیهما حول اوحولان لا کبیرتان لان ورقهما وظلهما یاخذ الارض والصغار لا عروق لها وان کان فی جانب من الارض کالمسناة والجداول یجوز لعدم الاخلال اھ(ردالمحتار ص۰ ج۰)

وفی التنویر وشرحه:اجرها وهی مشغولة بزرع غیره ان کان الزرع بحق لا تجوز الاجارة لکن لو حصده وسلمها انقلبت جائزة.

وفی الشامیة: (قوله بزرع غیره) ای غیر المستاجر فلو کان الزرع له لا یمنع صحتها والغیر یشمل المؤجر والاجنبی الخ (ردالمحتار ص۰ ج۰)

او که چیرې داسې ونې وی چې د هغې په پرې کولو کښې څه ضرر او نقصان نهٔ وی نو د داسې زمکې په اجارې باندې ورکول روا دی، لیکن په زمیندار باندې دا لازم دی چې ځنګل دې ترې پرې کړی او زمکه دې خالی کړی او اجاره دار ته دې ورکړی،هر کله چې زمکه خالی کړی او هغه ته ئې وسپاری نو د دغه وخت نه به د اجارې د مودې ابتداء شروع شی.

قال فی شرح التنویر: اجرها وهی مشغولة بزرع غیره(الی قوله)مالم یستحصد الزرع فیجوز ویؤمر بالحصاد

والتسليم به يفتى بزازية.

وايضا فيه عن الوهبانية: تصح اجارة الدار مشغولة يعنى ويؤمر بالتفريغ وابتداء المدة من حين تسليمها و فى الاشباه استاجر مشغولا وفارغا صح فى الفارغ فقط وسيجیء فى المتفرقات.

وفى الشامية: (قوله وسيجیء فى المتفرقات) اى متفرقات كتاب الاجارة وسيجیء ايضا حمل ما فى الاشباه على ما لو استاجر عينا بعضها فارغ وبعضها مشغول يعنى وفى تفريغ المشغول ضرر فلا ينافى ما فى الوهبانية (ردالمحتار ص۲۰ ج۵)

که چیرې په اجاره کښې ئې دا خبره تاکلې وه چې د ونو مستحق به اجاره دار وی نو بیا په کښې هم اجاره صحیح نهٔ شوه.

قال فى الشامية تحت (قوله فيستاجر ارضه الخالية) وانما لا يصح استيجار الاشجار ايضا لما مر انها تمليك منفعة فلو وقعت على استهلاك العين قصدا فهى باطلة الخ (ص۵ ج۵)

وايضا فيها فى بيان جواز استيجار الظئر: (قوله بخلاف بقية الحيوانات) بخلاف استيجارها للارضاع وفى التاتارخانية استاجر بقرة ليشرب اللبن او كرما او شجرا لياكل ثمره او ارضا ليرعى عنمه القصيل او شاة ليجز صوفها فهو فاسد كله وعليه قيمة الثمرة والصوف والقصيل لانه ملك الاجر وقد استوفاه بعقد فاسد بخلاف ما اذا استاجر ارضه ليرعى الكلا (ردالمحتار ص۳۱ ج۵)

قال الرافعى رحمه الله: (قوله بخلاف ما اذا استاجر ارضه ليرعى الكلا) فانه لا يجب قيمة الكلا لعدم ملكه وان كانت الاجارة فاسدة. (التحرير المحتار ص۲۱ ج۲)

که د ونو والا زمکه په اجاره باندې د ورکولو ضرورت راپيښ شی نو بیا ئې دا صورت کیدې شی چې اول دې ونې په اجاره دار باندې خرڅې کړی، او که چیرې ونې میوه دارې وی نو بیا دې دا اجاره دار ته په مساقاة باندې ورکړی، او ددې نه پس دې ورته زمکه په اجاره ورکړی.

قال فى الشامية تحت (قوله بزرع غيره) فلو كان للموجر اى رب الارض فالحيلة ان يبيع الزرع منه بثمن معلوم ويتقابضا ثم يوجره الارض كما فى الخلاصة عن الاصل وكذا لو ساقاه عليه قبل الاجارة لا بعدها كما قدمناه (ردالمحتار ص۲۰ ج۵)، والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۱ رجب ۱۳۷۳ هجری

## د باغ په مقاطعه (یعنی په تیکه) باندې د ورکولو حیله

**سوال** - نن صبا چې باغ په تیکه یعنی مقاطعه باندې د ورکولو عام رواج دې، آیا د دې د جواز

څه صورت شته او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: اول دې باغ په مساقاة يعنى په يو ټاکلې شوې حصه باندې ورکړی، او بيا دې د دې باغ زمکه په مقاطعه باندې ورکړی، او د باغ په ميوو کښې چې کومه حصه مالک ټاکلې ده هغهٔ دې د مقاطعه دار د پاره روا کړی.

فى شرح التنوير:-فيستاجر ارضه الخالية من الاشجار بمبلغ كثير ويساقى على اشجارها بسهم من الف سهم.

وفى الشامية: (قوله مبلغ كثير) اى بمقدار ما يساوى اجرة الارض و ثمن الثمار (قوله و يساقى اشجارها) يعنى قبل عقد الاجارة والا كانت الاجارة ارض مشغولة فلا تصح كما سياتى (ردالمحتار ص٠ ج٥)

وايضا فيها تحت (قوله بالاولى) وفى فتاوى الحانوتى التنصيص فى الاجارة على بياض الارض لايفيد الصحة حيث تقدم عقد الاجارة على عقد المساقاة اما اذا تقدم عقد المساقاة بشروطه كانت الاجارة صحيحة كما صرح به فى البزازية (ردالمحتار ص٦ ج٥)

وقال الرافعى رحمة الله عليه: (قوله فلا تصح كما سياتى) الذى ذكره الحموى اخر السابع عشر من فن الحيل نقلا عن المحيط الرضوى استيجار الاشجار لايجوز وحيلته ان يواجر الارض البيضاء التى تصلح للزراعة فيما بين الاشجار باجر مثلها وزيادة قيمة الثمار ثم يدفع رب الارض الاشجار معاملة اليه على على ان يكون لرب الارض جزء من الف جزء و يأمره ان يضع ذلك الجزء حيث اراد لان مقصود رب الارض ان تحصل له زيادة اجر المثل بقيمة الثمار و مقصود المستاجر ان يحصل له ثمار الاشجار مع الارض و قد حصل مقصودهما بذلك فيجوز اهـ (التحرير المختار ص٢٥٨ ج٢)

په پورتنو دواړو جزئياتو کښې په ظاهره تعارض معلوميږی، د شامي د جزئيې نه معلوميږی چې د عقد د اجارې نه عقد د مساقاة ضروری دې، او رافعی رحمة الله عليه چې کوم د محيط نه نقل کړې دې په دې کښې دا شرط نشته دې، بلکه په دې کښې دا تصريح ده، چې که چرې عقد د مساقاة ئې د عقد د اجارې نه وروستو وکړو نو هم صحيح دې.

نو په هغې کښې تطبيق داسې کيدلې شی، چې وړاندې د مساقاة نه اګرچې اجاره صحيح نه ده، ليکن د مساقاة نه پس به سابقه اجاره صحيح شی، ځکه چې د اجارې د عدم صحت علت د زمکې د موجر په ملک کښې مشغوله کيدل دی، او په خپله په درمختار او ردالمحتار کښې دا تصريح شته دې، چې که مشغوله زمکه يا کور خالی کړې شی او مستاجر ته وسپارلې شی نو سابقه اجاره به صحيح شی، لهذا اګر چې دلته هم اجارهٔ فاسده وه، ليکن هر کله چې ئې په عقد د مساقاة سره ونې هم مستاجر ته وسپارلې نو اجاره صحيح شوه او که چيرې دا دواړه جزئيات په اختلاف

باندې محمول کړې شی، نو بیا هم دې روایت ثانی ته د پورتنئ وجې له کبله ترجیح معلومیږی، البته احتیاط په دې کښې دې چې عقد د مساقاة دې په کښې مقدم وی. والله سبحانه وتعالیٰ اعلم

۱۲ رجب ۱۳۷۳ هجری

## په دې شرط باندې اجاره کول (چې اجاره دار به زمکه هواره وی) فاسده ده

**سوال** :- يو سړی په دې شرط باندې زمکه په اجارې سره ورکړه چې اجاره دار به زمکه هواروی، نو آیا شرعا په اجاره دار باندې دا شرط لازم دې او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق والصواب** : په دې شرط سره اجاره فاسدیږی.

قال فی التنویر وشرحه: تفسد الاجارة بالشروط المخالفة لمقتضى العقد(الی قوله)وبشرط طعام عبد وعلف دابة ومرمة الدار الخ، (ردالمحتار ص۳۲ ج۵)

وایضا فیه: اوارضا بشرط ان یثنیها ای یحرثها اویکری انهارها العظام اویسرقنها لبقاء اثر هذه الافعال لرب الارض فلولم تبق لم تفسد

وفی الشامیة عن المنح تحت (قوله بشرط ان یثنیها)فان کان اثره یبقی بعد انتهاء العقد یفسد لان فیه منفعة لرب الارض والافلا اهـ(ردالمحتار ص۳۱ ج۵)

لهذا که چیرې اجاره دار په اجارې فاسدې کښې زراعت بالکل نۀ وی کړې نو زمیندار د اجارې د پیسو مستحق نۀ دې، او که زراعت ئې په کښې کړې وی، نو بیا به د کرلې شوې زمکې د اجرِمثل او د اجرِمقرر نه د اقل حقدار وی۔

قال فی التنویر وشرحه: واعلم ان الاجر لا یلزم بالعقد فلا یجب تسلیمه به(الی قوله)او الاستیفاء للمنفعة او تمکنه منه(الی قوله)فیجب الاجر لدار قبضت ولم تسکن لوجود تمکنه من الانتفاع وهذا اذا کانت الاجارة صحیحة اما فی الفاسدة فلا یجب الاجر الا بحقیقة الانتفاع الخ(ردالمحتار ص، ج۵)

وایضا فیه: وتفسد بجهالة المسمی کله اوبعضه کتسمیة ثوب اودابة اومائة درهم علی ان یرمها المستاجر لصیرورة المرمة من الاجرة فیصیر الاجر مجهولا وتفسد بعدم التسمية (الی قوله)فان فسدت بالاخرین بجهالة المسمی وعدم التسمية وجب اجر المثل(الی قوله)لا بالتمکین بل باستیفاء المنفعة حقیقة کما مر بالغا ما بلغ لعدم ما یرجع الیه(الی ان قال)والا تفسد بهما بل بالشروط او الشیوع مع العلم بالمسمی لم یزد اجر المثل علی المسمی لرضاهما به وینقص عنه لفساد التسمية الخ(در المحتار ص۳۳ ج۵) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم

۱۲ رجب ۱۳۷۳ هجری

## د کرنې د پاره اخستلې شوې زمکه کښې ئې د خښتو بټۍ جوړه کړه

**سوال:**- یو سړی د کرنې دپاره زمکه په اجارې باندې واخستله، لیکن د زمیندار نه د اجازت اخستلو نه بغیر ئې په کښې د خښتو جوړولو بټۍ جوړه کړه، نو آیا د بټۍ د منافعې حق دار به اجاره دار وی او که زمیندار؟ او د کندو هوارول کوم چې د خښتو د پاره په زمکه کښې کیندلې شوې دی هغه به د چا په ذمه وی؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: اجاره دار چې په څومره زمکه کښې خښتې جوړې کړې دی،نو د دومره زمکې اجرت به زمیندار ته نه ورکول کیږی، بلکه د بټۍ په جوړولو او د خښتو په ویستلو باندې چې د زمکې په قیمت کښې کوم نقص راغلې دې نو د هغې ضامن به اجاره دار وی.

کومه خاوره چې اجاره دار د خښتو په جوړولو کښې استعماله کړې ده د هغې قیمت به هم د اجاره دار په ذمه وی ، باقی په کومه زمکه کښې چې بټۍ او خښتې نهٔ دی جوړې کړې شوې نو د هغې اجرت به زمنیدار ته ورکول کیږی .او د بټۍ د نفعې اود نقصان مالک اجاره دار دې.

د بټۍ په آمدن کښې دومره پیسې اجاره دار د پاره بې د شک او شبهې نه حلالې دې څومره چې دهٔ خرچ کړې دی، یعنی دزمکې نقصان کوم به چې زمکې ته ادا کوی،او دخښتوجوړولو اجرت وغیره دا ټول مجموعه خرچ به د بټۍ د آمدن نه واخلی او باقی آمدن به زمیندار ته وسپاری.

قال فی شرح التنویر:ولو فعل ما لیس له لزم الاجر وان انهدم به البناء ضمنه ولا اجر لانهما لا یجتمعان

وفی الشامیة: (قوله ولا اجر) ای فیما ضمنه نهایة و اما الساحة فینبغی الاجر فیها کذا فی الذخیرة سائحانی. (ردالمحتار ص۱۱ ج۵)

وایضا فی التنویر وشرحه: وضمن بزرع رطبة وامر بالبر ما نقص من الارض لان الرطبة اضر من البر ولا اجر لانه غاصب الخ[ا] المراد من الغصب اتلاف المنفعة لان حقیقة الغصب لا تجری فی العقار "منه"

وفی الشامیة :(قوله لانه غاصب) ای لما خالف صار غاصباً و استوفی المنفعة بالغصب ولا تجب الاجرة به زیلعی، (ردالمحتار ص۲۸ ج۵)

وایضا فیها فی باب فسخ الاجارة تحت (قوله فهو متبرع) بنی بلا امر (الی قوله) فلو کان البناء من لبن اتخذ من تراب الدار فللمستاجر رفع البناء ویغرم قیمة التراب لمالکه الخ (ردالمحتار ص۵۵ ج۵)

وقال الرافعی رحمۃ اللہ علیہ :ای ان کان له قیمة (التحریر المختار ص۱۱۱ ج۲)

وفی کتاب الغصب من شرح التنویر: واذا نقص العقار بسکناه وزراعته ضمن النقصان بالاجماع

وفی الشامیة:(قوله ضمن النقصان بالاجماع)لانه اتلاف و قد یضمن بالاتلاف ما لا یضمن بالغصب اصله الحراتقانی واختلفوا فی تفسیر النقصان،قال نصیر بن یحی انه ینظر بکم تستاجر هذه الارض قبل الاستعمال وبعده فیضمن ما تفاوت بینهما من النقصان و قال محمد بن مسلمة یعتبر ذلک بالشراء یعنی انه ینظر بکم تباع قبل الاستعمال وبکم تباع بعده فنقصانها ما تفاوت من ذلک فیضمنه وهو الاقیس قال الحلوانی وهو الاقرب الی الصواب وبه یفتی کما فی الکبری لان العبرة لقیمة العین لا المنفعة ثم یاخذ الغاصب راس ماله و هو البذر وما غرم من النقصان و ما انفق علی الزرع و یتصدق [۱] الصحیح فی الارباح الفاسدة الرد علی المالک وان لم یعلم فسبیله التصدق و زیادة التفصیل مر فی باب الربا ۱۲ منه ۱ بالفضل عند الامام و محمد رحمهما الله تعالی فلو غصب ارضا فزرعها کرین فاخرجت ثمانیة ولحقه من المؤنة قدر کر و نقصها قدر کر فانه یاخذ اربعة اکرار ویتصدق بالباقی وقال ابو یوسف رحمه الله :لا یتصدق بشیء وبیانه فی التبیین قال فی الدر المنتقی وافاد انه لا یصرفه لحاجته الا اذا کان فقیرا کالغنی لو تصرف تصدق بمثله ولو ادی لمالکه حل له التناول لزوال الخبث ولا یصیر حلالا بتکرار العقود وتداول الالسنة ذکره القهستانی(ردالمحتار کتاب الغصب ص۱۳۱ ج۵)

د کندو هوارول د اجاره دار په ذمه دی.بلکه که چیرې د زمیندار په اجازت سره هم خښتې جوړې کړې شی نو بیا هم د کندو هوارول د اجاره دار په ذمه دی.

قال فی التنویر و شرحه: و تصح اجارة ارض للبناء والغرس و سائر الانتفاعات کطبخ آجر و خزف(الی قوله)فان مضت المدة قلعها وسلمها فارغة.

وفی الشامیة:(قوله وسلمها فارغة)وعلیه تسویة الارض لانه هو المخرب لها ط عن الحموی(ردالمحتار ص۲۰ ج۵) ، والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۴ رجب ۱۳۷۳ هجری

## په اجاره باندې د ورکړې شوې زمکې بیعه موقوفه ده

**سوال**:- یو سړی د یو څو کالو د پاره زمکه په اجاره باندې واخستله،د اجارې د مودې د ختمیدلو نه پس مالک دا زمکه خرڅه کړی.دا بیعه شرعا صحیح شوه او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: دا بیعه د اجارې د مودې د ختمیدلو پورې موقوفه ده.

فی بیوع الشامیة فی بیان انواع شرائط البیع واما الثانی وهو شرائط النفاذ فاثنان الملک او الولایة وان لا یکون فی المبیع حق لغیر البائع (الی قوله)و لا ینفذ بیع مرهون و مستاجر و للمشتری فسخه ان لم یعلم لا المرتهن ومستاجر(ردالمحتار ص۶ ج۴)

وفی التنویر وشرحه فی باب فسخ الاجارة: وبخلاف بیع ما اجره فانه ایضا لیس بعذر بدون لحوق دین کما مر و یوقف بیعه الی انقضاء مدتها هو المختار (الی قوله) لو باع الاجر المستاجر فاراد المستاجر ان یفسخ بیعه لا یملکه هو الصحیح ولو باع الراهن الرهن للمرتهن فسخه.

وفی الشامیة: (قوله للمرتهن فسخه) قال الشرنبلالی فی شرح الوهبانیة والمختار انه موقوف فیقضی بأن بیع المستاجر والمرهو صحیح لکنه غیر نافذ ولا یملکان فسخه فی الصحیح وعلیه الفتوی الخ (ردالمحتار ص.. ج۵)

والله سبحانه وتعالی اعلم　　　۲۹ رجب ۱۳۷۳ هجری

## د دلال اجرت روا دي

**سوال**:- آیا د دلال اجرت د جانبینو نه شرعا روا دې او که نه ؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: روا دې خو په دې شرط چې بنۀ په واضحه توګه اجرت وټاکلې شی.

قال فی الشامیة عن البزازیة: اجارة السمسار والمنادی والحمامی والصکاك وما لا یقدر فیه الوقت ولا العمل تجوز لما کان للناس به حاجة ویطیب الاجر الماخوذ لو قدر اجر المثل (ردالمحتار اول باب الاجارة ص۳۳ ج۵)

وایضا فیها بعد اوراق: (تتمة) قال فی التاتارخانیة وفی الدلال والسمسار یجب اجر المثل وما تواضعوا علیه ان فی کل عشرة دنانیر کذا فذاك حرام علیهم وفی الحاوی سئل محمد بن سلمة عن اجرة السمسار فقال ارجو انه لا بأس به وان کان فی الاصل فاسد الکثرة التعامل و کثیر من هذا غیر جائز فجوزوه لحاجة الناس الیه کدخول الحمام اه (ردالمحتار ص۳۳ ج۵ مطلب فی اجرة الدلال)

وایضا فی بیوع الشرح: واما الدلال فان باع العین بنفسه باذن ربها فاجرته علی البائع وان سعی بینهما وباع المالك بنفسه یعتبر العرف.

وفی الشامیة: فتجب الدلالة علی البائع او المشتری او علیهما بحسب العرف جامع الفصولین (درالمحتار ص.. ج۵)　　　والله سبحانه وتعالی اعلم　　　۳۰ ذی الحجه ۱۳۷۳ هجری

## د پورتنی سوال په شان یو بل سوال

**سوال**:- د دلالئ اجرت په یو روپئ کښې یوه آنه یا کم او زیات لکه څنګه چې عام رواج دې نو دا شرعاً روادې او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: د دلال په اجرت کښې د احنافو د فقهاء کرامو رحمهم الله عبارتونه

مختلف دی، لیکن د خلقو حاجتونو ته چې وګورې نو قول د جواز مختار او مفتی به دې، تاکل د اجرت ضروری دی او په روپۍ کښې یوه انه هم ټاکلې شوې اجرت دې.

قال فی التتارخانية: وفی الدلال والسمسار يجب اجر المثل وما تواضعوا عليه ان فی کل عشر ة دنانير کذا فذاك حرام عليهم. وفی الحاوی سئل محمد بن سلمة عن اجرة السمسار فقال ارجو انه لا بأس به وان کان فی الاصل فاسداً لکثرة التعامل وکثير من هذا غير جائز فجوزوه لحاجة الناس اليه کدخول الحمام (ردالمحتار ص۳۳ ج۵)

اجارة السمسار والمنادی والحمامی والصکاك وما لا يقدر فيه الوقت ولا العمل تجوز لما کان للناس به حاجة الخ. (ردالمحتار ص۳۷ ج۵) . والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۸ ربیع الاول ۱۳۷٦ هجری

## د دلالۍ اجرت ټاکل ضروری دی

**سوال**:- زید بکر ته اووئیل چې زهٔ به ستا مېښه په عمرو باندې خرڅه کړم، لیکن په دې شرط چې درې سوه او پنځوس روپۍ به تا له درکړم او باقی چې څومره هم د دې نه په زیاتو خرڅه شوه نو هغه به زما وی (یعنی زید دلال دې) بکر په دې خبره باندې راضی شو. زید هم دبکر په وړاندې دغه مېښه په عمرو باندې په درې سوه او پنځه اویا روپۍ باندې خرڅه کړه، درې سوه او پنځوس روپۍ ئې بکر له ورکړې او پنځه ویشت روپۍ ئې په خپله واخستلې. نو آیا شرعاً دا روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: دا معامله ناروا ده، البته که د دلالۍ پیسې ټاکلې شوې وی یا د مېښې د قیمت نه د فیصدی په لحاظ سره دلالی وټاکلې شی، لکه چې داسې اووائی چې مېښه په څو باندې خرڅه شی نو په هغې کښې به پنځه فیصده دلال اخلی نو دا به بیا روا وی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱٦ ذی قعده ۱۳۸۸ هجری

## د دلال په اجرت باندې د اشکال جواب

**سوال**: تاسو په کمیشن باندې د کار کولو د جواز فتوی ورکړې ده، په ظاهر دا شبه کیږی، چې د عدم جواز دوه وجهې کومې چې د قفیزِ طحان په مسئله کښې موندلې شی، هغه دلته هم موجودې دی، لکه چه زید عمرو ته دا اووئیل، چې زما دا ماشین خرڅ کړه نو زهٔ به تا له په دې کښې سل روپۍ درکوم. دلته هم اجرت من العمل دې، او عمرو قادر بقدرة الغیر هم دې، ځکه چې څو پورې ئې یو سړې نه اخلی نو عمرو ئې په خرڅولو باندې قادر نهٔ دې، د ما به الفرق وضاحت ستاسو نه مطلوب دې. بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: د کمیشن جواز د قیاس نه خلاف دې،

قال فی التنویر وشرحه: فکل ما افسد البیع مما مر یفسدها کجهالة ماجور او اجرة او مدة او عمل وکشرط طعام عبد وعلف دابة الخ

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله او مدة) الا فیما استثنی قال فی البزازیة اجارة السمسار والمنادی والحمامی والصکاکی وما لا یقدر فیه الوقت ولا العمل تجوز لما کان للناس به حاجة ویطیب الاجر الماخوذ لو قدر اجر المثل وذکر اصلا یستخرج منه کثیر من المسائل فراجعه فی نوع المتفرقات والاجرة علی المعاصی (ردالمحتار ص۳۳ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ ربیع الاول ۱۳۹۸ هجری

## د کبانو د نیولو د پاره تالاب په اجاره باندې ورکول

**سوال**:- د یو سړی په زمکه کښې د سیلاب د وجې نه تالاب جوړ شوې دې. دا سړې د کبانو د نیولو د پاره تالاب په ټیکه باندې ورکوی دا کار ئې شرعاً صحیح دې او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: دا روا نۀ دی.

قال فی شرح التنویر: ولم تجز اجارة برکة لیصاد منها السمك. وفی الشامیة: لان الاجارة واقعة علی استهلاك العین وسیاتی التصریح بانه لا یصح اجارة المراعی وهذا کذلك ولذا جزم المقدسی بعدم الصحة الخ (ردالمحتار ص۳۱ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۳ جمادی الاولی ۱۳۷۵ هجری

## په اجاره باندې اخستلې شوې زمکه ډوبه شوه

**سوال**:- یوه زمکه د پنځو کالو د پاره په اجاره باندې واخستلې شوه، آخری کال په کښې باقی پاتې وو، چې په دریاب کښې د غرقیدلو د وجې نه په دې زمکه کښې کرونده ونه شوه، نو آیاد دې کال اجرت په ذمه د مستاجر شته دې او کۀ نه شرعاً اجرت ساقط دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: که چیرې د اوبو د وچیدلو نه پس د اجارې د مودې د ختمیدلو پورې په دې کښې د څه قسمه کرونده کیدلې شوه نو بیا ددې کال اجرت معاف نه دې او که داسې نۀ وی نو بیا معاف دې.

قال فی شرح التنویر قبیل باب فسخ الاجارة: الاجرة للارض کالخراج علی المعتمد فاذا استاجرها للزراعة فاصطلم الزرع آفة وجب منه لما قبل الاصطلام وسقط ما بعده قلت وهو ما اعتمده فی الولوالجیة لکن جزم فی الخانیة بروایة عدم سقوط شیء حیث قال اصاب الزرع الزرع آفة فهلك او غرق ولم ینبت لزم الاجر لانه قد زرع ولو غرقت قبل ان یزرع فلا اجر علیه

وفی الشامیة: (قوله وسقط ما بعده) لکن هذا اذا بقی بعد هلاك الارض مدة لا یتمکن من اعادة الزراعة فان

تمكن من اعادة مثل الاول او دونه فی الضرر يجب الاجر قال فی البزازية عن المحيط و عليه الفتوى ومثله فی الذخيرة والخانية والخلاصة والتتارخانية والظاهر ان التقييد باعادة مثل الاول او دونه مفروض فيما اذا استاجرها على ان يزرع نوعا خاصا اما لو قال على ان ازرع فيها ما اشاء فلا يتقيد فان تعميمه صحيح كما مر (قوله لكن جزم الخانية الخ) ما ذكره فی الخانية ذكره فی الولوالجية ايضا واعتمد خلافه كما سمعت على انه فی الخانية ذكر التفصيل المار و قال و هو المختار للفتوى فكيف يكون جاز ما بخلافه و قد علمت التصريح بأن عليه الفتوى عن عدة كتب. (ردالمحتار ص۲۰ ج۵)

و ايضا فيها فی اوائل كتاب الاجارة تحت (قوله و لو غصب فی بعض المدة فبحسابه) ويسقط الاجر بغرق الارض قبل زرعها و ان اصطله افة سماوية لزمه الاجر تاما فی رواية عن محمد رحمه الله لانه قد زرعها والفتوى على انه يلزمه اجر ما مضى فقط ان لم يتمكن من زرع مثله فی الضرر الخ (ردالمحتار ص۸ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم

۲۷ محرم ۱۳۷٦ هجری

## په کمیشن باندې چنده کول روا نهٔ دی

**سوال**:- په ځینی مدرسو کښې د مدرسې نماینده ګان په حصې باندې کار کوی، یعنی د مدرسې د پاره چې کومه چنده جمع شی نو د هغې نه دریمه یا څلورمه حصه په خپله اخلی، او باقی پیسې مدرسې ته ورکوی .آیا دا طریقه صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: دا معامله د دوو وجو نه ناروا ده:

۱- دا اجرت من العمل دې او دا ناروا وی.

قال فی التنوير و شرحه: ولو دفع غزلا لاخر لينسجه له بنصفه ای بنصف الغزل او استاجر بغلا ليحمل طعامه ببعضه او ثورا ليطحن بره ببعض دقيقه فسدت فی الكل لانه استاجره بجزء من عمله والاصل فی ذلك نهيه ﷺ عن قفيز الطحان. (ردالمحتار ص۳۰ ج۵)

د دې تصحيح داسې کيدلې شی چې اجرت من العمل دې په کښې د شرط په توګه مقرر نهٔ کړې شی، بلکه صرف د تعيين او د تحديد د پاره دې وی، نو دا مفسد نهٔ دې، يعنی که چيرې په قفيز الطحان کښې دا شرط نهٔ وی چې د همدې طحين نه به ورته اجر ورکولې شی نو بيا روا دی.

۲- اجير په دې عمل باندې بنفسه قادر نهٔ دې، قادر بقدرة الغير دې، د دهٔ عمل د چندې ورکوونکو په عمل باندې موقوف دې، او قادر بقدرة الغير په حکم د عاجز کښې دې، او د اجارې د صحت د پاره قدرت بنفسه شرط دې، د قفيز الطحان د فساد علت همدا دې چې مستاجر قادر على

الاجرة بقدرة العامل دې ، بنفسه قادر نۀ دې.

د فقهاء کرامو رحمهم الله د تصريح مطابق په وخت د عقد کښې د اجير قادر على العمل کيدل او د مستاجر قادر على تسليم الاجرة کيدل د عقد د صحت دپاره شرط دی.

په ذکر کړې شوې معامله کښې د قفيزِ طحان نه هم زيات فساد دې.ځکه چې په قفيزِ طحان کښې اجرت کوم چې د اجير حق دې هغه هم د دې اجير په عمل باندې موقوف دې.او هغه د عمل په ذريعه د اجرت په اخستلو باندې قادر دې، ليکن په ذکر کړې شوې مسئله کښې اجير ته په عمل باندې د هيڅ قسمه قدرت نۀ دې حاصل، بلکه د غير محتاج دې.

قفيزِطحان اجاره فاسده ده،او په کميش باندې د چندې دمعاملې اجارۀ باطله ده، په صورت د حصې د ټاکلو کښې اجرت حرام دې،په مهتمم او سفير دواړو باندې د دې فاسدې اجارې نه توبه واجبه ده،او سفير ته دې د اجر مسمى او د اجر مثل نه اقل ورکړې شی-والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۰ ذی قعده ۱۳۸٤ هجری

## د پورتنی سوال په شان يوبل سوال

**سوال** :- د کوم مؤذن تنخوا چې مقرره وی،که چيرې هغۀ هم ددې جمات د پاره چنده کوی،نو د دې چندې نه هغۀ ته مثلا پنځه يا لس فيصده ورکول روا دی او که ناروا دی؟ او که روا نۀ دی نو چې څومره ورځې کار ئې کړې ذې د هغې ورځو به څه حکم وی،او کومه پيسه چې په دې طريقه اخستلې شوې ده،د هغې متعلق څه حکم دې ؟بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د تنخوا مقررولو باوجود د چندې ټاکلې شوې حصه هم اجرت دې، او د چندې اخستونکی اجرت هم ددې چندې نه ورکول روا نۀ دی،برابره خبره ده که مؤذن وی او که بل څوک وی،د مؤذن تنخو ټاکلې شوې وی او که نه، د دې جمات د پاره چنده کوی او که نه د بل جمات د پاره چنده کوی په هر صورت کښې دا ناروا دی.

دا اجاره د دوه وجوهو څخه صحيح نۀ ده :

۱- اجرت من العمل.

۲ - عجز عن العمل، د اجير په چندې اخستلو باندې قدرت نشته دې، تر څو چې څوک چنده نۀ ورکوی دې ئې اخستلې نۀ شی،او قدر بقدرت الغير په حکم د عجز کښې دې.

دا باطله اجاره ده،د دې وجې نه چندې راوړونکی له د هغه اجرت په صورت د ټاکلې شوې حصې سره حلال نۀ دې.

قال فی التنوير و شرحه: الفاسد من العقود ما كان مشروعا باصله دون وصفه والباطل ما ليس مشروعا اصلا لا باصله ولا بوصفه و حكم الاول و هو الفاسد وجوب اجر المثل بالاستعمال لو المسمى معلوما ابن

كمال، بخلاف الثاني وهو الباطل فانه لا اجر فيه بالاستعمال حقائق.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله والباطل) كان استاجر بميتة او دم او استاجر طيبا ليشمه او شاة لتتبعها غنمه او فحلا لينزوا او رجلا لينحط له صماط (ردالمحتار ص ٢٨ ج ٥) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۹ ربيع الثانی ۱۳۸٦ هجری

## د قربانۍ د څرمنو په اخستلو باندې كميشن اخستل روا نهٔ دې

**سوال:**- زمونږ د جمات امام صاحب زكوة او د قربانۍ څرمنې د يو دارالعلوم د پاره جمع كوی، او د دې نه پنځه ويشت فيصده كميشن اخلی، آيا د دوئ دا فعل روا دې او كه نه؟ او داسې امام پسې مونځ كول روا دی او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په زكوة او د قربانۍ په څرمنو باندې كميشن اخستل روا نهٔ دی، ځكه چې دا قدرت بقدرت الغير دې. او دا په حكم د عجز كښې دې. امام صاحب ته ددې گناه نه د توبې كولو وينا پكار ده. كه توبه نه كوی نو په انتظاميه باندې دداسې امام معزول كول فرض دی. او د توبې نهٔ كولو په صورت كښې د داسې امام امامت مكروهِ تحريمی دې. والله سبحانه وتعالى اعلم.

٤ ذی قعده ۱۳۹۹ هجری

## د بعضې مونځونو د جمعې په وركولو باندې پوره تنخوا اخستل

**سوال:**- كه چيرې امام د دريو يا د څلورو مونځونو د جمعې په وركولو باندې پوره تنخو اخلی نو دا روا دی او كه ناروا؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: كه چيرې د پوره پنځو مونځونو د جمعې وركولو شرط ئې لگولې وی نو د پوره تنخوا مستحق بيا نهٔ دې. والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۵ جمادی الاخرة ۱۳۸۷ هجری

## په دينی خدمت باندې تنخوا اخستل

**سوال**:- آيا د امام، مؤذن، او د دينی كتابونو درس وركونكی مدرس لپاره تنخوا اخستل روا دی او كه نه؟ ځينی خلق وائی چې دا مصداق دې د ((اشتروا به ثمنا قليلا)) او په احاديثو كښې په تعليم د قرآن باندې اجرت اخستونكی د پاره سخت وعيدونه راغلې دی، په كومو كښې چې حديث د قوس زيات مشهور دې، تاسو مونږ له مفصل جواب راكړئ ستاسو به ډيره مهربانی وی. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په امامت، اذان، او د دينی كتابونو په درس او د قرآن په تعليم باندې او دغه شان په نورو دينی خدمتونو باندې تنخوا اخستل روا دی، حضراتو خلفاء راشدينو

ﷺ په خپل خپل دور د خلافت کښې دې حضراتو ته وظیفې او تنخوا ګانې ورکړې وې،او د خلفاء راشدینو عمل زمونږ د پاره حجت دې.

قال ﷺ: علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین.

قال الامام الزیلعی رحمة الله علیه: وقد روی عن عمر بن الخطاب رضی الله عنه انه کان یرزق المعلمین،ثم اسند عن ابراهیم بن سعد عن ابیه ان عمر بن الخطاب رضی الله عنه کتب الی بعض عماله ان اعط الناس علی تعلیم القران انتهی کلامه. (نصب الرایة ص۱۳۷ ج۴)

وقال الامام النووی رحمة الله علیه: (قوله ﷺ خذوا منهم واضربوا لی بسهم معکم) هذا تصریح بجواز اخذ الاجرة علی الرقیة بالفاتحة والذکر وانه حلال لا کراهیة فیها وکذا الاجرة علی تعلیم القرآن وهذا مذهب الشافعی ومالك واحمد واسحاق وابی ثور واخرین من السلف ومن بعدهم ومنعها ابوحنیفة رحمة الله علیه فی تعلیم القرآن واجازها فی الرقیة (شرح مسلم للنووی ص۲۲۴ ج۲)

وقال الامام ابن الغربی المالکی رحمة الله علیه: الصحیح جواز اخذ الاجرة علی الاذان والصلوة والقضاء وجمیع الاعمال الدینیة فان الخلیفة یاخذ اجرته علی هذا کله وفی کل واحد منها یاخذ النائب اجرة کما یاخذ المستنیب والاصل فی ذلك قوله ﷺ (ما ترکت بعد نفقة نسائی ومؤنة عاملی فهو صدقة) اهـ (نیل الاوطار ص۲۱ ج۲)

وقال الامام ابو یوسف رحمة الله علیه: ولم تزل الخلفاء تجری للقضاة الارزاق من بیت مال المسلمین.

(کتاب الخراج لابی یوسف ص ۱۸۷)

امام نووی او نورو ډیرو فقهاء کرامو رحمهم الله د حضرت امام اعظم ابوحنیفه رحمة الله علیه نه په تعلیم د قرآن باندې او په درس او تدریس باندې اجرت اخستل مکروه او ممنوع نقل کړی دی،د دې ممانعت ډیر وجوهات کیدې شی:

۱- کیدې شی دوئ د ډیرې تقوی او پرهیزګارئ د وجې نه په دینی کارونو باندې اجرت اخستل منع کړی وی.

۲ - د مالدارو خلقو د پاره ئې مکروه وئیلې وی.

۳ - کوم خلق چې په دینی کارونو باندې اجرت اخستل مقصود بالذات ګڼی هغوی د پاره مکروه او ممنوع دی.

۴ - څنګه چې معلومه ده چې په خیرالقرون کښې به مفلسو د دین خادمانو ته د بیت المال نه قاعده تنخوا اووظیفه ورکول کیدله نو له همدې کبله یی د هغوئ د پاره جدا اوبله تنخوا اخستلو ته مکروه وئیلی دی.

اوس هر کله چې د بیت المال نظام ګډوډ شوې دې، نو په فقهاؤ د احنافو رحمهم الله کښې متاخرینو فقهاء کرامو رحمهم الله د آئمه ثلاثه په شان د جواز فتوی ورکړې ده، چې تصریح ئې د احنافو په کتابونو کښې موندلې شی۔

۷ - قال الامام قاضیخان رحمه الله : وان استاجر رجلا لتعلیم القرآن لا تصح الاجارة عند المتقدمین و لا اجر له بین لذلك وقتا اولم یبین ومشایخ بلخ رحمهم الله جوزوا هذه الاجارة حتی حکی عن محمد بن سلام رحمه الله انه قال اقضی بتسمیر باب الوالد باجرة المعلم، وقال الشیخ الامام ابوبکر محمد بن فضل رحمه الله انما کره المتقدمون الاستئجار لتعلیم القرآن و کرهوا اخذ الاجر علی ذلك لانه کان للمعلمین عطیات فی بیت المال فی ذلك الزمان و کان لهم زیادة رغبة فی امر الدین و اقامة الحسبة وفی زماننا انقطعت عطیاتهم و انقضت رغائب الناس فی امر الاخرة فلو اشتغلوا بالتعلیم مع الحاجة الی مصالح المعاش لاختل معاشهم فقلنا بصحة الاجارة ووجوب الاجرة للمعلم بحیث لو امتنع الوالد عن اعطاء الاجر حبس فیه (الخانیة علی هامش العالمگیریة ص۳۲۰ ج۲)

۸ - و قال العلامة ابن نجیم رحمه الله : اما المختار للفتوی فی زماننا فیجوز اخذ الاجر للامام و المؤذن والمعلم والمفتی، کما صرحوا به فی کتاب الاجارات. (البحر الرائق ص۲۶۳ ج۱)

د ځکومو بعضو آیتونو او احادیثو نه چې په تعلیم القرآن، اذان، امامت او د درس او تدریس په عدم د جواز باندې استدلال کولې شی، هغه ددې لاندې ورکړې شوو وجوهو له کبله په ممانعت کښې صریح او متعین المعنی نهٔ دی.

۱- که چیرې دا په ممانعت کښې صریح وای نو حضراتو خلفاء راشدینو رضی الله عنهم، او حضراتو ائمهٔ ثلاثو، جمهور علماء کرامو، او د احنافو متاخرینو فقهاء کرامو رحمهم الله به ددې خلاف د جواز فتوی هیڅ کله نهٔ وه ورکړې.

۲ - دا ممانعت د هغه چا دپاره دې د چا مقصد چې په دې دینی کارونو باندې پیسه ګټل وی، او د دې نه ئې مقصد کسبِ معاش وی، دچا مقصد چې د تعلیم او د تدریس نه د دین خورول او تبلیغ وی د هغهٔ د پاره ممانعت نه دې.

په همدې حقله حکیم الامت حضرت تهانوی رحمه الله فرمائی: ځینی خلق په دې دینی کارونو باندې تنخوا اخلی او دین د دنیا د ګټلو دپاره یو ذریعه جوړوی، او ځینی په کښې تنخوا واخلی او د دنیا نه دین جوړوی، که چیرته د چا د درس او تدریس او دتعلیم القرآن نه مقصد مال ګټل وی نو هغه دین د سپکې دنیا د ګټلو یوه ذریعه جوړه کړه او د دې نه ئې دنیا جوړه کړه، او څوک چې په دې کارونو باندې تنخوا د دې د پاره اخلی چې ښهٔ په مضبوط زړه سره بې فکره په ښه طریقې سره دا کار وکړې شی، نو هغه ددې دنیا نه دین جوړ کړو، ځکه چې دغه سړې تنخو د دې د پاره اخلی چې د

دین خدمت وکړې شم، او که نه نو د دنیا په گټه کښې لگیا شوم نو د دین خدمت به رانه پاتې شي.

۳- دا د تعلیم او د تدریس معاوضه نهٔ ده بلکه د حبسِ اوقات معاوضه ده کوم چې روا ده.

قال العلامة ابن نجيم رحمة الله عليه: (و رزق القاضى) يعنى و حل رزق القاضى من بيت المال لان بيت المال اعد لمصالح المسلمين و رزق القاضى منهم لانه حبس نفسه لنفع المسلمين و فرض النبى ﷺ لعلى رضي الله عنه لما بعثه الى اليمن و كذا الخلفاء من بعده هذا اذا كان بيت المال جمع من حل فان جمع من حرام و باطل لم يحل لانه مال الغير يجب رده على اربابه ثم اذا كان القاضى محتاجا فله ان يأخذ ليتوسل الى اقامة حقوق المسلمين لانه لو اشتغل بالكسب لما تفرغ لذلك وان كان غنيا فله ان يأخذ وهو الاصح لما ذكرنا من العلة ونظر المن يأتى بعده من المحتاجين ولان رزق القاضى اذا قطع فى زمان يقطع الولاة بعد ذلك لمن يتولى بعده (تكملة البحر الرائق ص۲۰۸ ج۲)

۴- په دې احادیثو کښې اکثر ضعیف دی، که چیرې څه روایات په کښې صحیح هم وی نو هغه مؤول دی یا منسوخ دی.

قال العلامة الزيلعى رحمة الله عليه تحت حديث ابى بن كعب رضي الله عنه قال علمت رجلا القرآن فاهدى الى قوسا فذكرت ذلك للنبى ﷺ فقال ان اخذتها اخذت قوسا من نار قال فرددتها، قال البيهقى فى المعرفة فى كتاب النكاح هذا حديث اختلف فيه على عبادة بن نسى قيل عنه عن جنادة بن ابى امية عن عبادة بن الصامت، و قيل عنه عن الاسود بن ثعلبة عن عبادة، و قيل عن عطية بن قيس عن ابى بن كعب، ثم ان ظاهره متروك عندنا و عندهم فانه لو قبل الهدية و كانت غير مشروطة لم يستحق هذا الوعيد و يشبه ان يكون منسوخا بحديث ابن عباس و حديث الخدرى رضي الله عنهما، و ابو سعيد الاصطخرى من اصحابنا ذهب الى جواز الاخذ فيه على ما لا يتعين فرضه على معلمه و منعه فيما تيعين عليه تعليمه و حمل على ذلك اختلاف الاثار، و قد روى عن عمر بن الخطاب رضي الله عنه ان كان يرزق المعلمين، ثم اسند عن ابراهيم بن سعد عن ابيه ان عمر بن الخطاب رضي الله عنه كتب الى بعض عماله ان اعط الناس على تعليم القرآن انتهى كلامه. (نصب الراية ص۱۳۷ ج۴)، والله سبحانه وتعالى اعلم ۲۹ ربيع الثانى ۱۳۸۹ هجرى

## د مدرسینو د تنخوا د مختلفو صورتونو حکم

**سوال**:- د مدرسینو د تنخو په حقله د دې لاندینو سوالونو جوابونه مطلوب دی:

۱- د یو مدرس تقرر د شوال نه شوې دې، مدرسه د ۱۱ د شوال نه شروع کیږی لهذا دغه مدرس د ۱۱ د شوال نه کار شروع کړو، نو آیا هغه ته به تنخوا د پوره میاشتې ورکول کیږی او که نه د ۱۱ د شوال نه تر آخر د میاشتې پورې تنخوا به ورته ورکول کیږی؟

۲- یو مدرس د کال د شروع نه مدرس وو، د کال په رخصتیانو کښې د مدرسې له اړخه د

راروان کال د پاره هغه لرې کړې شو ،نو آیا هغه به د رمضان د تنخوا مستحق وی او که نه؟

۳ - په دویم سوال کښې که په را روان کال کښې د لرې کولو خبر دغه مدرس ته د رمضان په مینځ کښې ورکړې شی نو بیا څه حکم دې؟

۴ - د داسې مدرس به څه حکم وی چې دهغه تقرر دکال په مینځ کښې شوې وی، بیا د رخصتیانو په وخت کښې یا د رمضان په مینځ کښې هغه لرې کړې شی نو آیا هغه به د رمضان د تنخوا مستحق وی او که نه؟

۵ - یو مستقل مدرس چې په راروان کال کښې هم د هغهٔ په مدرسه کښې د پاتې کولو اراده وی، هغه په شعبان یا په رمضان کښې وفات شی نو ددې دوو میاشتو د تنخوا به څه حکم وی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مدرسینو سره عقد اجاره مسانهه ده،لهذا په هر صورت کښې به د تقرر د ابتداء نه د رمضان د انتهاء پورې تنخوا ورکولې شی،په اهل د مدرسې باندې دا لازم دی چې د لرې کولو خبر دې ورته په وخت یعنی د رجب په آخره کښې ورکړی،که په خبر ورکولو کښې ئې تاخیر وکړو لکه په دریم سوال کښې چې څنګه ذکر کړې شوې دی نو په دې به دوی بیا ګناه ګار وی، د کومې نه چې توبه او استغفار لازم دې۔ **والله سبحانه وتعالی اعلم**. ۲۳ ذی الحجه ۱۳۸۷ هجری

## د څو کالو رخصتی جمع کول او بیا د اجرت مطالبه کول

**سوال**:- په عربی مدارسو کښې چې مامورینو ته د اتفاقی رخصتیانو کوم حق وی،که چیرې یو مامور څو کالو پورې رخصتی وانخلی نو آیا د هغهٔ حق به د آینده دپاره باقی پاتې وی او که نه د وخت په تیریدلو باندې یی حق ختمیږی؟ که چیرې یو مامور د څو کالو په تیریدلو باندې د یو کال سره د نورو تیرو شوو کلونو رخصتیانې هم جمع کړی او په یو ځائې دوه درې میاشتې رخصتی وکړې او د هغې د تنخوا مطالبه وکړی نو آیا شرعاً هغهٔ ته داحق شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د کال په تیریدلو باندې دا حق ختمیږی، لهذا د څو کلونو د تیریدلو نه پس د تیرو شوو کالونو د رخصتیانو د اخستلو هیڅ حق د دهٔ نشته دې،او هر کله چې ئې تنخوا اخستې ده نو اوس په دویم ځل د تنخوا د اخستلو څه مطلب شو؟ که چیرې د مدرسې د تاکلې شوو ورځو نه ئې زیاتې رخصتیانې وکړې نو ددغه زیاتی ورځو تنخوا اخستل روا نهٔ دی.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: بخلاف ما اذا لم يقدر لكل يوم مبلغا فانه يحل له الاخذ وان لم يدرس فيها للعرف بخلاف غيرهما من ايام الاسبوع حيث لا يحل له اخذ الاجر عن يوم لم يدرس فيه مطلقا سواء قدر له الاجر لكل يوم او لا. (ردالمحتار ص۳۷۱ ج۳) ۱۲ محرم ۱۳۹۰ هجری

## د بیمارئ د ورځو تنخوا

**سوال:**- یو مدرس په مدرسه کښې د درس ورکولو اراده لرې.د دې مدرسې دا دستور دې چې د لسم د شوال نه تعلیم شروع کړې شی،دغه مدرس په شپاړسم دشوال راشی او وائی چې زهٔ به دوه ورځې پس راځم او درس به شروع کوم،لیکن هغه یوه هفته پس راشی،د راتلو نه پس د هغه طبیعت بیا خراب شی،آخر دا چې هغه په ۲۹ د شوال باندې سبقونه شروع کړی.نو آیا په دې صورت کښې به هغه د شوال د میاشتې د تنخوا مستحق وی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د کومو دوو ورځو رخصت ئې چې اخستې وو او تلې وو د هغه دوو ورځو د اجرت مستحق دې او د باقی ورځو د اجرت مستحق نهٔ دې،د حاضرئ نه پس د هغه د بیمارئ د ورځو د تنخوا فیصله به د هغهٔ د عقد د شرائطو مطابق کولې شی،او که په وخت د عقد کښې د بیمارئ د ورځو د تنخوا په حقله څه وضاحت نهٔ وو کړې شوې،نو د مدرسو په عرف باندې به فیصله کولې شی،دعامو مدرسو عرف دا دې چې د بیمارئ د ورځو تنخوا ورکولې شی۔ **والله سبحانه وتعالی اعلم.** ۱۳ جمادی الاولی ۱۳۹۲ هجری

## که مامور د اجارې د مودې د ختمیدلو نه وړاندې کار پریښودلو نو د تیرو شوو ورځو د تنخوا به مستحق وی

**سوال:**- د مدرسې مامور دوه یادرې ورځې کار وکړی او لاړ شی او حال دا چې ددې مامور تقرر د پوره کال د پاره کړې شوې وو،د دهٔ د تلو د وجې نه د مدرسې سخت نقصان کیږی،او د ډیر زیات عذر کولو نه پس هم هغه واپس نهٔ راځی،او چې څومره ورځې کار ئې وکړو د هغې د تنخوا طلب ګار دې، آیا هغهٔ د تنخوا مستحق دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې مامور باندې د وعدې مطابق ټول کال کار کول لازم دی،بې د شرعی عذر نه د کار د پریښودلو په صورت کښې به سخت ګناه ګار وی، لیکن څو ورځې کار ئې چې کړې دې نو د هغومره ورځو د تنخوا دې مستحق دې۔ **والله سبحانه وتعالی اعلم.**

۷ صفر ۱۳۹۳ هجری

## د غیر حاضرئ د ورځو د اجرت حکم

**سوال:**- د مدرسو استاذان او د جماتونو امامان چې په کومو ورځو کښې غیر حاضر وی نو آیا دوی د دغه ورځو د اجرت مستحق دی او که نه؟ او د څومره ورځو غیر حاضرئ نه صرف نظر کیدې شی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: پدې کښې به د مدرس په عرف باندې عمل کولې شی،چې عرفا

ځومره غیر حاضریانې عفو ګڼل کیږی،د هغې د اجرت به مستحق وی،د زیاتو به مستحق نهٔ وی
قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: وفی القنية من باب الامامة امام يترك الامامة لزيادة اقربائه فی الرساتيق اسبوعا او نحوه او لمصيبة او لاستراحة لا بأس به و مثله عفو فی العادة والشرع اھ و هذا مبنی علی القول بأن خروجه اقل من خمسة عشر يوما بلا عذر شرعی لا يسقط معلومه وقد ذكر فی الاشباه فی قاعدة العادة محكمة عبارة القنية هذه حملها علی انه يسامح اسبوعا فی كل شهر واعترضه بعض محشيه بأن قوله فی كل شهر ليس فی عبارة القنية ما يدل عليه قلت والاظهر ما فی اخر شرح منية المصلی للحلبی ان الظاهر ان المراد فی كل سنة.
(ردالمحتار ص۳۰۰ ج۳) والله سبحانه وتعالی اعلم. ٤ جمادی الآخرة ۱۳۹۳ هجری

## په استنابه (یعنی نائب جوړولو) کښې د اجرت مستحق اصل شخص دې او که نائب؟

**سوال:-** امام یا مدرس څوک په خپل ځائ نائب کړو او لاړو،نو چې څومره ورځو دپاره دې تلې دې د دومره ورځو د اجرت مستحق به څوک وی؟ اصل شخص به وی او که نائب؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په امامت او تدریس کښې نائب مقررول روا دی، لیکن د اجرت مستحق به اصل امام یا اصل مدرس وی،البته که چیرې اصل د نائب د پاره اجرت مقرر کړې وی نو هغهٔ به ددې مستحق وی،اوکه چیرې اجرت ئې نهٔ وی مقرر کړې نو هغهٔ به بیا د اجر مثل مستحق وی
قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: قال فی البحر وحاصل ما فی القنية ان النائب لا يستحق شيئا من الوقف لان الاستحقاق بالتقرير ولم يوجد ويستحق الاصيل الكل ان عمل اكثر السنة وسكت عما يعينه الاصيل للنائب كل شهر فی مقابلة عمله والظاهر انه يستحقه لانها اجارة وقد وفی العمل بناء علی قول المتأخرين المفتی به من جواز الاستئجار علی الامامة والتدريس وتعليم القرآن. (ردالمحتار ص۳۱ ج۳)

٤ جمادی الاخرة ۱۳۹۳ هجری

## د نا اهله کیدلو له کبله لرې کړې شوې امام د باقی پاتې ورځو د تنخوا مستحق نهٔ دې

**سوال:-** د یو دینی مدرسې یو مدرس د هغهٔ د طرزِ عمل او د څه کمزوریانو له کبله هغه د ادارې د پاره نامناسبه وګڼلې شو او د کال په ختمیدلو باندې د رجب په آخره کښې مهتمم صاحب هغه لرې کړو،او د رجب تنخوا ورته هم ورکړې شوه،د دې ادارې د مامورینو د اخوا کولو په شق کښې دا شامل دی چې په عامو حالاتو کښې اخوا کوونکې مدرس به یوه میاشت وړاندې خبر...

دا مدرس د نا اهلیت له کبله مجبورتًا لرې کړې شو ،او بله څه وجه په نظر نه راتله. د دې وجې نه د وراندې نه د خبر د ورکولو ضرورت محسوس نۀ کړې شو ،آیا شرعا به د شعبان د میاشتې تنخوا ورکول لازم وی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرې مدرس واقعتا د نا اهلیت له کبله معزوله کړې شوې وی نو هغۀ د شعبان د تنخوا مستحق نۀ دې. **والله سبحانه وتعالی اعلم**. ۲٦ رجب ۱۳۹۳ هجری

## د مدارسو عقد اجاره مسانهه ده

**سوال**:- که چیرې د یوې مدرسې دا دستور نۀ وی چې لرې شوی مدرس ته به د رمضان تنخوا ورکول لازم وی، د دې باوجود د مدرسې ناظم تنخوا ورکړی، نو آیا دا تنخوا د لرې شوی مامور دپاره اخستل او د ناظم دا تنخوا ورکول روا دی او که نه؟ او که چیرې روا نۀ وی نو د دې ضمان به په چا باندې وی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دې معاملې مسانهه کیدل معروف دی لهذا په صورت د عدم اشتراط کښې هم د رمضان تنخوا واجبه ده، **لان المعروف کالمشروط**. البته که په وخت د عقد کښې ددې تصریح کړې شوې وه چې دا تعاقد تر آخر د شعبان پورې دې نو بیا په دې صورت کښې به دې د رمضان د تنخوا مستحق نۀ وی. **والله سبحانه وتعالی اعلم**. ۲٦ رجب ۱۳۹۳ هجری

## په دینی مدرسو کښې د رمضان د تنخوا حکم

**سوال**:- د عامو ادارو دا اصول دې چې که چیرې یو مدرس اداره په خپله لرې کوی نو په اداره باندې دا لازم دی چې د رمضان تنخوا به ورکوی، او که چیرې مدرس په خپله دا اداره پریږدی نو بیا به مستحق نۀ وی، د دې شرعی حیثیت څه دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مدرسین اجیرِ خاص دی، د دوی عقد د اجارې د عمل په ځائ په وخت باندې دې، چې موده ئې د مدرسو د عرف مطابق یو کال ده، په دې کښې په رمضان کښې د عدم استحقاق د اجرت شرط سره عقد فاسد شو، **لانه مخالف لمقتضی العقد وفیه نفع لاحد المتعاقدین** لهذا مدرس به د ټول کال په اجر مثل او په مقرره اجر کښې د اقل حق دار وی.

په تعاقد کښې داسې قسمه شرط لګول ناروا دی. **والله سبحانه وتعالی اعلم**.

۲٦ رجب ۱۳۹۳ هجری

## د پورتنی سوال په شان یوبل سوال

**سوال**:- په دینی مدرسو کښې په عامه توګه دا قانون دې چې کوم مدرس په شعبان کښې د

تعلیمی کال په ختمیدلو باندې د راروان کال دپاره په خپله مدرسه پریږدی نو هغهٔ ته د رمضان تنخوا نه ورکول کیږی، او که چیرې د مدرسې لخوا هغه لرې کړې شی نو هغه ته بیا د رمضان تنخوا ورکول کیږی.

بعضی مدرسین د رمضان د تنخوا د اخستلو دپاره دا تدبیر کوی،چې د شعبان په آخره کښې مهتمم ته د مدرسې د پریښودلو خبر نهٔ ورکوی،د رمضان د تنخوا د اخستلو نه پس هغه ته خبر ورکړی، آیا د دوی دا عمل روا دې؟ او آیا د دوی دپاره د رمضان تنخوا حلاله ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د مدارسو د عرف مطابق دا عقد اجارهٔ مسانهه ده،د رمضان د اجرت عدمِ استحقاق شرط لګول د عقد د مقتضا خلاف دی، لهذا دا عقد فاسد شو،مدرس ته به د ټول کال اجرِ مثل ورکول کیږی، چې د ټاکلې شوې تنخوا نه به زیات نهٔ وی.

په تعاقد کښې داسې قسمه شرط لګول ناروا دی.

په دې کښې د ځینی اهل علمو بعض اشکالات دی.

۱ - په دې تعاقد کښې د راروان کال د پاره تدریس لازمی شرط نهٔ ټاکلې کیږی،بلکه د کال په آخره جانبینو ته دا اختیار وی، په معاهده کښې صرف د اجرت د استحقاق د فیصلې صورت متعین کولې شی.

۲ - په دې کښې جهالة مفضية الى النزاع دې لانها ترتفع بعمل الاجير.

۳ - که د عقد فساد تسلیم هم کړې شی،نو دا به صرف د رمضان په حقله وی،د دې نه وړاندې د یوولس میاشتو عقد به صحیح وی،ځکه چې د اجرت د عدمِ استحقاق شرط صرف د رمضان په حقله دې.

**د اولنی اشکال جواب** : تعليق استحقاق الاجرة بشرط يكون بمنزلة الشرط لانهما عبارتان عن معنى واحد على ان الشرط المفسد هو عدم استحقاق الاجرة بعض التقادير فانه مخالف لمقتضى العقد و فيه نفع للمستاجر فان المقتضى هو الاستحقاق بايفاء العمل على كل تقدير.

**د دویم اشکال جواب** : په بیعه کښې خیارِ تعیین سره او په اجاره کښې عمل سره د جهالت د ارتفاع اعتبار د قیاس خلاف دې، لهذا ذکر کړې شوې مسئله په دې باندې قیاس کول صحیح نهٔ ده،او مستقیماً په همدې کښې داخل نهٔ دې د دوو وجو نه:

۱ - د ارتفاع الجهالة بالعمل مواضع یعنی ان صبغته بعصفر فبدرهم وان صبغته بزعفران فبدرهمين وامثالهم کښې په احد الشقین کښې اجرت بالکل معدوم نه دې بلکه ددې تقلیل دې،او په مسئله د اجرت کښې د یوې میاشتې اجرت بالکل معدوم دې.

۲ - په ذکر کړې شوې مثالونو کښې په دوارو شقونو کښې په عمل کښې معقود علیه موجود دې او په مسئله د تدریس کښې د راروان کال د پاره تدریس د معقود علیه نه بالکل خارج څان له یو څیز دې.

د نزاع د ویرې د نشتوالی د علت له کبله الحاق هم صحیح نهٔ دې، ځکه چې په مسئله د تدریس کښې صرف دنزاع ویره نهٔ ده بلکه د نزاع وقوع په کښې په کثرت سره کیږی، د کومو د فیصلو د پاره چې د مختلفو مدرسو نه استفتاء اخستل کیږی.

د دې نه علاوه پورته دا خبره وښودلې شوه چې په نص د فقهاء کرامو ﷺ دلته له سره اصل خلاف القیاس دې، په حقیقت کښې په دې خایونو کښې هم عدم د جواز کیدل پکار دی، ځکه چې په وخت د عقد کښې په وجه د جهالت سره عقد فاسد شو، کوم چې بیا وروستو د جهالت په ارتفاع سره نهٔ صحیح کیږی، د عقد د صحت د پاره په وخت د تعاقد کښې عدم د جهالت شرط دې، وروستو بیا د جهالت د ارتفاع اعتبار نشته دې، سره د دې بیا هم په ذکر کړې شوو ځایونو کښې د حاجت د وجې نه خلاف القیاس اجازت ورکړې شوې دې. **فلا یصح القیاس علیه**

په فرض د دخول د فساد سره د اجارې د فساد دویم علت خو په هر حال کښې موجود دې، ای **الشرط المخالف لمقتضی العقد وفیه نفع لاحد المتعاقدین**

**د دریم اشکال جواب**:

**العقد واحد من ابتداء السنة الی تمامها لانها مسانهة فالفساد یقع فی تلك المدة الکاملة لا فی جزء منها.**

**قال العلامة الرافعی رحمة الله علیه: (قوله و لو قال اجرتك سنة بألف کل شهر بمائة الخ) و ذکرها فی الخانیة ایضا وقال فیها نوع اشکال و هو انه لو جعل فسخا للاول و ابتداء اجارة ینبغی ان یجوز فی الشهر الاول ثم تتجدد بمجیء کل شهر ویکون لکل واحد الخیار عند تجدد کل شهر اهـ ویقال المراد انها فسخ فی حق الاجرة لا المدة فانها لا فسخ فیها بل هی سنة (تقریرات الرافعی ص۲۶۵)**

د دې نه علاوه که دې ته تعدد د عقودو اووئیلې شی نو په دې کښې دوه فساده دی:

۱ - د هرې میاشتې دعقد سره د نورو میاشتو عقدونه مشروط نهٔ دی نو په جانبینو باندې به د دې ایفا لازمه نهٔ وی، او که چیرې مشروط وی نو دا بیا **صفقة فی صفقة بل فی صفقات** شو.

۲ - د راروانو میاشتو په عقدونو کښې به هر عقد اجارهٔ مضافه وی، کومه چې د مفتی به قول مطابق اګرچې صحیح ده لیکن لازمه نهٔ ده.

**قال فی التنویر وشرحه: ویعلم النفع ببیان المدة کالسکنی والزراعة مدة کذا ای مدة کانت وان طالت ولو**

مضافة کاجرتکها غدا وللمؤجر بیعها الیوم وتبطل الاجارة به یفتی خانیة.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله وللمؤجر بیعها الیوم) ای قبل مجیء وقتها بناء علی ان المضافة تنعقد ولکنها غیر لازمة وهو احد تصحیحین وایدعدم اللزوم بأن علیه الفتوی کما سیأتی فی المتفرقات وفی البزازیة فان جاء غد والمؤجر عاد الی ملکه بسبب مستقل لا تعود الاجارة وان رد بعیب بقضاء اورجع فی الهبة عادت ان قبل مجیء الغد (ردالمحتار ص ج)

د عقد د فساد د وجې نه به د ټول کال عقد فاسد وی، لهذا مدرس به د ټول کال په اجر مثل او په اجرِ مقرر کښې د اقل مستحق وی.

**«الحمد لله د اشکال خاوندان په ذکر کړې شوو جوابونو سره مطمئن شو»**

همدغه شان دیو سوال په جواب کښې مولانا خلیل احمد صاحب سهارنپوری رحمه الله فرمائی:

مدرسین اجیرِ خاص دی ځکه چې د وخت پابند دی، د دوی د رخصتئ زمانه د کارکولو زمانه ده، ځکه چې په دې کښې عقد د اجارې باقی دې، هغه عقد نهٔ دې قطع شوې، لیکن د تنخوا په حقله یو شرط لګولې شوې دې، چې د رمضان د تنخوا مستحق به په هغه صورت کښې وی چې د شوال په ابتداء کښې حاضر شی، شرعا د مقتضا خلافِ شرط لګول د عقد د اجارې دپاره مفسد وی، لهذا دا عقد د اجارې فاسد شو، او د فساد په صورت کښې اجیر د اجر مسمی مستحق نهٔ وی بلکه د اجرمثل مستحق وی، لهذا په موجوده صورت کښې به هغه مدرس د تنخوا مستحق نهٔ وی بلکه د اجرمثل مستحق به وی، او دې ته دې شرط فی العقد نهٔ وئیلې کیږی بلکه د عقد نهٔ دې ورته خارج اووئیلې شی، یا دې ورته معروف شرط اووئیلې شی، نو په دې ټولو صورتونو کښې به مدرس په واقعه متنازع فیه کښې د ټولې تنخوا مستحق وی.

او احتمالات او اختلاف د حکم خو صرف په رمضان المبارک کښې دې، او د شوال په ورځو کښې چې کله مدرس په خپل کار باندې مامور وی نو بیا خو به د خپلې تنخوا ضرور مستحق وی.

(فتاوی خلیلیه ص ۲٤۷)

**د ذکر کړې شوی تحریر وضاحت:-**

۱ - **قوله** : او احتمالات او اختلاف د حکم خو صرف په رمضان المبارک کښې دې - الخ.

د دې د سیاق (او د شوال په ورځو کښې الخ) نه معلومیږی چې دا اختصاص د راروان کال په مقابله کښې بیانیږی، په تیر شوی ټول کال کښې د فساد د خوریدلو نفی په کښې نشته، په صورت د تسلیمولو کښې د دې خلاف د فساد د خوریدلو دلائل پورته د دریم اشکال په جواب کښې تیر شوی دی.

۲- **قوله**: د اجر مثل مستحق به وی. ولکن لایزاد علی المسمی.

۳ - **قوله** : دې ته دې شرط فی العقد نهٔ وئیلې کیږی ـ الخ
لیکن اوسه پورې د مدرسو د قواعدو مطابق دا شرط د عقد دملا تړ په حیثیت سره راروان دې. د دې وجې نه دا مفسد د عقد دې .
۴ - **قوله** : دې ته دې شرط معروف اووئیلې شی .
زما په خیال د عقد د فساد شرط پس د عرف نه مفسد نهٔ پاتې کیدل کلیه نهٔ ده،بلکه په دې کښې تفصیل دې، او هغه تفصیل ته چې خیال وکړې نو په ((**اشتراط آلات العمل علی الاجیر**)) باندې د ((**اشتراط عدم استحقاق الاجرة**)) قیاس صحیح نهٔ معلومیږی ،فلیتامل .
فرض کړه که د قیاس صحت ته وګورې نو په دې اجاره کښې داسې عرف نشته دې،هر څه چې وی هغه به وی لیکن تر اوسه پورې اجارهٔ فاسده راروانه ده.

**صورت د تصحیح** :
د دې فساد نه د بچ کیدلو همدا صورت کیدې شی،چې دا قاعده دې ختمه کړې شی،او مدرس ته باید په هر حال کښې د رمضان تنخوا ورکول شی ، برابره خبره ده که هغه په راروان وخت کښې دوی سره تدریس کوی او که نه یې کوی،او که خامخا همدا قاعده جاری ساتل وی نو د دې د تصحیح دا صورت کیدې شی چې په اول کال دې عقد د اجارې د یوولس میاشتو دپاره وکړې شی، د شوال د ابتداء نه واخله تر د شعبان د انتهاء پورې، بیا د راروان کال دپاره دې د رمضان المبارک د شروع نه واخله د شعبان تر آخره پورې دولس میاشتې عقد دې وکړی .
په دې صورت کښې که مدرس د شعبان په آخره کښې د عقد په ختمیدلو باندې مدرسه پریږدی، نو هغه به درمضان د تنخوا مستحق نهٔ وی ((**لان مدة الاجارة قد تمت بانقضاء شعبان**)) اوکه د راروان کال د پاره پاتې کیږی نو د دویم عقد له کبله به د رمضان د تنخوا مستحق شی،لان **ابتدائه من ابتداء رمضان**،
پاتې شوه دا قاعده چې که مدرس ته د مدرسې له خوا جواب ورکړې شو نو هغه ته به د رمضان المبارک تنخوا ورکړې کیږی اوکه نه ؟ نو د دې تصحیح داسې کیدې شی چې مهتمم دې دا وعده په طور د التزام د تبرع وکړی چې پوره کول به ئې په مهتمم باندې لازم وی،د عدم ایفاء په صورت کښې به ګناه ګار وی، لیکن مدرس به مطالبه نهٔ شی کولې .
که چیرې مهتمم د متولی یا د انتظامیې له اړخه په تصرفاتو کښې پوره اختیار مند وی نو د مدرسې د خزانې نه تبرع کولې شی اوکه نه نو له خپل طرفه دې ورکړی .
**ویشکل علی التعاقد من ابتداء رمضان نص الفقهاء رحمهم الله علی ان الاجیر لا یستحق الاجر بالتعاقد قبل**

التسليم فلا مخلص بدون الحاق رمضان بالسنة الماضية وايجاب اجرته.

د عقد له معروفې مودې نه علاوه د څو زیاتو ورځو اجرت ورکول عام عرف دې، او دې ته د ماضی د عمل میوه وئیلې شی.

دا خبره د قاعدې د لاندې د راوستلو د پاره ددې تعبیر داسې دې، چې د مدرسینو سره په اجاره کښې تعاقد خو د یوولسو میاشتو وی یعنی د شوال د ابتداء نه واخله د شعبان تر آخره پورې، لیکن ددې مجموعه مودې تنخوا به په قسطونو کښې په دولسو میاشتو کښې ورکولې شی، د رمضان اړخ ته چې کومه تنخوا منسوب ده دا په حقیقت کښې د رمضان اجرت نۀ دې، بلکه ددې نه وړاندې د یوولسو میاشتو د اجرت یوه حصه ده، او د همدې اجرت آخری قسط دې.

د دې مثال په سرکاری نوکرۍ کښې د (جی پی فنډ) په شان دې، په کوم کښې چې د نوکر د تنخوا نه څومره پیسې کټ کیږی نو د هغې په برابر ورسره حکومت نورې پیسې جمع کوی، په حقیقت کښې دا زیات والې هم د ماضی د عمل په اجرت کښې شامل دې.

همدا تاویل په دې کښې هم کیدې شی چې رمضان دې د راوان کال سره پیوسته کړې شی، په دې طریقه چې د یوولسو میاشتو د عمل د اجرت څه حصه دې د عمل د ابتداء نه وړاندې ورکړې شی

لیکن څنګه چې وړاندې اووئیلې شو چې د عمل د مودې نه پس چې کومې ورځې دی د هغې د پیوسته کولو عام عرف دې، د وړاندې د ورځو دپیوسته کولو عام عرف نۀ دې، البته که په اسلامی مدرسو کښې د دې عام عرف شی یا په وخت د تعاقد کښې د دې وضاحت وکړې شی نو الحاق به یی په مستقبل پورې به صحیح شی. والله سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۲۱ صفر ۱٤۱۵ هجری

## د پورتنی سوال په شان یوبل سوال

**سوال:-** ما ته ستاسو په فتوی کښې کومه چې د رمضان د تنخوا د استحقاق په حقله ده دا اشکال دې چه : دا شرط لګول چې(که په راروان کال کښې زمونږ په مدرسه کښې پاتې نه شوې نو د رمضان المبارک د تنخوا به مستحق نۀ ئې) دا شرط د عقد د مقتضاء خلاف نۀ دې، څکه چې په رمضان کښې خو څه کار نه وی او رخصتیانې وی او رخصتیانې د دې د پاره وی چې آرام وکړی د راروان کال د پاره تکړه او تازه شی، لهذا د دې رخصتیانو فائده او میوه به بلې مدرسې ته ورسیږی، لهذا د رمضان تنخوا د بلې مدرسې نه اخستل پکار دی، کومه مدرسه به چې د دې فائده او میوې نه نفع اخلی، په فتاوی شامیه کښې دی چه :

القاضی یستحق الکفایة من بیت المال فی یوم البطالة فی الاصح وفی الوهبانیة انه اظهر فینبغی ان یکون کذلک فی المدرس لان یوم البطالة للاستراحة و فی الحقیقة تکون للمطالعة والتحریر عند ذوی الهمة

**(ردالمحتار ص۴۱۶ ج۴)**

او ښکاره خبره ده چې مطالعه او تحرير به د راروانو سبقونو د پاره وي،په اصل کښې خو هم داسې کيدل په کار دي چې د رمضان د تنخوا د مخکښنيئ مدرسې نه دې مستحق نهٔ وي،ليکن که يو مهتمم دا خبره وټاکي چې که چيرې ما تهٔ لرې کړې نو د رمضان تنخوا به تا له درکوم نو دا د مهتمم له اړخه تبرع ده،او تبرع د مدرسې له اړخه کول صحيح نهٔ دي،بلکه تبرع د خپل ذاتي مال نه وي، لهذا د رمضان تنخوا به مهتمم د خپله جيبه ادا کوي،**الا ان يکون مختارا عاما في التصرف من جهة متولي المدرسة.**

**الجواب باسم ملهم الصواب** : رخصتيانو سره د تنخوا ورکولو د درې قسمونو عام رواج دې.

۱- د عمل د ابتداء نه وړاندې،لکه په ابتداء د شوال کښې.

۲- د عمل د اختتام نه پس لکه د شعبان په آخره کښې.

۳- د عمل په مينځ کښې،لکه د کال په مينځ کښې د جمعې او د غټ اختر رخصتيانې وغيره شوې.

د شامي په جزئيه کښې صرف د دريم قسم بيان دې،کيدې شي چې په هغه زمانه کښې د ړومبنو دوو قسمونو رواج نهٔ وو،د دې وجې نه ئې د دې ذکر ونهٔ کړو،په ظاهره دا جزئيه د حکم د علت او د خپل نص مطابق دريم قسم سره خاص ده،د دې قسمه اجير د دې خصوصي رعايت مستحق ځکه دې چې په ماضي او مستقبل کښې ددهٔ عمل هم د يو مستاجر د پاره دې.

د رخصتيانو د ورځو په مستقبل کښې د نافع کيدلو اصل بنياد دا دې چې هغهٔ د ماضي د ضرر دافع دي،د عمل په موده کښې د عامل په قوت کښې دومره کموالې او په حاجتونو کښې دومره تعطل راپيدا شي،چې هغه د ښهٔ ډيرو رخصتيانو د کولو نه بغير په مستقبل کښې څه کار نهٔ شي کولې،د دې وجې نه ددې ورځو د اجرت د استحقاق اصل تعلق ماضي سره دې،د دې وجې نه د عمل د ختميدلو نه پس د رخصتيانو ورکول سره د تنخوا د دې دستور لو رواج په ټوله دنيا کښې دې، او په هر ځائ کښې ددې عرف عام دې،او د دې په عکس د اولنی قسم وجود د اسلامي مدرسو نه علاوه بل يو ځائ کښې هم زما په علم کښې نشته دې،او که چيرې وي هم نو شاذ او نادر به وي.

غرض دا چې دا جزئيه صرف د قسم ثالث په حقله ده،ړومبی دوه قسمه ددې سره پيوسته کولې شي، د پيوسته کولو د علت اصل بنياد د ماضي عمل دې،د دې وجې نه د دويم قسم الحاق اقوی دې، او ددې وجې نه په ټوله دنيا کښې د دې عام عرف شوې دې،د پنشن قانون هم د دې نظريې لاندې دې.

لهذا رمضان لره به د مستقبل سره د پیوسته کولو په ځائ دماضی سره پیوسته کولې شی،بلکه په خپله په دینی مدرسو کښې هم دا عرف دې چې د مسانهې موده د شوال د ابتداء نه واخله د رمضان د انتهاء پورې ګڼلې کیږی،او د رمضان د تنخوا مسئله هم د دې وجې نه پیدا کیږی،که چیرې رمضان دتیر شوی کال نه بیل ګڼلې کیدلې نو د رمضان دتنخوا مسئله به بیخی پیدا کیدله نه

د فقهاء حضراتو ﷺ دا فیصله دې هم په نظر کښې وساتلې شی چې د اجارې د عقد نه پس د معقود علیه د تسلیمولو نه وړاندې اجیر د اجر نۀ مستحق کیږی.

**قال الامام الاکاسانی رحمه الله: ونعنی بالتسلیم التخلیة والتمکین من الانتفاع برفع الموانع فی اجارة المنازل ونحوها وعبید الخدمة واجیر الوحد حتی لو انقضت المدة من غیر تسلیم المستاجر علی التفسیر الذی ذکرنا لا یستحق شیئا من الاجر لان المستاجر لم یملك من المعقود علیه شیئا فلا یملك هو ایضا شیئا من الاجر لانه معاوضة مطلقة ولو مضی بعد العقد مدة ثم سلم فلا اجر له فیما مضی لعدم التسلیم فیه (البدائع ص۱۸۰ ج۴).**

رمضان المبارک د تیر شوی کال سره د پیوسته کولو دا حقیقت دې چې تعاقد د شوال د ابتداء نه واخله د شعبان تر آخره پورې د یوولسو میاشتو دې او د رمضان تنخوا هم د دې ماضی په موده کښې شامله ده. **کما بینت فی التحریر السابق والله سبحانه وتعالی اعلم.** ۳ رجب ۱٤۱۵ هجری

## د طالبانو د نشت والی له کبله د اجارې فسخه

**سوال:-** دلته په مدرسه کښې د مهتمم صاحب او د یو مدرس تر مینځه د تنخوا په مسئله کښې اختلاف پیدا شوې دې،مدرس د ټول کال د تنخوا د استحقاق دعوی کوی،لیکن مهتمم د دې نه انکار کوی ،په فریقینو کښې هر یو دخپل ځان په حقه باندې د کیدلو مدعیان دی،او دواړه په خپل موقف باندې دلائل وړاندې کوی د مسئلې صورت داسې دې:

مدرس تیر کاله په یوه مدرسه کښې مدرس مقرر شو،یو کال ئې یو څو میاشتې تدریس کولو، په ۱۴ ربیع الاول باندې ورته مهتمم صاحب اووئیل چې د کومې شعبې (یعنی د حفظ) تۀ استاذ ئې، په هغې کښې صرف شپاړس طالبان دی،د دومره لږو طالبانو د پاره مستقل یو استاذ ساتل مناسب نۀ دی، دا په مدرسه باندې بوج دې،د دې وجې نه د ۱۴ ربیع الاول نه تۀ معزوله یې،او د دې مدرس نه کوم بل قسم شکایت یا ګیله نۀ وه،په دې صورت کښې به مدرس د ټول کال د تنخوا مستحق وی او که نه؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب :** د طالبانو د کمیدلو عذر قابل د قبول نۀ دې،که چیرې مهتمم صاحب بې د ضرورت نه مدرس ساتلې وی، نو هغه دې د ټول کال تنخوا له خپله اړخه ورکړی،ځکه چې عقد د تدریس مسانهه وی.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: مطلب من لم يدرس لعدم وجود الطلبة:

وفي الحموي سئل المصنف عمن لم يدرس لعدم وجود الطلبة فهل يستحق المعلوم؟

اجاب: ان فرغ نفسه للتدريس بأن حضر المدرسة المعينة لتدريس استحق المعلوم لامكان التدريس لغير الطلبة المشروطين قال في شرح المنظومة: المقصود من المدرس يقوم بغير الطلبة بخلاف الطالب فان المقصود لا يقوم بغيره اهـ وسيأتي قبيل الفروع ان لو درس في غيرها لتعذره فيها ينبغي ان يستحق العلوفة وفي فتاوى الحانوتي يستحق المعلوم عند قيام المانع من العمل ولم يكن بتقصيره سواء كان ناظرا او غيره كالجابي

(در المحتار ص ۳۷۲ ج ۳) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۳ ربيع الاول ۱۴۰۰ هجری

## په دينی مدرسو کښې د مدرسينو دپاره د مختلفو قوانينو شرعی حيثيت

**سوال**:- ۱- په يوه خالصه مذهبی اداره کښې دا قانون جوړ کړې شوې دې چې که چيرې يو مدرس د بيمارئ رخصتی اخستل غواړی نو د يو انګريزی ډاکټر سند پيش کول ضروری دی،لکه څنګه چې د سرکاری دفترونو رواج دې،د دې شرعی حيثيت څه دې؟

۲ - په يوه دينی درسګاه کښې دا قانون دې چې هر کله د يو مامور عمر ۶۵ کاله شی نو هغه به دکار نه لرې کولې شی،اګرکه د هغهٔ هوش او حواس بالکل صحيح وی او خپل فرائض ښه په ښائسته طريقې سره پوره کوی،آيا داسې قانون جوړول روا دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ۱ – په شرعی لحاظ سره د داسې قانون هيڅ حيثيت نشته دې. په خاص توګه په دينی ادارو کښې د داسې فاسقانو شهادت ته اهميت ورکول د دين تذليل دې، بلکه دا چې ددې په پيسو باندې د دروغو د سند د جوړولو دغلطې دروازې د خلاصيدلو انديښنه هم شته.

۲ - تر څو پورې چې د حقوقو د ادا کولو نقص په کښې نهٔ وی راغلې صرف د پنځه شپيتو کالو په عمر کيدلو سره د نوکرئ نه لرې کول صحيح نهٔ دی،په يوه مذهبی اداره کښې داسې يو غلط او د مغرب په شان قانون خوښول د اسلامی غيرت نه خلاف او ناجائزه خبره ده. والله سبحانه وتعالى اعلم.

## د نوکر (مزدور) د معاهدې نه خلاف کار کول

**سوال**:- د ادارې دا دستور دې چې کوم يو نوکر يا مزدور د بيليدلو اراده لری نو هغهٔ ته دا پکار دی چې هغه يو مياشت وړاندې په دفتر کښې تحريری خبر ورکړی، ليکن يو نوکر داسې څه خبر ورنهٔ کړو بلکه بې د خبر ورکولو نه جدا شو،نو آيا د دې نوکر په ذمه ادارې ته د يوې مياشتې اجرت په توګه د ضمان ورکول لازم دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا نوکر به د وعدې د ماتولو او ادارې ته د نقصان رسولو له کبله ګناه ګار وی، لیکن په دهٔ باندې څه ضمان نشته دې. **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.** ۲۶ رجب ۱۳۹۳ هجری

## د ثواب د رسولو د پاره رواج کړې شوې قران خوانی

**سوال**:- نن صبا دا عام رواج دې چې خلق خپلو خپلوانو ته دثواب رسولو په ارادې سره د قرآن مجید ختم کوی، او هغوئ تلاوت کوونکو ته پیسې ورکوی، کله کله خو د وړاندې نه پیسې مقررې وی، او کله کله د ختم کوونکې د مقررولو نه علاوه یې د خپل ځان نه ورکړی، او کله کله صرف خوراک یا څښناک وغیره وړاندې کړی، آیا شرعا دا روا دی؟ بله دا چې د دې رواج شوې قرآن خوانئ څه حیثیت دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ثواب ښښلو باندې اجرت اخستل او ورکول حرام دی، بې د معاوضې نه روا دی، برابره خبره ده که د ژبې په عبادت سره وی او که د بدن په عبادت سره وی او که په مالی عبادت سره وی، د هر قسمه عبادت ثواب مړی ته رسولې کیدې شی، لیکن د دې د پاره یو څو بنیادی او اصولی شرطونه دی، تر څو پورې چه هغه شرطونه نوی نو هیڅ فائده ئې نشته.

۱ - مړې به مسلمان او صحیح العقیده وی.

۲ - ثواب رسوونکې او بخښونکې به هم صحیح العقیده وی.

۳ - د ریا، د نوم کولو، د شهرت او د خلقو د پیغورونو وغیره نه د بچ کیدلو غوندې ټولو خیالونو نه به پاک وی.

۴ - کوم مال چې په صدقه او په خیرات کښې ورکړې کیږی هغه به پاک او حلال وی، حرام او خبیث به نهٔ وی.

۵ - په دې مال کښې به د نابالغه یا د غائب حق نهٔ وی.

۶ - په تلاوت د قرآن یا په بل څه عبادت باندې دې څه قسمه معاوضه ورنهٔ کړې شی.

۷ - دا عبادت به د ورځو، د کیفیتونو، او د طعام د قسمونو غوندې د قیدونو نه پاک وی.

۸ - دا خوراک او صدقه دې یواځې فقیرانو ته ورکړې شی، د خاندان خلقو او مالدارو ته دې ورنهٔ کړې شی.

په رواج شوې قرآن خوانئ کښې د ذکر کړې شوو شرطونو د نشت والی نه علاوه دا لاندینئ خرابیانې هم موجودې دی:

۱ - د نقدو یا د طعام وغیره په څه نا څه صورت کښې د دې معاوضه ورکولې شی او دا حرام دی، که چیرې څه عوض ئې ورسره ټاکلې نهٔ وی، نو د حرمتِ اصلیه نه علاوه د اجر د جهالت د وجې نه د اجارې د فساد ګناه پرې لپاسه ده.

۲ - د دې نه دا عقیده جوړیږی چې د ګناه د پرېښودلو څه ضرورت نشته دې، وروستو به راپسې پاتې شوی خلق د قرآن ختمونه وکړی او ګناه به راته معاف کړې شی

۳ - د قرآن په تلاوت کولو کښې داسې خلق هم وی چې هغوی له صحیح قرآن لوستل نهٔ ورځی، او هغوی په غلط تلاوت کولو سره نورهم د خدائې عذاب له دعوت ورکوی.

۴ - د ثواب د رسولو د دې مخصوصې طریقې په شریعت کښې څه اصل او ثبوت نشته. لیکن خلق چې دا کوی نو د شریعت نه ئې ثابت ګنړی او کوی ئې، لهذا دا بدعت دې.

د نورو زیاتی فسادونو تفصیل د راروان سوال په جواب کښې دې.

د ذکر کړې شوو وجوهو له کبله د ثواب د رسولو دپاره دا رواج شوې قرآن خوانی روا نهٔ ده، بلکه د مړی د پاره د عذاب د باعث ګرځیدلو اندیښنه په کښې هم ده، د دې وجې نه علماؤ لیکلې دی چې په مړی باندې دا وصیت کول فرض دی، چې د هغه د مرګ نه پس دې د ثواب رسولو د پاره د داسې قسمه غیر شرعی طریقو نه اجتناب وکړې شی.

۱ – قال الله تعالى: ان الذين يأكلون اموال اليتمى ظلما انما يأكلون فى بطونهم نارا وسيصلون سعيرا.

۲ – وقال تعالى: لاتأكلوا اموالكم بينكم بالباطل.

۳ – وقال رسول الله ﷺ: لاتقبل صلوة بغير طهور ولا صدقة من غلول (سنن ترمذی ص۳ ج۱)

٤ – قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: وقال (اى فى الفتح) ايضا ويكره اتخاذ الضيافة من طعام من اهل الميت لانه شرع فى السرور لا فى الشرور وهى بدعة مستقبحة وروى الامام احمد وابن ماجه رحمهما الله تعالى باسناد صحيح عن جرير بن عبدالله ﷺ قال: كنا نعد الاجتماع الى اهل الميت وصنعهم الطعام من النياحة اهـ وفى البزازية: ويكره اتخاذ الطعام فى اليوم الاول والثالث وبعد الاسبوع ونقل الطعام الى القبر فى المواسم واتخاذ الدعوة لقراءة القرآن وجمع الصلحاء والقراء للختم اولقراءة سورة الانعام او الاخلاص.

والحاصل ان اتخاذ الطعام عند قراءة القرآن لاجل الاكل يكره وفيها من كتاب الاستحسان: وان اتخذ طعاما للفقراء كان حسنا اهـ واطال فى ذلك فى المعراج وقال: وهذه الافعال كلها للسمعة والرياء فيحترز عنها لانهم لايريدون به وجه الله تعالى اهـ وبحث هنا فى شرح المنية بمعارضة حديث جرير ﷺ المار بحديث آخر فيه: انه عليه الصلوة والسلام دعته امراة رجل ميت لما رجع من دفنه فجاء وجيء بالطعام.

اقول: [1] وفيه نظر، فانه واقعة حال لاعموم لها مع احتمال سبب خاص بخلاف ما فى حديث جرير ﷺ

---

۱ - واقول: ان صاحب المشكوة نقل هذا الحديث من سنن ابى داود فوقع الخطا منه فى النقل او ممن بعده فى الكتابة لان فيه امراة بدون الضمير ثم نقل من مشكوة من بعده مرة بلفظ امراته ومرة بلفظ امراة رجل ميت فوجب الرجوع الى الاصل "رشيد احمد"

علی انه بحث فی المنقول فی مذهبنا و مذهب غیرنا کالشافعیة والحنابلة استدلالا بحدیث جریر ﷺ المذکور علی الکراهة ولاسیما اذا کان فی الورثة صغار او غائب مع قطع النظر عما یحصل عند ذلك غالبا من المنکرات الکثیرة کایقاد الشموع والقنادیل التی توجد فی الافراح و کدق الطبول والغناء بالاصوات الحسان و اجتماع النساء والمردان واخذ الاجرة علی الذکر و قراءة القرآن و غیر ذلك مما هو مشاهد فی هذه الازمان و ما کان کذلك فلا شك فی حرمته وبطلان الوصیة به ولا حول ولا قوة الا بالله العظیم. (ردالمحتار ص ۲۴۰ ج ۱)

وقال العلامة بدر الدین العینی رحمه الله: قوله لا تأکلوا به ای بالقرآن مثل ان یستأجر الرجل لیقرا علی راس قبر. قیل هذه القراءة لا یستحق بها الثواب لا للمیت ولا للقاری قاله تاج الشریعة رحمه الله (البنایة ص ۳۳۰ ج ۱)

والله سبحانه وتعالی اعلم.

«په کتاب الخطر والاباحة جلد ۸ کښې هم شته دي» ۲۲ محرم ۱۳۹۳ هجری

## د دم کولو په توګه په قرآن مجید لوستلو باندې اجرت اخستل روا دی

**سوال:** - د برکت یا مرض نه د شفاء یا د څه مصیبت نه د خلاصی د پاره سورت فاتحه لوستل یا د قرآن مجید بل څه سورت لوستل روا دی او که نه؟ بله دا چې د همدې مقصدونو دپاره قرآن خوانی کول روا دی او که نه؟ په دې باندې د اجرت اخستلو شرعا څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په یو مریض باندې یا په مصیبت وهلی باندې د قرآن کریم څه سورت یا آیت لوستل یا تعویذ ورله لیکل او ورکول او په دې باندې اجرت اخستل روا دی.

په صحیح بخاری کښې دی: ان احق ما اخذتم علیه اجرا کتاب الله (صحیح بخاری ص ۸۵۴ ج ۲)

قال الامام النووی رحمه الله: (قوله ﷺ خذوا منهم واضربوا لی بسهم معکم) هذا تصریح بجواز اخذ الاجرة علی الرقیة بالفاتحة والذکر وانها حلال لا کراهیة فیها و کذا الاجرة علی تعلیم القرآن وهذا مذهب الشافعی و مالك واحمد و اسحق و ابی ثور و اخرین من السلف و من بعدهم و منعها ابو حنیفة فی تعلیم القرآن و اجازها فی الرقیة. (شرح النووی علی صحیح مسلم ص ۲۲۴ ج ۲)

البته په غرض د دم کولو په اجتماعی قرآن خوانئ کښې لاندې ورکړې شوې محظورات دی:

۱- دا اجاره فاسده ده، ځکه چې په عامه توګه اجرت مجهول وی.

۲- د دې نه دا عقیده جوړیږی چې د ګناهونو د پریښودلو ضرورت نشته دې، یعنی ختم وکړه بس کار به وشی.

۳- د لویو ګناهونو په کولو باندې زړه ور کیږی

۴ - د دم کولو دا مخصوصه طریقه د سلفو نه ثابته نۀ ده، لیکن عوام دا د سنت نه ثابته گڼی،د دې وجې نه دا بدعت دې.

۵ - اجاره په ټول قرآن باندې وی،او اکثر او اغلب خبره دا ده چې ټول قرآن مجید نۀ لوستلې کیږی.

۶- په قرآن خوانئ کښې داسې خلق هم وی چې هغوی ته په صحیح توګه قرآن لوستل نه ورځی، د هغوی د غلط تلاوت کولو د وجې نه دا تلاوت په ځائې د دې چې د ثواب سبب جوړ شی هغه بالعکس د عذاب سبب جوړیږی.

۷ - عموما قرآن خوانی چې په کومو کوروکښې کیږی،په هغې کښې دساه لرونکو عکسونه او نور دمعصیت آلات موجود وی،په داسې ځایونو کښې د قرآن بې عزتی کیدل واضحه خبره ده.

د دې اووه سپیرۀ سببونو نه ړومبی درې سببونه په تعویذ کولو کښې او په انفرادی توګه د یو سورت یا د یو آیت په لوستلو کښې هم شته دی.-والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۲ محرم ۱۳۹۳ هجری

## په وعظ باندې اجرت اخستل

**سوال**:- آیا واعظ له په وعظ باندې اجرت اخستل روا دی او که نه؟ د اجرت په ټاکلو او نۀ ټاکلو کښې څه فرق شته دې او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې د یو وعظ کولو د پاره څوک نوکر ساتلې شوې وی یا چا خپل ځان هم د دې کار دپاره فارغ کړې وی چې څوک هم وغواړی چې وعظ کولو د پاره ئې بوتلې شی نو په دې صورت کښې په وعظ باندې اجرت اخستل روا دی،او که چیرې چرته په یو خاص موقع باندې یو عالم نه د وعظ کولو دپاره درخواست وکړې شی نو بیا په داسې وعظ باندې اجرت اخستل ناروا دی.-والله سبحانه وتعالی اعلم ۹ شعبان ۱۳۹۹ هجری

## د نوکرئ (ماموریت) په وخت کښې خپل شخصی کار کول

**سوال**:- زید یو حکومتی مامور دې، د نوکرئ وخت ئې سحر د اتو بجو نه شروع کیږی،که چیرې هغه لس بجې لاړ شی او یا چې د هغۀ په ذمه کوم کار دې هغه وکړی او بیا خپل شخصی کار یعنی کتابونه کتل،هسپتال ته تلل یا یو ملګری ته ملاقات ته تلل وی نو آیا دا به روا وی او یا که کار نه وی بیا هم موجود پاتې کیدل او په چوکۍ باندې ناسته کول ضروری دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې ټاکلی شوی وخت کښې د فرض مونځ کولو نه علاوه بل هیڅ کار کول روا نۀ دی،ځنیې حضراتو د سنتو مؤکدو هم اجازت ورکړې دې،نفلونه کول په اتفاق سره روا نۀ دی، البته په دفتر کښې د داسې یو کار کولو اجازت شته دې چې په وخت د ضرورت

کښې هغه سرې پرېښودلې شی او سرکاری کار کول په آسانئ سره ممکن وی.

قال فی شرح التنویر: ولیس للخاص ان یعمل لغیره ولو عمل نقص من اجرته بقدر ما عمل فتاوی النوازل.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله و لیس للخاص ان یعمل لغیره) بل ولا ان یصلی النافلة قال فی التتارخانیة وفی الفتاوی الفضلی واذا استاجر رجلا یوما یعمل کذا فعلیه ان یعمل ذلک العمل الی تمام المدة ولا یشتغل بشیء اخر سوی المکتوبة وفی فتاوی سمرقند و قد قال بعض مشائخنا له ان یؤدی السنة ایضا واتفقوا انه لا یؤدی نفلا وعلیه الفتوی (رد المحتار ص ۳۸ ج ۵). والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۸ ذی الحجه ۱۳۹۰ هجری

## په جاز (طیاره) کښې په کرایه باندې اخستې شوې ځائې بل ته ورکول

**سوال:** - په بحری جاز (کشتی) کښې د غلې د نقلولو د پاره په کرایه باندې اخستې شوې ځائ په بل باندې په گټه خرڅول روا دی او که ناروا؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا روا نهٔ دی:

قال فی الهندیة: الاصل عندنا ان المستاجر یملک الاجارة فیما لا یتفاوت الناس فی الانتفاع به کذا فی المحیط. ومن استاجر شیئا فان کان منقولا فانه لا یجوز له ان یؤاجره قبل القبض وان کان غیر منقول فاراد ان یؤاجره قبل القبض فعند ابی حنیفة وابی یوسف رحمهما الله تعالی یجوز وعند محمد رحمه الله لا یجوز کما فی البیع و قیل انه فی الاجارة لا یجوز بالاتفاق وفی البیع اختلاف هکذا فی شرح الطحاوی. واذا استاجر دارا و قبضها ثم اجرها فانه یجوز ان آجرها بمثل ما استاجرها او اقل وان آجرها باکثر مما استاجرها فهی جائزة ایضا الا انه ان کانت الاجرة الثانیة من جنس الاجرة الاولی فان الزیادة لا تطیب له ویتصدق بها وان کانت من خلاف جنسها طابت له الزیادة ولو زاد فی الدار زیادة کما لو وتد فیها او حفر فیها بئرا او طینا او اصلح ابوابها او شیئا من حوائطها طابت له الزیادة (عالمگیریة ص ۴۲۵ ج ۴)

۲۶ ربیع الثانی ۱۳۹۱ هجری

## جهالت په موده او په عمل کښې مفسد د اجارې دې

**سوال:** - زید خپل ماشین د عمرو په زمکه کښې په دې شرط باندې ولگولو چې زید به د عمرو د غنمو وغیره د فصل میده کول مفت کوی او عمر به د دې په بدل کښې د خپلې زمکې کرایه ورته باندې د غنمو د میده کولو د اجرت دعوی کوی. اوس که چیرې عمرو (مدعی علیه) گواهان معاف کوی. وروستو په دواړو کښې اختلاف راغئ. او زید د خپل اقرار نه منکر شو او په عمرو وړاندې کړی نو آیا فیصله به د هغه په حق کښې وشی. او که نه د عمرو دعوی به له سره غیر

مسموع وی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا اجاره فاسده ده،لهذا زید ته به د هغۀ د دانو د میده کولو اجرِ مثل او عمر ته به د هغۀ د ځائ اجرِ مثل ورکولې شی.- **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.**

۲۵ شوال ۱۳۹۱ هجری

## په دکان وغیره باندې پګړې اخستل اوورکول ناروا دی

**سوال**:- زید د عمرو نه یو کور په کرایه باندې واخستلو،په هغه وخت کښې د دې کرایه دیرش روپئ وه، زید په دې کښې کاروبار شروع کړو،څو کاله پس د دغه ځائ کرایه زیاته شوه،خلقو پرې تقریبا یونیم سلو پورې کرایه ورکوله،اتفاقا د زید کاروبار ناکامه شو،او هغۀ یو بل سړی ته دا دکان په دیرش روپئ په کرایه ورکړو،او ورته ئې اووئیل چې تۀ ددې دکان کرایه ددې مالک له ورکوه او قبضه به زۀ تاله هغه وخت درکوم چې تۀ ماله پنځه زره روپئ راکړې،هغه سړی سمدستی پنځه زره روپئ ورکړې،آیا دا پنځه زره روپئ زید دپاره حلالې دی او که نه؟ او دا معامله په کوم عقد کښې داخله ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د قبضې عوض اخستل روا نۀ دی،په جانبینو باندې توبه کول او د دې پیسو واپس کول واجب دی.- **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.**　　۳ صفر ۱۳۹۲ هجری

## د کار کولو نه بغیر د اوور ټیم «اضافه کاری» پیسې اخستل روا نۀ دی

**سوال**:- یوه سرکاری اداره ده چې د هغۀ مامور اوور ټیم «اضافه کاری» وغیره نۀ کوی، لیکن د حکومت له طرفه چې کوم افسران په دوی باندې نګران دی هغوی ورته د اضافه کاری پیسې له حکومت څخه اخلی، نو آیا شرعا دا روا دی حال دا چې دا مامورین د غریبې طبقې سره تعلق لری،او د تنخوا په پیسو د هغوی خرچه نۀ پوره کیږی ؟بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې په اوورټیم «اضافه کاری» کښې د هغوی نه زیات کار واخستې شی او د هغوی د اصل مزدورئ نه هغوی ته زیاتې پیسې ورکړې شی نو دا روا دی،او که اوورټیم کښې ترې نه زیات کار وانۀ خستې شی او د اوورټیم محض حیله جوړه کړې شی او هغوی له په دې چل باندې پیسې ورکړې شی نو دا حلال نۀ دی.- **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.**

۲۹ صفر ۱۳۹۲ هجری

## په تنخوا باندې د وړاندې نه سود اخستل

**سوال** :- زید په سټیټ بینک آف پاکستان کښې مامور دې،سټیټ بینک خپلو مامورینو ته د

شپږدیرش میاشتو د تنخوا په مقدار باندې د وړاندې نه یعنی ایډوانس پیسې په دې شرط باندې ورکوی، چې هغوی دې به دې باندې خپل کور جوړ کړی،دا څومره پیسې چې د کور د جوړولو د پاره ورکول کیږی دا به د دې مامور د تنخوا نه په پنځلس کاله کښې لږ ، لږ اخستل کیږی،البته دا خبره ده چې په دې قرض باندې بانک د دوی نه هرو سلو روپو پسې درې روپئ اضافه اخلی،او یو خط یعنی سټامپ لیکلې کیږی،د کوم په بنیاد چې دا زمکه او کور دواړه سټیټ بینک سره ګانه «ګرو» وی، او د سود او د قرض د ادا کولو په شرطونو باندې دستخطونه وکړې شی،آیا په شریعت کښې داسې کول روا دی ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په ذکر کړې شوې مسئله کښې درې څیزونه د غور او فکر کولو قابل دی :

۱- آیا په مرهون کښې زیاتوالې کول صحیح دی او که نه؟

۲ - آیا د ګانې قرض په قسطونو باندې ادا کول روا دی او که نه؟

۳ - او هرو سلو روپو پسې چې درې روپئ په نوم د سود اخستلې کیږی آیا دا شرعا سود دې او که نه؟

**تحقیق** :- ۱- په مرهون کښې زیاتوالې کول صحیح دی .

**قال العلامة الحصكفي رحمه الله: والزيادة في الرهن تصح (ردالمحتار ص۳۴۲ ج۵)**

۲-د رهن قرض په قسطونو کښې اخستل روا دی .

**قال في التنوير وشرحه: ولا يكلف من قضى بعض دينه او ابرا بعضه تسليم بعض رهنه حتى يقبض البقية من الدين. (ردالمحتار ص۳۳۵ ج۵)**

۳-هرو سلو روپو پسې چې د سود په نوم باندې کومې درې روپئ د تنخوا نه اخستلې کیږی،دا شرعا سود نهٔ دې بلکه تنخوا ئې ورله په هرو سلو روپو پسې د درې روپو د کموالې په حساب سره کمه کړه، د یو څیز د نوم په بدلولو سره د دغه څیز حقیقت نهٔ بدلیږی. **والله سبحانه وتعالى اعلم.**

۲۸ ربیع الثانی ۱۳۸۶ هجری

## د پورتنی سوال په شان یو بل سوال

**سوال**:- د نوکرئ په دوران کښې نوکر د حکومت نه څه پیسې د کور د اخستلو یا د جوړولو دپاره یا دموټر سائیکل د اخستلو د پاره قرض اخلی،بیا په دې باندې سود ورکول کیږی ، نو ددې څه حکم دې؟بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په حقیقت کښې دا قرض نهٔ دې بلکه د وړاندې نه خپله تنخوا اخستل دی (یعنی ایډوانس) او کوم چې په نوم د سود اخستلې شی نو د هغې مطابق تنخوا کمیږی

، لهذا دا سود نهٔ دې د دې وجې نه روا دې.والله سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۲۲ صفر ۱۳۹۹ هجری

## د بیمې کمپنۍ د نوکر نه چې کومه کرایه ترلاسه کیږی هغه حرامه ده

**سوال**:- ۱- د زید په کور کښې یو کرایه دار داسې پاتې کیږی،چې هغهٔ په یو بیمه کمپنۍ کښې نوکر دې او د هغه د آمدن همدا ذریعه ده،څنګه چې معلومه ده چې د بیمې کمپنۍ آمدن ناروا دې او د دې کمپنۍ نوکرانو ته هم د دې آمدن نه تنخوا ورکولې کیږی،نو آیا زید د دغه کرایه دار نه چې کومه کرایه ترلاسه کوی هغه په خپل روزانه خرچه کښې استعمالولې شی او که نه؟

۲ - زید ته اول نه دا خبره معلومه نهٔ وه چې دا کرایه دار په یوه بیمه کمپنۍ کښې نوکر دې،په عدالت کښې د مجسټریټ د سوال په جواب کښې هغهٔ اووئیل چې زهٔ په بیمه کمپنۍ کښې نوکر یم، اوس هغه د درې کالو کرایه په عدالت کښې جمع کړې ده،هر کله چې زید دا پیسې د عدالت نه اخلی نو دا خبره یقینی نه ده چې دا پیسې به هم هغه پیسې وی کومې چې دې کرایه دار جمع کړې دی او که نه ؟ ، ځکه چې په عدالت کښې د خلقو پیسې یوځائ پرتې وی اوتغیر نه کوی . لهذا دا عین ممکن دی چې د زید تر اخستلو پورې به دغه پسې خلقو ویستې وی او تقسیم شوې به وی،او کومې پیسې چې به بیا زید ته د عدالت له خوا نه ورکول کیږی نو هغه پیسې به ددې بدل ضرور وی کومی چې کرایه دار جمع کړ ې دی لیکن هغه به نه وی،نو آیا دا پیسې زید د خپلو ضرورتونو د پاره استعمالولې شی او که نه؟

۳ - که چیرې زید دا پیسې په خپلو روزانه ضرورتونوکښې نهٔ شی استعمالولې نوآیا همدا پیسې د همدې کور په سرکاری ټیکس (مالیه) یا په میونسپل دفتر کښې ورکولې شی او که نه؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا پیسې حرامې دی،د دې استعمالول په هیڅ یو صورت کښې هم روا نهٔ دی، په مسکینانو باندې ئې صدقه کول واجب دی.والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۵ رمضان ۱۳۸٦ هجری

## بیمه یا د بانک د پاره کور په کرایه باندې ورکول

**سوال**:- د بنکارۍ او د انشورنس (یعنی بیمې) د کاروبار د پاره کور په کرایه باندې ورکول روا دی او که ناروا؟ که چیرې د کمپنۍ مشر دا شرط قبول کړی چې هغه به کرایه د حلال مال نه ورکوی نو آیا دهٔ ته دا کور په کرایه باندې ورکول روا دی او که ناروا؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د بیمې یا د بنکارۍ د پاره یو مسلمان ته کور په کرایه باندې ورکول مکروه تحریمی دی،البته کافر ته په کرایه باندې ورکول مکروه تنزیهی دی .

د دې مسئلې تفصیل او ددې سره متعلقه دلائل زما په رسالہ (القول المبرهن فی کراهة بیع الرادیو والتلوزن) کښې شته دی.

چې کرایه د حلال مال نه ورکوی نو په دې شرط سره د دې اجارې د عقد په کراهت کښې څه فرق نۀ راځی، البته په دې صورت کښې به د حرام خورئ نه بچ شی، صرف د اجارې د عقد ګناه به ورته کیږی، د کافرنه هم د سود او د بیمې د آمدن د پیسو نه کرایه اخستل حرام دی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۲ جمادی الاولی ۱۳۹۷ هجری

## مقاطعه (اجاره) چه په جانبینو کښې د یو په انتقال سره فسخه شی

**سوال:** حاجی نور محمد صاحب د شپږو کالو د پاره یوه زمکه په اجاره باندې اخستې وه، د اجارې د پیسو نیمې ئې د خپل خوئ محمد صدیق نه اخستې وې، اوس هر کله چې د نور محمد انتقال شوې دې، او د اجارې د مودې دوه کاله پاتې دی، نو پوښتنه دا کول دی چې محمد صدیق به ددې زمکې پیداوار په څه حساب سره اخلی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرې حاجی نور محمد دا زمکه د ځان د پاره په اجاره باندې اخستې وه، او د خوئ نه ئې دا نیمې پیسې قرض اخستې وې، نو د نور محمد په انتقال سره به دا اجاره فسخه شی، او خوئ ته به ئې دغه پیسې د نور محمد د ترکې نه ورکولې شی، او که چیرې حاجی نور محمد د خوئ نه دا پیسې په دې غرض سره اخستې وې چې دې ئې د ځان سره په مقاطعه کښې شریک کړې وو نو د خوئ د حصې اجاره ئې پاتې ده او د پلار د حصې اجاره ئې فسخه شوه، لهذا نیم فصل به ئې دا خوئ اخلی، او نیم اجرت به ادا کوی، او باقی نیم پیداوار به ئې د پلار په وارثانو کښې د هغوی د حصو په قدر سره تقسیمیږی، او په هغوی باندې به د نیمې زمکې اجرت ورکول لازم وی.

قال فی التنویر وشرحه: وتنفسخ ایضا بموت احد مستاجرین او موجرین فی حصته ای حصة المیت لو عقدها لنفسه فقط وبقیت فی حصة الحی.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله وبقیت فی حصة الحی) ولا یضره الشیوع لانه طارئ کما تقدم فی محله. (ردالمحتار ص ج)

وقال فی الهندیة: رجلان استاجرا من رجل ارضا ثم مات احد المستاجرین لا تبطل الاجارة فی حق الحی وتبقی علی حالها ولا تفسخ الا من عذر واما الریع الحاصل علی نصف الارض فهو للمستاجر وعلیه نصیبه من الاجرة والریع الحاصل علی النصف الاخر فلورثة المستاجر وعلیهم تسلیم الاجرة من الترکة. (عالمگیریة ص

ج ۳) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۳ جمادی الاولی ۱۳۸۶ هجری

## د غلا شوی مال دا راویستلو دپاره د وظیفې ورکولو اجرت

**سوال**:- زید نه غلا وشوه،زید بکر ته اووئیل چې ما نه غلا شوې ده،بکر ورته اووئیل،چې زهٔ به په وظیفې سره ستا غلا شوې پیسې راوباسم، لیکن په دې شرط چې د دغه مال څلورمه حصه به ماته راکوې،که چیرې کومې پیسې راووتلې او دا د اصل مال نه کمې وې نو چې څومره راونې دی په دې کښې به څلورمه حصه زما وی،بله دا چې که ددې په راویستلو باندې کومه د بونس وغیره خرچه راغله نو هغه به هم د اصل مال نه اخستې شی او چې څومره باقی پاتې شی نو د هغې څلورمه حصه به زما وی،د پیسو راویستلو دپاره چې څومره وخت تاکلې شوې وو هم په دغومره وخت کښې یو غل هغه ټول واپس کړو،پوښتنه دا ده چې آیا څومره مال ترلاسه شو نو بکر به د دې څلورمې حصې مستحق وی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا اجاره د لاندینو وجوهو له کبله فاسده ده:

۱ – معقود علیه غیر مقدور التسلیم.

۲ – اشتراط الاجرة من العمل.

۳ – کون الاجرة فی حیز الخطر.

په فاسده اجاره کښې د اجرمسمی او د اجرمثل نه اقل ورکول واجب وی.- **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.**

۲۰ ذی قعده ۱۳۸۶ هجری

## د مبیعې د ځائ په ښودلو باندې کمیشن

**سوال**:- زید بکر ته اووئیل چې ما سره خو پیسې نشته ،که چیرې تهٔ څاروی اخستل غواړې نو زهٔ به درته ځائ وښایم او یا که دې خوښه وی نو زه به درسره لاړ شم او ځائ به درته وښایم چې فلانی سړی سره دې، لیکن ستا نه به زهٔ د یو څاروی په سر پنځه روپئ کمیشن اخلم،آیا د زید په ذکر کړې شوې طریقې باندې کمیشن اخستل روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې دغه ځائ معین شوې نهٔ وی او زید ورسره په خپله لاړ شی او ځائ ورته وښائی نو اجرمثل ئې لازمیږی،او که چیرې ځائ معین وی نو بیا پرې ټاکلې شوې اجرت لازمیږی،او که چیرې پخپله ورسره لاړ نهٔ شی نو د اجرت مستحق به نهٔ وی.

قال فی التنویر وشرحه: ان دلنی علی کذا فله کذا فدله فله اجر مثله ان مشی لاجله.

وقال ابن عابدین رحمه الله: (قوله ان دلنی الخ) عبارة الاشباه ان دللتنی وفی البزازیة والولوالجیة رجل ضله له

شئ فقال من دلنی علی کذا فله کذا فهو علی وجهین ان قال ذلك علی سبیل العموم بأن قال من دلنی فالاجارة باطلة لان الدلالة والاشارة لیست یعمل یستحق به الاجر و ان قال علی سبیل الخصوص بأن قال لرجل بعینه ان دللتنی علی کذا فلك کذا ان مشی له فدله فله اجر المثل للمشی لاجله لان ذلك عمل یستحق بعقد الاجارة الا ان غیر مقدر بقدر فیجب اجر المثل و ان دله بغیر مشی فهو والاول سواء،قال فی السیر الکبیر قال امیر السریة من دلنا علی موضع کذا فله کذا یصح و یتعین الاجر بالدلالة فیجب الاجر اه.

قال فی التنویر وشرحه: من دلنی علی کذا فله کذا فهو باطل ولا أجر لمن دله الا اذا عین الموضع

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (الا اذا عین الموضع) قال فی الاشباه بعد کلام السیر الکبیر و ظاهره وجوب المسمی والظاهر وجوب اجر المثل اذلا عقد اجارة هنا و هذا مخصص لمسألة الدلالة علی العموم فکونه بین الموضع اه یعنی انه فی الدلالة علی العموم تبطل الا اذا عین الموضع فهی مخصصة اخذا من کلام السیر لان قول الامیر علی موضع کذا فیه تعیینه بخلاف من ضل له شئ فقال من دلنی علی کذا ای علی تلك الضالة فلا تصح لعدم تعیین الموضع الا اذا عرفه باسمه و لم یعرفه بعینه فقال من دلنی علی دابتی فی موضع کذا فهو کمسألة الامیر.

وقال فی التنویر وشرحه: وفی الاختیار من دلنا علی کذا جاز لان الاجر یتعین بدلالته.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله من دلنا الخ) هذه مسألة السیر الکبیر و قد علمت ان یجب فیه المسمی لتعین الموضع والقابل للعقد بالحضور و ان کان لفظ من عاما و قوله لان الاجر یتعین ای یلزم و یجب. (ردالمحتار ص۰۰ ج۰). والله سبحانه وتعالی اعلم. ۹ رجب ۱۳۸۷ هجری

## د څاروو د څروولو په اجرت کښې نیم څاروې ورکول

**سوال**:- زید بکر له یوه غوا په ساتنه ورکړه او ورته ئې اووئیل چې دا ساته او خوراک پرې کوه، هر کله چې د دې غوا بچې پیداشی نو دا بچې به ئې ستا وی او غوا به زما وی،مونږ دې ته په نیمه وایو، آیا دا روا دی او که نه ؟ که چیرې روا نهٔ وی نو د عدم جواز وجه څه ده؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا اجاره فاسده ده،ځکه چې په دې که اجرت او موده دواړه مجهول دی، څرونکی ته به اجرمثل ورکولې کیږی،او بچې به ئې د مالک وی

قال فی التنویر وشرحه: فکل ما افسد المبیع مما مر یفسدها کجهالة ماجور واجرة او مدة او عمل و کشرط طعام عبد و علف دابة و مرمة الدار الخ (ردالمحتار ص۰۰ ج۰)

وقال الامام المرغيناني رحمه الله: بخلاف دفع الغنم والدجاج ودودالقز معاملة بنصف الزوائدلانه لا اثر هنالك للعمل في تحصيلها فلم يتحقق شركة.(هداية ص۳۲۵ ج۴)

وقال في الهندية: ولا تجوز اجارة الشجر على ان الثمر للمستاجر وكذلك لو استاجر بقرة او شاة ليكون اللبن اوالولد له كذا في محيط السرخسي (عالمگيرية ۴۴۳ ج۴) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۷ جمادی الآخرة ۱۳۸۷ هجری

## د مندر (د هندوانو د عبادت خانې) د تعمير اجرت اخستل روا دی

**سوال:**- مسلمان کاريگر دپاره د کافرانو د مندر د سمولو يا له سره د جوړولو اجرت اخستل روا دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مندر د سر نه تعمير کول يا د هغې په سمولو باندې اجرت اخستل روا دی ليکن د کراهيت نه خالی نهٔ دی.

قال الحصكفي رحمه الله: جاز تعمير كنيسة.

وقال ابن عابدين رحمه الله: (قوله وجاز تعمير كنيسة) قال في الخانية ولو اجر نفسه ليعمل في الكنيسة ويعمرها لا بأس به لانه لا معصية في عين العمل.(ردالمحتار ص۴۴۰ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۹ رجب ۱۳۸۷ هجری

## په ريل گاډی کښې بغير د کرايه ورکولو نه سامان وړل

**سوال:**- په ريل گاډی کښې چې قانوناً کوم د وزن وړولو حد ټاکلې شوې دې د هغې نه زيات وړل بې د کرايې ورکولو نه، يا په ريل گاډی کښې يوبل سپاره ملگری ته دا سامان سپارل دې د پاره چې د خرچ نه هم بچ شی، او د ريلوې د پنجې نه هم خلاص شی، داسې کول شرعا څنگه دی؟ بينواتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: زيات سامان وړل روا نهٔ دی، البته که د سوريدلو نه وړاندې ئې خپل ټول سامان بل ته وسپارلو نو روا دی. **والله سبحانه وتعالى اعلم.** ۲۷ ذی قعده ۱۳۸۷ هجری

## د عيبجن څيز په اخستلو باندې به د دلالئ اجرت تا ته نهٔ شی درکولې

**سوال:**- زيد د بکر نه يو رکشه واخستله، دلال د هغوی ترمينځه بيعه وکړه، او ۵۰ روپئ د دلالئ ټاکلې شوې وې، اوس د رکشې د اخستلو نه پس د دې يوه پُرزه دهغه قيمت نه کمه وختله کوم قيمت چې مالک د رکشې دلال ته ښودلې وو، زيد ته ددې پُرزې د وجې نه د دوو سوو روپو

نقصان ورسیدلو ،نو آیا اوس دې دلال ته د دلالئ ۵۰ روپئ ورکول ضروری دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دلال د اجرت په هغه وخت کښې مستحق وی، کله چې هغه معقود علیه صحیح سالم سره د شرطونو او د قیوداتو واخلی او اخستونکی ته ائې وسپاری،د دې وجې نه د سوال په دې صورت کښې دلال د اجرت مستحق نهٔ دې،بلکه اخستونکې د عیب د ضرر له کبله دا رکشه د دلال په ذریعه واپس کولې شی،لیکن په دې شرط چې په دې رکشه کښې د اخستونکی سره بل څه عیب نهٔ وی پیدا شوې،که چیرې څه بل زیاتی عیب په کښې پیدا شوې وی نو د مبیعې د رد کولو په ځائې په بائع رجوع بالنقصان کولې شی۔**والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.**

۲۹ محرم ۱۳۸۸ هجری

## په کرایه باندې اخستونکی د دوو ورځو نه پس کور پریښودلو

**سوال**:- زید یو کور د میاشتې په دیرش روپئ په کرایه باندې ونیولو ،او لس روپئ ئې ورته په کښې پیشکی ورکړې،او دوه ورځې ئې په دې کور کښې قیام وکړو او لاړو ،نو آیا د کور مالک له به د دغه دوو ورځو په عوض کښې دغه لس روپئ اخستل روا وی او که نه د دوو ورځو په مقدار کرایه ترې نه اخستل او باقی رقم ورته ورکول ضروری دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې دا سړې د یو داسې عذر له کبله ځی چې هغه عذر شرعا معتبر وی، نو د دوو ورځو نه پس به عقد د اجارې فسخ کولې شی،او که د کور مالک وغواړی نو د دوو ورځو کرایه ترې نه اخستې شی،او که بې د څه معتبر عذر نه روان وی، نو دا بیا ځنګه چې معلومه ده چې دا عقد د میاشتې وی،نو ددې وجې نه د ټولې میاشتې کرایه ادا کول د کرایه دار په ذمه دی، په دې صورت کښې که دا سړې دا کور په خپله قبضه کښې ساتل غواړی نو ساتلې یی شی۔**والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.** ۷ ربیع الاول ۱۳۸۸ هجری

## د داسې نوکرئ حکم چې په هغې کښې رشوت ورکول ضرور وی

**سوال**:- یو سړې په یو داسې کمپنئ کښې کار کوی چې هغه کمپنی د درآمداتو او برآمداتو کاروبار کوی،د کمپنئ دا نوکر د کاروبار په حقله په مختلفو ځایونو کښې په رشوت ورکولو باندې مجبوره وی،آیا داسې نوکری کول روا دی او که نه؟ او د داسې سړی په کور کښې د روټئ خوړلو څه حکم دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : رشوت اخستل او ورکول دواړه حرام دی،په دې نوکر باندې فرض دی، چې دا نوکری دې پرېږدی او بله څه ذریعه د معاش دې ځان له وګوری،البته د هغهٔ په کور کښې روټئ خوړل روا دی.

د رشوت د روا او دناروا صورتونو تفصیل به وروسته راشي . **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.**

۱۹ شوال ۱۳۸۸ هجری

## د وکالت اجرت

**سوال:**- کومو خلقو چې د وکالت پیشه اختیار کړې ده آیا د هغوی آمدن حلال دې او که نهٔ دې؟ هر کله چې دا خبره په کښې ناممکنه وی چې دوی دې صرف د رښتینی مقدماتو وکالت کوی،آیا د دوی د کورونو نه خوراک څښاک کول روا دی او که؟ حال دا چې د دوی بله څه ذریعه د آمدن نه وی او یا که وی هم خو هغه ذریعه د آمدن ئې مغلوبه وی او دا پرې غالبه وی- بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د ظالم سره تعاون کول حرام دی،د دې وجې نه د دغه سړی آمدن هم حرام دې- **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.**

۳ ذی قعده ۱۳۸۸ هجری

## د غنمو د ریبلو په اجرت کښې غنم ورکول

**سوال:**- نن صبا خلق په عامه توګه د غنمو او د شولو په ریبلو باندې د غنمو او د شولو ګیډئ په اجرت کښې ورکوی،دا مرض په کلو کښې زیات دې،مزدوران پیسې بالکل نهٔ اخلی،د زمکو مالکان په دې حقله مجبوره دی،او دې مرض تقریباً د عموم بلوی صورت اختیار کړې دې،حال دا دې چې د فقهې مسئلې ته وکتلې شی نو په هغې کښې داسې دی چې په کوم یو څیز باندې عمل وشی نو هم هغه څیز په اجرت کښې ورکول روا نهٔ دی،اوس مونږ ته د دې مسئلې څه حل وښایئ، چې مسلمانان پرې د ګناه نه بچ شی- بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا صورت ناروا دې ځکه چې د عمل نه اجرت ورکول روا نهٔ دی،بله دا چې دګیډیو په مقدارکښې کمې او زیاتې وی،د دې وجې نه دا مجهول اجر دې.

د جواز صورت ئې دا دې چې په کوم یو پړی کښې دا ګیډې تړلې شی نو د هغې پړی اوږدوالې دې معین کړې شی،او دا دې ورسره هم وټاکلې شی چې د مزدور د ریبلی شوی فصل نه به ورته مزدوی ورکول شرط نهٔ وی،بلکه د فلانی خاص قسمه غنمو دومره لویه ګیډئ به ورته په اجرت کښې ورکولې شی،او د مالک به خوښه وی چې د هر ځائ نه یې ورته ورکوی- **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.**

۱۰ صفر ۱۳۸۹ هجری

## د روټئ پخولو په اجرت کښې روټئ ورکول

**سوال:**- په پنجاب کښې دا رواج دې،چې هر کله بټ (داشت) والا له څه دانې د پخولو د پاره ورکړې شی نو هغهٔ ددې پخو دانو نه څه دانې د خپل اجرت په توګه واخلی،بله دا چې په تنور

باندې روټۍ پخولې شي نو د پیسو د اخستو په ځائې هغه یوه نیمه پیړه چې خام اوړهٔ وی هغه په اجرت کښې واخلی،نو آیا دا صورت روا دې؟ که چیرې روا نهٔ وی نو ددې ګناه نه په څه طریقه ځان وساتلې شی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا معامله روا ده. په ظاهره په دې کښې دوه اشکاله دی:

۱- اجرت د عمل نه دې۔

۲- اجرت مجهول دې۔

د وړومبی اشکال جواب دا دې چه د خامو دانو په اخستلو او د ووړو په اخستلو کښې خو اجرت د عمل نه نهٔ دې.البته دا خبره ده چې د روټۍ او د پخو دانو په اخستلو کښې بیا اجرت د عمل نه دې، لیکن دا شرط په کښې نشته دې چې اجرت به د همدې عمل نه وی.که ددې په ځائ نورې څه دانې یا ووړهٔ ورکړې شی نو بیا په کښې هم څه اعتراض نهٔ کوی،اجرت من العمل په هغه وخت کښې ناروا دې کله چې دا مشروط وی،دلته څه مشروط نهٔ دې نو روادې۔

د دویم اشکال جواب دا دې چې هر کله په اجرت کښې جهالت **مفضیة الی النزاع** نه وی نو بیا دا مفسد د اجارې نهٔ دې۔ **والله سبحانه وتعالی اعلم**. ۳۰ محرم ۱۳۹۸ هجری

## هر کله چې کرایه دار د کور سمون وکړو نو د دې خرچه به په چا باندې وی؟

**سوال**:- زید دیو عمارت مالک دې،د دې عمارت په غولی (صحن) کښې څه ځائ وزګار اوخالی وو،یو سړی زید ته ووئیل چې دې کښې یوه کوټه جوړه کړه او ما ته ئې په کرایه باندې راکړه، زیدورله په کښې کوټه جوړه کړه او ورله ئې ورکړه، لیکن ددې کوټې چت څادری وو،د دې وجې نه کرایه دار ترې نه اجازت واخستلواو د خپلې خوښې چت ئې پرې جوړ کړو.اوس دا پوښتنه کول دی، چې آیا په مالک د کور باندې شرعاً دا لازم دی چې کوم څه دې کرایه دار په دې کوټه باندې خرچ کړې دی هغه دې دې کرایه دار ته ورکړی،حال دا چې مالک د کور هم هغه کرایه اخلی کومه به ئې چې په اول کښې اخستله.بینوا توجرَوا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرې مالک د کور ورته دا وئیلې وی چې زما له اړخه ئې سمون وکړه نو د سمون خرچه په مالک باندې لازمه ده او که داسې ئې ورته نهٔ وی وئیلې نو بیا پرې لازمه نهٔ ده،په دې صورت کښې چې بیا کرایه دار کوم څیزونه په تعمیر کښې لګولی دی،هغه د دې مالک دې،که د هغه خوښه شی نو دا څیزونه د تعمیر نه ویستلې شی۔ **والله سبحانه وتعالی اعلم**.

۲۰ ربیع الاول ۱۳۹۳ هجری

## د کور په تعمیر کښې د اضافه کارې د وجې نه په کرایه کښې زیاتوالې کول

**سوال**:- که چیرې د کور په مالک باندې په پورتنی صورت کښې د سمون خرچ واجب وی او هغه ئې ورته ادا هم کړی نو آیا د کور مالک په کرایه کښې اضافه کولې شی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې د کرایې موده معینه وی،نو په دې کښې بیا اضافه کول روا نهٔ دی،او که موده ئې معینه نهٔ وی لکه څنګه چې عام دستور او رواج دې نو بیا دکومې میاشتې د ابتداء نه یې چه خوښه وی په کرایه کښې اضافه کولې شی،که د کرایه دار خوښه وی نو دا اضافه دې قبوله کړی او که خوښه ئې نهٔ وی نو کور دې پریږدی۔ **والله سبحانه وتعالی اعلم**۔

۲۰ ربیع الاول ۱۳۹۳ هجری

## په کرایه باندې د ورکړې شوی څناور خوراک به په مالک باندې وی

**سوال**:- زید خپله ټانګه سره د آس نه په دې شرط بکر له ورکړه چې ما له به روزانه پنځلس روپئ راکوې،او باقی تهٔ اخله. د آس خوراک وغیره به د زید په ذمه وی،دویم صورت ئې دا دې، چې که د آس د خوراک وغیره خرچه بکر په غاړه اخلی نو بیا به زید له صرف پنځه روپئ ورکولې کیږی، نو آیا د اجارې دا دواړه صورتونه روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** :د اجارې ړومبې صورت صحیح دې او دویم صورت روا نهٔ دې،دا اجاره فاسده ده،ځکه چې په اجرت باندې د ورکړې کیدونکی اجرت شرعاً د مالک په ذمه دې.

**قال فی التنویر و شرحه :(تفسد الاجارة بالشروط المخالفة لمقتضی العقد و کل ما افسد البیع)مما مر(یفسدها) کجهالة ماجور او اجرة او مدة او عمل و کشرط طعام عبد و علف دابة و مرمة الدار او مغارمها و عشر او خراج او مؤنة اشباه.**

**وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله : (قوله و کشرط طعام عبد وعلف دابة)فی الظهیریة استاجر عبدا او دابة علی ان یکون علفها علی المستاجر ذکر فی الکتاب انه لایجوز (ردالمحتار ص ۳۲ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.**

۸ ذی قعده ۱۳۹۳ هجری

## په اجاره کښې د وخت یا د کار تعیین ضروری دې

**سوال**:- د شیرینۍ په دکانونو باندې چې کوم مزدوران کار کوی،د هغوی دکان ته د راتلو وخت خو معین وی،لیکن د رخصتۍ کولو وخت ئې معین نهٔ وی،کار کله زیات وی او کله کم،او دا په کښې ټاکلې شوې وی چې کله کار ختم شی نو رخصتی به وی،آیا دا اجاره روا ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په کار او وخت دواړو کښې د یو څیز تعیین ضروری دی او که نه نو اجاره به فاسده شی. واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم.

۲۴ ربیع الثانی ۱۳۹۵ هجری

## د ځناور د جوتی (یعنی د مذکر ځناور په مونث باندې د سورولو) د پاره د نسل کولو اجرت حرام دې

**سوال**:- دجوتی کولو اجرت اخستل اوورکول روا دی او که نه؟ اوددې حرام فعل له کبله په مونث ځناور او د دې د نسل په غوښه او په پیو وغیره باندې څه اثر پریوځی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دې فعل اجرت اخستل او ورکول حرام دی، د دې د وجې نه غوښه او پیو باندې څه اثر نه غورزیږی، دواړه پاک دی او حلال دی۔ واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم۔

۳ جمادی الآخرة ۱۳۹۵ هجری

## د نرخ د زیاتیدو له کبله د دکان په کرایه کښې زیاتوالې

**سوال**: ۱- زید یو دکان په کرایه باندې اخستې وو، او د لسو کالو نه د دې دکان کرایه دار دې، اوس دې دکان سره نزدې د ټولو دکانونو کرایې زیاتې شوې، لیکن زید نۀ خو زیاته کرایه ورکوی او نه دکان پریږدی، ددې په حقله څه حکم دې؟

۲- کومو کرایه دارو چې د کلونو راسې په داسې دکانونو باندې قبضه اچولې ده، او کرایه د زړې زمانې راسې لړه ادا کوی، نو د دوی څه حکم دې۔ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ۱- که داجارې موده ئې مقرره وه نو ددې نه وړاندې پرې دکان خالی کول او یا ترې نه د زیاتې کرایه مطالبه کول روا نۀ دی، د مودې پوره کیدلو نه پس د زیاتې کرایه مطالبه کولې شی.

که چیرې موده په کښې ټاکلې شوې نۀ وه، نو د هرې میاشتې په شروع کښې ترې نه د دکان د خالی کولو یا د کرایې د زیاتولو مطالبه کولې شی، په دې صورت کښې که چیرې کرایه دار نور اوسیدل غواړی نو په هغۀ باندې د مالک مطلوبه کرایه ادا کول واجب دی۔

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: وان طالبه باجر اخر وسکن بعده ینبغی لزوم ذلك الاجر الذی طالبه به کما سیظهر فی المتفرقات عن الاشباه.(ردالمحتار ص۵۰ ج۵)

۲- کرایه دارو چې څومره موده په دې دکانونو ناجائزه قبضه کړې ده، نو د دومره کلونو اجرمثل په دوی باندې لازم دې.

قال فی شرح التنویر: وفی الخانیة استاجر دارا او حماما او ارضا شهرا فسکن شهرین هل یلزمه اجر الثانی ان

معناللاستغلال والالاوبه يفتى وكذا الوقف ومال اليتيم .(ردالمحتار ص٥٠ ج٥) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۸ جمادی الآخرة ۱۳۹۵ هجری

## یو ټیکه دار څه پیسې واخستې او وروستو شو

**سوال**:- دوه ټیکه دارانو یو ځائ کار شروع کړې وو، بیا په دوی کښې یو وروستو شو، او ددې په بدله کښې ئې د دغه بل ملګری نه پیسې واخستې، اوس آیا دا په رشوت کښې داخلې دی او روا دی که ناروا دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا روا دی، د دې مثال داسې دې لکه چې دغه ټیکه دار وروستو شو او د خپلې حصې کار ئې په لږ اجرت باندې ورکړو. والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۹ رجب ۱۳۹۵ هجری

## د سینما نوکری کول

**سوال**:- په سینما کښې د نوکرئ کولو تنخوا حلاله ده او که حرامه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا تنخوا حرامه ده او ددې دوه وجې دی:

۱- که چیرې د ده په ذمه څه ناروا کار وی نو د هغې ګناه ده او که ناروا کار د دهٔ په ذمه نهٔ وی نو تعاون على الاثم خو په هر صورت کښې دې.

۲- دا تنخوا ورته د حرام آمدن نهٔ ورکول کیږی. والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۰ شعبان ۱۳۹۵ هجری

## د ناروا کار پنشن (تقاعدی)

**سوال**:- یو سړی چې ناروا نوکری ئې کوله، د هغې پنشن ورکول کیږی، آیا ددې پنشن نه د دهٔ یا د بل چا انتفاع روا ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داسې پنشن روا دې، خو په دې شرط چې د پنشن ورکوونکې آمدن حلال وی، او که داسې نهٔ وی نو د اصل تنخوا په شان به ددهٔ پنشن هم حرام وی، لکه د بانک پنشن شو. چې تنخوا او پنشن ئې دواړه د سود د پیسو نه ورکول کیږی. والله سبحانه وتعالى اعلم.

۷ ربیع الاول ۱۳۹۶ هجری

## د ټی وی (تلویزیون) جوړول روا نهٔ دی

**سوال**:- د رادیو او تلویزیون جوړول او ددې پُرزی لګول، او دا صحیح کول، او دا سمول، زده کول او بیا دا د حرفې په توګه اختیارول څنګه دی؟ په دې ذریعه چې کوم آمدن کیږی هغه به حلال وی او که حرام؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د تلویزیون جوړول خو په هر حال کښې ناروا دی،ځکه چې دا تعاون علی المعصیت دې، د دې آمدن حرام دې،البته د رادیو په حقله دا تفصیل دې چې که ددې د مالک په حقله درته دا معلوم وی چې هغه به د دې په ذریعه لوبې او سندرې وغیره نهٔ آوری نو بیا ددې جوړول روا دی او که داسې نهٔ وی نو بیا ناروا دی.

د دې تفصیل په رساله (القول المبرهن فی کراهة بیع الرادیو والتلویزن) کښې شته دې - **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.** ۲۸ شوال ۱۳۹۶ هجری

## د کتابت نقل په اجرت باندې ورکول

**سوال:-** یو سړی یو کتاب تالیف یا تصنیف کړو،په خپل خرچ باندې ئې د دې کتابت وکړو،او په خپله ئې دا چاپ کړو،اوس د کتابونو یو تاجر دا په خپله خرچه باندې په دویم ځل چاپ کول غواړی، مؤلف هغه له په دې شرط باندې د دې نقل ورکوی چې دغه تاجر به دې مؤلف له سل یا دوه سوه نسخې په اصل قیمت باندې ورکوی،او د مؤلف د تالیفاتو په حقله به څه مشهورتیا هم د کتاب په آخره کښې یا په یو بل مقام باندې چاپ کوی،آیا د دې قسمه شرطونه لګول او په دویم ځل د کتاب د چاب کولو اجازت ورکول شرعاً روا دی؟ بینوا توجروا -

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د کتابت د نقل مالک مؤلف دې او د دې دا اجاره عامه معروفه شوې هم ده،لهذا چې تاجر له ددې اجازت ورکوی نو ددې په عوض کښې ترې نه د کتاب څه نسخې وغیره اخستې شی، لیکن د مشهورتیا د پاره د اشتهار شرط لګول ئې روا نهٔ دی - **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.** ۸ محرم ۱۳۹۷ هجری

## په اجرت کښې د تاخیر له کبله زیاتوالې روا نهٔ دې

**سوال:-** د یو ایجنټ (نماینده) سره زما معامله وټاکلې شوه،چې دوه نیم زره روپئ به رانه د ټکټ او د نورو کارونو په عوض کښې اخلی،د معاملې د ټاکلو نه وروستو بیا ماهغهٔ له پنځه سوه روپئ نقدې ورکړې،او ورسره مې دا وعده وکړه چې د دوو زرو روپو په عوض به درله چې سعودی عرب ته لاړ شم نو په دوو میاشتو کښې به درله اتهٔ سوه سعودی ریاله راولیږم، لیکن د ځینی مجبوریتونو له کبله ما په دوو میاشتو کښې دغه قرض ادا نهٔ کړې شو، لیکن وروسته مې ورته بیا د دوو میاشتو نه پس اته سوه ریاله ورکړل، اوس دغه ایجنټ په تاخیر کولو باندې سل ریاله نور غواړی،آیا شرعا دا سل ریاله زیاتی ورکول ضروری دی او که نه؟ بینوا توجروا -

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که د قرض د ادا کولو د استطاعت باوجود ئې وعده خلافي کړې وی، نو د دې ګناه به ورته وی لیکن ایجنټ د زیاتو پیسو د مطالبې کولو حق دار نهٔ دې۔
بله دا چې دا معامله په پاکستانی پیسو کښې شوې ده نو ددې نه پس په سعودی ریال سره د دې مبادله کول بیع الکالی بالکالی کیدلو له کبله ناروا دی،د دې وجې نه ستاسو په ذمه صرف پاکستانئ دوه زره روپئ ادا کول واجب دی.واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم. ۱۶ ربیع الثانی ۱۳۹۷ هجری

## له مودې نه وړاندې د نوکرئ په پریښودلو باندې مالی جرمانه

**سوال**:- یوه کمپنئ خپلو نوکرانو ته د مقررې تنخوا نه علاوه څه نورې پیسې هم ورکوی،په دې شرط باندې چې پنځه کاله به دلته نوکری کوی،که دا نوکر د پنځو کالو پوره کیدلو نه وړاندې لاړو نو د پنځو کالو پیسې به د ټاکلی شوی مقدار په حساب سره ورکوی، که چیرې کمپنئ وه ویستلو نو د پنځو کالو پیسې به پوره ورکوی،برابره خبره ده که یو کال پس ئې وه ویستول او که وروستو خو پوره پیسې به کمپنئ ورکوی،آیا ددې قسم نوکری کول روا دی او که نه؟ او کمپنئ ته د نوکر نه پیسې اخستل او نوکر له د کمپنئ نه پیسې اخستل روا دی او که نه؟ بینوا توجروا۔
**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا زیاتې پیسې هم په تنخوا کښې شاملې دی،او د میعاد نه وړاندې د پریښودلو په صورت کښې د دې د واپس کولو شرط لګول مفسد د اجارې دې،لانه مخالف لمقتضی العقد وفیه نفع لاحد المتعاقدین لهذا په جانبینو باندې د دې نه توبه کول او د دې عقد فسخ کول فرض دی، نوکر چې څومره موده کار کړې دې نو هغهٔ ته به د دومره مودې اجرِمثل ورکول کیږی،او دا اجرمثل به د ټاکلې شوې تنخوا او ورسره چې کوم زیاتوالې دې د هغې نه زیاتې نهٔ وی.واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم. ۲۲ شعبان ۱۳۹۷ هجری

## بې د ټاکلو نه اجاره نهٔ شی منعقد کیدلې

**سوال**:- زید خپل پلار سره د اوو کالو راسې تجارت کولو،زیدبالغ دې او نور ورونه ئې علاوه د یو نه نابالغه دی، زید د خپل تجارت په وخت کښې خپله مزدوری ایستې ده،ځکه چې د سامان اخستل او حساب کتاب کول ټول د هغهٔ په ذمه وو،پلار به ئې صرف په دکان باندې ناست وو، زید وادهٔ کړې دې او بچی ئې هم دی،او نور ورونه ئې ناوادهٔ دی،د زید او د هغهٔ د ښځې خوراک او خرچه د هغهٔ د پلار سره شریکه وه،ددې اوو کالو مزدوری زید اته زره روپئ اخستې ده یعنی د هرې میاشتې په سر ئې ترې نه سل روپئ مزدوری اخستې ده،او دا کاروبار د کپړې دې دکان ښهٔ ښائسته چلیږی،آیا د زید د پاره دا اجرت اخستل روا دی؟ د ترکې د تقسیم په صورت

کښې به زید د پلار په ملکیت کښې د نورو ورونو سره برابر شریک وی او که نه دا اجرت به هم دپلار په ملکیت کښې شمارلې کیږی؟ او د حصو په مقدار به تقسیمیږی،برابره خبره ده چې دا تقسیم دپلار دوفات په صورت کښې وی اویاهم د پلار په ژوند کښې زید بیل کړی.بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : زید خپل پلار سره په اجرت باندې کار کول نۀ وو تاکلی،د دې وجې نه د هغه کار کول تبرع دی،او د اجرت چې کومې پیسې دی هغه به هم په ترکه کښې شمارلې کیږی،او په دې کښې به د ټولو وارثانو حق وی،البته دا خبره ده چې که پلار ئې زید په خپل ژوند کښې بیل کړی نو پلار له پکار دی چې د زید خوارئ ته وګوری او د دې په برابرئ ورسره څه امداد وکړی۔ **واللّٰہ سبحانه وتعالیٰ اعلم**  ۲۹ صفر ۱۳۶۸ هجری

## د افیمو په کرلو باندې اجرت روا دې

**سوال**:- د افیمو د کرلو اجرت اخستل روا دی او که ناروا دی؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د افیمو استعمال په دوایانو کښې دومره حده پورې روا دې چې نشه نۀ ورکوی ددې وجې نه ددې کرل او اجرت دواړه روا دی۔ **واللّٰہ سبحانه وتعالیٰ اعلم**۔

غرۀ رجب ۱۳۹۸ هجری

## چې په زمکه کښې د یو سړی پیسې وی او د بل سړی خواری

**سوال**:- زید بکر ته اووئیل چې په لس زره روپئ باندې زمکه د دوو کالو د پاره په اجاره باندې پیدا کیږی، ما سره دومره پیسې نشته ، تۀ راته پیسې راکړه، د زمکې کر کرونده او خبر اخستل هر څه به زما په ذمه وی،دواړه به د فصل نیمه نیمه حصه واخلو آیا شرعًا دا طریقه روا ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا صورت روا نۀ دې، پیسې ورکونکی ته به د فصل نه هیڅ نه ورکول کیږی،ددې صحیح صورت دا دې چې بکر زمکه په ټیکه واخلی،او زید له ئې په صورت د مزارعت ورکړی۔ **واللّٰہ سبحانه وتعالیٰ اعلم**۔  ۱۱ رجب ۱۳۹۸ هجری

## په ټیکه باندې د تعمیر کولو یو مروجه صورت

**سوال**:- نن صبا په عامه توګه ټیکه داران د زمکې او د کور مالکانو سره دا معاهده وکړی،چې ټیکه دار به د کور دمالک زوړ کور وران کړی او په هغې به نوې عمارت په خپلو پیسو جوړ کړی او یا به په خالی زمکه په خپلو پیسو نوې عمارت جوړ کړی،او د تعمیر نه پس به په خپله دا دکانونه یا کور په کرایه ورکوی،او په خپله به کرایه ټاکی،او دغه دکانونه وغیره به په پټکی

باندې ورکړي، او څومره پيسې چې ئې لګولې دی هغه او د هغې سره غير معينه منافع به اخلی، او پس د دې نه به بيا کرايه داران کرايه اصل مالک د کور ته ورکوي، مالک ته به دا اختيار نۀ وی چې کور يا دکان په چا خالی کړي، او که چيرې کرايه دار ته د هغه د پټکی پيسې ورکولې شی نو بيا ئې پرې خالی کولې شی، آيا داسې کول روا دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا معامله د لاندينو وجوهو له کبله ناروا ده.

۱ – **جهالة الاجرة**

۲ – **شرط الاجرة على غير المستاجر مع جهالته.**

۳ – **كون الاجر غير مقدور التسليم.**

٤ – **الانتفاع بالقرض والله سبحانه وتعالى اعلم.** ۲ رمضان ۱۳۹۸ هجری

## په کاروبار کښې شريک سړې په نوکرئ سره نيول

**سوال**:- شل سړی په خپله مختلف المقداره سرمايې سره يو کمپنئ جوړوی، او د کمپنئ د قواعدو او ضابطو او په اختياراتو کښې د پيسو لګولو په مقدار نفع تقسيمول او د کمپنئ د چلولو دپاره مشر مقرروی، او دغه مشر ته دا اختيار ورکوی چې د کمپنئ د چلولو دپاره ماهره او خيرخواه کاريګر په کار باندې ولګوی، برابره خبره ده که دا مقررول په شريکانو کښې وی او که په شريکانو کښې د ماهرو کسانو نه وی.

اوس پوښتنه دا کول دی چې آيا د دې کمپنئ شريکانو ته د نفعې نه علاوه د خپل عمل او د کار تنخوا اخستل روا دی او که نه؟

ځينی علماؤ د دې معاملې د ناجائزه کيدلو د پاره **صفقة فی صفقة** علت ګرځولې دې. آيا دا صحيح دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ۱ – **قال الامام الحصكفي رحمه الله: ولو استاجره لحمل طعام مشترك بينهما فلا اجر له لانه لا يعمل شيئا لشريكه الا ويقع بعضه لنفسه فلا يستحق الاجر.**

۲ – **وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: فان قيل عدم استحقاقه للاجر على فعل نفسه لا يستلزم عدمه بالنسبة الى ما وقع لغيره فالجواب انه عامل لنفسه فقط لانه الاصل وعمله لغيره مبنى على امر مخالف للقياس فاعتبر الاول ولانه ما من جزء يحمله الا وهو شريك فيه فلا يتحقق تسليم المعقود عليه لانه يمنع تسليم العمل الى غيره فلا اجر، عناية وتبيين ملخصا (ردالمحتار ص۳۳ ج۵)**

۳- وقال العلامة الطحطاوی رحمه الله: (قوله لانه لا یعمل شیئا الا ویقع بعضه لنفسه) قال فی العنایة لقائل ان یقول (الی قوله) عدم استحقاقه للاجر علی فعل نفسه لا یستلزم عدمه بالنسبة الی ما وقع لغیره والجواب انه عامل لنفسه فقط لان عمله لنفسه اصل و موافق للقیاس وعمله لغیره لیس باصل بل بناء علی امر یخالف للقیاس للحاجة وهی تندفع بجعله عاملا لنفسه لحصول مقصود المستاجر فاعتبر جهة کونه عاملا لنفسه فقط فلم یستحق الاجرة اه حلبی وقوله وهی تندفع الخ تامل (حاشیة الطحطاوی علی الدر ص۳۳ ج۴)

٤- وقال العلامة قاضی زاده رحمه الله: اقول فی الجواب شیء (الی) لانه انما تندفع بجعله عاملا لنفسه حاجة المستاجر دون حاجة الاجیر فان له حاجة الی الاجر کما ان للمستاجر حاجة الی المنفعة (الی) والظاهر ان عقد الاجارة لم یشرع لحاجة المستاجر فقط بل انما شرع لحاجة کل واحد من المتعاقدین (الی) فلم یتم الجواب. (نتائج الافکار تکملة فتح القدیر ص۱۹۰ ج۸)

٥- وقال العلامة السعدی الجلبی رحمه الله: (قوله وهی تندفع بجعله عاملا لنفسه لحصول مقصود المستاجر) اقول کیف یحصل مقصوده والاجیر اذا علم انه لا یعطی له الاجر لا یحمل نصیب المستاجر بل یقاسم و یحمل نصیب نفسه (حاشیة السعدی علی العنایة بهامش تکملة الفتح ص۱۹۰ ج۸)

٦- وقال الامام المرغینانی رحمه الله: استاجره لیحمل نصف طعامه بالنصف الاخر حیث لا یجب له الاجر لان المستاجر ملك الاجر فی الحال بالتعجیل فصار مشترکا بینهما و من استاجر رجلا لحمل طعام مشترك بینهما لا یجب الاجر لانه ما من جزء یحمله الا وهو عامل لنفسه وعامل لشریکه فاخذ الاجرة فی مقابلة عمله لشریکه (البنایة ص۳۶۲ ج۹)

٧- وقال الحافظ العینی رحمه الله: وقیل ههنا نظران:

الاول فی قوله حیث لا یجب الاجر کیف یقول لا یجب لانه قد وجب وقبض وهو نصف الطعام ثم یقول لان المستاجر ملك الاجر.

والثانی فی قوله لان ما من جزء یحمله الا وهو عامل لنفسه نظر فان هذا ممنوع (الی) ولکن الحق ان الجزء الذی لشریکه لیس هو عاملا فیه لنفسه بل لشریکه فهو فی الحقیقة عامل لنفسه وعامل لشریکه فاخذ الاجرة فی مقابلة عمله لشریکه. (البنایة ص۳۶۲ ج۹)

٨- وقال الامام الزیلعی رحمه الله: بخلاف ما اذا استاجره لیحمل نصف هذا الطعام بنصفه الاخر حیث لا

يجب له شئ من الاجر لان الاجير فيه ملك النصف فى الحال بالتعجيل فصار الطعام مشتركا بينهما فى الحال ومن حمل طعاما مشتركا بينه و بين غيره لا يستحق الاجر لانه لا يعمل شيئا لشريكه الا ويقع بعضه لنفسه فلا يستحق الاجر هكذا قالوا وفيه اشكالان:

احدهما ان الاجارة فاسدة والاجرة لا تملك بالصحيحة منها بالعقد عندنا(الى)فكيف ملكه هنا من غير تسليم ومن غير شرط التعجيل.

والثانى انه قال ملكه فى الحال و قوله لا يستحق الاجر ينافى الملك لانه لا يملكه اذا ملكه الا بطريق الاجرة فاذا لم يستحق شيئاً فكيف يملكه وباى سبب يملكه و كان مشايخ بلخ والنسفى يجيزون حمل الطعام ببعض المحمول الخ (تبيين الحقائق ص۱۳۰ ج۵)

۹ - وقال الامام المرغينانى رحمۃ اللہ علیہ: قال واذا كان الطعام بين رجلين فاستاجر احدهما صاحبه او حمار صاحبه على ان يحمل نصيبه فحمل الطعام كله فلا اجر له وقال الشافعى له المسمى، لان المنفعة عين عنده وبيع العين شائعا جائز، فصار كما اذا استاجر دارا مشتركه بينه و بين غيره ليضع فيها الطعام او عبدا مشتركا ليخيط له الثياب، ولنا انه استاجره لعمل لا وجود له لان الحمل فعل حسى لا يتصور فى الشائع (الهداية مع البناية ص۲۷۰ ج۹)

۱۰ - وقال الحافظ العينى رحمۃ اللہ علیہ: (قال) اى فى الجامع الصغير (و اذا كان الطعام بين رجلين فاستاجر احدهما صاحبه او حمار صاحبه على ان يحمل نصيبه فحمل الطعام كله فلا اجر له) يعنى لا المسمى ولا اجر المثل و على قياس قول ابى حنيفة رحمۃ اللہ علیہ: ينبغى ان يجب اجر المثل كما فى اجارة المشاع لكن الفرق ان فساد العقد هناك للعجز عن استيفاء المعقود عليه على الوجه الذى اوجبه العقد لا لانعدام الاستيفاء اصلا وهنا البطلان لتعذر الاستيفاء اصلا وبدون الاستيفاء لا يجب الاجر فى العقد الفاسد.

وقال الكرخى فى مختصره قال ابن سماعة عن محمد رحمۃ اللہ علیہ (الى قوله) ثم قال الكرخى قال محمد رحمۃ اللہ علیہ و كل شئ استاجره من صاحبه مما يكون عملا فانه لا يجوز و ان عمله فلا اجر له و كل شيء ليس يكون عملا استاجر احدهما من صاحبه فهو جائز. (انه استاجره لعمل لا وجود له) قيل هذا ممنوع بل لعمله وجود (الى قوله) وفيه نظر لان معنى قوله لا وجود له لا يتميز وجوده.

(لان الحمل فعل حسى لا يتصور فى الشائع) اذ الحمل يقع على معين والشائع ليس بمعين (الى قوله) فان قلنا

اذا حمل الكل فقد حمل البعض لا محالة فيجب الاجر قلت حمل الكل حمل المعين و نصيبه ليس بمعين فيما وجد نصيبه (البناية ص۱۰۴۰ ج۴)

۱۱- وقال العلامة البابرتی رحمة الله علیه: فان قيل اذا حمل الكل فقد حمل البعض لا محالة فيجب الاجر اجيب بان حمل الكل حمل معين وهو ليس بمعقود عليه والاستئجار بعمل لا وجود له لا يجوز لعدم المعقود عليه واذا لم يتصور تسليم المعقود عليه لا يجب الاجر اصلا. (العناية بهامش تكملة الفتح ص۱۴۶ ج۸)

۱۲- وقال العلامة السعدی رحمة الله علیه: اقول فی هذا الجواب تامل فانه ظاهر ان النصيب الشائع غير خارج من الكل بل داخل فيه فاذا حمل الكل كان محمولا معه و يكون كاجارة المشاع فان اللازم هنا ايضا تعذر التسليم على الوجه الذى يقتضيه العقد فينبغى ان يحكم باجر المثل (حاشية السعدی على العناية بهامش تكملة الفتح ص۱۴۶ ج۸)

۱۳- وقال العلامة قاضی زاده رحمة الله علیه: اقول فی الجواب نظر وهو ان عدم كون حمل الكل معقودا عليه لا يجدى شيئا فی دفع السؤال لان حاصل السؤال ان حمل الطعام واقع على معين قطعا فكان موجودا و حمل الكل لا يتصور بدون حمل كل جزء منه فقد استلزم وجود حمل الكل وجود حمل كل جزء منه لا محالة ومن جملة الاجزاء نصيب المستاجر فلا بد ان يجب الاجر لحمل ذلك الجزء الذى هو المعقود عليه ولا شك ان عدم كون الكل معقودا عليه لا يفيد شيئا فی دفع ذلك وانما يكون مفيدا لو كان المقصود من السؤال وجوب الاجر بحمل الكل و ليس فليس. (تكملة الفتح ص۱۴۶ ج۸)

۱۴- وقال الامام قاضيخان رحمة الله علیه: ولو دفع غزلا الى حائك لينسج له بالثلث او بالربع ذكر فی كتاب انه لا يجوز ومشايخ بلخ رحمهم الله جوزوا ذلك لمكان التعامل وبه اخذ الفقيه ابو الليث وشمس الائمة الحلوانی والقاضی الامام ابو علی النسفی رحمهم الله. (الخانية بهامش الهندية ص۳۳۰ ج۲)

۱۵- وفی مفسدات الاجارة من التنوير: وبالشيوع الا اذا اجر من شريكه وفی الشرح: فيجوز وجوزاه بكل حال وفی الحاشية: (قوله فيجوز) ای فی اظهر الروايتين خانية (ردالمحتار ص۳۳ ج۵)

۱۶- وقال العلامة معين الدين الهروی المعروف بملا مسكين: (وان استاجره لحمل طعام بينهما فلا اجر له) ای اذا كان الطعام مشتركا بين رجلين فان استاجر احدهما صاحبه او حمار صاحبه ليحمل نصيبه منه الى مكى كذا فحمل الطعام كله فلا اجر له لا المسمى ولا اجر المثل وقال الشافعی رحمة الله علیه له المسمى (شرح الكنز

لملا مسكين مع الحاشية فتح المعين ص٢٥٠ ج٣)

١٧- وقال العلامة المفتي ابو السعود رحمه الله: (قوله وقال الشافعي رحمه الله له المسمى) وبه قال مالك واحمد رحمهما الله تعالى عيني. (فتح المعين ص٢٥٠ ج٣)

١٨- وقال الحافظ العيني رحمه الله: (وقال الشافعي رحمه الله له المسمى لان المنفعة عين عنده و بيع العين شائعا جائز) و به قال احمد رحمه الله (فصار كما اذا استاجر دارا مشتركة بينه وبين غيره ليضع فيها الطعام او عبدا مشتركا ليخيط له الثياب) حيث يجب الاجر. (البناية ص٢٠٠ ج٩)

١٩- وقال الامام الحصكفي رحمه الله: ولو استاجره ليحمل له نصف هذا الطعام بنصفه الاخر لا اجر له اصلا لصيرورته شريكا.

قال ابن عابدين رحمه الله: قال في التبيين و مشائخ بلخ والنسفي يجيزون حمل الطعام ببعض المحمول ونسج الثوب ببعض المنسوج لتعامل اهل بلادهم بذلك و من له يجوزه قاسه على قفيز الطحان والقياس يترك بالتعارف ولئن قلنا انه ليس بطريق القياس بل النص يتناوله دلالة فالنص يخص بالتعارف الا ترى ان الاستصناع ترك القياس فيه و خص من القواعد الشرعيه بالتعامل و مشائخنا رحمهم الله لم يجوزوا هذا التخصيص لان ذلك تعامل اهل بلدة واحدة وبه لا يخص الاثر بخلاف الاستصناع بان التعامل به جرى في كل البلاد و بمثله يترك القياس و يخص الاثر اهـ (ردالمحتار ص٣٠٠ ج٥)

٢٠- وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: وفي فتاوى احمد افندى يعني المهنداري سئل في مهرة صغيرة باع المالك الثمن منها شائعا لزيد بيعا صحيحا بثمن معلوم وسلم اليه المهرة وامره بتربيتها والقيام بعلفها من ماله على ان يكون له بذلك الحصة وهي الثمن الثاني تكملة الربع منها نظير التربية والعلف فتسلمها زيد وربّاها وعلفها من ماله مدة (الى) و اجرة التربية لا يزاد على قيمة الثمن المجهول في مقابلته الجواب نعم اهـ (اقول) رايت بهامش الاصل بخط شيخ مشايخنا الشيخ ابراهيم السائحاني ما نصه قوله واجرة التربية فيه نظر لانه الشريك لا اجر له اهـ لكن رايت في الخلاصة في الفصل الخامس من الاجارات ما نصه وفي فتاوى الفضلي لو دفع الى نداف قباء ليندف عليه كذا من قطن نفسه بكذا من الدراهم ولم يبين الاجر من الثمن جاز اهـ وذكر قبله وفي الاصل رجل دفع الى السكاف جلدا ليخرز له خفين على ان ينعلهما بنعل من عنده ويبطنه و وصف له ذلك جاز وان كان هذا بيعا في اجارة للتعامل اهـ قال في المحيط وهذا استحسان والقياس ان لا يجوز بمنزلة مالو

دفع ثوبا الی خیاط لیخیط جبة علی ان یحشوه و یبطنه من عنده بأجر مسمی فان ذلک لا یجوز قیاسا و استحسانا فکذا هذا لکن ترک القیاس فی الخف للتعامل وفی المنتقی عن محمد رحمه الله تعالیٰ دفع الی خیاط ظهارة و قال بطنها من عندک فهو جائز قاسه علی الخف فصار فی المسالة روایتان و لو قال ظهارتها من عندک فهو فاسد باتفاق الروایات لانه لا تعامل فیه اهـ و مفاد هذا ان المدار علی التعارف فلو جری التعارف جاز و الا فلا کما یشهد بذلک التعلیل فتامل، و من ذلک ما ذکروه فی استئجار الکاتب لو شرط علیه الحبر جاز لا لو شرط علیه الورق ایضا (العقود الدریة ص۱۱۳ ج۲)

۲۱- وقال ایضاً: الباب الثانی فیما اذا خالف العرف ما هو ظاهر الروایة فنقول اعلم ان المسائل الفقهیة اما ان تکون ثابتة بصریح النص و هی الفصل الاول و اما ان تکون ثابتة بضرب اجتهاد و رای و کثیر منها ما یبنیه المجتهد علی ما کان فی عرف زمانه (الی) لو بقی الحکم علی ما کان علیه اولا للزم منه المشقة و الضرر بالناس و لخالف القواعد الشرعیة المبنیة علی التخفیف التیسیر و دفع الضرر و الفساد لبقاء العالم علی اتم نظام و احسن احکام و لهذا تری مشائخ المذهب خالفوا ما نص علیه المجتهد فی مواضع کثیرة. (رسائل ابن عابدین ص۱۲۵ ج۲)

۲۲- وقال ایضا: فهذا کله و امثاله دلائل واضحة علی ان المفتی لیس له الجمود علی المنقول فی کتب ظاهر الروایة من غیر مراعاة الزمان و اهله و الا یضیع حقوقا کثیرة و یکون ضرره اعظم من نفعه. (رسائل ابن عابدین ص۱۳۱ ج۲)

۲۳- وقال ایضاً: (فان قلت) اذا کان علی المفتی اتباع العرف و ان خالف المنصوص علیه فی کتب ظاهر الروایة فهل هنا فرق بین العرف العام و العرف الخاص کما فی القسم الاول و هو ما خالف فیه العرف النص الشرعی (قلت) لا فرق بینهما هنا الا من جهة ان العرف العام یثبت به الحکم العام و العرف الخاص یثبت به الحکم الخاص (رسائل ابن عابدین ص۱۳۱، ۱۳۲ ج۲)

۲٤- وقال ایضاً: فهذه النقول و نحوها دالة علی اعتبار العرف الخاص و ان خالف المنصوص علیه فی کتب المذهب ما لم یخالف النص الشرعی (الی) اقول و مما قررناه تبین لک ان ما تقدم عن الاشباه من المذهب عدم اعتبار العرف الخاص انما هو فیما اذا عارض النص الشرعی (الی) و اما العرف الخاص اذا عارض النص المذهبی المنقول عن صاحب المذهب فهو معتبر کما مشی علیه اصحاب المتون و الشروح و الفتاوی (الی)

لیس للمفتی ولا للقاضی ان یحکما بظاهر الروایة ویترکا العرف (رسائل ابن عابدین ص ۱۳۲ ج ۲)

۲۵ – وقال ایضاً: والحاصل ان ما خالف فیه الاصحاب امامهم الاعظم لا یخرج عن مذهبه اذا رجحه المشایخ المعتبرون و کذا ما بناه المشایخ علی العرف الحادث لتغیر الزمان او للضرورة (الی) و مثله تخریجات المشایخ بعض الاحکام من قواعده او بالقیاس علی قوله ومنه قولهم و علی قیاس قوله بکذا یکون کذا فهذا کله لا یقال فیه قال ابو حنیفة رحمه الله نعم یصح ان یسمی مذهبه بمعنی انه قول اهل مذهبه او مقتضی مذهبه (الی) والظاهر ان نسبة المسائل المخرجة الی مذهبه اقرب من نسبة المسائل التی قال بها ابو یوسف او محمد رحمهما الله تعالی الیه لان المخرجة مبنیة علی قواعده و اصوله الخ (رسائل ص ۲۵ ج ۱)

د ذکر کړې شوو نصوصو نه دا لاندې خبرې ثابتې شوې:

۱- شریک لره د اجیر ساتلو عدم جواز د هیڅ یو شرعی نص نه ثابت نهٔ دی۔

۲- د حضرت امام رحمه الله نه هم په دې حقله څه روایت نشته دې۔

۳-د امام محمد رحمه الله نه په دې حقله قول نقل دې لیکن د هغوی نه د دې څه علت نهٔ دې منقول.

٤-بعضو مشائخو چې کوم علل بیان کړې دی، هغه د نورو مشائخو په نظر کښې مخدوش دی، وګورئ عبارت نمبر ۳، ۴، ۵، ۷، ۸، ۱۲، ۱۳۔

۵ - علامه سعدی رحمه الله دې ته د اجارة المشاع په شان وئیلې دی۔ عبارت نمبر ۳.

٦- اجارة المشاع په اجماع د ائمة الاربعة رحمهم الله سره روا ده، البته امام رحمه الله غیر شریک د پاره ناروا فرمائیلې دی۔ عبارت نمبر ۱۵، ۱۸ .

۷ - ائمهٔ ثلاثه رحمهم الله د اجارة المشاع په شان شریک لره د اجیر په توګه د ساتلو په جواز باندې متفق دی۔ عبارت نمبر ۱٦، ۱۷، ۱۸ .

۸ – د قفیزِ طحان حرمت د شرعی نص نه ثابت دې ، باوجود ددې د حرمت بعضی فقهاؤ رحمه الله په وجه د تعامل د دې د جواز قول کړې دې، لیکن نورو فقهاؤ رحمهم الله دا د دې وجې نه ندې قبول کړې، چې دا تعامل د هغوی د ښاریو سره خاص دې،او په خاص تعامل سره د شرعی نص پرېښودل روا نهٔ دی۔ عبارت نمبر ۱۹ .

۹ – د شرعی نص د ترک د پاره عام تعامل شرط دې، لیکن د مذهب د نص د ترک دپاره خاص تعامل هم کافی دې۔ عبارت نمبر ۲۱، ۲۴ ۔

۱۰- د حنفی مذهب په حیثیت سره د صاحبینو رحمهما الله د اقوالو نه په تعامل باندې مبنی احکام مقدم دی۔ عبارت نمبر ۲۵ .

۱۱ - د مذهب نص خو په عام تعامل سره هم ترک کولې شی،او د کمپنئ شریکان په توګه د

اجیر سائل خو عام تعامل دې، لهذا په دې کښې به په طریقِ اولی سره د مذهب نص متروک وی، او بیا په خصوصیت سره دا خبره هم چې دا نص د امام هم نهٔ دې بلکه قول د امام محمد رحمه الله دې د کومې نه چې تعامل مقدم دې.

د دې نه علاوه د مضاربت نه هم ددې مرسته کیږی، مضارب د مشترک عمل نه نفع حاصلوی۔

والله سبحانه وتعالی اعلم. ۳۰ محرم ۱۳۹۹ هجری

## په سودی کار کوونکو ادارو کښې د بجلئ فټنگ کول

**سوال**:- نن صبا اکثر ادارې او په خاص توګه تجارتی ادارې او کمپنئ د کومو اکثر کاروبار چې سودی دې، ټیکدار د کمپنئ نه یا د ادارې نه قرض پیسه واخلی او تعمیری کار شروع کړی، زهٔ په داسې پیسو باندې جوړیدونکی عمارتونو کښې د بجلئ کار په ټیکه باندې کوك، ما ته چې کومې پیسې په اجرت کښې راکول کیږی، هغه هم د سود وی، نو آیا دا پیسې زما د پاره اخستل او نوکرانو له ورکول روا دی او که ناروا؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ستا په کار کښې څه شرعی خرابې نشته، د ادارو سودی کار کول د هغوی خپل فعل دې، د کومې وبال او ګناه چې به په هغوی باندې وی، لهذا ستا د کار اجرت بې د څه شبهې نه حلال دې، البته دا ضروری دی چې دآمدن پیسې دې د حلال آمدن نه وی، د دې وجې نه چې کله کمپنئ سره معاهده کولې شی نو دا دې ورسره شرط کړې شی، چې مونږ له به اجرت د شرعی منافعې نه راکوئ، په کمپنئ کښې به یقیناً د حلال آمدن ذرائع هم وی، د هغې نه دې تاسو ته اجرت درکړې شی.

که چیرې حلال او حرام آمدن ګډ وډ کړې شی او اداره دې خبرې ته تیاره نهٔ وی چې حلال بیل کیږدی، نو بیا ئې حکم دا دې چې: هر کله چې حلال او حرام مخلوط وی او حلال غالب وی نو ددې نه بیا اجرت اخستل روا دی، او که چیرې حلال او حرام دواړه سره برابر وی او یا حرام پرې غالب وی نو بیا ترې نه اجرت اخستل ناروا دی۔ والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۳ ربیع الاول ۱۳۹۹ ھجری

## د اجارې فسخه کول د ضرورت د وجې نه

**سوال**:- د یوې مدرسې ټول اخراجات د چندې په پیسو باندې چلیږی، او چنده یواځې مهتمم صاحب کوی، مهتمم صاحب ډیر بیمار شو او هسپتال کښې داخل شو، د چندې سلسله منقطع شوه، د مدرسې د خرچو د پاره قرض شروع شو، آخر دا چې مدرسه بنده شوه، او مدرسین او طالبان کورونو ته لاړل، د یو مدرس دا مطالبه ده چې ما ته دې د ټول کال تنخوا راکړې شی، آیا په مدرسه باندې د هغهٔ تنخوا واجب الاداء ده؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا د عذر له کبله فسخه د اجارې ده او دا روا ده،لهذا دغه مدرس له د ټول کال د اجرت مطالبه کول روا نهٔ دی.**والله سبحانه وتعالیٰ اعلم**. ۱۸ ربیع الثانی ۱۳۹۹ هجری

## یو جلد ساز د نیمګړی کتاب جلد جوړ کړو

**سوال**:- زید یو کتاب پریس (چاپ خانه) کمپنۍ د چاپ کیدلو د پاره ورکړو،څه نسخې خو پوره چاپ شوې لیکن څه په کمپنۍ ناقصې پاتې شوې،کتاب چاپ شو او بائنډر ته ورغې ،بائنډر بائنډنګ وکړو او کتاب ئې جلد ساز له ورکړو،جلد ساز د پوره او نیمګړی ټولو کتابونو جلد جوړ کړو ، بائنډر هغهٔ له اجرت ورکړو،اوس مالک وائی چې زهٔ نیمګړی کتابونه نهٔ اخلم،او نهٔ د دې د جلد اجرت ورکوم،نو آیا دا نیمګړې نسخې خرڅول او د دې نه خپل اجرت اخستل څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که د کتاب مالک د نیمګړی کتاب د جلد کولو تصریح نه وه کړې، نو د دغه نیمګړی کتاب د جلد سازئ اجرت اخستل روا نهٔ دی،البته که د مالک په وینا ئې د نیمګړې نسخو جلد جوړ کړې وی نو بیا د مالک نه د اجرت مطالبه کولې شی،او که چیرې مالک پیسې نهٔ ورکوی نو دا نسخې دې خرڅې کړې شی او دخپل اجرت په قدر دې ترې نه واخستې شی او باقی پیسې دې مالک ته وسپارلې شی.**والله سبحانه وتعالیٰ اعلم**. ۳ جمادی الاولی ۱۳۹۹ هجری

## جلد ساز ناقصه ګته استعمال کړه

**سوال**:- زید یو کتاب د جلد کولو دپاره جلد ساز ته ورکړو،او د یو خاص قسم ډبلې او د مضبوطې ګتې د لګولو هدایت ئې ورته وکړو،جلد ساز نرئ او کمزورې ګته ولګوله او جلد ئې وړله جوړ کړو،نو آیا جلد ساز د اجرت مستحق دې او که نه؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې لږ شان فرق وی په کمپنۍ نو جلد ساز ته به ټول اجرت ورکول کیږی،او که چیرې زیات فرق وی په کمپنۍ نو بیا جلد ساز د اجرت مستحق نهٔ دې،او په دهٔ باندې د کتاب قیمت لازم دې،او که چیرې مالک هم ددې جلد په قبلولو باندې راضی شی نو بیا به په دهٔ باندې پوره اجرت ورکول لازم شی.

قال فی التنویر وشرحه: وضمن بصبغه اصفر وقد امر باحمر قیمة ثوب ابیض وان شاء المالك اخذه واعطاه ما زاد الصبغ فیه ولا اجر له وصبغ ردیئا ان لم یکن الصبغ فاحشا لا یضمن المصباغ وان کان فاحشا عند اهل فنه یضمن قیمة ثوب ابیض خلاصة. (ردالمحتار ص۳۱ ج۵) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم ۳ ربیع الاول ۱۴۱۴ هجری

## د کوهی کنستلو په اجاره کښې د ژوروالی حد

**سوال:-** زید عمرو ته اوویل چې ما دپاره په درې سوه روپئ باندې یو کوهی اوباسه. عمرو ته معلومه وه چې په درې ګزو کښې به اوبۀ راشي. لهٰذا عمرو دا خبره قبوله کړه. لیکن د عمرو د اندازې مطابق اوبۀ په درې ګزو کښې راونۀ وتلې، اوس زید وائي چې زۀ به پیسې هغه وخت درکوم چې اوبۀ راوځي. آیا زید ته د دې خبرې حق شته دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دغه علاقه کښې چې په څومره ژور والی باندې عموماً اوبۀ راوځي نو په اجیر باندې د هغه حده پورې کنستل واجب دی، د دې نه چې کنستل زیات شي نو د هغې دې بیل عقد د اجارې ورسره وکړې شي۔

**قال فی الهندیة:** لو استأجر لیحفر له بئرا او سردابا لا بد ان یبین الموضع طول البئر و عمقه و دوره و فی السرداب یبین طوله و عرضه و عمقه کذا فی الغیاثیة ولو استأجره لحفر البئر ان لم یبین الطول والعرض والعمق جاز استحسانا و یؤخذ بوسط ما یعمله الناس کذا فی الوجیز للکردری (عالمگیریة ص ۳ ج ۲) واللّٰه سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۱۱ ربیع الاول ۱۴۰۰ هجری

## د اجارې د وکیل په مرګ سره اجاره نۀ فسخه کیږي

**سوال:-** د یوې مدرسې مهتمم کرایه دارانو سره د مدرسې د دکانونو کرایه وټاکله، او ورسره ئې دا هم وټاکله چې دا معاهده به د پنځو کالو پورې وي، د اللّٰه په قضا سره مهتمم وفات شو، اوس د مدرسې انتظامیه وائي چې دا معاهده منسوخ شوه، لهٰذا د کرایې تجدید دې وکړې شي، او کرایه دار وائي چې دا معاهده دې سر ته ورسولې شي، شرعاً د دې څه حکم دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** که چیرې مهتمم صاحب ته قانوناً د کرایه وغیره د متعین کولو تول اختیارات حاصل وو، نو د هغوی په انتقال سره به اجاره ختمه شي، د بیا د پاره منتظمه یا نوي مهتمم ته اختیار دې، او که وړاندینې مهتمم خود مختاره نۀ وو، بلکه د مدرسې په قانون کښې د کرایه وغیره غوندې معاملاتو کښې د منتظمه متفقه فیصله ضروري وه، او مهتمم صاحب وکالةً کار کولو نو د هغوی په انتقال سره عقد د اجارې ختم نۀ شو، د دې عقد پوره کول ضروري دی، د معاهدې د مودې د ختمیدلو نه پس د کرایې تجدید کولې شي۔

قال ابن عابدین رحمه اللّٰه: قال السائحانی ففی البدائع ان الاجارة لا تبطل بموت الوکیل سواء کان من طرف الموجر او المستاجر اهـ قلت و مثله فی القهستانی عن قاضیخان و فی التاترخانیة کل من وقع له عقد الاجارة اذا مات تنفسخ الاجارة بموته و من لم یقع العقد له لا ینفسخ بموته وان کان عاقدا یرید الوکیل والوصی و کذا

المتولي في الوقف (ردالمحتار ص ... ج ...) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۳ جمادی الاولی ۱۴۰۲ هجری

## له کافرانو سره د شرابو په کاروبار کښې مزدوري کول

**سوال**:- له کافرانو د سره شرابو په کاروبار کښې د مزدوري کولو څه حکم دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د شرابو د اخستلو او د خرڅولو او د څښلو نوکري کول روا نه دی، د څه بل څه کار دپاره د کافر د شرابو په کاروبار کښې د نوکرئ کولو څه ګنجائش شته دې، لیکن په دې کښې هم څه دینی خطرات دی د دې وجې نه ددې نه احتراز کول بهتر دی۔ والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۲ ربیع الثانی ۱۴۰۳ هجری

## د ډریوری (موټروانی) د لائسنس (سند) جوړولو اجرت

**سوال**:- د موټر د چل ښودلو د پاره چې کوم مکتبونه دی، نو دغه مکتب والا چې موټروان ته لائسنس جوړ کړئ په اجرت باندې نو دا اجرت په دې لاندینو دوو صورتونو کښې په یو صورت کښې داخل کړې شی نو دې ته بیا روا وئیلې کیدې شی او که نه؟

۱- مکتب والا د خپلې منډې او د خوارئ پیسې اخلی۔

۲- مکتب والا دلال دې، او د دلالئ اجرت روا دې۔

چې هر څنګه وی خو ددې د جواز صحیح صورت راته ولیکئ۔ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دویم صورت یعنی دې معاملې ته دلالی وئیل صحیح نهٔ دی، ځکه چې د دلال دوه مقصده وی، یو دبائع تکل کول، دویمه **ارضاء علی البیع**، د سوال په صورت کښې دا دواړه نشته دی، ځکه چې بائع خو حکومت دې او هغه معین دې، او قانوناً په دهٔ باندې واجب دی چې ماهر موټروان ته لائسنس ورکړی، لهذا د **ارضاء علی البیع** هم ضرورت پاتې نهٔ شو۔

اولنې صورت صحیح دې، ځکه چې د لائسنس په حاصلولو کښې درې قسمه خوارئ دی:

۱- عریضه ورکول.

۲- د محکمې نه ئې منظورول او لائسنس اخستل.

۳- د اخستلو نه پس عریضه ورکوونکی ته دا رسول.

په دې کښې د قسم اول او د قسم ثالث د اجرت په جواز کښې څه اشکال نشته دې، ځکه چې دا دواړه د اجیر په اختیار کښې دی، په قسم ثانی کښې دا اشکال دې، چې لائسنس منظورول او ددې اخستل د اجیر په اختیار کښې نشته دې، او قدرت بقدرة الغیر په حکم د عجز کښې دې، د دې دا جواب کیدې شی، چې محکه قانونا د لائسنس ورکولو پابنده وی، ددې وجې نه دا کار د اجیر د قدرت نه خارج نهٔ دې، په دې جواب کښې لږ شان تامل دې، لهذا د خوارئ په اول او دریم قسم

باندې اجاره کول پکار دی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۵ شعبان ۱٤۱۱ هجری

## د بجلئ «برق» اجاره

**سوال**:- د بجلئ د محکمې سره معامله بیعه ده او که اجاره؟ که چیرې دا بیعه وی نو په دې کښې د معقود علیه عین کیدل شرط دی، او هغه دلته مفقود دی. او که چیرې اجاره وی نو په دې کښې په ابقاء د اصل سره تحصیل دمنفعت وی، او حال دا چې د بجلئ اصل خرچ کیږی، دا کوم یو عقد دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا عقد د اجارې دې، لیکن په خپله د بجلئ نه بلکه د بجلئ پیداکوونکو او رسوونکو آلاتو او عملې اجاره ده. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۷ ربیع الاول ۱٤۱٤ هجری

## د ټیکسی پټرول په مستاجر باندې د کیدلو شرط

**سوال**:- په ټیکسی کښې د پټرولو مثال د دابې د خوراک په شان دې، او هر کله چې دابه په کرایه باندې ورکولې شی او د خوراک شرط په مستاجر باندې ولګولې شی نو دې سره اجاره فاسده شی، همدغه شان که د ټیکسی د پټرولو د خرچې شرط په مستاجر باندې ولګولې شی نو دې سره هم اجاره فاسدیدل پکار دی، او که چیرې دې کښې شرط روا وی نو مابه الفرق څه دی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په ټیکسی او دابه کښې د دوو وجوهو نه فرق دې:

۱- په دابه کښې خوراک د عینِ دابې د بقا دپاره ضروری دې، او بل اړخ ته د ټیکسی د عین د بقا دپاره پټرول ضروری نۀ دی.

په کوم څیز باندې چې د مستاجر څیز بقا موقوف وی هغه د مالک په ذمه باندې وی، او کوم چې د بقا د پاره موقوف علیه نۀ وی هغه د مستعمِل په ذمه وی.

۲- که د دابې نه نفع نۀ اخلی نو بیا هم هغې له خوراک ورکول ضروری دی، او چې د ټیکسې نه نفع نۀ اخلی نو بیا په کښې پټرول اچول ضروری نۀ دی.

د دې وجې نه د علف د دابې په مالک باندې کیدل او د پټرولو په مستعمِل باندې کیدل د قیاس موافق دی، د ټیکسی قیاس په دابه باندې کول صحیح نۀ دی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۸ ربیع الاول ۱٤۱٤ هجری

## کورټ فیس «دقضاء دمحکمې فیس»

**سوال**:- د کورټ فیس په حقله راته د لاندینو سوالونو جوابونه ولیکئ او په دې حقله زمونږ

رهنمائی وکړئ۔

۱- چې عدالت (دقضاء په محکمه) کښې څه مقدمه (عريضه) داخلول وی نو په دغه وخت کښې عدالت (دقضاء محکمه) څه فيس اخستلې شی؟

۲- د قاضی د متنازعينو نه د خپل ځان د پاره فيس اخستل بالاتفاق ناروا دی، او د قاضی د حکومت نه تنخوا اخستل تقريبا روا دی، ليکن آيا د حکومت د متنازعينو د پاره په دې بنياد باندې فيس اخستل چې د دې په ذريعه د عدالت خرچې پوره کولې شی دا به روا وی او که ناروا؟

۳- په پاکستانی عدالتونو کښې صورتِ حال دا دې، چې د عائلی مقدماتو د عدالتونو، د حادثاتی مقدماتو د عدالتونو، د کرايه دارئ د مقدماتو، او د فوجدارئ د مقدماتو هيڅ څه کورټ فيس نشته، په ځينی مقدماتو کښې دپنځلس روپو په اندازه معمولی فيس اخستلې شی، او دې دومره فيس ته يقيناً د کاغذ او د ستيشنرئ وغيره خرچه وئيلې کيدې شی، همدغه شان مالی معاملاتو کښې که چيرې مقدمه د پنځه ويشتو زرو نه کمه وی نو په دې باندې هم څه کورټ فيس نۀ شی اخستلې، البته داسې مالی معامله چې په هغې کښې چا ته د پنجاب او د سرحد نه د پنځه ويشت زرو روپو نه دزياتو او د سندھ نه د پنځوس زره روپو نه د زياتو روپو ترلاسه کيدل وی، نو په دې باندې د اونيم فيصده په حساب سره کورټ فيس اخستلې شی، په دې کښې هم چې څوک دا درخواست ورکړی چې هغه د خپلې تنگدستئ د وجې نه دا فيس نۀ شی ادا کولې نو هغۀ ته عموما دا فيس معاف کړې شی۔

دا وئيل چې يواځې د مالدارو خلقو نه د عدالتی خرچو د پوره کولو دپاره دا فيس اخستلې شی، او که دا فيس وانه خستلې شی نو د عدالتی خرچې د پوره کولو دپاره د ټيکس نه سوا بله يوه لاره پاتې نۀ ده، او د دې زور بيا ټولو خلقو له ورځی، برابره خبره ده که دا عام خلق په مقدمه کښې شريک وی او که نه، د دې نه علاوه که دا فيس وغيره بالکل ختم کړې شی، نو ددې خبرې هم انديښنه ده، چې دا مقدمې به ډيرې زياتې شی، او د بې بنياده مقدمو د اچولو دا ډگيرنه به خلقو ته ترلاسه شی، آيا دا خبرې د کورټ فيس جواز نۀ پيدا کوی؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: امن او امان قائم ساتل او خلقو ته انصاف رسول د حکومت په ذمه فرض دی، لهذا د فرض غوندې عبادت په ادا کوولو باندې د انصاف د طلب کوونکو نه اجرت اخستل ناروا او حرام دی۔

د کورټ فيس په مسئله کښې د (فيس) لفظ د اجرت په انگريزئ کښې متبادل نوم دې، لهذا د عدالت د پاره د متنازعينونه د مقدمې په اوريدلو باندې د کورټ فيس د اخستلو شرعاً څه گنجائش نشته دې۔

البته که په قومی خزانه کښې د حقيقی اخراجاتو د زياتوالی له کبله د عدالتی خرچو د پاره د

پیسو واقعتا گنجائش نۀ وی،نو په داسې مجبورئ کښې بیا د دې گنجائش شته دې چې حکومت د عدالتی خرچو د پوره کولو دپاره د ملک په مالدارو خلقو باندې ټیکس ولګوی،او فقهاء کرامو رحمهم الله دا خبره په نښه کړې ده.

او ښه خبره دا ده چې دا ټیکس په مالدارانو کښې د هغه مالدارانو نه واخستې شی چې هغوی دخپلو مسئلو د حل د پاره عدالت ته رجوع کوی، لیکن په دې کښې هم د دوو شرطونو د پابندئ اهتمام ضروری دې۔

۱-د مالدارو نه دې دا ټیکس صرف د عدالتی خرچو د پوره کولو د پاره د مجبورئ د وجې نه واخستې شی،د دې نه دې په باقاعدګئ سره د حکومت د آمدن ذریعه نۀ جوړولې کیږی۔

۲- دا ټیکس دې د هغه تناسب نه په هیڅ صورت کښې هم زیات نۀ اخستل کیږی،کوم تناسب چې په دې وخت کښې د کورټ فیس او دحقیقی عدالتی خرچو په مابین کښې موندې شی.

۱- قال الامام السرخسی رحمه الله: ولا بأس بأن یکلف القاضی الطالب صحیفة یکتب فیها حجته و شهادة شهوده لان منفعة ذلک له والذی یجب علی القاضی مباشرة القضاء فاما الکتابة لیست علیه فلا یلزمه اتخاذ الصحائف لذلک من مال نفسه ولکن لو کان فی بیت المال فلا بأس بذلک لانه یتصل بعمله و کفایته فی مال بیت المال فما یتصل به لا بأس بأن یجعل فی مال بیت المال و علی هذا اجر کاتب القاضی فانه ان جعل کفایته فی بیت المال لکفایة القاضی لیحتسب فی عمله فهو حسن و ان رای ان یجعل ذلک علی الخصوم فلا بأس به لانه یعمل لهم عملا لا یستحق علی القاضی مباشرته و کذلک اجیر قاسم القاضی (المبسوط ص ۹۳ ج ۱۶)

۲- وقال ایضا: ثم الاولی ان یجعل کفایة قاسم القاضی فی بیت المال ککفایة القاضی لان عمله من تتمة ما انتصب القاضی له،فان لم یقدر علی ذلک امر الذین یریدون القسمة ان یستاجروه بأجر معلوم و ذلک صحیح لانه یعمل لهم عملا معلوما و ذلک العمل غیر مستحق علیه و لا علی القاضی فالقضاء یتم ببیان نصیب کل واحد من الشرکاء و القسمة عمل بعد ذلک فلا بأس بالاستئجار علیه کالکتابة.(المبسوط ص ۱۰۲ ج ۱۶)

۳ - وقال الامام طاهر بن عبد الرشید البخاری رحمه الله: وفی المحیط و اذا اراد القاضی ان یکتب السجل و یاخذ علی ذلک اجرا یاخذ منه مقدار ما یجوز اخذه لغیره و کذا لو تولی القسمة بنفسه بأجر لو اخذ الاجرة فی مباشرة نکاح الصغار لیس له ذلک لانه واجب علیه و ما لا یجب مباشرته جاز اخذ الاجرة علیه.(خلاصة الفتاوی ص ۰ ج ۴)

۴- وقال الامام الکاسانی رحمه الله: ومعلوم انه لا یمکنه القیام بما نصب له بنفسه فیحتاج الی نائب یقوم مقامه فی ذلک و هو القاضی ولهذا کان رسول الله ﷺ یبعث الی الافاق قضاة فبعث سیدنا معاذا رضی الله عنه الی الیمن و

بعث عتاب بن اسید ﷺ الی مکة فکان نصب القاضی من ضرورات نصب الامام فکان فرضا وقد سماه محمد رحمه الله علیه فریضة محکمة (بدائع الصنائع ص ٢ ج ٧)

٥ - وقال الامام المرغینانی رحمة الله علیه: (ولا باس برزق القاضی) لانه ﷺ بعث عتاب بن اسید ﷺ الی مکة و فرض له و بعث علیا ﷺ الی الیمن وفرض له و لانه محبوس لحق المسلمین فتکون نفقته فی مالهم و هو مال بیت المال و هذا لان الحبس من اسباب النفقة کما فی الوصی والمضارب اذا سافر بمال المضاربة و هذا فیما یکون کفایة فان کان شرطا فهو حرام لانه استئجار علی الطاعة اذالقضاء طاعة بل هو افضلها ثم القاضی اذا کان فقیرا فالافضل بل الواجب الاخذ لانه لایمکنه اقامة فرض القضاء الا به اذالاشتغال بالکسب یقعده عن اقامته وان کان غنیا فالافضل الامتناع علی ماقیل رفقا ببیت المال وقیل الاخذ وهو الاصح صیانة للقضاء عن الهوان ونظرا لمن یولی بعده من المحتاجین لانه اذا انقطع زمانا یتعذر اعادته ثم تسمیته رزقا تدل علی انه بقدر الکفایة (الهدایة ص ١٣٦ ج ٣)

٦ - وقال ایضا: وینبغی للقاضی ان ینصب قاسما یرزقه من بیت المال لیقسم بین الناس بغیر اجر لان القسمة من جنس عمل القضاء من حیث انه یتم به قطع المنازعة فاشبه رزق القاضی ولان منفعة نصب القاسم تعم العامة فتکون کفایته فی مالهم غرما بالغنم (قال فان لم یفعل نصب قاسم یقسم بالاجر) معناه باجر علی المتقاسمین لان النفع لهم علی الخصوص ویقدر اجر مثله کیلا یتحکم بالزیادة والافضل ان یرزقه من بیت المال لانه ارفق بالناس وابعد عن التهمة (الهدایة ص ٤١٠ ج ٣)

٧ - وقال العلامة علاء الدین الطرابلسی رحمة الله علیه: و للقاضی اخذ الاجرة علی کتب السجلات والمحاضرة وغیرهما من الوثائق اذ یجب علیه القضاء و ایصال الحق الی اهله لا الکتابة و لکن انما یطیب له لو اخذ ما یجوز اخذه لغیره قال فی الملتقط للقاضی ان یاخذ ما یجوز لغیره اخذه وما قیل فی کل الف خمسة دراهم لا نقول به ولا یلیق ذلک بالفقه و ای مشقة للکاتب فی کثرة الثمن و انما اجر مثله بقدر مشقته و بقدر عمله فی صنعته ایضا کحکاک وثقاب مستاجر باجر کثیر فی مشقته قلیلة.

(فصل) و اما اجرة السجل علی من تجب قیل علی المدعی اذبه احیاء حقه فنفعه له و قیل علی المدعی علیه اذهو یاخذ السجل و قیل علی من استاجر الکاتب و ان لم یامره احد و امره القاضی فعلی من یاخذ السجل. (معین الاحکام ص ١١ ج ١)

٨ - وقال فی الهندیة: ولا یاخذ الرزق الا من بیت مال الکورة التی یعمل فیها لانه یعمل لاهل هذه الکورة کذا فی العتابیة.

٩ - وقال ایضا: واما اجر کتاب القاضی واجر قسامه فان رای القاضی ان یجعل ذلک علی الخصوم فله ذلک وان

رای ان یجعل ذلک فی مال بیت المال وفیه سعة فلا بأس به وعلی هذا الصحیفة التی یکتب فیها دعوی المدعین وشهادتهم ان رای القاضی ان یطلب ذلک من المدعی فله ذلک وان کان فی بیت المال سعة ورای ان یجعل ذلک فی بیت المال فلا بأس به وفی النوازل قال ابراهیم سمعت ابا یوسف رحمه الله سئل عن القاضی اذا اجری له ثلاثون درهما فی ارزاق کاتبه وثمن صحیفته ایسعه ذلک قال ما احب ان یصرف شیئا من ذلک عن موضعه الذی سمی له کذا فی التتارخانیة.(عالمگیریة ص۳۳۰ ج۳)

۱۰ – وقال العلامة التمرتاشی رحمه الله: یستحق القاضی الاجر علی کتب الوثائق قدر ما یجوز لغیره کالمفتی.

۱۱ – وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله قدر ما یجوز لغیره) قال فی جامع الفصولین للقاضی ان یأخذ ما یجوز لغیره. (ردالمحتار ص۳۰۳ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۳ صفر ۱٤۱٤ هجری

## د مسئلو په ښودنه باندې اجرت اخستل

**سوال:-** یوه علاقه ده،چې په هغې کښې د مسئلو د ښودلو دپاره څوک مفتی نشته دې،یو مفتی صاحب د دغې علاقې خلقو ته درې یا څلور ساعته وخت ورکوی او په یو مخصوص ځائ کښې کیښنی.خلق راځی او د هغهٔ نه د مسئلو پوښتنه کوی،آیا دا مفتی د خلقو نه د وخت د حبس کولو اجرت اخستې شی،او حال دا چې د څه ادارې یا د بیت المال له اړخه ددهٔ څه اجرت هم مقرر نهٔ وی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : آو ! دې دغه اجرت اخستې شی، د دې تفصیل داسې دې چې که څوک سړې د مفتی نه پوښتنه وکړی او مفتی ته پته وی نو په هغه د دې مسئلې ښودل فرض دی، لهذا په دې باندې اجرت اخستل روا نهٔ دی. لیکن که څوک مفتی د خلقو د فائدې دپاره خپل وخت فارغ کړی او صرف د مسئلو د ښودلو د پاره یو ځائ کښې کښینی،نو داسې کول خو په دهٔ باندې فرض نه دی،نو ددې وجې نه د وخت د حبس کولو اجرت د پوښتنه کوونکو نه اخستې شی۔

قال الامام المرغینانی رحمه الله: (ولا بأس برزق القاضی) لانه علیه السلام بعث عتاب بن اسید رضی الله عنه الی مکة وفرض له وبعث علیا رضی الله عنه الی الیمن وفرض له ولانه محبوس لحق المسلمین فتکون نفقته فی مالهم وهو مال بیت المال وهذا لان الحبس من اسباب النفقة کما فی الوصی والمضارب اذا سافر بمال المضاربة وهذا فیما یکون کفایة فان کان شرطا فهو حرام لانه استئجار علی الطاعة اذ القضاء طاعة بل هو افضلها ثم القاضی اذا کان فقیرا فالافضل بل الواجب الاخذ لانه لا یمکنه اقامة فرض القضاء الا به اذ الاشتغال بالکسب یقعده عن اقامته وان کان غنیا فالافضل الامتناع علی ما قیل رفقا ببیت المال وقیل الاخذ وهو الاصح صیانة للقضاء عن الهوان ونظرا لمن یولی بعده من المحتاجین لانه اذا انقطع زمانا یتعذر اعادته ثم تسمیته رزقا تدل علی انه بقدر الکفایة. (الهدایة ص۱۴۰ ج۳)

وقال ایضا: وینبغی للقاضی ان ینصب قاسما یرزقه من بیت المال یقسم بین الناس بغیر اجر لان القسمة

من جلس عمل القضاء من حيث ان يتم به قطع المنازعة فاشبه رزق القاضي ولان منفعة نصب القاسم تعم العامة فتكون كفايته في مالهم غرما بالغنم (قال فان لم يفعل نصب قاسما يقسم بالاجر) معناه باجر على المتقاسمين لان النفع لهم على الخصوص ويقدر اجر مثله كيلا يتحكم بالزيادة والافضل ان يرزقه من بيت المال لانه ارفق بالناس وابعد عن التهمة (الهداية ص۲۱۰ ج۴)

وقال الامام طاهر بن عبد الرشيد البخاري رحمه الله: وفي المحيط واذا اراد القاضي ان يكتب السجل وياخذ على ذلك اجرا ياخذ منه مقدار ما يجوز اخذه لغيره وكذا لو تولى القسمة بنفسه باجر ولو اخذ الاجرة في مباشرة نكاح الصغار ليس له ذلك لانه واجب عليه وما لا يجب عليه مباشرته جاز اخذ الاجرة عليه (خلاصة الفتاوى ص۰، ج۴)

وقال العلامة علاء الدين الطرابلسي رحمه الله: (فصل) واما اجرة السجل على من تجب قيل على المدعي اذ به احياء حقه فنفعه له وقيل على المدعى عليه اذ هو ياخذ السجل وقيل على من استاجر الكاتب وان لم يامره احد وامره القاضي فعلى من ياخذ السجل (معين الحكام ص۵۰ ج۱) والله سبحانه وتعالى اعلم ۲۹ ربیع الثانی ۱٤۱٤ هجری

## د شیعه، قادیانی وغیره زنادقو سره اجاره او استجاره کول او دغه شان نور معاملات کول روا نهٔ دی

**سوال:-** شیعه نوکر ساتل، یا چا شیعه سره نوکری کول روا دی او که ناروا؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: شیعه ګان زندیقان دی، شیعه لره نوکر ساتل، د دوی نوکری کول، د دوی سره اخستل خرخول وغیره هیڅ یوه معامله هم روا نهٔ ده، د دوی نه ترلاسه شوې مال برابره خبره ده که دا مال په اجرت کښې ترلاسه شوې وی یا په ذریعه د اخستلو او خرڅولو یا د هدیې وغیره په توګه وی حرام دې، دا مال په مسکینانو باندې صدقه کول واجب دې.

قادیانې، آغاخانې، ذکری، پرویزې، انجمن دینداران وغیره چې څومره فرقې هم د خپلو کفری عقیدو ښه په جهر سره اعلان کوی او همدې کفری عقیدو ته اسلام وائی نو د دغه ټولو فرقو همدا حکم دې.

د دې زندیقانو د حکم تفصیل په اولنی جلد کښې په کتاب الایمان والعقائد، او په باب المرتد والبغاة کښې شته دې، او ډیر زیات تفصیل ئې په کتاب الحظر والاباحة کښې دې. والله سبحانه وتعالى اعلم.

غرة ذی الحجه ۱٤۱٤ هجری

## د قلی (یعنی د پیتی اوچتونکی) د ټاکلی شوی اجرت نه زیات اخستل

دا مسئله په کتاب الحظر والاباحة کښې وګورئ.

## د ټیکسی کرایه د میټر نه زیاته اخستل

دا مسئله هم په کتاب الحظر والاباحة کښې وګورئ.

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿وَمَا تَوْفِيْقِيْٓ اِلَّا بِاللّٰهِ ۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْهِ اُنِيْبُ﴾

# اِرشَاد اُولِی الابصَار اِلی شرَائط حقِ القرارِ

**((د مستاجر د پاره حق د قرار او د دې د عوض اخستلو په حقله يوې رسالې باندې تبصره))**

## د مستاجر د پاره د استقرار په حق باندې يو تفصيلي بحث

د مستاجر د پاره د حق استقرار په حقله يو ليک ستاسو په خدمت کښې درليږم، د دې تصويب يا ترديد وکړئ او مونږ له د تشکر موقع راکړئ. والاجر عندالله الکريم.

**سوال:**- دکان را بمستاجر دادن و ضمنا مبلغی پول بعنوان (سرقلفی) گرفتن چه حکم دارد؟

**جواب:**- اصل ضابطه شرعيه دراين صورت مورد اين است که بپايان رسيدن مدت اجارة يا موت احدالمتعاقدين مطلق اجاره خاتمه يا بد، لذا لازم ست آن وقت از مستاجر بالفور خلع يد بعمل آيد کما هو مصرح فی عامة المتون و شروح الفتاوی اما فقهاء متاخرين دربعضی صورت بارعايت شرائط چند بابقاء مورد اجاره (دکان و مفازه وغيره) درقبضه مستاجر نسلا بعد نسل فتوی داده اند وما دا ميکه مستاجر پابند شرائط مورد نظر باشد موجر حق اخراج ويرا يا فسخ اجاره را ندارد حتی موت احد المتعاقدين هم موجب فسخ نخواهد شد، بلکه نسلا بعد نسل جاری و برقرار خواهد ماند.

و من جمله صورتهایٔ که موجب فتوی جواز قرار گرفته است اين ست که دکان و مغازه وغيره يعنی مو[illegible]جاره بعنوان اجاره دائمی دراختيار مستاجر گذاشته واو را مطمئن سازند که مال الاجاره از تصرف وی اخراج نمی گردد تامبلغی که صرف تعمير وغيره مينمايد بهدر نرود،اين قبيل املاک مستاجره را در اصطلاح فقهاء رحمهم الله ارض محتکره و کردار يا جدک گويند،و حق دائمی مستاجر را

بمشد مسکه یا حق قرار تعبیر می نمایند، کما فی ردالمحتار والعقود الدریة۔

و این صورت در راضی او قاف یا بیت المال مسلمین یا دراملاکی که مالک آن را مختص اجاره نموده است متصور ست، و نیز قرار داد دائمی اجاره مرقوم گردیده است که او باتکاء آن مبلغی درمال الاجاره صرف و مشقت و زحمتی متحمل شده است پس دراین صورت هم تاوقتیکه مستاجر شرائط ذیل را رعایت کند از تصرف وی خارج نخواهد شد۔

اول اینکه اجرة مقرره را مرتبا پرداخت نماید.

ثانیا مستاجر ملتزم شود که درصورت تغییر اجرة بر حسب عرف هر چه باشد بپردازد

ثالثا اینکه زمینی یا دکان و منزل مورد اجاره راتا سه سال معطل از استفاده نگذارد. کمافی الخیریة اذا ثبت انهم معطلوها ثلث سنین تنزع من ایدیهم،

چنانچه یکی را از شرائط مذکوره رعایت نکند حق وی ساقط گردد،

علامه ابن عابدین رحمۃ اللہ علیہ در ردالمحتار والعقود الدریة فی تنقیح الفتاوی الحامدیة در مورد این مسئله بحث مفصلی ایراد نموده است ونیزمستقلا رساله ای بنام تحریر العبارة فیمن هو احق بالاجارة مرقوم فرموده است، و قسمتی از تحقیق علامه رحمۃ اللہ علیہ که در رساله مذکوه زیب قرطاس فرموده است، بدین قرار ست :

ذکر فی البحر عن القنية ما نصه استاجر ارضا وقفا غرس فيها وبنى ثم مضت مدة الاجارة فللمستاجر ان يستبقيها باجر المثل اذا لم يكن فی ذلك ضرر ولو ابی الموقوف عليهم الا القلع ليس لهم ذلك، انتهى

وقال فی البحر بهذا يعلم مسالة الارض المحتكرة وهی منقولة ايضا فی اوقاف الخصاف انتهى،

قال الشامی رحمۃ اللہ علیہ قلت وحاصله ان كلام المتون والشروح وان كان شاملا للوقف والملك الخ

وفيه ايضا قد يثبت حق القرار بغير البناء والغرس بان تكون الارض معطلة فيستاجرها من المتكلم عليها ليصلحها للزراعة ويحرثها ويكبسها وهو المسمى بمشد المسكة فلا تنزع من يده ما دام يدفع ما عليها من القسم المتعارف كالعشر ونحوه الخ

وفی ردالمحتار وفی فتاوى العلامة المحقق عبد الرحمن آفندی مفتی دمشق جوابا السؤال عن الخلو المتعارف بما حاصله ان الحكم العام قد يثبت بالعرف الخاص عند بعض العلماء كالنسفی وغيره ومنه الاحكار التی جرت بها العادة فی هذه الديار وذلك بان تمسح الارض وتعرف بكسرها ويفرض على قدر من الاذرع مبلغ معين من الدراهم ويبقى الذی يبنی فيها يؤدی ذلك القدر فی كل سنة من غير اجارة كما ذكره فی انفع الوسائل الخ

علی هذا گرفتن سرقفلی از مستاجر بارعایت شرائط بالانزد متاخرین فقهاء رحمهم الله حرجی ندارد، هذا ما وقع فی فؤادی والله سبحانه الهادی وعلیه فی الامور کلها اعتمادی .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : رالیږلې شوې لیک د حضرت مفتی شفیع صاحب رحمه الله د رسالې «قانون اسلامی بابت پتہ دوامی» چې په جواهر الفقه کښې دې د هغې نه ماخوذ دې، په ذکر کړې شوې رساله کښې د حضرت علامه شامی رحمه الله تحریرونه ځان ته وړاندې ایښودلې شوې دی، کوم چې هغوی په ردالمحتار او په رساله (**تحریر العبارة فیمن هو احق بالاجارة**) مندرجه رسائل ابن عابدین کښې لیکلې دی .

دعلامه شامی رحمه الله د دې تحقیق مطابق د قرار د حق د ثبوت د پاره دا لاندې ورکړې شوې شرطونه دی:

۱- زمکه وقف وی یا سلطانی زمکه وی، د چا په مملوکه زمکه کښې د قرار حق نهٔ ثابتیږی.

۲- په وقف زمکه او سلطانی زمکه کښې هم مطلقا د قرار حق نشته دې، بلکه دا شرط دې په کښې چې دا زمکه هم د زراعت د پاره متعینه وی، او ددې نه کامله انتفاع دې په دې باندې موقوف وی چې مزارعینو ته حق د قرار ورکړې شی، **و کذا الحوانیت والابنیة یشترط فیها ان تکون معدة للاستغلال وان یکون الانتفاع بها المعتبر موقوفا علی بقائها بایدی المستاجرین۔**

۳ - مستاجر په زمکه کښې په خپلې خرچې سره عمارت جوړ کړو، یا ئې په کښې باغ لګولې وی، یا ئې د زمکې په آبادولو باندې ښهٔ خواری کړې وی او ښهٔ مصارف ئې زغملی وی .

۴ - د اجارې د عقد په وخت کښې د قرار د حق تصریح کړې شوې وی یا ددې عرف وی .

۵ - د قرار حق به د وقف په زمکه کښې درې کاله پس ثابتیږی او په سلطانی زمکه کښې به دیرش کال پس ثابتیږی .

۶ - مستاجر متعینه اجرت ادا کوی .

۷ -چې په عرف کښې د اجرت په شرح کښې اضافه وشی نو مستاجر د هغې مطابق اجرت ورکول قبول کړی، البته د اجرت په تعیین کښې به د زمکې هغه حالت معتبر وی کوم چې د مستاجر د خوارئ نه وړاندې وو، د مستاجر د زمکې د هوارولو نه پس او د اوبو وغیره د انتظاماتو د کولو نه پس چې د زمکې کوم حالت وی نو دهغې اجرت به نهٔ وی .

۸ - مستاجر زمکه د دریو کالو پورې معطله پرې نږدی .

عقد العلامة ابن عابدین رحمه الله فی رسالته تحریر العبارة فصلا لبیان ذلک فاطال فی تحقیقه فقال:

قد ظهر لك مما قررناه وما نقلناه عن المتون وغیرها ان المستاجر بعد فراغ مدة اجارته یلزمه تسلیم

الارض ليس له استبقاء بنائه او غراسه بلا رضى المتكلم على الارض الا اذا كان له فيها زرع فانه يترك فيها باجر المثل الى ان يدرك لان له نهاية معلومة بخلاف البناء والغراس واصول الرطبة التى تبقى فى الارض لا الى مدة معلومة فليس له استبقاء ذلك بل يقلع ذلك ويسلم الارض فارغة ماله يكن فى القلع ضرر على الارض فان الموجر يتملك ذلك جبرا على المستاجر بقيمته مقلوعا الا ان يتراضيا على بقائه (وعلمت) ان هذا شامل للارض الملك والوقف الا اذا كانت ارض الوقف معدة لذلك كالقرى والمزارع التى اعدت للزراعة والاستبقاء فى ايدى فلا حيها الساكنين فيها والخاجين عنها باجرة المثل من الدارهم او بقسم من الخراج كنصفه وربعه ونحو ذلك مما هو قائم مقام اجرة المثل ومثل ذلك الاراضى السلطانية فان ذلك كله لا يتم عمارته والانتفاع به المعتبر الا ببقائه بايدى الزارعين فانه لولا ذلك ما سكن اهل القرى المذكورة فيها فانهم اذا علموا انهم اذا فلحوا الارض وكروا انهارها وغرسوا فيها اخذت منهم واخرجوا منها ما فعلوا ذلك ولا سكنوها فكانت الضرورة داعية الى ابقائها بايديهم اذا كان لهم فيها كردار او مشد مسكة ما داموا يدفعون اجرة مثلها ولم يعطلوها ثلاث سنين كما مر لان تعطيلها اقل من ذلك قد يكون لاستراحة الارض حتى تغل الغلة المقصودة فان عطلوها اكثر سقط حقهم ودفعت لغيرهم (وكذا) لو امتنعوا من دفع اجر المثل او ما قام مقامه من القسم المتعارف والا فهم احق مَن غيرهم رعاية للجانبين ودفعا للضرر عن الفريقين فان بذلك يحصل النفع لهم ولجهة الوقف او الميرى ومثل ذلك الحوانيت اى الدكاكين الموقوفة المعدة للاستغلال اذا كان فيها للمستاجر سكنى موضوع باذن المتولى وقام المستاجر بعمارتها وثبت له بها حق القرار وصار له فيها الكردار المعبر عنه فى زماننا بالجدك كما مر لا تنزع من يده ولا توجره لغيره ما دام يدفع اجر المثل والمراد باجر المثل فيها هو ما تستاجر به اذا كانت خالية عن البناء (وبعد اسطر) وينبغى ان يقال مثل ذلك فى مشد المسكة فان صاحب المشد وان لم يكن له فى الارض عين قائمة لكن له فيها تعب وخدمة حيث حرثها وكربها وكرى انهارها حتى صارت قابلة للزراعة فتعتبر اجرة مثلها على تقدير كونها معطلة خالية عن ذلك الذى فعله فيها فيؤخذ منه بقدره وكذا من قام مقامه من ولد او مفروغ له ومثل ذلك ينبغى ان يقال فى الجدك فتعتبر اجرة الحانوت خالية عن جدكه القائم فيها وعما انفقه عليها حتى صارت قابلة لتمام الانتفاع (رسائل ابن عابدين ص١٥١ ج٢)

د وقف زمكې او د سلطانى زمكې د نفعې د پاره په دې کښې حق د قرار روا ساتلې شوې دې، په دې کښې د مستاجر هم فائده ده، ليکن د ملکيت په زمکه کښې حق د قرار د مالک دپاره

ضرری دي ددې وجې نه روا نهٔ دې.

وقال علامة ابن عابدين رحمه الله والفرق ان الوقف معد للايجار فايجاره من ذى اليد باجر مثله اولى من ايجاره من اجنبى لما فيه من النظر للوقف والنظر للمستاجر الذى وضع السكنى بالاذن وثبت له حق القرار بخلاف الملك فان لصاحبه ان لايوجر ليسكنه بنفسه اويعيره اويرهنه اويبيعه اويعطله (رسائل ابن عابدين ص ۱۳۳ ج ۲)

وقال فى الحاشية العلائية (قوله ولو استاجر ارض وقف) قيد بالوقف لما فى الخيرية عن الحاوى الزاهدى عن الاسرار من قوله بخلاف ما اذا استاجر ارضا ملكا ليس للمستاجر ان يستبقيها كذلك ان ابى المالك الا القلع بل يقال على ذلك الا اذا كانت قيمة الغراس اكثر من قيمة الارض فيضمن المستاجر قيمة الارض للمالك فيكون الغراس والارض للغارس وفى العكس يضمن المالك قيمة الغراس فتكون الارض والاشجار له وكذا الحكم فى العارية اهـ (ردالمحتار ص ۳۱ ج ۵)

حضرت مفتی محمد شفیع رحمه الله د لاندینی عبارتونو په بنیاد د ملکیت په زمکه کښې د حق د قرار د ثبوت خیال ظاهر کړې دې او په آخر د رساله کښې ئې بیا په دې کښې تردد هم ظاهر کړې دې او د تحقیق د پاره ئې نورو علماؤ ته د رجوع مشوره هم ورکړې ده.

نقل ابن عابدين رحمه الله تحت (مطلب فى المرصد والقيمة و مشد المسكة) عن فتاوى العلامة المحقق عبدالرحمن آفندى مفتى دمشق، و هو (الخلو المتعارف فى الحوانيت) ان يجعل الواقف او المتولى اوالمالك على الحانوت قدرا معينا يؤخذ من الساكن و يعطيه به تمسكا شرعيا فلا يملك صاحب الحانوت بعد ذلك اخراج الساكن الذى ثبت له الخلو و لا اجارتها لغيره ما لم يدفع له المبلغ المرقوم فيفتى بجواز ذلك قياس على بيع الوفاء الذى تعارفه المتاخرون احتيالا عن الربا اهـ (ردالمحتار ص ۱۸ ج ۵)

وذكر فى رسالته تحرير العبارة عن القنية والحاوى الزاهدى انه يثبت حق القرار فى ثلاثين سنة فى الارض السلطانية والملك وفى الوقف فى ثلاث سنين اهـ (رسائل ابن عابدين ص ۱۵۵ ج ۲)

په ذکر کړې شوو عبارتونو کښې د اولنی عبارت نه استدلال د دې وجې نه صحیح نهٔ دې، چې په دې کښې د دائمی قرار حق ذکر کړې شوې نهٔ دې، بلکه د بیعې د وفا په شان د اخستونکو پیسو د واپسئ پورې حق د قرار ورته ورکړې شوې دې، د دې مثال په شان د پیشگی اخستونکی کرایه یا د زرِ ضمانت په شان دې.

علامه شامی رحمه الله د ذکر کړې شوی عبارت نه لږ شان وړاندې د خلو تشریح په دې الفاظو کښې فرمائی: وقد تكون اصل عمارة الوقف من صاحب الكدك ياخذها منه الواقف يعمر بها و يجعلها للمستاجر و يوجره باجرة قليلة وهو المسمى بالخلو.

په دې صورت کښې وقف عمارت د مستاجر له اړخه دې، پس ظاهره خبره ده چې تر څو پورې هغهٔ دخپل عمارت قیمت وانخلی نو هغه ته به حق د قرار وی.

د دویم عبارت مطلب دا معلومیږی چې ابتداءً په مملوکه زمکه کښې د مالک حق قلع دې، لیکن د ذکر کړې شوې مودې نه وروستو د دهٔ حق ساقط شی، او د مستاجر د پاره حق د قرار په دې معنی سره ثابت شی چې که قیمت دغراس د قیمت د زمکې نه کم وی، نو مستاجر د قیمت د غراس مطالبه کولې شی۔

ددې تفصیل مطابق دشامیې ص۲۱ ج ۵کښې د ذکر کړې شوی عبارت نه هم تضاد معلومیږی، په شامیه کښې اولاً د مالک د پاره حق د قلع او په آخر کښې بیا په مالک باندې بیا د غراس د قیمت ضمان ذکر دې، په دې صورت کښې تطبیق همدا کیدې شی چې د متعینه مودې نه وړاندې مالک ته حق دقلع وی اوددې مودې نه پس بیا مستاجرته دغراس دقیمت د مطالبې حق حاص وی.

په دویم عبارت کښې د ملکیت په زمکه کښې دائمی حق د قرار نهٔ دې مراد، او په دې باندې دا واضحې قرینې دی چې:

۱- علامه شامی رحمه الله د عبارت دنقل کولو باوجود د دې خلاف قطعی فیصله لیکلې ده، که چیرې د دې عبارت نه دحق د قرار په ثبوت باندې داستدلال کولو څه ګنجائش وې نو علامه شامی رحمه الله به د دې څه جواب لیکلې وې او یا به ئې مسئلې ته اختلافی مسئله وئیلې وې.

۲- دا عبارت د قنیه او د حاوی زاهدی نه نقل کړې شوې دې، حال دا چې د شامیې ص ۲۱ ج ۵ پورته ذکرکړې شوې عبارت کښې هم دحاوی زاهدی نه د زمکې په ملک کښې د قرار نفی کړې ده

۳ - د بناء او د غراس وغیره معامله د خلوالحوانیت په شان ده، د کومې حکم چې په اولنی عبارت کښې دا بیان کړې شوې دې، چې مستاجر ته صرف د خپلو مصارفو د اخستلو پورې حق د قرار شته دې، د همیشه د قرار حق نشته دې.

۴ - د ملکیت په زمکه کښې د قرار د حق په ثبوت سره د مالک ټول مالکانه حقونه ختم شی، او دا د اسلام د اصولو نه د خلاف کیدلو سره سره یو عظیم ظلم هم دې، البته که مالک مستاجر له بې دخله کول غواړی، نو چې څو پورې ئې هغه ته ټول مصارف او د هغهٔ د خوارئ پوره معاوضه نهٔ وی ورکړې نو هغهٔ نهٔ شی بې دخله کولې. فقط والله سبحانه تعالیٰ اعلم. ۸ محرم ۱۴۰۰ هجری

رساله (القول الصدوق لبیع الحقوق) په تتمه کښې ده.

# كتاب الغصب

## ظلماً ټيكس اخستل

**سوال**- زمونږ په علاقه كښې د انګريزانو او د هندوانو د دوارو حكومت تير شوې دې،اوس په كښې پاكستانې حكومت دې،د هندوانو د زمانې نه په علاقه پونيال كښې يو راجه اوسيږى. د حاكم په توګه فيصلې وغيره او نظم او نسق وغيره د هغهٔ په لاس كښې وو،او زميندار خلق به په وار وار تلل او د هغه خدمت به ئې كولو ،ډير په بې دردئ سره به ئې لګه د څناورو د زميندارانو نه خدمت اخستلو. آخر دا چې خلق ترې نه تنګ شو اودا ئې ورته اوونيل چې زمونږ نه خدمت اخستل بند كړه، مونږ به تا ته څه پيسې د كال دركوو ،هغهٔ دا خبره قبوله كړه.د هغه وخت نه په هر زميندار باندې څه غله مقرر كړې شوې ده، په چاباندې پنځه منه او په چا باندې دولس منه وغيره وغيره،تر اوسه پورې دا سلسله جارى ده، زمونږ فيصلې، جګړې،اخستل وركول هر څه د هغهٔ په لاس كښې دى، ترحكومته پورې د دې مسئلو د رسولو حاجت نهٔ راځى.

اوس پوښتنه داده چې د خلقو دا خيال دې چې كوم څيز راجه د غلې په صورت كښې زمونږ نه اخلى هغه ناجائز دې، ځكه چې دا دومره وركول زمونږ د طاقت نه زيات دى، لهذا كومه غله چې هغه اخلى هغه حرامه ده،او څوک چې د راجه نه دا غله په بيعه اخلى نو دا هم حرامه ده.آيا د هغوى دا وئيل صحيح دى او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** د راجه د دغه ځائ د اوسيدونكو نه غله اخستل روا نهٔ دى.او نهٔ هغهٔ د دې د اخستلو نه پس دهغې مالک كيږى، دا غله به مغصوب مال شمارلې كيږى.او دا واجب الرد ده، د دې بيعه او شراء دواړه ناروا دى. واللہ سبحانه وتعالىٰ اعلم.

۱۷ ذى الحجه ۱۳۸۷ هجرى

## د مغصوب د هلاكيدو په صورت كښې د ضمان د وجوب تفصيل

**سوال**- هر كله چې څوک د چا نه څه څيز غصب كړى او هغه مغصوب څيز د غاصب نه ورک شى، نو د ضمان د ادا كولو په وخت كښې به د كوم قيمت اعتبار وى؟بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** كه چيرې مغصوبه څيز مثلى وى نو د هغې مثل ادا كول واجب دى، كه چيرې مثل ئې د بازار نه منقطع شوې وى نو د انقطاع د ورځې قيمت به لګولې شى كه چيرې مغصوب قيمتى وى نو د غصب د ورځې قيمت به واجب وى.

قال في التنوير وشرحه: او يجب رد مثله ان هلك وهو مثلي وان انقطع المثل بان لا يوجد في السوق الذي يباع

فیه و ان کان یوجد فی البیوت ابن کمال قیمته یوم الخصومة ای وقت القضاء وعند ابی یوسف رحمه الله علیه یوم الغصب وعند محمد رحمه الله علیه یوم الانقطاع ورجحا قهستانی وتجب القیمة فی القیمی یوم غصبه اجماعاً.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله علیه: (قوله ورجحا) ای قول ای یوسف وقول محمد رحمهما الله تعالی وکان الاولی ای یقول ایضا ای کما رجح قول الامام رحمه الله علیه ضمنا لمشی المتون علیه وصریحا قال القهستانی وهو الاصح کما فی الخزانة وهو الصحیح کما فی التحفة وعند ابی یوسف یوم الغصب وهو اعدل الاقوال کما قال المصنف وهو المختار علی ما قال صاحب النهایة وعند محمد یوم الانقطاع وعلیه الفتوی کما فی ذخیرة الفتاوی وبه افتی کثیر من المشایخ (ردالمحتار ص۱۳۸ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۵ ذی قعده ۱۳۸۸ هجری

## بې د اذن (اجازت) نه په زمکه تعمیر کول

**سوال**:- د ښځې په زمکه کښې که خاوند کور جوړ کړی نو دا به د چا وی؟ دا به د ښځې وی او که د خاوند؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ددې مختلف صورتونه دی:

۱ - که د ښځې د پاره ئې د دې په اجازت سره کور جوړ کړو نو دا کور د ښځې شو، او چې کوم مصارف پرې راغلل هغهٔ په ښځه باندې قرض شول.

۲ - که چیرې د ښځې د پاره ئې بې د اجازت د ښځې نه جوړ کړو نو دا تبرع شوه.

۳ - خاوند د ځان دپاره د ښځې په اجازت سره جوړ کړو، نو زمکه به د ښځې وی او کور به د خاوند وی.

۴ - د ښځې د اجازت نه بغیر ئې د ځان د پاره په کښې کور جوړ کړو، نو کور به د خاوند وی، لیکن ښځه د هغې د غورځولو او د خپلې زمکې د خالی کولو مطالبه کولې شی، که چیرې د کور په راغورځولو کښې د زمکې نقصان کیږی نو ښځه ورله د کور قیمت ورکولې شی او دا کور ځان ته کولې شی، قیمت به د داسې کور لګولې کیږی چې د هغې د راغورځولو فیصله کړې شوې وی، کوم چې به د ملبې د قیمت نه کیدې شی چې څه زیات نهٔ وی.

قال فی التنویر و شرحه: عمر دار زوجته بماله باذنها فالعمارة لها والنفقة دین علیها لصحة امرها ولو عمر لنفسه بلا اذنها فالعمارة له ویکون غاصبا للعرصة فیؤمر بالتفریغ بطلبها ذلك ولو لها بلا اذنها فالعمارة لها وهو متطوع فی البناء فلا رجوع له.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله : (قوله عمر دار زوجته الخ) على هذا التفصيل عمارة كرمها وسائر املاكها جامع الفصولين وفيه عن العدة كل من بنى في دار غيره بأمره فالبناء لآمره ولو لنفسه بلا امره فهو له وله رفعه الا ان يضر بالبناء فيمنع ولو بنى لرب الارض بلا امره ينبغي ان يكون متبرعا كما مر اهـ (قوله بلا اذنها) فلو باذنها تكون عارية ط (ردالمحتار ص ،،، ج ،) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۸ ربیع الاول ۱۳۸۹ هجری

## د غیر په زمکه باندې په غلطۍ سره تصرف کول

**سوال** :- زمونږ په ګاونډ کښې د مهاجر زمکه ده، په شروع کښې د پټواری په ذریعه ننبه ولګولې شوه او حد قائم کړې شو، اوس هر کله چې په سرکاری توګه باندې پیمائش وکړې شو، نو د هغه مهاجر زمکه کمه شوه، د هغۀ زمکه زمونږ د زمکې نه پوره کړې شوه، او د تقریبا یو جریب نه زیاته ده، ددې زمکې فصل مونږ د خپلې زمکې فصل ګڼلو او خوړلو مو، څو کاله په کښې تیر شوې دی دا هم راته یاد نۀ دی چې څه څه مو په کښې کرلې دی، او څومره مقدار پیداوار په کښې شوې دې؟ آیا د هیرې او د نا خبرې له کبله چې مونږ تیر شوې چې کوم آمدن خوړلې دې، آیا هغه مهاجر ته ورکول لازم دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د تخم قیمت او د کروندې وغیره چې څومره مزدوری کیږی هغۀ به ترې نه لرې کړې شی او د باقی پیسو اندازه لګول او په مالک باندې رد کول واجب دی۔ والله سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۱٤ شعبان ۱۳۸۹ هجری

## په زرعی اصلاحاتو کښې ترلاسه شوې زمکه

**سوال**:- کومه زمکه چې د زرعی اصلاحاتو د پاره خلقو کښې تقسیم کړې شوه، دا زمکه اکثر د هغه زمیندارانو ده کومو زمیندارانو چې دا زمکه د نورو خلقو نه غصب کړې وه۔

یا دا زمکه انګریزانو مسلمانانو سره دغدارئ په بدل کښې په توګه د جائیداد ورکړې وه۔

اوس دا زمکه اکثرو خلقو ته د لږې معاوضې د اخستلو نه پس ورکړې شوه، او څینو ته بې د څه معاوضې نه ورکړې شوه۔ کومو خلقو ته چې په توګه د معاوضې سره د سود ورکړې شوې ده، نو آیا هغوی له د دې پیداوار خوړل روا دی؟

کومو خلقو ته چې بې د معاوضې ورکړې شوه نو هغوی له د دې پیداوار خوړل روا دی او که نه؟

د کومې زمکې په حقله چې دا معلومه وی چې دا د نورو نه غصب کړې شوې ده، او هغه چا ته بې د معاوضې نه ورکړې شی، نو آیا چا ته چې ورکړې شوه هغۀ له د دې پیداوار خوړل روا دی او که نه؟ حال دا چې مالک ئې معلوم نۀ وی۔ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د كومې زمكې په حقله چې دا يقيني معلومه وى چې دا مغصوبه ده نو د هغې آمدن حرام دې، برابره خبره ده كه هغهٔ بې د معاوضې نه ملاوشوې وى يا په قيمت سره، سره د سوده ملاو شوې وى او يا بې دسوده ملاو شوې وى-

د كومې زمكې چې د مغصوبې كيدلو يقين نهٔ وى د هغې آمدن بهر حال حلال دې، اګر كه هغهٔ د انګريز نه ترلاسه شوې جائيداد وى، بې پيسو وركړې شوې وى يا په معاوضې سره ، سره د سوده يا بې سوده ترلاسه شوې وى، البته په سود باندې په اخستلو كښې به د سود د وركولو ګناه او سپيرهٔ والې پرې وى. **والله سبحانه وتعالى اعلم.**

٤ رجب ١٣٩٧ هجرى

# کتاب الشفعه

## یوه میاشت پس به د شفعې دعوی نهٔ شی قبلولې

**سوال**: ما زمکه واخسته، او په هغې کښې مې کرکرونده کوله، شفیع زما تصرف شپږو میاشتو پورې کتلو لیکن شفعه ئې طلب نکړه، اوس هغهٔ دعوی کړې ده، نو آیا شرعاً تراوسه پورې هغهٔ ته د طلب حق شته او که نه د طلب حق ئې باطل شوې دې؟

که بالفرض شفیع په طلب المواثبه او په طلب التقریر باندې شهادت وړاندې کړی، نو تاخیر د طلب د خصومت عندالقاضی کوم چې د یوې میاشتې نه زیات دې، د هغې د وجې نه به د امام محمد صاحب رحمه الله په نیزد چې کوم حق د شفعې دې هغهٔ ساقطیږی او که نه؟

**نوټ**: مقدمه د مجسټریټ په عدالت کښې چلیږی، مجسټریټ د شرعی فیصلې په حقله وئیلې دی، د دې وجې نه په وړومبی فرصت کښې جواب راکړئ او ستاسو به ډیره مهربانی وی۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې د طلب د مواثبه یا د طلب د تقریر د فقدان د وجې نه د شفیع حق باطل شوې دې، که بالفرض شفیع طلب المواثبه او طلب التقریر په معتبر شهادت سره ثابت کړی نو بیا هم طلب د خصومت عندالقاضی کښې که چیرې د یوې میاشتې نه زیات تاخیر بې د څه عذر نه کړې شوې وی نو د شفعې حق ئې پاتې نهٔ شو، دا قول د امام محمد رحمه الله دې، علامه ابن عابدین رحمه الله په هغهٔ سختو الفاظو کښې هم دې ته ترجیح ورکړې ده او هم دې ته ئې مفتی به وئیلې دی۔

(قوله وقیل یفتی بقول محمد) او (قوله یعنی دفعا للضرر) او (قوله قلنا الخ) په دې دریو وارو ځایونو کښې علامه ابن عابدین رحمه الله د امام محمد رحمه الله قول ته مختار او مفتی به وئیلې دی:

د دې نه علاوه د علامه رافعی رحمه الله په التحریر المختار کښې په دې باندې څه نهٔ لیکل او ددې نه سکوت اختیارول په دې باندې ښه واضحه دلیل دې چې همدا قول بې د شک او شبهې نه مفتی به دې، البته که د څه معقول عذر له کبله په طلب الخصومت عند القاضی کښې تاخیر شوې وی نو بیا به حق د شفعې نهٔ ساقطیږی، خو په دې شرط چې طلب المواثبه او طلب التقریر په شهادت سره ثابت کړی۔

(قوله بلا عذر) فلو بعذر کمرض و سفر او عدم قاض یری الشفعة بالجوار فی بلده لا تسقط اتفاقا (ردالمحتار ص۱۴۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۸ محرم ۱۳۷۶ هجری

## د شفیع د سکوت نه د حق د باطل کیدلو تفصیل

**سوال**:- د یوې زمکې د بیعې د کیدلو نه پس شفیع څو ورځو پورې چپ وو، اوس د شفعې د حق طلب کولو هغهٔ ته شرعاً اختیار شته دې او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د شفعې د حق د پاره د بیعې د علم په وخت په طلب د مواثبه کښې او په طلب د تقریر کښې تُندی (تعجیل) کول ضروری ده، د دې مسئلې په صورت کښې د دې شرط د نشتوالی د وجې نه حق د شفعې به باطل شی، البته که د مشتری یا د ثمن د علم نهٔ کیدلو د وجې نه شفیع سکوت اختیار کړی او د علم کیدلو د وجې نه سمدستی طلب د مواثبه او طلب د تقریر بشرائطها المعتبرة وکړی نو بیا ئې حق نهٔ ساقطیږی۔

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله معزیا الی الخانیة: اخبر بها فسکت قالوا لو تبطل ما لم یعلم المشتری والثمن (الی قوله) اقول و به افتی المصنف التمرتاشی فی فتاواه فلیحفظ (رد المحتار ص ۱۸۱ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۸ محرم ۱۳۷۶ هجری

## د بیعې په وخت کښې د شفیع په مرگ کښې اختلاف

**سوال**:- زید د خپل والد د وفات نه پس چې څنگه بالغ شو نو په بکر باندې ئې د شفعې دعوی وکړه، او د شفعې نور ټول لوازمات د وړومبی نه پوره کړې شوې وو، بکر ورته اووئیل چې د بیعې په وخت کښې ستا پلار ژوندې وو، او هغهٔ په هغه وخت کښې څه دعوی نهٔ وه کړې، لهذا اوس ستا دعوی کول بې ځایه دی، زید په وخت د بیعې باندې د خپل پلار په وفات باندې بینه (گواهان) قائم کړل او بکر د هغهٔ په ژوند باندې بینهٔ قائمه کړه، اوس به د چا گواهانو ته ترجیح ورکولې شی۔ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د لاندینو جزئیاتو نه په ظاهره په دې مسئله باندې استشهاد کولې شی: ۱- قال الامام قاضیخان رحمه الله: اذا شهد رجلان ان زوجة فلانة قتل او مات و شهد اخران انه حی کانت شهادة الموت والقتل اولی (خانیة بهامش العالمگیریة ص ۴۸۴ ج ۲)

۲ - وقال فی الفتاوی المهدیة: ان الاصل تقدیم بینة الموت علی بینة الحیاة لانها تثبت امرا عارضا کما هو الاصل فی البینات فی الفصل الثالث عشر من العمادیة اذا شهد رجلان ان زوج فلانة قتل او مات و شهد اخران انه حی کان شهادة الموت والقتل اولی لانه الموت اثبت العارض اه نعم فی تنقیح الحامدیة بینة زوج فلانة قتل او مات اولی من بینة انه حی الا اذا اخبر بحیاته بتاریخ لاحق اه (الی ان قال) فبینة الموت اولی مطلقا

كما هو ظاهر اطلاقهم له والتوجيه الجاري مطلق عن قيد التاريخ وعدمه وتأخره وتقدمه الخ (فتاوى مهدية ص۳۷)

۳ - وقال العلامة ابن نجيم رحمه الله: يوم الموت لا يدخل تحت القضاء ويوم القتل يدخل كذا في البزازية والولوالجية والفصول وعليها فروع

٤ - وقال العلامة الحموي رحمه الله تحت قوله وعليها فروع: لو برهن ان من شهدوا على اقراره في وقت كذا كان ميتا في ذلك الوقت لا يقبل لان زمان الموت لا يدخل تحت القضاء حتى اذا برهن ان فلانا مات يوم كذا وادعت امراة نكاحا بعد ذلك اليوم وبرهنت يقبل بخلاف زمان القتل والنكاح حيث يدخلان تحت القضاء ومنها لو ادعى ان اباه مات يوم كذا وقضى ثم ادعت امراة النكاح بمدة بيوم تقبل فهذا والذي قبله مما فرعوه على الاول ومما فرعوه على الثاني لو برهن الوارث على انه قتل يوم كذا فبرهنت المراة ان هذا المقتول نكحها بعد ذلك اليوم لا تقبل (شرح الاشباه والنظائر، الفن الثاني ص۳۳۷ ج۲)

د اولنۍ او د دويمۍ جزئيې نه د شفيع د بينې اولويت معلوميږي، ليکن ددې نه استدلال ځکه صحيح نۀ دې، چې په دې مسئله کښې دشفيع د پلار په مرګ او ژوند کښې تنازع نۀ ده، د دۀ په مرګ باندې جانبين متفق دی، تنازع د دې راپيښوشوو امرينو په تقديم او تاخير کښې ده چې يو موت دې او بله شراء ده .

د دريمې او د څلورمې جزئيې نه په ظاهره د مشتری بينې ته ترجيح معلوميږی ليکن په ژور نظر که ورته وکتلې شی نو د شفيع د بينې ترجيح ثابتيږی، ځکه چې په ذکر کړې شوو جزئياتو کښې د نکاح د مدعيې د بينې د قبوليت علت دا دې چې دا مدعيه حقه ده او بل جانب ددې دحق منکر دې، او اصولا د مدعی د حق بينه راجحه وی، په دې صورت متنازع فيها کښې شفيع حق دې او مشتری منکر دې، لهذا د شفيع بينه به راجحه وی.

ددې نه علاوه که چيرې بالفرض هم د مشتری بينې ته ترجيح وی نو بيا هم دا د مشتری د پاره مفيد نۀ دی، ځکه چې په وخت د شراء کښې د زيد د والد محض حيات ثابتيدلو سره به حق د شفعې نۀ ساقطيږی، تر څو پورې چې دا ثابت نۀ شی چې هغۀ ته د شراء، د مشتری او د ثمن علم هم شوې وو، او سره د دې هغه بيا خاموشه وو .

او که چيرې په بنياد د قانون اذا تعارضا تساقطا د دواړو د بينې تهاتر تسليم کړې شی او حال قاضی جوړ کړې شی نو بيا هم شفيع ته د دې حق رسيږی .

غرض د خبرې دا چې د دې لاندينو وجوهو له کبله د شفيع حق قائم دې :

۱ - شفیع مدعی دی، او مشتری منکر دی، فترجح بینة المدعی.
۲ - مشتری د شفیع د والد علم بالشراء، والمشتری والثمن ثابت نهٔ کړو.
۳ - قضاء بالحال. والله سبحانه وتعالى اعلم. ۳ ذی قعده ۱۳۸٤ هجری

## که په اقالې سره دوباره حق د شفعې ثابت شی

**سوال:**- آیا په اقالې سره د شفیع په حق د شفعې باندې څه اثر غورځیږی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د اقالې نه د شفیع لپاره له سره د شفعې حق ثابتیږی.

قال فی الهندیة: وبالرد بحکم الاقالة یتجدد للشفیع حق الشفعة. (عالمگیریة ص۱۰۳ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ٤ ربیع الآخر ۱۳۹٦ هجری

## په احیاء موات کښې حق د شفعې نشته دې

**سوال:**- کومه موات زمکه چې د آبادې زمکې سره نزدې وی، د هغې په احیاء سره حق د شفعې ثابتیږی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: حق د شفعې صرف د زمکې د بیعې په صورت کښې وی، په احیاء موات کښې د شفعې حق نشته دې.

قال فی التنویر: هی تملیك البقعة جبرا علی المشتری بما قام علیه.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله جبرا علی المشتری) واحترز بقوله علی المشتری عما ملکه بلا عوض کما بالهبة والارث والصدقة او بعوض غیر معین کالمهر والاجارة والخلع والصلح عن دم عمد و نحل فیه ما وهب بعوض فانه اشتراء انتهاء. (ردالمحتار ص۱۵۲ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم
۵ صفر ۱۳۹۸ هجری

## په فیصلې کښې د تاخیر د وجې نه د شفعې حق نهٔ باطلیږی

**سوال:**- که چیرې شفیع د شفعې دعوی وکړه، په فیصله کولو کښې ورروستوالې کیدلو، او څو کاله په کښې تیر شو، نو آیا په دې تاخیر د فیصلې سره حق د شفعې ساقطیږی؟ که چیرې ساقطیږی نو څومره موده کښې ساقطیږی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دعوی اچولو نه پس د شفعې د حق فیصله د قاضی په اختیار کښې ده، که چیرې قاضی تاخیر یې وکړونو څنګه چې معلومه ده چې په دې کښې د شفیع له اړخه

څه غفلت نۀ دې شوې، نو ددې وجې نه به د هغې حق نۀ باطليږي. والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۲٤ ربيع الثاني ۱۳۹۸ هجری

## په حق د شفعې کې دترتيب تفصيل

**سوال**:- يو سړې صرف شريک فی المبيع دې،او بل سړی شريک فی المبيع هم دې او شريک فی الحقوق هم دې، نو آيا په حق د شفعه کښې دواړه برابر دی او که نه دې دويم سړی ته به ترجيح وی کوم چې د دوو وجوهو نه حقدار دې؟

دويم صورت دا دې چې يو سړې صرف شريک فی المبيع دې او دويم سړې شريک فی الحقوق هم دې،او جار ملاصق هم دې، نو دشفعې حق کښې به چا ته ترجيح وی،يعنی د مرتبو د ترتيب لحاظ به کولې شی او که نه د کثرتِ مراتب لحاظ به کولې شی؟ د علامه شامی رحمه الله د عبارتونو نه خو هم ترتيب ته ترجيح معلوميږی ليکن دلته بعضې علماء د کثرتِ مراتب د ترجيح قائله دی، فريقين ستاسو فتوی ته قولِ فيصل وئيلو باندې متفق دی. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په ړومبی صورت کښې به دواړه برابر وی او په دويم صورت کښې به شريک فی المبيع ته ترجيح وی،لان الاعتبار لقوة الدليل لا لكثرته، په همدې بناء شرکاء فی المبيع کښې د حصې د قلت او د کثرت او په جوار کښې د مجاورت د مقدار اعتبار نشته دې، بلکه ټول شريکان او ټول ملاصق برابر دی.

قال فی التنوير: بقدر رؤوس الشفعاء لا الملك (ردالمحتار ص۱۵۲ ج۵)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله ثم لجار ملاصق) ولو متعددا والملاصق من جانب واحد ولو بشبر كالملاصق من ثلاثة جوانب فهما سواء اتقانی (ردالمحتار ص۱۵۰ ج۵) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۳ شعبان ۱۳۹۸ هجری

## چې د اوبو دوه لارې وی نو په هرې يوې لارې کښې شريک ته حق د شفعې شته دې

**سوال**:- که چيرې د يوې زمکې د اوبو کولو دپاره دوه بيل بيل لښتی (ويالې) وی، نو د دواړو ويالو شريکانو ته به د شفعې حق وی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دواړه حق دار دی. لان لفظ الشرب عام سواء كان من نهر واحد او نهرين او اكثر والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۳ شعبان ۱۳۹۸ هجری

## په حق د شفعې کښې به نوې لارې ته اعتبار وی

**سوال:**- د یوې زمکې د اوبو کولو د پاره دوه لارې دی، یوه نوې لاره ده او یوه زړه لاره ده، لیکن اوس د نوې لارې نه دغه پټې اوبۀ کیږی، نو آیا په حق د شفعې کښې به د نوې لارې اعتبار وی او که د زړې لارې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د پرینښودلې شوې اوترک شوې لارې اعتبار نشته دې، نوې لاره کومه چې مستعمله ده د هغې اعتبار به وی۔ والله سبحانه وتعالیٰ اعلم ۳ شعبان ۱۳۹۸ هجری

## لاندې ویالې والا ته د پورته ویالې په زمکه کښې حق د شفعې شته دې او د دې په عکس به نۀ وی

**سوال:**- د غر د لاندې نه اوبۀ راوځی، او دا په یو تالاب کښې جمع کیږی، بیا دا اوبۀ په څلورو ویالو کښې تقسیم شی، د هر یوې ویاله نه ډیر کسان په وار وار خپلې خپلې زمکې اوبۀ کوی، بیا د هر یوې ویاله نه دوه واړه واړه لښتی راوځی، اوس یو سړې چې د هغۀ زمکه د دې لوئې یو اله په آخر کښې ده، او څو بیلو بیلو ویالو نه دا زمکه اوبۀ کیږی، د خپلې زمکې مختلفې حصې خرڅوی، اوس پوښتنه داده چې په دې صورت کښې د مینځ چې کومه ویاله ده آیا په هغې کښې شریک ټول کسان د شفعې حق دار دی یا صرف هغه کسان د شفعې حق دار دی کوم چې په وړو وړو ویالو کښې هم د بائع سره شریک دی؟ اودبائع دویاله د پاسه تمامو ویالو والا محرومه دی۔ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د لاندې ویاله په زمکه کښې د پورته ویاله خلق شفعه نۀ شی کولې، البته د لاندې ویاله خلق د پورته ویاله په زمکه کښې دعوی کولې شی.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: (قوله وطریق لا ینفذ) فکل اهلها شفعاء ولو مقابلا والمراد بعدم النفاذ ان یکون بحیث یمنع اهله من ان یستطرقه غیرهم کما فی الدر المنتقی (الی ان قال) فان کانت سکة غیر نافذة ینشعب منها اخری غیر نافذة مستطیلة لا شفعة لاهل الاولی فی دار من هذه بخلاف عکسه ولو کان نهر صغیر یاخذ من نهر اصغر منه فهو علی قیاس الطریق فلا شفعة لاهل النهر الصغیر فی ارض متصلة بالاصغر کما فی الهدایة وشروحها (ردالمحتار ص ... ج ...) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۳ شعبان ۱۳۹۸ هجری

## په بلاشرب زمکه کښې اهل شرب ته حق د شفعې نشته دې

**سوال:**- یو زمکه خرڅه شوه، د کومې چې نۀ شرب شته، نه سیل، او نۀ لاره، په دې کښې حق دشفعې چا ته دې؟ صرف جارِ ملاصق ته که نه صرف اهلِ شرب ته او که نه دواړو ته؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې ځمکه کښې صرف جار ته حق د شفعې کولو شته د، او اهل شرب ته نشته دې.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله كالشرب والطريق الخ) الشرب بكسر الشين النصيب من الماء و عطف القهستاني الطريق بثم و قال فلو بيع عقار بلا شرب وطريق وقت البيع فلا شفعة فيه من جهة حقوقه (ردالمحتار ص ج ٥) والله سبحانه وتعالى اعلم. ١١ شعبان ١٣٩٨ هجری

## بې د شرب د بيعې چې کومه ځمکه وی په هغې کښې اهلِ شرب ته حق د شفعې شته دې

**سوال**:- يوه ځمکه خرڅه کړې شوې وه، چې لاره او اوبۀ دواړه ئې شته دې ليکن بيعه بې د شربه او بې دلارې نه شوې ده، نو په دې صورت کښې اهلِ شرب او اهل طريق ته حق دشفعې شته دې او که نه؟ ددې مسئلې په حقله د شامې او د هنديې په عبارتونو کښې په ظاهره تعارض معلوميږی.

قال فی الشامية: (قوله كالشرب والطريق الخ) الشرب بكسر الشين النصيب من الماء و عطف القهستاني الطريق بثم وقال فلو بيع عقار بلا شرب وطريق وقت البيع فلا شفعة فيه من جهة حقوقه (ردالمحتار ص ج ٥)

وقال فی الهندية: و كذلك لو باع ارضا بلا شرب فلاهل الشرب الشفعة ولو بيعت هذه الدار و هذه الارض مرة اخرى فليس لهم فيها الشفعة هكذا فی الظهيرية. (عالمگيرية ص ١٧١ ج ٥)

په دواړو عبارتونو باندې غوروکړئ او دترجيح يا دتطبيق څه صورت متعين کړئ. بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې شريک فی الشرب ته حق د شفعې شته دې، د شامې عبارت د دې صورت په حقله دې چې د ارضِ مبيعه د پاره په وخت د بيعې شرب نۀ وی او دعالمگيرې په جزئيه کښې د داسې ځمکې حکم ذکر کړې شوې دې چې د دغه ځمکې د پاره په وخت د بيعه کښې شرب وی ليکن بيعه بې د شرب نه کړې شوې وی، لهذا په دې کښې څه تعارض نشته دې. والله سبحانه وتعالى اعلم. ١١ شعبان ١٣٩٨ هجری

## چې مسيل بدون الشرب وی نودهغې د شفعې حکم

**سوال**:- چا داسې ځمکه خرڅه کړه، چې د هغې د پاره مسيل وو، ليکن شرب او طريق ورله نۀ وو، په عقد کښې د مسيل څه ذکر ونۀ شو ليکن مشتری هم په دغه مسيل سره ځمکه اوبه کوی، بائع ته په دې څه اعتراض نشته دې، په دې صورت کښې حق د شفعې چا ته دې؟ شريک فی الحقوق ته او که نه جارِ ملاصق ته؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په احکامو د شفعه کښې د مسیل نه مراد هم شرب دې،د کومې زمکې د پاره چې شرب نوی په هغې کښې د اهل شرب د پاره حق د شفعې نشته دې،لهذا حق د شفعې جار ملاصق ته دې ۔ واللہ سبحانه وتعالیٰ اعلم ۱۱ شعبان ۱۳۹۸ هجری

## چې د دوو زمکو په مینځ کښې د اوبو ویاله حائله وی نو حق د شفعې به په کښې وی او که نه؟

**سوال**:- د شفیع د زمکې او د مبیعې زمکې په مینځ کښې یوه وړوکې شان ویاله تیره شوې ده، او ددې ویالې نه دشفیع زمکه او مبیعه زمکه نه اوبه کیږی،اوس که چیرې د ویالې دا زمکه د شفیع وی نو د شفعې د حق څه حکم دې؟او که د شفیع نهٔ وی او دا هم معلومه نهٔ وی چې دا د چا ده نو څه حکم ئې دې ؟ بینوا توجروا ۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د شفعې د حق بنا جوار دې، که چیرې دا ویاله د بائع یا د شفیع ملک وی نو جوار په کښې ثابت دې،که چیرې د چا د ملک یقین نهٔ وی نو جوار په کښې ثابت نهٔ دې، لهذا په اولنی صورت کښې به د شفعې حق وی،او په دویم صورت کښې به حق د شفعې ثابت نه وی ـ واللہ سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۱۰ شوال ۱۳۹۸ هجری

## د دوو زمکو ترمینځه که د اوبو نالئ د یو دریم سړی وی نو د شفعې حق به د چا وی؟

**سوال**:- د مبیعې زمکې او د شفیع د زمکې تر مینځه د یو دریم سړی یوه وړوکې شان ویاله تیره شوې ده د هغهٔ اوبهٔ په دې کښې بهیږی،اوس پوښتنه داده چې حق د شفعې به د ویالې خاوند ته وی او که نه د ویالې سره چې کومه زمکه پیوسته وی هغهٔ ته به د شفعې حق وی؟ بینوا توجروا ۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : محاذی د زمکی خو نهٔ شریک فی الشرب دې او نهٔ جارِ ملاصق دې، ددې وجې نه دهٔ ته حق د شفعې نشته ،د ویالې نه چې د چا زمکې ته اوبهٔ ځی،که چیرې هغه د ویالې د زمکې مالک وی نو دې جارِملاصق دې،لهذا دهٔ ته به حق د شفعې وی ـ واللہ سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۲۰ شوال ۱۳۹۸ هجری

## په طلب د مواثبه کښې د شفیع او د مشتری اختلاف

**سوال**:- دِ شفیع او د مشتری په طلب د مواثبه کښې اختلاف راغئ،شفیع وائی چې ما بعدالعلم طلب د مواثبې کړې دې، مشتری انکار کوی،اوس پوښتنه داده چې د چا قول لره به اعتبار وی؟ بینواتوجروا ۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرې شفیع په خپلې دعوی باندې بینه وړاندې کړه نو د هغهٔ قول به معتبر وی، او که نه نو د مشتری قول به سره د یمین نه معتبر وی.

قال فی الهندیة: و ان قال المشتری للقاضی حلفه بالله لقد طلب هذه الشفعة طلبا صحیحا ساعة علم بالشراء من غیر تاخیر حلفه القاضی علی ذلك فان اقام المشتری بینة ان الشفیع علم بالبیع منذ زمان و لم یطلب الشفعة و اقام الشفیع البینة انه طلب الشفعة حین علم بالبیع البینة بینة الشفیع والقاضی یقضی بالشفعة فی قول ابی حنیفة رحمه الله وقال ابو یوسف البینة بینة المشتری کذا فی الذخیرة.

و فیها ایضا: اذا اتفق البائع والمشتری ان الشفیع علم بالشراء منذ ایام ثم اختلفا بعد ذلك فی الطلب فقال الشفیع طلبت منذ علمت و قال المشتری ما طلبت فالقول قول المشتری و علی الشفیع البینة (عالمگیریة ص۱۷۳ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱٤ جمادی الاولی ۱۳۹۹ هجری

## د شفعې نه د بچ کیدلو دپاره زیاتې پیسې لیکل روا نهٔ دی

**سوال**:- د شفعې نه د بچ کیدلو د پاره که په خط کښې زیاتې پیسې ولیکلې شی، او نیت ئې په کښې دا وی چې که زمکه واپس کول غواړئ نو زیاتی پیسې کومې چې لیکلې شوی دی هغه به واپس نهٔ اخلم. آیا دا روا دی او که ناروا؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په خط کښې د واقعې نه خلاف زیاتې پیسې لیکل روا نهٔ دی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۶ رمضان ۱۳۹۹ هجری

# كتاب القسمة

## د تقسيم په وخت کښې د شريکانو د حاضريدلو د شرط تفصيل

**سوال**:- دمشترک څيز دتقسيم په وخت کښې د ټولو شريکانو يا د هغوی د وکيلانو موجوديدل ضروری دی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چيرې مشترک څيز په ذوات الامثال کښې وی، نو د ټولو شريکانو موجوديدل ضروری نۀ دی، برابره خبره ده که دا څيز په ارث سره حاصل شوې وی او که په شراء سره حاصل شوې وی، البته که د غائب حصه هغۀ ته د رسيدلو نه وړاندې ضائع شی نو دا نقصان به په حاضر او غائب دواړو باندې وی،او کومه حصه چې حاضر ته ترلاسه شوې وی هغه به په دواړو کښې مشترکه وی۔

او که چيرې مشترک څيز د ذوات القيم نه وی،نو بيا د ټولو شريکانو موجوديدل ضروری دی،که چيرې څوک شريک په کښې غائب وی نو بيا په کښې تقسيم صحيح نۀ وی،د غائب په اذن باندې به موقوف وی،البته صرف د ترکې تقسيم به په اذن د قاضی جائز وی، قاضی دې د غائب له اړخه نائب بالقبض مقرر کړی.

قال فى التنوير وشرحه:(وتشتمل)مطلقا(على)معنى(الافراز)وهو اخذ عين حقه(و)على معنى(المبادلة)و هو اخذ عوض حقه(و)الافراز(هو الغالب فى المثلى) و ما فى حكمه و هو العددى المتقارب فان معنى الافراز غالب فيه ايضا ابن كمال عن الكافى(والمبادلة)غالبة (فى غيره) اى غير المثلى و هو القيمى اذا تقرر هذا الاصل(فياخذ الشريك حصته بغيبة صاحبه فى الاول)اى المثلى لعدم التفاوت(لا الثانى)اى القيمى لتفاوته.

وقال العلامة ابن عابدين رحمة الله عليه:(قوله والافراز هو الغالب فى المثلى)لان ما ياخذه احدهما نصفه ملكه حقيقة و نصفه الاخر بدل النصف الذى بيد الاخر فباعتبار الاول افراز و باعتبار الثانى مبادلة الا ان المثلى اذا اخذ بعضه بدل بعض كان الماخوذ عين الماخوذ عنه حكما لوجود المماثلة بخلاف القيمى.

(قوله وما فى حكمه)اى حكم المثلى اقول نقل فى جامع الفصولين عن شرح الطحاوى كل كيلى و وزنى غير مسوغ وعددى متقارب كفلوس و بيض وجوز و نحوها مثليات والحيوانات والزرعيات والعددى المتفاوت كرمان وسفرجل والوزنى الذى فى تبعيضه ضرر وهو المسوغ قيميات اه ثم نقل عن الجامع العددى المتقارب كله مثلى كيلا وعدا ووزنا وعددا زفر رحمة الله عليه قيمى وما تتفاوت احاده فى القيمة فعددى متفاوت ليس بمثلى الخ

فتامل (ردالمحتار ص۱۸۸ ج۵)

قال فی شرح التنویر: فی الخانیة: فی الخانیة مکیل او موزون بین حاضر وغائب او بالغ وصغیر فاخذ الحاضر او البالغ نصیبه نفذت القسمة ان سلم حظ الاخرین والالا.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ (قوله فی الخانیة الخ) اراد به بیان فائدة هی انه اذا قسم ذوالید حصته بغیبة صاحبه کما قال فی المتن لا تنفذ القسمة ما لم تسلم حصة الاخر (قوله ان سلم حظ الاخرین) ای الغائب والصغیر مفهومه ان سلامة ما اخذه لا تشترط کما سیظهر (قوله والالا) ای وان لم یسلم بان هلك قبل وصله الیهما لا تنفذ القسمة بل تنتقض ویکون الهالك علی الکل ویشارکه الاخران فیما اخذ لما فی هذه القسمة من معنی المبادلة (ردالمحتار ص۱۸۸ ج۵)

قال فی شرح التنویر: وصحت برضاء الشرکاء الا اذا کان فیهم صغیرا مجنون لا نائب عنه او غائب لا وکیل عنه لعدم لزومهما حینئذ الا باجازة القاضی او الغائب او الصبی اذا بلغ او ولیه هذا لو ورثة ولو شرکاء بطلت منیة المفتی وغیرها (ردالمحتار ص۱۸۰ ج۵)

وفیه ایضا بعد صفحتین: (ولو برهنا علی الموت وعدد الورثة وهو) ای العقار قلت قال شیخنا وکذا المنقول بالاولی (معهما وفیهم صغیر او غائب قسم بینهم ونصب قابض لهما) نظر الغائب والصغیر ولا بد من البینة علی اصل المیراث عنده ایضا خلافا لهما کما مر (فان برهن) وارث (واحد) لا یقسم اذ لا بد من حضور اثنین ولو احدهما صغیرا او موصی له (او کانوا) ای الشرکاء (مشترین) ای شرکاء بغیر الارث (وغاب احدهم) لان فی الشرکاء لا یصلح الحاضر خصما عن الغائب بخلاف الارث.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ: (قوله قسم بینهم) افاد ان القاضی فعل ذلك قال فی المحیط فلو قسم بغیر قضاء لم تجز الا ان یحضر او یبلغ فیجیز طوری وهذا ما قدمه الشارح (قوله بخلاف الارث) قال فی الدرر فان ملك الوارث ملك الخلافة حتی یرد بالعیب علی بائع المورث ویرد علیه ویصیر مغرورا بشراء المورث حتی لو وطی امة اشتراها مورثه فولدت فاستحقت رجع الوارث علی البائع بثمنها وقیمة الولد للغرور من جهته فانتصب احدهم خصما عن المیت فیما فی یده والاخر عن نفسه فصارت القسمة قضاء بحضرة المتقاسمین واما الملك الثابت بالشراء فملك جدید بسبب باشره فی نصیبه ولهذا لا یرد بالعیب علی بائع بائعه فلا ینتصب الحاضر خصما عن الغائب فتکون البینة فی حق الغائب قائمة بلا خصم فلا تقبل اھ (ردالمحتار ص۱۸۲ ج۵) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۳ ذی الحجه ۱۳۸۷ هجری

## په داسې حالت کښې تقسیم چې په وارثانو کښې څوک صغیر وی یا د میت په یو وارث باندې دین وی

**سوال**:- د یو سړی د وفات پنځه کاله تیر شوې دی،د هغه په وارثانو کښې یوه ښځه، پنځه هلکان او شپږ نجونه پاتې شوې دی د هغه د وفات نه پس ئې سمدستی د جائیداد تقسیم وکړې شو، په غیرمنقوله جائیداد کښې ۷۱ جریبه زمکه یو کور او یو پلاټ وو،او په منقوله جائیداد کښې څاروی،کالی،او د کور سامان وو،د کور د سامان،څارو او د کالو قیمت ولګولې شو،او ورسره په مشر هلک باندی چې کوم دیارلس سوه روپئ قرض وو هغه هم جمع کړې شو،ټولې پیسې ترې نه څوارلس زره روپئ جوړې شوې،کومې چې د وارثانو د حصې مطابق تقیسم کړې شوې،او د هر یو وارث حصه وټاکلې شوه،بیا د درې مشرانو جینکو نه کومې چې عاقلې بالغې او وادۀ شوې وې تپوس وکړې شو چې تاسو په جائیداد کښې خپله حصه اخستل غواړئ او که نه د نورو وارثانو په حق کښې د خپلې حصې نه لاس اخلئ؟ درې واړو جینکو د منقوله جائیداد نه یو څو ټاکلی شوی څیزونه واخستل،او باقی ئې خپلو پنځو ورونو ته اوبښل، یوې نجلئ د زرو روپو د قیمت میښه واخسته او باقی جائیداد ئې خپلو ورونو ته اوبښلو،دویمې جینئ یو د ګنډلو ماشین د څلورو سوو روپو او یوه غوا د پنځو سوو روپو واخسته او باقی حصه د جائیداد ئې خپلو ورونو ته اوبښلو، دریمې خور څلورمه حصه زمکه واخسته او باقی حصه د جائیداد ئې خپلوورونو ته اوبښله.

او د پنځو کالو دتیریدلو نه پس ځینی علماء وائی چې دا تخارج باطل دې،جائیداد به د سر نه بیا تقسیمولې شی،ځکه چې دتخارج د صحت دپاره یو شرط دا دې چې ټول وارثان به عاقل بالغ وی، حال دا چې په دغه وخت کښې په دوی کښې یو هلک د دوه نیمو کالو وو.

دویمه وجه داده چې په یو وارث باندې دین وو،او په ترکه کښې چې دین وی نو بیا په دې صورت کښې تخارج باطل وی،حال دا چې دا دین په وارث باندې وو او دا د منقوله جائیداد سره یو ځائ کړې شوې وو او په وراثانو باندې تقسیم کړې شوې وو په دې صورت کښې چې د کوم وارث په ذمه دا قرض وو هم د هغه په حصه کښې دا شمارلې شوې وو ـ بینوا توجروا ـ

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دلته څلور خبرې د تحقیق قابلې دې:

۱- چې د مړی په یو وارث باندې قرض وی نو آیا هغه د تخارج نه مانع دې او که نه؟

۲- چې مصالح خپله حصه یواځې بعضې وارثانو ته ورکړی نورو ته ئې ورنۀ کړی نو آیا تخارج به صحیح کیږی او که نه؟

۳- تخارج په غبن الفاحش سره صحیح دې او که نه؟

۴- چې په وارثانو کښې څوک صغير وی نو آيا تخارج صحيح دې او که نه؟
د دې څلور خبرو تحقيق په ترتيب سره وړاندې کولې شی:

۱ - که په منقوله ترکه کښې د مديون د ميراث د حصې نه دين زيات وی نو دا به د تخارج نه مانع وی او که داسې نه وی نو مانع به نهٔ وی، ځکه چې د دين د منع کيدلو علت تمليك الدين من غير من عليه الدين دې کوم چې په منقوله ترکه کښې د ميراث د حصې نه په تجاوز کوونکی دين کښې موجوده ده، چې مصالح د مديون نه علاوه نور وارثان هم د دين مالکان جوړوی، ليکن د غير منقوله ترکې نه په غير متجاوز دين کښې دا علت مفقود دې، ځکه چې د نقل کيدونکې ترکې په تقسيم کښې ددې د قيمت لګولو او بيا د تقسيمولو عام رواج دې. او ظاهره خبره ده چې د ټولو وارثانو په رضامندئ سره به دا دين د مديون په حصه کښې حسابولې شی، فهو تمليك الدين ممن عليه الدين وهو جائز.

په دې مسئله کښې همدا صورت دې ددې وجې نه دا دين د صحت د تخارج نه مانع نهٔ دې.

۲ - که بدلِ صلح د ترکې نه ورکول نهٔ وی تاکلې شوی بلکه مصالح ئې له خپله اړخه ادا کوی نو دا تخارج مطلقاً صحيح دې، او که د ترکې نه د صلحې بدل ورکول وټاکلې شو نو څنګه چې معلومه ده چې پدې کښې د ټولو وارثانو حق ددې نو ددې وجې نه د دې د صحت د پاره د ټولو رضا شرط ده.

قال فی التنوير و شرحه: ولو اخرجوا واحدا من الورثة فحصته تقسم بين الباقی علی السواء ان کان ما اعطوه من مالهم غير الميراث وان کان المعطی مما ورثوه فعلی قدر ميراثهم يقسم بينهم.

وقال ابن عابدين رحمه الله: (قوله علی السواء) افاد ان احد الورثة اذا صالح البعض دون الباقی يصح و تکون حصته له فقط کذا لو صالح الموصی له کما فی الانقروی سائحانی (ردالمحتار ص۵۰۰ ج۴)

قلت: وفی مسالتنا وقع التخارج بتراضی الورثة فاندفع هذا الاشکال ايضا لکن بقی رضا الصغير و سياتی حکمه فی الامر الرابع.

۳- بدل صلح که هر څومره قليل وی تخارج په کښې روا دې، البته دا خبره ده که چا سره دا دوکه وشوه چې په وخت د صلح کښې هغهٔ ديو څيز د صحيح قيمت نه خبر نهٔ وو وروستو په کښې غبنِ فاحش ښکاره شو، نو هغهٔ ته دا اختيار شته چې په قاضی باندې صلح فسخ کړی.

قال فی التنوير و شرحه: ولو ظهر غبن فاحش لا يدخل تحت التقويم فی القسمة فان کانت بقضاء بطلت اتفاقا لان تصرف القاضی مقيد بالعدل ولم يوجد ولو وقعت بالتراضی تبطل ايضا فی الاصح لان شرط جوازها المعادلة ولم توجد فوجب نقضها خلافا لتصحيح الخلاصة قلت فلو قال کالکنز تفسخ لکان اولی وتسمع دعواه

ذلك اى ما ذكر من الغبن الفاحش ان لم يقر بالاستيفاء وان اقر به لا.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (ولو ظهر غبن فاحش في القسمة) اى في التقويم للقسمة بان قوم بالف فظهر انه يساوى خمسمائة قيد بالفاحش لانه لو يسيرا يدخل تحت تقويم المقومين لا تسمع دعواه ولا تقبل بينته.

وقال ايضا تحت (قوله قلت الخ) فمقتضاه انها تحتاج الى الفسخ وان معنى تبطل وبطلت له ابطالها وبه يشعر قول الكنز تفسخ حيث لم يقل تنفسخ. (ردالمحتار ص۱۸۰ ج۵)

د علائيې د ذکر کړې شوی عبارت نه ځینی خلقو ته دا مغالطه شوې ده چې دا په کومه مسئله کښې ذکر شروع دې په دې کښې د غبن فاحش د وجې نه تخارج باطل دې، حال دا چې د علائيې او د شاميې د عبارت مطلب بالکل واضحه دې، چې د تخارج نه پس د غبن فاحش د ظاهریدلو نه پس خیار فسخ دې، او د دۀ دعوی به اوریدلې شی غبن هم هغه نقصان ته وائی کوم چې د عقد نه پس ظاهر شی، د عقد په وخت کښې چې کوم نقصان ظاهر او معلوم شی هغۀ که هر څومره زيات وی ليکن هغې ته غبن نۀ وائی، دا امر د بيان محتاج نه دې چې په تخارج کښې د د بدلِ صلحه څه کميت مشروط نۀ دې، سره د دې هم د ځينې خلقو د پاره څه امور وړاندې کولې شی:

۱- د مذهب په کتابونو کښې دا تصريح ده چې هر کله بدلِ صلحه مکيل يا موزون وی يا سره يا سپين زر وی نو د تخارج د صحت د پاره دا شرط دې چې بدل صلحه دې په څيز کښې د مصالح د حصې نه زيات وی، وړاندې په کښې داسې څه شرط نشته دې چې د پوره ترکې سره به ددې حصې څه نسبت وی، او که چيرې بدل د صلح د ذکر کړې شوو څيزونو نه نوی نو په دې کښې بيا څه کميت هم شرط نۀ دې.

۲- تخارج په حکم د بيعه کښې دې، او بيعه کښې د عاقدينو په تراضی سره په بدلينو کښې تفاوتِ کثير روا دې.

۳ - قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله اخرجت الخ) اوصى رجل بثلث ماله ومات الموصى فصالح الوارث الموصى له من الثلث بالسدس جاز الصلح وذكر الامام المعروف بخواهر زاده ان حق الموصى له وحق الوارث قبل القسمة غير متأكد يحتمل السقوط بالاسقاط اه (ردالمحتار ص۵۳۶ ج۲). (ردالمحتار ص۵۳۶ ج۲)

په دې کښې اسقاط بالصلح مراد دې، مطلق اسقاط په کښې صحيح نۀ دې كما حررت في كتاب الوصية والفرائض.

د اسقاط بالصلح مثال په ذکر شوی عبارت کښې صلح من الثلث بالسدس ذکر کړې شوې دې چې په کښې د تضعيف او تنصيف نسبت دې، او په خپله علامه ابن عابدين رحمه الله د غبن فاحش په

مثال کښې همدا نسبت بیان کړې دې-

کما مر من نصه: بان قوم بالف فظهر انه یساوی خمسمائة.

د دې نه دا خبره ثابته شوه چې د فحش تفاوت باوجود تخارج روا دې.

۴ - که چیرې صغیر په خپله عاقد وی نو د بیع او د شراء وغیره عقود دائره بین النفع والضرر په شان په عقد صلح کښې هم د صغیر عاقل کیدل شرط دی نه چې بلوغ ورله شرط دې.

د صغیر غیرِ عاقل عقد له سره منعقد کیږی نه، او د عاقل غیرِ ماذون عقد منعقد کیږی، خو په هغه اذن باندې چې پس د بلوغ نه وی یا د ولی په اذن باندې به موقوف وی-

ولی فی المال په ترتیب سره داسې دې:

پلار، د هغهٔ وصی، نیکهٔ، د نیکهٔ وصی، قاضی.

قال فی التنویر وشرحه: وشرطه العقل لا البلوغ والحریة فصح من صبی ماذون ان عری صلحه عن ضرر بین.

(ردالمحتار ص۴۷۰ ج۴)

وقال فی الهندیة: واما شرائط فانواع منها ان یکون المصالح عاقلا فلا یصح صلح المجنون والصبی الذی لا یعقل هکذا فی البدائع. (عالمگیریة ص۲۲۸ ج۴)

وقال فی التنویر وشرحه: وتصرف الصبی والمعتوه الذی یعقل البیع والشراء ان کان نافعا محضا کالاسلام والاتهاب صح بلا اذن وان کان ضارا کالطلاق والعتاق والصدقة والقرض لا وان اذن به ولیهما وما تردد من العقود بین نفع وضرر کالبیع والشراء توقف علی الاذن حتی لو بلغ فاجازه نفذ فان اذن لهما الولی فهما فی شراء و بیع کعبد ماذون فی کل احکامه. (ردالمحتار ص۱۳۱ ج۵)

او که چیرې صبی په خپله عقد کوونکې نهٔ وی بلکه د هغهٔ له اړخه څوک بل عقد وکړی نو بیا په کښې د صبی عاقل کیدل شرط نهٔ دی، په هر صورت کښې به صلحه منعقده شی، البته د دې عقد د نفاذ د پاره دا شرط دې، چې د صبی له اړخه دې د هغهٔ ولی فی المال عقد وکړی، که چیرې غیر ولی عقد وکړو نو هغهٔ خو به منعقد شی خو دغه عقد به د صبی په اذن بعد البلوغ، یا په اذن د ولی یا په اذن د قاضی پورې به موقوف وی.

البته په تقسم د غیر د ترکې کښې دوه قوله دی: یو دا چې دا هم د عامو فضولی عقودو په شان موقوف دې. دویم قول دا دې چې دا تقسیم باطل دې له سره نه منعقد کیږی، رحمتی رحمه الله وجه د فرق دا بیان فرمائیلې ده، چې د عقدِ فضولی په منعقد کیدو کښې د متعاقدینو وجود شرط دې او هغه وجود دلته مفقود دې. وسنذکر نصه عن الرافعی رحمه الله.

قال ابن عابدین رحمۃ اللہ علیہ: قال فی المحیط فلو قسم بغیر قضاء لم تجز الا ان یحضر (الغائب) او یبلغ (الصغیر) فیجیز طوری وهذا ما قدمه الشارح (ردالمحتار ص۱۸۲ ج۶)

ونص الشارح المتقدم: وصحت برضاء الشرکاء الا اذا کان فیهم صغیر او مجنون لا نائب عنه او غائب لا وکیل عنه لعدم لزومها حینئذ الا باجازة القاضی او الغائب او الصبی اذا بلغ او ولیه ولو شرکاء بطلت منیة المفتی وغیرها.

وقال العلامة ابن عابدین رحمۃ اللہ علیہ: (قوله الا اذا کان) استثناء منقطع کما یفیده قوله بعد لعدم لزومها او استثناء من محذوف ای و لزمت اه ط او اراد بالصحة اللزوم (قوله الا باجازة القاضی) الظاهر رجوعه للمستثنیات الثلاث (قوله او الغائب او الصبی اذا بلغ) ولو مات الغائب او الصبی فاجازت ورثته نفذت عندهما خلافا لمحمد منیة المفتی والاول استحسان والثانی قیاس و کما تثبت الاجازة صریحا بالقول تثبت دلالة بالفعل کالبیع کما فی التاترخانیة، وفی المنح عن الجواهر: طفل وبالغ اقتسما شیئا ثم بلغ الطفل وتصرف فی نصیبه و باع البعض یکون اجازة (قوله هذا) ای لزومها باجازة القاضی ونحوه لو کانوا شرکاء فی المیراث فلو شرکاء فی غیره تبطل ومقتضاه انها لا تنفذ بالاجازة فلیتامل.

وعبارة المنیة هکذا: اقتسم الورثة لا بامر القاضی وفیهم صغیر او غائب لا تنفذ الا باجازة الغائب او ولی الصغیر او یجیز اذا بلغ اقتسم الشرکاء فیما بینهم و فیهم صغیر او غائب لا تصح القسمة فان امرهم القاضی بذلک صح اه

اقول: سیذکر المصنف تبعا لسائر المتون ان القاضی لا یقسم لو کانوا مشترین وغاب احدهم فکیف تصح قسمة الشرکاء بامر القاضی. اللهم الا ان یراد به الشرکاء فی المیراث لکن یبقی قول الشارح ولو شرکاء بطلت محتاجا الی نقل ونقل الزاهدی فی قنیته: قسمت بین الشرکاء وفیهم شریک غائب فلما وقف علیها قال لا ارضی لغبن فیها ثم اذن لحراثه فی زراعة نصیبه لا یکون رضا بعد ما رد فلیحرر ولا تنس ما قدمه من ان للشریک اخذ حصته من المثلی بغیبة صاحبه وما نقله عن الخانیة فانه مخصص لما هنا. (ردالمحتار ص۱۸۰ ج۶)

وقال العلامة الرافعی رحمۃ اللہ علیہ: (قوله الظاهر الرجوعه المستثنیات الثلاث) یدل له ما نقله فی المنح عن السراج بقوله ولهم ان یقسموا لانفسهم اذا تراضوا الا ان یکون فیهم صغیر لا ولی له او غائب لا وکیل عنه فحینئذ لا تجوز بالاصطلاح بل لا بد من القاضی لانه لا ولایة لهم علی الصغیر ولا علی الغائب فان امر القاضی

بها جاز على الصغير والغائب لان له ولاية على الصغير ونظرا على الغائب وتصرفه يصح على الميت.

(قوله لكن يشكل قول الشارح ولو شركاء بطلت محتاجا الى نقل) علل المطلان الرحمتي في هذه المسألة بأن كل واحد اجنبي في حق صاحبه فلم يوجد قابل عن الصغير ونحوه وشرط عقد الفضولي وجود القابل عن المالك ولا يتوقف شطر العقد على غائب بخلاف مسألة الورثة لان بعضهم يصلح خصما عن الباقين فيصح ان يكون بعضهم مقاسما وبعضهم مقاسما اهـ ومعلوم ان الشارح ثقة في النقل يعتمد عليه فيه حتى يوجد ما يخالفه (التحرير المختار ص۲۹۲ ج۲)

د ذکر کړې شوی تحقیق نه دا خبره ثابته شوه چې د فقهاء کرامو رحمهم الله په عبارتونو کښې کوم ځائې هم د صغیر وجود د ترکې د تقسیم د صحت نه مانع ښودلې شوې دې نو د هغې مطلب دا دې چې تقسیم لازم او نافذ نۀ دې بلکه په اذن د ولی یا په اذن د والی او یا په اذن بعد البلوغ باندې موقوف دې،د دې وجې نه د دې عبارتونو نه د بعضې اصاغرو په عدم انعقاد باندې استدلال په غلطۍ پوهې باندې مبنی دې۔

**په کومه مسئله کښې چې بحث شروع دې:-**

د پورتنۍ خبرو د تحقیق نه په کومه مسئله کښې چې بحث شروع دې ښه واضحه شوه،په دې کښې د صغیر له اړخه غیرولی عقد د تخارج کړې دې د دې وجې نه د **تخارج على الارض** عقد موقوف دې، که یو وارث د قاضی نه اذن حاصل کړی نو دا عقد به نافذ شی، اوکه نه نو د صغیر د اذن بعد البلوغ پورې به موقوف وی،که چیرې صغیر قبل البلوغ وفات شو نو د دۀ د وارثانو په اذن سره به نافذ شی.

د **تخارج على العروض** عقد خو د ابتداء نه نافذ او لازم دې،**لان للام والاخ بيع المنقول من مال الصغير تجارة**

دتحقیق وړ خبره :

دا خبره تر اوسه پورې واضحه نه شوه چې آیا په موقوف تقسیم کښې مخکښې له اذن نه دنورو شریکانو لپاره د فسخې حق شته اوکه نه ؟ ، راجح خو عدم حق د فسخ ښکاری لیکن تر اوسه پورې شرح صدر نده شوې ، **ولعل الله يحدث بعد ذلك امراً.**

۱-د صغیر د زمکی د بیعې ولی ته اختیار نشته دې **الا فی صور مخصوصة** لیکن ولی ته د عقار د تقسیم اختیارشته ځکه چې تقسیم **من كل الوجوه** بیعه نۀ ده بلکه **من وجه** بیعه ده.او**من وجه** افراز دې

۲- پلار او دهغۀ وصی،نیکۀ او د هغۀ وصی او قاضی نه علاوه بل چا ته چې څنګه د صغیر د

پاره د تقسیم اختیار نشته‌ دې همدغه شان دصغیر په مال کښې د تصرف اختیار ورته هم نشته دې، د صغیر په مال کښې د تجارت او په زمکه کښې ئې ورته د کر کروندې اجازت نشته دې، البته د صغیر مور ته،ورور ته،او ترهٔ ته ئې د دهٔ د مال د حفاظت،بیعه د منقول په غرض د حفاظت او د صغیر د پاره دِ طعام او د لباس وغیره د اخستلو اجازت شته دې خو په دې شرط چې صغیر د دوی په پالنې کښې وی،البته که په خپله په ترکه کښې طعام یا لباس وی نو د دې نه د صغیر حصه په صغیر باندې په خرچ کولو کښې بیا د صغیر په پالنه کښې کیدل شرط نهٔ دې.

قال فی التنویر:او اشتری الوارث الکبیر طعاما او کسوة للصغیر او کفن الوارث المیت او قضی دینه من مال نفسه فانه یرجع ولا یکون متطوعا.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله او اشتری الوارث الکبیر الخ) کذا فی الخانیة ونصها او اشتری الوارث الکبیر طعاما او کسوة للصغیر من مال نفسه لا یکون متطوعا و کان له الرجوع فی مال المیت والترکة اه.اقول:ولم یشترط الاشهاد مع ان فی انفاق الوصی خلافا کما مر وینبغی جریانه هنا بالاولی علی انه قد وقع الاختلاف فی انفاقه علی الصغیر نصیبه من الترکة نفقه مثله فی انه یصدق ام لا قولان حکاهما الزاهدی فی الحاوی،ثم قال والمختار للفتوی ما فی وصایا المحیط بروایة ابن سماعة عن محمد رحمه الله تعالی مات عن ابنین صغیر و کبیر و الف درهم فانفق علی الصغیر خمسمائة نفقة مثله فهو متطوع اذا لم یکن وصیا و لو کان المشترك طعاما او ثوبا واطعمه الکبیر الصغیر او البسه فاستحسن ان لا یکون علی الکبیر ضمان اه

وفی جامع الفتاوی ولو انفق الاخ الکبیر علی اخیه الصغیر من نصیبه من الترکة ان کان طعاما لم یضمن و ان کان دراهم فذلك ان کان فی حجره و فی غیر ذلك یضمن ان لم یکن وصیا اه و مثله فی التاترخانیة و قدم المصنف فی فصل البیع من کتاب الکراهیة والاستحسان ان یجوز شراء ما لا بد للصغیر منه وبیعه لاخ وعم و ام و ملتقط هو فی حجرهم و اجارته لامه فقط اه و مثله فی الهدایة وعلیه فیمکن حمل ما مر عن محمد رحمه الله تعالی علی ما اذا لم یکن فی حجره تامل و علی کل فما فی الخانیة مشکل ان لك یکن الکبیر وصیا فلیتامل (ردالمحتار ص۵۰۰ج۵)

غرض دا چې په دې پوښتلې شوې مسئله کښې د صغیر په مور او ورونو باندې لازم دی چې د دهٔ د حصې زمکه د حکومت په قبضه کښې ورکړی.

۳ – پورته چې کوم تحقیق لیکلې شوې دې هغهٔ د نفسِ مسئلې سره متعلق دې،په دې پوښتلې شوې مسئله او صورت کښې کهٔ خویندو د ورونو د خفګان یا د رواج د زوره داسې قسمه ایثار او

قربانی کړې وه نو د ورونو په ذمه د دې خویندو شرعی حق باقی پاتې دې. والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.
١٥ ربیع الآخر ١٤٠٠ هجری

## صغیر سره د ترکې د تقسیم حکم

**سوال:**- یو سړی وفات شو، په وارثانو کښې یې یو نابالغه هلک هم دې، وارثانو جائیداد تقسیم کړو نو آیا نابالغه ته پس د بلوغ نه د فسخې د تقسیم اختیار شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** صغیر ته پس د بلوغ نه د فسخې اختیار شته، البته که د دهٔ د ولی په اجازت سره تقسیم شوې وی نو پس د بلوغ نه ورته بیا د فسخې اختیار نشته.

دا حکم د تقسیم د ترکې دې، په صورت د شرکت کښې بهر حال صغیر ته اختیار شته دې.

قال فی التنویر وشرحه: وصحت برضا الشرکاء الا اذا کان فیهم صغیر او مجنون لا نائب عنه او غائب لا وکیل عنه لعدم لزومها حینئذ الا باجازة القاضی او الغائب او الصبی اذا بلغ او ولیه هذا لو ورثة ولو شرکاء بطلت منیة المفتی وغیرها (ردالمحتار ص ١٨٠ ج ٥) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم ٢٩ شعبان ١٤٠١ هجری

## د شریکو کورونو د منافعې دتقسیمولو طریقه

**سوال:**- دوه کورونه په مختلفو کوڅو کښې د دوو کسانو تر مینځه شریک دی، اوس دوی ملکیت مشترک ساتل غواړی او ددې منافع تقسیمول غواړی، د دې تقسیم جائز صورت مطلوب دې بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د دې د جواز دوه صورتونه دی:

١- د دواړو کورونو د منافعې مجموعه دې په قدر د حصو تقسیم کړی.

٢- یو بل سره دې د کورونو تعیین وکړی، یو کور دې یو شریک واخلی او بل کور دې بل شریک واخلی، بیا هر یو شریک ته اختیار شته دې چې په خپل تاکلې شوی کور کښې په خپله پاتې شی او که خوښه ئې وی نو په کرایه وغیره دې ورکړی او ددې منافع دې حاصل کړی.

په دې صورت کښې به هر یو هم د هغه کور د منافعې مستحق وی کوم چې هغهٔ ته په تقسیم کښې ورکړې شوې دې، برابره خبره ده که د دې منافع د هغه دویم کور نه کم وی او که زیات وی.

قال الامام التمرتاشی رحمه الله: ولو تهایا فی سکنی دار او دارین (الی قوله) او فی غلة دار او دارین صح
وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: تنبیه:- فی الهدایة لکل واحد ان یستغل ما اصابه بالمهایاة وان لم یشترط ذلک لحدوث المنافع علی ملکه اهـ (قوله کذلک) ای یأخذ هذا شهرا والاخر شهرا او یأخذ هذا غلة هذه والاخر غلة الاخری (ردالمحتار ص ١٠٠ ج ٥) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم ١٩ شعبان ١٤١٥ هجری

# کتاب المزارعة والمساقاة

## د موروثی زمکې حکم

**سوال**:- د بلوچستان د زمکې لاندینی صورتونه وګورئ ددې حکم مطلوب دې۔

۱- د بلوچستان په زمکه کښې اکثره زمکه د پیړو نه په حسب د عرف اصل مالکانو آبادوونکو ته د پاره د آبادولو داسې ورکړې ده چې دزمکې ټوله خواری مثلا زمکه قابله د کرکروندې ګرځول،بندونه جوړول، د اوبو دپاره لاره جوړول، زراعت وغیره کول دا ټول هر څه د آبادونکی په ذمه دی، د فصل په شپږو کښې پنځه حصې زمیدار ته او یوه حصه اصل مالک ته ورکول کیږی، د دې نه علاوه مالک د پیداوار نه څه متعینه حصه د خپل خرچ د پاره د آبادونکی نه کرهاً اخلی ، لکه په یو بار کښې اووه کاسې وغیره.

مالک په زمکه کښې داسې څه تصرف نهٔ شی کولې کوم چې د آبادونکی په عمل کښې د دخل باعث وی۔

۲- د دې معاهدې نه پس هیڅ یو د زمکې خاوند، زمیندار ته عرفا جواب نهٔ شی ورکولې، آبادونکې په زمکه کښې هرقسمه تصرف کوی،لکه خرڅول،په مزارعت ورکول،د خلعې په عوض کښې ورکول، په مهر کښې ورکول، په دې باندې د مالک هیڅ اعتراض نهٔ وی۔

۳- مالک صرف خپله شپږمه حصه خرڅولې شی،دآبادونکی حصې باندې تعرض نه شی کولې

۴- داسې زمکه آبادونکې خپله مملوکه زمکه تصور کوی، په دې کښې وراثت هم جاری کیږی۔

۵- سرکاری مالیه هم آبادونکې ادا کوی.

۶- که یو آبادونکې خپله حصه خرڅه کړی نو بل آبادونکې خپل ځان د شفعې حق دار ګنی۔

۷- آبادونکې د سردار د حصې هم هغه مالک ګنی.

اوس د څه مودې نه چې به سردارانو کومه د شپږمې حصې نه علاوه متعین مقدار اخستلو نو د هغې په باره کښې نزاع ده،آبادونکو دې ته ظلم اووئیلو او ددې ورکول ئې بند کړل،او په حکومتی سطح باندې د هغوی مرسته هم وکړې شوه، په دې باندې سرداران وائی چې مونږ به تاسو د خپلو زمکو نه اوباسو او خپلې زمکې به په خپل لاس کښې واخلو.

اوس پوښتنه دا ده چه آیا د دوو سوو کالو نه د زیاتو کلونو راسې د مالکانه حقوقو دعرف او د مالکانو د اعتراف او اقرار په موجودګئ کښې که سرداران د خپل پلار نیکه تصرف مات کړی او آبادونکی د هغوی د زمکو نه بې دخله کول وغواړی نو دا حق هغوی ته حاصل دې؟ ښه دتسلې او تحقیقی جواب راکړئ او مونږ له د شکریه ادا کولو موقع راکړئ۔بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا امر د تحقيق محتاج دې، چې آبادونکو ته د پيداوار په شپږو کښې پنځه حصې ورکول مقرر کړې شوې وو او که نه د زمکې په شپږو کښې پنځه حصې ورکول تاکلې شوې وو؟ د دې حقيقت خو به يا د معاهدې د کاغذونو نه معلوم شی يا په سرکاری دفترونو کښې د زمکو د انتقال چې کوم کاغذونه دی د هغې نه معلوميدې شی، که په دې کښې څه ثبوت تر لاسه نهٔ شی نو په عرف سره به بيا ددې فيصله کولې شی، په استفتاء کښې د راليږلې شوو کاغذونو نه دا معلوميږی چې دا زمکه د سردارانو ملکيت دې، آبادونکو ته صرف د پيداوار حصه ورکولې کيږی، په دې باندې دا لاندينۍ قرينې دی:

۱ - د زميندار او د آباد کار د اصطلاح نه دا معلوميږی، چې سردار د زمکې مالک دې او آباد کار مزارع دې.

۲ - که چيرې آباد کار د زمکې د پيداوار په شپږو کښې د پنځو حصو مالک وی، نو د سردار د حصې د شپږمې حصې کرونده بې د معاوضې نه ولې کوی؟ بلکه د خپلې حصې نه هم يو مقرر حصه سردار ته ولې ادا کوی؟

۳ -تراوسه پورې هيڅ يوآبادکارخپله حصه زمکه د سردار دحصې د زمکې نه ولې جدانهٔ کړه؟

په استفتاء کښې د آباد کارو په ملک باندې ذکر کړې شوې قرينی لکه بيعه، هبه، د مهر ادا کول وغيره کښې که چيرې د زمکې د انتقال سرکاری کاغذونو کښې هم د دې تصريح وی، يا آباد کار خپله د زمکې حصه د زميندار نه په ذريعې د تقسيم سره جدا کړی او په خپله متعينه حصه کښې تصرف کوی نو دا بيا واقعتا دلائل د ملک دی، ليکن د استفتاء د مضمون نه معلوميږی، چې داسې نهٔ کيږی، لهذا بيعه، مهر، بدل د خلعې وغيره عقود په ظاهره د زمکې په منافعې باندې واقع کيږی، کومو ته چې بيعه د حقوقو وائی او دا روا نهٔ دی.

**تنبيه**: که چيرې دا حقيقت معلوم شی چې سردار ته زمکه کوم حکومت ورکړې وه، او ولې ئې ورکړې وه؟ نو کيدې شی چې بيا د مسئلې حکم بدل شی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۶ ربيع الآخر ۱۳۸۹ هجری

## مزروعه زمکه په مزارعه باندې ورکول

**سوال**:- عمرو او بکر، له زيد نه زمکه په مزارعت باندې هغه وخت واخستله، چې په زمکه کښې فصل د اول نه کرلې شوې وو، ليکن په تحرير کښې د څه فصل ذکر نه دې کړې شوې، البته دا زبانې وئيلې شوې وو چې بکر به هم په فصل کښې حصه دار وی، عمرو د زمکې د مالک «زيد» خوئ دې، هغه د هغهٔ سره د کړې شوې خبرې تصديق هم کوی، ليکن بکر ددې فصل نه محرومول غواړی، آيا بکر شرعاً په دې فصل کښې د حصې د اخستلو حق دار دې او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې په وخت د عقد کښې فصل تیار شوې نهٔ وو نو بیا عقد صحیح دې، او دا بیا د مزارعې په ځائې معامله ده، بکر هم د فصل حق دار دې.

او که چیرې فصل تیاریدلو ته نزدې وو، نو بیا دا عقد نهٔ دې صحیح شوې، د فصل د پرې کولو نه پس به بیا له سره عقد د مزارعې کولې شی، په دې صورت کښې بیا په عمرو او بکر کښې د چا هم په فصل کښې څه حق نشته.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله وبشرط التخلية الخ) وهی ان یقول صاحب الارض للعامل سلمت الیك الارض فكل ما یمنع التخلیة كاشتراط عمل صاحب الارض مع العامل یمنع الجواز ومن التخلیة ان تكون الارض فارغة عند العقد فان كان فیها زرع قد نبت یجوز العقد ویكون معاملة لا مزارعة وان كان قد ادرك لا یجوز العقد لان الزرع بعد الادراك لا یحتاج الی العمل فیتعذر تجویزها معاملة ایضا خانیة (ردالمحتار ص۱۷۳ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۰ رجب ۱۳۹۳ هجری

## که مزارع قبل المدة کار پرېښودلو

**سوال**:- یو سړی یو څو زمیداران د زمکې مالک له راوستل چې دوی له خپله زمکه د آبادولو دپاره ورکړه، او ددوی دښځو او د بچو دپاره قرض هم ورکړه، د زمکې مالک اووئیل که چیرې تهٔ د دوی ضمانت کوې نو ماته قبوله ده، هغه سړې ئې ضامن شو، درې څلور میاشتې هغه زمیدارانو کار وکړو، او په دومره موده کښې ئې څوارلس سوه روپئ قرض واخستلو، بیا د زمکې د کرلو نه وړاندې د شپې شپې هغه زمیداران وتښتیدل، اوس پوښتنه داده چې ددې څلورو میاشتو معاوضه به دغه زمیدارانو ته ورکړې کیږی او که نه؟ که چیرې ورته ورکړې کیږی نو په څه حساب سره؟ یعنی د پوره څلورو میاشتو اجرمثل او که نه د هغوی د کار په مقدار مزدوری؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که چیرې د تخم شرط په رب الارض باندې وی نو مزارع په حکم د اجیر کښې دې، لهذا دهٔ ته به په قدر دعمل اجرمثل ورکړې کیږی، او که چیرې د تخم شرط په مزارع باندې وو، نو بیا هغه سره زمکه په توګه د اجارې وه، لهذا د هغه عمل موجب د اجر نهٔ دې. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۱ صفر ۱۳۹۷ هجری

## په پیداوار کښې د اوبو حصه مقررول روا نهٔ دی

**سوال**:- د یو عقد صورت دا دې، چې د یو سړی زمکه ده، دویم کرونده کوونکې، او بل ټیوب ویل دې، د کومې نه چې هغه زمکې له اوبه ورکوی، د ټول پیداوار درې حصې کړې کیږی او هر یو ته یوه یوه حصه ورکولې کیږی، آیا دا صورت روا دې؟ بله دا چې عشر په هر یو باندې واجب دې او

که نه صرف په مالک باندې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د اوبو په عوض د فصل حصه اخستل روا نهٔ دی، ټول پیداوار به د مالک او د مزارع ترمینځه برابر تقسیمیږی، او عشر به هم په دې دواړو باندې واجبیږی، د ټیوب ویل مالک ته به اجر مثل د نقدیت په صورت کښې ورکولې کیږی۔ **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم۔**

**۳ جمادی الثانیه ۱۳۹۷ هجری**

## د نیمائی په شرط باندې باغ کرل

**سوال**:- یو سړې خپله زمکه چا له په دې شرط باندې ورکوی چې هغه دې په دې کښې باغ وکری، د باغ په وونو کښې به هغه د نیمې مالک وی، آیا دا صورت شرعاً روا دې؟ که چیرې ناجائزه وی، نو د مسئلې د عمل د کیدلو نه وړاندې چې دا کومه معامله شوې ده د هغې څه حکم دې؟ بله دا چې د دې روا صورت څه دې ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ددې معاملې مختلف صورتونه دی، د هر یو حکم هم بیل دې، تفصیل ئې دا دې چې:

۱ - که د باغ سره په زمکه کښې ئې هم د شرکت شرط لګولې وو نو داعقد فاسد دې.

۲ - که په زمکه کښې ئې دشرکت شرط نه وو لګولې، صرف په وونو کښې ئې د شرکت شرط لګولې وو او د عقد موده ئې نهٔ وی بیان کړې، نو دا عقد هم فاسد دې۔

۳ - صرف په ونو کښې ئې د شرکت شرط لګولې وی، او د عقد موده ئې هم معین کړې وی نو دا عقد صحیح دې، د عقد د مودې په ختمیدلو باندې د زمکې خاوند ته اختیار دې، چې نیم قیمت ورکوی او ونې ترې نه اخلې یا ئې له بیخه اوباسی۔

که په ړومبنو دوو صورتونو کښې د یو صورت مطابق فاسده معامله وکړې شوه، نو په ړومبی صورت کښې به د زمکې خاوند عامل ته د ونو د کرلو د وخت قیمت ورکړی او د باغ به مالک شی، او عامل ته به د ده د بوټو د قیمت نه علاوه اجر مثل هم ورکړې کیږی.

او په دویم صورت کښې به د ټولو ونو مالک عامل وی، د زمکې خاوند ته به د زمکې اجر مثل ورکړې کیږی، او هغهٔ ته اختیار دې چې ونې ترې نه په بیعه اخلی او یا د عامل نه د ونو د ایستلو مطالبه کوی.

د ړومبی صورت د جواز حیله دا کیدې شی چې د زمکې نصف دې د باغ د نصف په عوض کښې خرڅ کړی او عامل دې په اجرت قلیله باندې اجیر کړی.

**قال فی التنویر و شرحه: دفع ارضا بیضاء مدة معلومة لیغرس و تکون الارض والشجر بینهما لا تصح**

لاشتراط الشركة فيما هو موجود قبل الشركة فكان كقفيز الطحان فتفسد والثمر والغرس لرب الارض تبعا لارضه وللاخر قيمة غرسه يوم الغرس واجر مثل عمله وحيلة الجواز ان يبيع نصف الغراس بنصف الارض و يستأجر رب الارض العامل ثلاث سنين مثلا بشيء قليل ليعمل في نصيبه صدر الشريعة.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله مدة معلومة) وبدونها بالاولى (قوله وتكون الارض والشجر بينهما) قيد به اذ لو شرط ان يكون هذا الشجر بينهما فقط صح قال في الخانية دفع اليه ارضا مدة معلومة على ان يغرس فيها غراسا على ان ما تحصل من الاغراس والثمار يكون بينهما جاز اهـ ومثله في كثير من الكتب وتصريحهم بضرب المدة صريح في فسادها بعدمه ووجهه ان ليس لادراكها مدة معلومة (الى قوله) اقول وفي الذخيرة واذا انقضت المدة يخير رب الارض ان شاء غرم نصف قيمة الشجرة ويملكها وان شاء قلعها اهـ وبيان ذلك فيها في الفصل الخامس فراجعها هذا وفي التتارخانية والذخيرة دفع الى ابن له ارضا ليغرس فيها اغراسا على ان الخارج بينهما نصفان ولم يوقت له وقتا فغرس فيها ثم مات الدافع عنه وعن ورثة سواه (الى قوله) كلف قلعه وتسوية الارض ما لم يصطلحوا (الى قوله) ويمكن ادعاء الفرق بين هذا وبين ما اذا فسدت باشتراط نصف الارض و يظهر ذلك مما عللوا به الفساد فانهم عللوا له بثلاثة اوجه منها كما في النهاية انه جعل نصف الارض عوضا عن جميع الفراس ونصف الخارج عوضا لعمله فصار العامل مشتريا نصف الارض بالغراس المجهول فيفسد العقد فاذا زرعه في الارض بامر صاحبها فكان صاحبها فعل ذلك بنفسه فيصير قابضا ومستهلكا بالعلوق فيجب عليه قيمته واجر المثل اهـ ولا يتاتى ذلك في مسالتنا بل هو في معنى استيجار الارض بنصف الخارج واذا فسد العقد لعدم المدة يبقى الغراس للغارس ونظيره ما مر في المزارعة انها اذا فسدت فالخارج لرب البذر ولا يخفى ان الغرس كالبذر وينبغي لزوم اجر مثل الارض كما في المزارعة هذا ما ظهر لي والله تعالى اعلم.

(قوله وحيلة الجواز الخ) هذه الحيلة وان افادت صحة الاشتراك في الارض والغراس لكنها تضر صاحب الارض لان استيجار الشريك على العمل في المشترك لا يصح ولا يستحق اجرا ان عمل فقد يمتنع عن العمل و ياخذ نصف الارض بالثمن اليسير اللهم (الى ان يحمل على انهما افرزا الغراس وغرس كل نصفه في جانب فتصح الاجارة ايضا فتامل (ردالمحتار ص۳۰۳ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم

١٧ صفر ١٣٩٧ هجرى

## د مزارعت د صحت شرائط

**سوال:-** د مزارعت په سلسله کښې د زمکې د مالکانو او د زميدار تر مينځه اختلاف

راځی،لهذا په زمیدارئ باندې د زمکې د ورکولو جواز سره د شرائطو بنۀ صفا او عام فهم انداز کښې په تفصیل سره راته ولیکئ، بله دا چې د مزارعت په جواز کښې د امام صاحب رحمه الله او د صاحبینو رحمهما الله تعالی ترمینځه اختلاف دې مفتی به قوله په کښې کوم یو دې؟د حدیث (من لم یترك المخابرة فلیؤذن بحرب من الله ورسوله) څه مطلب دې؟ بینوا توجروا ـ

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قول د جواز مفتی به دې،په دې باندې د صحابۀ کرامو رضی الله عنهم د زمانې نه واخله تر اوسه پورې تعامل دې .

د مزارعت د صحت د پاره اتۀ شرطونه دی:

۱ - زمکه د زراعت جوګه وی.
۲- د زمکې مالک او زمیدار د اهلِ عقد نۀ وی.
۳ - د مودې تعیین.
۴ - د تخم ورکوونکی تعیین.
۵ - د حصې تعیین.
۶ - مزارع ته د زمکې قبضه ورکول.
۷ - په پیداوار کښې د دواړو د شرکت بیان کول.
۸ - د تخم د جنس تعیین.

د مزارعت اووه صورتونه دی.

۱ - زمکه او تخم د یو وی،بقر او عمل د بل وی.
۲ - زمکه د یو وی او باقی هر څه د بل وی.
۳ - عمل د یو وی باقی هر څه دبل وی.
۴ - زمکه او بقر د یو وی تخم او عمل د بل وی.
۵ - بقر او تخم د یو وی زمکه او عمل د بل وی.
۶- بقر د یو وی باقی هر څه د بل وی.
۷ - تخم د یو وی باقی هر څه د بل وی.

په دې اوه قسمونو کښې ړومبی درې قسمه د مزارعت صحیحه دی او آخری څلور قسمونه د مزارعتِ فاسده دی.

قال فی التنویر وشرحه: و کذا صحت لو کان الارض والبذر لزید والبقر والعمل للاخر اوالارض والباقی للاخر اوالعمل له والباقی للاخر فهذه الثلاثة جائزة وبطلت فی اربعة اوجه لو کان الارض والبقر لزید اوالبقر والبذر له والاخران للاخر اوالبقر اوالبذر له والباقی للاخر (ردالمحتار ص ۱۱۰ ج ۱)

د حدیث مبارک جواب دا دې چې په هغه زمانه کښې به په مزارعت کښې فاسد شرطونه لګولې شو، لکه د پیداوار نه به ئې یو معین مقدار د چا د پاره ساتل وغیر،د دې وجې نه د داسې مزارعت نه ئې منع اوفرمائیله.

قال الامام ابن الهمام رحمه الله علیه: ویمکن ان یقال لهما ان یدفعا ذلك بحمل المروی عن النبی ﷺ علی ما اذا شرط فی عقد المزارعة شرط مفسد اذقد روی انهم کانوا یشترطون فیه شیئا معلوما من الخارج لرب الارض و نحو ذلك مما هو مفسد عندهما وقد اشار الیه صاحب الکافی الخ (فتح القدیر ص۳۳ ج۸)

وقال فی التنویر و شرحه: ولا تصح عند الامام لانها کقفیز الطحان و عندهما تصح و به یفتی للحاجة و قیاسا علی المضاربة. (ردالمحتار ص۱۹۳ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم

۱٦ ربیع الاول ۱٤۰۲ هجری

# كتاب الصيد والذبائح

## د د جنابت دحالت ذبیحه حلاله ده

**سوال:**- د شریعت مطهره حکم په دې مسئله کښې څه دې چې په حالت د جنابت کښې ذبح کړې شوې څناور حلال دې او که حرام؟ بینوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق والصواب** : په حالت د جنابت کښې ذبح کړې شوې څناور حلال دې، د ذبحې د پاره د حدث اکبر یا د حدث اصغر نه طهارت شرط نۀ دې۔

**قال فی التنویر: و شرط کون الذابح مسلما حلالا خارج الحرم ان کان صیدا او کتابیا ذمیا او حربیا الخ** (ردالمحتار ص۲۰۸ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۱ محرم ۱۳۷۲ هجری

## که په لیندۀ باندې د مارغۀ کېرئ والوتله او څټ ئې باقی پاتې شو د دې حلالول روا دی

**سوال:**- د دین علماء کرام په دې حقله څه فرمائی چې په لیندۀ باندې مارغۀ وه ویشتلې شو او د هغې کېرئ جدا شوه، او څټ ئې باقی دې، په دې کښې سا تراوسه پورې باقی پاتې ده، په دې حالت کښې د دې په څټ باندې تکبیر وئیل او د دې ذبح کول صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق والصواب** : په دې کښې د امام صاحب رحمه الله او د صاحبینو رحمهما الله تعالی اختلاف دې چې په وخت د ذبحه کښې څومره قدر د حیات شرط دې، د صاحبینو رحمهما الله تعالی په نیزد حیاتِ مستقره یعنی **فوق ما یکون فی المذبوح** ضروری دې، او د امام صاحب رحمه الله په نیزد مطلقِ حیات ورله شرط دې، یعنی په وخت د ذبحه کښې حیاتِ قلیله خفیفه هم کافی دې.

**قال فی الهدایة: اما اذا لم یتوهم بقاؤه حیا بان شق بطنه واخرج ما فیه ثم وقع فی ید صاحبه حیا فمات حل تناوله لانه استقر فیه فعل الذکاة قبل وقوعه وما بقی فیه اضطراب المذبوح وقیل هذا قول ابی یوسف و محمد رحمهما الله فاما عند ابی حنیفة رحمه الله فلا یحل و هو القیاس لانه وقع فی یده حیا فلا یحل بدون ذکاة الاختیار کالمتردیة هذا الذی ذکرنا اذا ترک التذکیة فلو ذکاه حل عند ابی حنیفة رحمه الله لانه ان کانت فیه حیاة مستقرة فالذکاة وقعت موقعها بالاجماع وان لم یکن فیه حیاة مستقرة فعند ابی حنیفة رحمه الله ذکاته الذبح و قد وجد وعندهما حل بلا ذبح و کذا المتردیة والنطیحة والموقوذة والذی بقر الذئب بطنه وفیها حیاة خفیة او بینة یحل اذا ذکاه وعلیه الفتوی کذا فی الکافی** (عالمگیریة کتاب الصید ص۴۲۸ ج۵)

وایضا فیها: ذبح شاة مریضة وقد بقی فیها من الحیاة مقدار ما یبقی فی المذبوح بعد الذبح فانها لا تقبل الذکاة عند ابی یوسف و محمد رحمهما الله واختلف المشائخ فیه علی قول ابی حنیفة رحمه الله ونص القاضی الامام المنتسب الی استیجاب فی شرح الطحاوی ان یقبل الذکاة وعلیه الفتوی کذا فی الظهیریة (عالمگیریة ص۲۸۶ ج۵)

وقال فی الهدایة بعد ذکر ان المعتبر عند الامام مطلق الحیاة وان قلت وکذا المتردیة والنطیحة والموقوذة والذی بقر الذئب بطنه وفیه حیاة خفیة او بینة وعلیه الفتوی لقوله تعالی الا ما ذکیتم استثناه مطلقا من غیر فصل (هدایة ص۵۰۶ ج۴)

و استدل علیه الطحطاوی رحمه الله بحدیث عدی رضی الله عنه حیث امره النبی ﷺ بالذبح ان وجد الصید حیا من غیر تفرقة بین الحیاة المستقرة وغیرها (حاشیة الطحطاوی علی الدر المحتار ص۳۳۰ ج۴)

وقال فی شرح التنویر: والمعتبر فی المتردیة و اخواتها کنطیحة و موقوذة و ما اکل السبع والمریضة مطلق الحیاة وان قلت کما اشرنا الیه وعلیه الفتوی (ردالمحتار کتاب الصید ص۳۳۳ ج۵)

پورته د ذکر کړې شوو نصوصو نه دا خبره ثابته شوه چې د امام صاحب رحمه الله په مذهب کښې د ذبحې دپاره حیاتِ مستقره شرط نهٔ دې، حیاتِ قلیله هم کافی دې، او همدا قول مفتی به دې۔

په پښتلې شوې مسئله کښې محل د ذبحې (ما بین الحلق واللبة) موجود دې او حیات په کښې هم باقی دې، اګرچې لږ حیات دې، لهذا د امام صاحب رحمه الله په قول باندې دا مارغهٔ پس د ذبحې نه حلال دې، وعلیه الفتوی. البته بیله شوې کپړئ حرامه ده۔

لقوله علیه السلام: ما ابین من الحی فهو میت.

وفی العلائیة: وان علمت حیاتها وان قلت قت الذبح اکلت مطلقا بکل حال.

وفی الشامیة تحت (قوله و ان کانت حیاتها خفیفة) فی البزازیة شاة قطع الذئب اوداجها و هی حیة لا تذکی لفوات المحل ولو انتزع راسها وهی حیة تحل بالذبح بین اللبة واللحیین اه (ردالمحتار ص۲۱۶ ج۵)

د قطعې د اوداج نه مراد دا دی چې محل د ذبحې بالکل باقی پاتې نهٔ شی۔

دویمه جمله یعنی ولو انتزع راسها ـ الخ په دې باندې دلیل دې، په عالمګیریه کښې هم په دې باندې تصریح ده: شاة قطع الذئب اوداجها و هی حیة لا تذکی لفوات محل الذبح کذا فی الوجیز للکردی. (عالمگیریة کتاب الذبائح الباب الثالث ص۲۹۱ ج۵)

البته دا لاندې عبارت په ظاهره ددې متعارض ښکاری:

۱ ، قال ابن عابدين رحمه الله في تفسير قوله ﷺ ما ابين من الحي فهو ميت، وبه يعلم انه لو ابان الراس اكلا لانه ليس منفصلا من حي حقيقة وحكما بل حقيقة فقط لانه عند الانفصال ميت حكما (ردالمحتار ص ۲۰۷ ج ۵)

۲ - وفي شرح التنوير: او قطع نصف راسه او اكثره او قده نصفين اكل كله لان في هذه الصور لا يمكن حياته فوق حياة المذبوح

قال ابن عابدين رحمه الله: وهذا حي صورة لا حكما اذ لا يتوهم بقاء الحياة بعد هذا الجرح (ردالمحتار ص ۳۰۰ ج ۵)

د دې جزئياتو نه معلوميږي چې د كوم يو سالرونكى كېږئ والوزى هغه حكما مړ دې لهذا قابل د ذبحې نۀ دې.

۳ - في الهندية في الباب الاول من كتاب الذبائح: وفي فتاوى اهل سمرقند قصاب ذبح الشاة في ليلة مظلمة فقطع اعلى من الحلقوم او اسفل منه يحرم اكلها لانه ذبح في غير المذبح وهو الحلقوم فان قطع البعض ثم علم فقطع مرة اخرى الحلقوم قبل ان يموت بالاول فهذا على وجهين اما ان قطع الاول بتمامه او قطع شيئا منه ففي الوجه الاول لا يحل لانه لما قطع الاول بتمامه كان موتها من ذلك القطع اسرع من موتها من الثاني وفي الوجه الثاني يحل كذا في الذخيرة والمحيطين (عالمگيرية ص ۲۸۵ ج ۵)

٤ - وايضا فيها: سنور قطع راس دجاجة فانها لا تحل بالذبح وان كان يتحرك كذا في الملتقط (عالمگيرية ص ۲۸۸ ج ۵)

لهذا ددې جزئياتو جواب دا دې چې اولنئ جزئيه د ذبحې اختيارى په حقله ده او جزئيه ثانيه د ذبحې اضطرارى په حقله ده، يعنى كا د ښكارى د رارسيدلو نه وړاندې د صيد ژوند ختم شو نو ددې هغه راس مبان هم حلال دې، په دې دواړو جزئياتو كښې د ميت نه مراد مذبوح دې، په ذكاة اضطرارى كښې هم نفس جرح ذكاة ده، مذبوح حكما ژوندې نۀ دې بلكه صرف حقيقة ژوندې دې لهذا ددې نه جدا كړې شوې عضوه حرامه نۀ ده، ځكه چې ما ابين من الحي فهو ميت كښې د حى نه مراد حى حقيقتا او حكما دې، او الاما ذكيتم كښې څه قيد نشته دې ددې وجې نه به دا عام وى، برابره خبره ده كه حى حقيقتا او حكما وى يا صرف حقيقتا وى، په هر حال كښې به په ذبحې كولو سره حلال شى.

په دې صورت دمسئلې كښې كه محل د ذبحې باقى وى نو دا ذبح كيدلې شى، البته دغه بيل شوې سر ئې حرام دې، لانه مبان من الحي حقيقة وحكما.

عبارت ثالثه د صاحبينو رحمهما الله په مذهب باندې محمول دې.

عبارت رابعه کښې د راس نه مراد عنق دې، چنانچه د عالمګیریه په ترجمه کښې دا الفاظ دی (پیښو ترې نه سر پرې کړو)

د څټ د قطع کیدلو نه پس محل دذبحې باقی پاتې نۀ شی، که چیرې لفظ دراس په ظاهر باندې وساتلې شی نوبیا به دا جزئیه هم د صاحبینو رحمهما الله په مذهب باندې متفرع وی، بهر حال د عالمګیری د دې دواړو جزئیو په ظاهر باندې فتوی نۀ ده، ځکه چې په خپله د عالمګیری په کتاب الذبائح باب ثالث کښې لیکلې شوی دی.

**ولو انتزع الذئب راس الشاة وهی حية تحل بالذبح بين اللبة واللحيين (عالمگیریة ص ۲۸۱ ج ۵)**

د امام صاحب رحمه الله همدا مذهب دې، **وعليه الفتوى والله سبحانه وتعالى اعلم.**

۲۵ ربیع الاول ۱۳۷۳ هجری

## مسلمان هوسئ په غشی وه ویشتله او کافر ذبحه کړه

**سوال**:- یو مسلمان ښکاری یوه هوسئ په ګولئ وه ویشتله او زخمی ئې کړه او راوې غورزوله، که چیرې کافر یعنی ذکری دا هوسئ ذبحه کړی نو آیا دا حلاله ده او که حرامه؟

که د دې په عکس سره کافر ښکاری یوه هوسئ په ګولئ باندې وه ویشتله او را وې غورزوله، که چیرې مسلمان دا ذبحه کړی نو ددې به څه حکم وی؟

دلته په دې حقله په علماؤ کښې اختلاف شروع دې، لهذا زر تر زره جواب راولیږئ او مونږ له د شکر ادا کولو موقع راکړئ. بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب**: په ړومبی صورت کښې د حلت څه وجه نشته، والله اعلم چې ستاسو په علاقه کښې په دې کښې اختلاف ولې دې؟ دا ذبیحه د کافر ده چې بې دشک او شبهې نه حرامه ده.

البته که مسلمان بسم الله وه وئیله او غشې ئې په هوسئ باندې ګذار کړو او هغه دې حده پورې زخمی شوه چې په هغې کښې د مذبوح نه زیات حیات نۀ وو، او په دې حالت کښې ذکری دا ذبحه کړه نو دا په نیزد د صاحبینو رحمهما الله تعالی حلاله ده او د امام صاحب رحمه الله په نیزد دا حرامه ده، **والفتوى على قوله كما سيجيء فى الجواب عن السؤال الثانى.**

او که حیات فوق المذبوح وی نو په اتفاق سره حرامه ده.

په دویم صورت کښې که چیرې حیات فوق المذبوح نۀ وی، نو په نیزد د صاحبینو رحمهما الله حرامه ده او په نیزد د امام صاحب رحمه الله حلاله ده، **وعليه الفتوى.**

او که حیات فوق المذبوح په کښې وی نو دا په اتفاق سره حلاله ده.

قال فی الهندیة: ذبح شاة مریضة وقد بقی فیها من الحیاة مقدار ما یبقی فی المذبوح بعد الذبح فانها لا تقبل الذکاة عند ابی یوسف و محمد رحمهما الله تعالی واختلف المشائخ فیه علی قول ابی حنیفة رحمه الله و نص القاضی المنتسب الی استیجاب فی شرح الطحاوی انه یقبل الذکاة وعلیه الفتوی کذا فی الظهیریة.(عالمگیریة ص۳۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۸ محرم ۱۳۸٦ هجری

## د سارق ذبیحه

**سوال:-** شخصی در منزل غیر برای دزدی رفت وگوسفند را گرفته ذبح کرد باتسمیه و هرگاه صاحب منزل را خبر داده شد، گوسفند را از او گرفته،آیا خوردن گوشت این مذبوحهٔ سارق حرام است یا حلال؟ علماء اینجا گویند حرام است چرا که دزدی حرام است، و هرگاه بسم الله گفت میخواهد حرام را حلال کند واین گوینده بسم الله کافر شد ،پس ذبیحهء کافر است، ودلیل از شامی می دهند،و نزد بنده شامی مکمل نیست،امید است جواب باصواب مرحمت فرمایید.بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قائله مجهول وهو خلاف المعقول والمنقول عن الفحول فی الغصب وفی الاضحیة نقل الحصکفی فی الصید ورده ابن عابدین (ردالمحتار ص۳۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۸ ربیع الآخر ۱۳۸۷ هجری

## د باز د ښکار حکم

**سوال:-** یو ځناور له تربیت ورکړې شوې دې، مونږ بسم الله اووایو اوهغه پریږدو ،هغهٔ په پنجه کښې مرغئ ونیسی وینه ترې نه اوباسی او مړه ئې کړی، د دې بالکل موقع نهٔ تر لاسه کیږی چې د ژوبلې مرغئ په مرئ باندې مونږ چاړهٔ راکاږو ،آیا دا مرغئ حلاله ده که حرامه ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هر کله چې په باز باندې د پریښودلو په وخت کښې بسم الله وه وئیلې شی او هغه پریښودلې شی او هغه ښکار زخمی کړی او په ذبحې باندې دقدرت نه وړاندې وړاندې هغه مړ شی نو دا مرغئ حلاله ده، البته دا په کښې ضروری دی چې د ښکار په مسلسل تکل کښې وی که چیرته کښیناستلو او بیا ئې تکل شروع کړو او بیا دا ښکار په مړ حالت کښې وموندلې شو نو بیا دا حلال نهٔ دې،که چیرې ژوندې ترلاسه شو نو بیا ددې ذبحه کول واجب دی

قال فی التنویر وشرحه: واذا ادرك المرسل او الرامی الصید حیا بحیاة فوق ما فی المذبوح ذکاه وجوبا وشرط لحله بالرمی التسمیة ولو حکما کما مر وشرط الجرح لیتحقق معنی الذکاة وشرط ان لا یقعد عن طلبه لو غاب الصید متحملا بسهمه فما دام فی طلبه یحل و ان قعد عن طلبه ثم اصابه میتا لا لاحتمال موته بسبب

اھ (ردالمحتار ص۳۳۳ ج۵) واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم. ۲۹ جمادی الثانية ۱۳۸۷ هجرى

## څوک چې غير الله متصرف ګڼي نو د هغۀ ذبيحه حرامه ده

**سوال:**- اشخاصيكه انبياء و اولياء را عالم الغيب و متصرف فى الامور ما فوق الاسباب ميدانند وگرداگرد قبور طواف مى دهند باين عقيده كه از حالات ما عالم اند و نذر و نياز براى ايشان مى كنند و بظاهر نماز و روزه هم اداء مى كنند،آيا مذبوحه ايشان حلال است يا حرام ؟بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : انبياء و اولياء را عالم الغيب و متصرف فى الامور دانستن كفر است و ذبيحه ايشان حرام است ـ والله سبحانه وتعالى اعلم ـ ۱۰ ذى القعده ۱۳۸۷ هجرى

## که مهې په تالاب کښې د اچولو نه پس مړ شو نو حلال دي

**سوال:**- د درياب نه مو مهې ونيولو ،هغه ژوندې وو، په همدې حالت کښې مو هغه د اوبو په تالاب يا په لوښی کښې واچولو، څه وخت پس هغه مړ شو نو آيا شرعاً د دې خوړل حلال دی يا که د طافی کيدلو د وجې نه حرام دې؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د دې مهی د مرګ سبب د دې نيول دی لهذا دا حلال دې۔

قال الامام قاضيخان رحمه الله تعالىٰ: والاصل ان السمك متى مات بسبب حادث حل اكله وان مات حتف انفه لا بسبب ظاهر لا يحل اكله عندنا لانه طاف والجراد يوكل وجد حيا او ميتا فان القى سمكة فى جب ماء فماتت فيه لاباس باكلها لانها ماتت بسبب حادث وهو ضيق المكان و كذا اذا جمع السمك فى حظيرة لا يستطيع الخروج منها وهو يتمكن من اخذها بغير صيد فمتى مات فيها لاباس باكلها و ان كان لا يؤخذ بغير صيد لا خير فى اكلها (خانية بهامش الهندية ص۳۵۸ ج۳)

وقال العلامة الطحطاوى رحمه الله تعالىٰ: وانما قال العلامة عبدالبر الاصل فى اباحة السمك ان ما مات بافة يوكل و ما مات بغير آفة لا يوكل اھ (طحطاوى على الدر ص۱۵۱ ج۴) واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم.

۹ جمادی الثانية ۱۳۸۸ هجرى

## واړۀ کبان سره د هر څه خوړل حرام دی

**سوال:**- تاسو نه په ډيرېلې شوې فتوی کښې د جواهر الاخلاطی په حوالې سره ليکلې شوې دی السمك الصغار كلها مكروهة كراهة التحريم هو الاصح.

آيا دا فتوی صحيح ده؟ او که چيرې صحيح وی نو د سمک صغار تعيين راته وکړئ،ورسره دا راته هم اووايئ چې جواهر الاخلاطی د چا کتاب دې؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نقل العلامة ابن عابدين رحمه الله عن معراج الدراية: وفي السمك الصغار التي تقلى من غير ان يشق جوفه فقال اصحابه (اي الشافعي رحمه الله) لا يحل اكله لانه رجيعه نجس وعند سائر الائمة رحمهم الله تحل اهـ (ردالمحتار ص۲۱۶ ج۵)

په دې باندې ماته د ډيرې مودې نه اشکال وو، چې د مهی کولمې او ګندګی ته ولې حلال وئيلې شوې دی؟ د جواهرالاخلاطی د نص نه چې کراهتِ تحريمی راته معلوم شو نو مطمئن شوم.

د جواهر الاخلاطی حوالې په عالمګيريه کښې ډيرې زياتې موندلې شی، د دې نه دا ثابتيږی چې دا يو معتبر کتاب دې.

د وړو مهيانو د حرمت علت دا دې چې دا د ګندګی او دکولمو د صفا کولو نه بغير خوړلې شی د دې نه مراد متعين شو ـ والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۳ ذی قعده ۱۳۹۸ هجری

## چې په اوبو کښې ئې دوائی واچوله او مهيان مړهٔ شول نو دا حلال دی

**سوال**:- د مهيانو د نيولو په غرض سره که په اوبو کښې داسې دوا واچولې شوه د کومې نه چې مهيان مړهٔ شو نو په دې صورت کښې به دا مهيان خوړل حلال وی او که حرام وی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داسې مهی حلال دې.

قال في التنوير وشرحه: ولا يحل حيوان مائي الا السمك الذي مات بآفة ولو متولدا في ماء نجس ولو طافية مجروحة وهبانية غير الطافي على وجه الماء الذي مات حتف انفه وهو ما بطنه من فوق فلو ظهره من فوق فليس بطاف فيؤكل كما يؤكل ما في بطن الطافي وما مات بحر الماء او برده وبربطه فيه او القاء شيء فموته بآفة وهبانية.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله (قوله او القاء شيء) وكان يعلم انها تموت منه قال في المنح او اكلت شيئا القاه في الماء لتاكله فماتت منه وذلك معلوم ط (ردالمحتار ص۲۱۶ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۱ ربيع الاول ۱۳۹۹ هجری

## د اوبو وچيدو له کبله چې کوم مهې مړ شی هغه حلال دې

**سوال**:- زمونږ د پنجاب په علاقه کښې په اوبو کښې اکثر مهيان راځی، او کله کله دا نهرونه وچ شی، نو آيا د اوبو د وچيدو له کبله چې کوم مهيان مړهٔ شی هغهٔ حلال دی او که حرام؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: حلال دی. والله سبحانه وتعالى اعلم.

۷ ربيع الاول ۱۴۰۰ هجری

## قرش مهي حلال دي

**سوال:-** يو سمندري مهي چې هغې ته په عربۍ كښې (قرش)وائي.او په المنجد كښې د هغې دا تعريف ليكلې شوې دې: **نوع من السمك يعرف بكلب البحر يقطع الحيوان بأسنانه كما يقطع السيف تخافه جميع دواب البحر.**

ددې نه علاوه كوم خلق چې د سمندر د حالاتو نه خبر دى د هغوى قول دې چې دې مهى باندې حيض راځى، او بله دا چې دا د نورو مهيانو په شان هګۍ نه اچوى بلكه دا بچى راوړى.دا مهې حلال دې او كه حرام ؟

حضرت مولانا عبدالحى رحمه الله په خپله فتاوى كښې د دې د حرمت قول نقل كړې دې، تاسو نه دا طمع لرو چې مونږ ته به صحيح لار ښودنه وكړئ.بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** داسې قسمه تحقيقاتو كښې شرعا او عقلا د ماهرينو د فن قول قولِ فيصل كيدل پكار دى،د دې نوى وخت ماهرين د حيواناتو د مهې څلور علامې بيانوى:

۱ - د ملا تير.

۲- د سا اخستلو غبارې (يعنى پوكنۍ)

۳ - د لامبو ببوزى (وزرې).

۴، د ماحول مطابق د جسم درجه دحرارت كميدل او زياتيدل.

دا علامات په قرش كښې موجود دى،د دې د صورت نه همدا واضحه كيږى، ددې وجې نه دا حلال دې، سره د دې نه د اختلاف د وجې نه احتياط اولى دې.**والله سبحانه وتعالى اعلم.**

٤ جمادى الآخرة ١٤٠٠ هجرى

## جهينګا ((اربيان)) حرام دي

**سوال:-** د جهينګې په حقله ستاسو فتوى جارى شوې ده چې دا مكروه تحريمى ده،خو ولې د قرآنى آيتونو،احاديثو،آثارو د صحابهٔ كرامو رضي الله عنهم،تعامل د امت،د آئمهٔ اربعه او د متقدمينو او متاخرينو علماؤ نه د دې د حرمت په حقله څه دليل نۀ دې ليكلې شوې.

حال دا چې محشى د شرح وقايې د كالسمک په حاشيه باندې دا عبارت نقل كړې دې:

**(بفتحتين يقال له بالفارسية ماهى و هو بجميع اقسامه حلال حتى الصغير الذى يقال له جهينګا وغير منجس موته فيه) (شرح وقايه ص،، ج۱)**

او حكيم الامة حضرت مولانا اشرف على تهانوى نورالله مرقده په خپله فتاوى كښې د ځان د پاره عدم د علم ظاهر كړې دې او ورسره ئې د جواز رجحان هم ليكلې دې.

او حضرت مولانا عبدالحی رحمه الله لیکلي دی:

(جهینگا کومې ته چې اربیان هم وئیلې شی، لکه څنګه چې د صحاح نه مفهوم دې حلال دی ځکه چې دا هم د مهی یو قسم دې، او مهې سره د خپلو ټولو انواعو په اتفاق سره حلال دې او کومو خلقو چې دې ته حرام وئیلې دی یا محض دا ئې د مهی د انواعو نه خارج ګڼلې دې، حالانکه دا سې نهٔ ده.

. په حمادیه کښې دی: الدود الذی یقال له جهینگا حرام عند بعض العلماء لانه لا یشبه السمک فانما یباح عندنا من صید البحر انواع السمک وهذا لا یکون کذلک وقال بعضهم حلال لانه یسمی بالسمک والله اعلم.

**نوټ:** په دې حقله څه دلیل نشته دې چې دا د مهی قسم دې او که نه، لهذا احتیاط اولی دې.

**(مجموعة الفتاوی ص ۴۳۶ هجری)**

ورسره نور هم فرمائی: (بعضې فقهاء کرامو دا د مهی د قسم نه ندې شمارلې، بلکه دې ته ئې یو دریابی چینچجې وئیلې دې او حرام ئې ورته وئیلې دی، او څینی فقهاء کرامو رحمهم الله دا مهی ګڼلې دې، ددې وجې نه ئې ورته حلال وئیلی دی، ځکه چې د احنافو ضابطه ده چې د مهی نه علاوه هیڅ یو دریابی ځناور حلال نهٔ دې او د مهی هر قسم حلال دې.

په منتهی الارب کښې دی: اربیان نوع ازماهی است که آنرا بهندی جهینگا میگویند.

او په صراح کښې دی: اربیان نوعی از ماهی است ـ مجموعة الفتاوی ص ۴۳۶.

او دهدایې متن دې: **لا بأس بأکل الجریث والمارماهی،**

د دې په حاشیه کښې ئې لیکلې دی: **(سمک اسود (ص ۴۴۰ ج ۴)**

او په القاموس العصری کښې دی: **برغوث البحر** (PRAWAN) (انګلش عربی ص ۵۲۱)

او په الفرائد الدریه کښې دی: **جریث** (PRAWAN) **(عربی انګلش ص ۹۲)**

او په المنجد کښې دی: **برغوث البحر القریدس (ص ۳۳) الجریث نوع من السمک (ص ۸۸)**

او په همدې کښې دی: **القریدس جنس سمک صغیر بقدر جرادة او اکبر قلیلا یشبهها (ص ۶۱۶)**

او په المنجد اردو، عربی کښې دی: **برغوث البحر، جهینګا مچهلی.**

د دې ټولو لغاتو نه دا هم ثابته شوه، چې جهینګا مهې کوم چې د جریث ترجمه ده حلال دې، **کما فی الهدایة ومجموعة الفتاوی وغیرهما.**

د هدایې په شرح عین الهدایه کښې دی: **(جریث)** کښې د حضرت علی رضی الله عنه نه اباحت صریح وارد

دي، رواه فی الاصل ورواه عن ابن عباس رضی الله عنهما ایضا) (ص،،،ج،،)

اود اهلِ مصر فتوی ده، چې دا الذالسمک دې او د دې قیمت د هغوی په ملک کې ډیرگران دې بهرحال دا خو کیدې نهٔ شی چې دا څیز دې نوې پیدا شوې وی، او په زمانه د خلف اوسلف، متقدمینو او متاخرینو، آئمهٔ اربعه، تابعینو او تبع تابعینو، کښې نوی موندې شوې، نو بیا ددې د حرمت څه ثبوت کیدې شی؟

یو اخې د ماهرینو رائې د احنافو په نیز معتبره نهٔ ده. لکه څنګه چې په وختونو کښې د ماهرینو قول معتبر نهٔ دې، د عامة المسلمین قول معتبر دې، د ټولو نه لوئې دلیل په دې وخت کښې تعامل د امت دې، کوم چې د حرمت نه خلاف دې. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ماهرینو د حیواناتو چې د مهی په تعریف کښې کوم څیزونه ذکر کړې دی، په هغې کښې درې بالکل عام فهم دی :

۱- د ملا تیر.

۲- د سا اخستلو غبارې (یعنی پوکنۍ)

۳- د لامبو ببوزی (وزرې)

هر یو سرې په دې باندې پوهیږی چې په جهینګا کښې په دې دریو واړو کښې یو هم نشته دې، د دې وجې نه ماهرین د حیواناتو ټول په دې خبره باندې متفق دی چې د جهینګې د مهې سره چرته لرې تعلق هم نشته، دا د مهی نه بالکل جدا یو چینجې دې.

د حیواناتو د ماهرینو دا فیصله ده چې : (که څوک خر ته انسان اووائی نو په دې باندې دومره تعجب نهٔ دې لکه څومره چې جهینګې ته په مهی وئیلو باندې پکار دې، څکه چې دحیوان په تقسیم اولی کښې دوه قسمه دی، یو هغه چې د ملا تیر په کښې وی او بل هغه چې د ملا تیر په کښې نه وی، کوم کښې چې د ملا تیر نه وی نو دا قسم په چینجو کښې داخل دې، لهذا جهینګا په اولنی تقسیم کښې د مهی د جنس نه خارجیږی او د چینجو په جنس کښې داخلیږی، په خلاف د خر چې هغه په اولنی تقسیم کښې د انسان سره شریک دې.

**د نظر او عقل بدیهی فیصله** : د ماهرینو د فن ددې اجماعی فیصلې نه علاوه دبداهت عقل او نظر همدا فیصله ده :

(د جهینګې د مهی سره چرته د لرې تعلق هم نشته، څکه چې د اتحاد د جنس د پاره په اعضاء ظاهره او باطنه کښې تشابه او په خواصو او په آثارو کښې اتحاد ضروری دې، که چا ته د کل اعضاء او خواصو په تشابه او د اتحاد په قول کښې اشکال وی نو کم نه کم په اکثرو اعضاء او خواصو کښې دتشابه او د اتحاد د لزوم نه د انکار کولو زړه د متعنت نه علاوه بل څوک نهٔ شی کولې، په جهینګا او مهی کښې په هیڅ یو اندام کښې او په هیڅ یو خاصیت کښې هم تشابه او

اتحاد نشته ،د جهينګې د مار په شان پته غورځول او د دې د لرې د څټ په ګډئ باندې کيدل هم د مهی په هيڅ يوه نوعه کښې نۀ شی موندلې۔
په دنيا کښې ددې هيڅ يو مثال هم نشی وړاندې کيدلې، چې ديو جنس د انواعو دې نۀ په خپلو کښې په څه اندام کښې تشابه وی او نۀ دې په څه خاصيت کښې اتحاد وی۔
د جنس د اتحاد د ذکر کړې شوی معيار تجربه داسې کيدې شی : (چې يو سړې د يوجنس لکه د بکرئ، غوا، اوښ، خر، اس، پيشو، سپی، وغيره يو فرد يا د هغې تصوير اووينی،د هغې نه پس د دغه جنس کښې د يوې نوعې هم يو فرد يا د هغه تصوير مخې ته راشی نو سمدستی ئې اوپيژنی چې دا هم هغه جنس دې۔
ليکن مهی ته کتونکې سړې چې جهينګا اووينی نو هغه چيرې هم دا باور نۀ شی کولې چې دا هم هغه جنس دې۔
همدغه شان په عامو خبرو کښې هم د مطلق (مهی)اطلاق په جهينګې باندې نه کيږی، تر څو پورې چې دې سره د (جهينګا) قيد ونۀ لګولې شی، صرف د لفظ جهينګې له مخې نۀ مفهوميږی، مثلا چا ته دې د مهی د راوړلو اووئيل او هغه جهينګا راوړو نو دا به خلاف امر ګڼلې کيږی۔
ددې نه دا خبره معلومه شوه چې په عرف کښې د مهی او د جهينګې ترمينځه عموم او خصوص نشته دې بلکه د دې ترمينځه تباين او تقابل دې،لهذا په منجد کښې دی کوم ځائې کښې چې د مهيانو د انواعو تصويران ورکړې شوې دی،په هغې کښې د جهينګې تصوير نشته دې،او په بل ځائې کښې ئې صراحتاً هغې ته د سرطانِ بحری يوقسم وئيلې دی۔

**ونصه: اربيان وروبيان جنس سرطان بحری من القشريات العشارية الاقدام ويعرف(بالقريدس)فيه اصناف عديدة للذيذة الطعم (المنجد ص۸) ، برغوث البحر نوع من القشريات العشارية الاقدام تشبه هيئة البرغوث وتسميه العامة(القريدس) (المنجد ص۳۳)**

په کتابونو د لغت کښې جهينګې ته سمک يا ماهی يا مهې وئيل يا په عامو خبرو اترو کښې دې سره د مهی لفظ لګول څه دليل نۀ دې۔
لهذا سقنقور ته (ريګ ماهی) وئيلې شی،او حال دا چې دا د وچې ځناور دې۔
او انسان سره مشابه سمندری ځناور ته (انسان ماهی) وئيلې شی،حال دا چې هغه انسان نۀ دې، همدغه شان ((بن مانس (يعنی د بيزو يو غټ قسم چې دې))د هغې معنی ده (ځنګلی انسان) حال دا چې په هغې باندې انسانی احکام نۀ جاری کيږی۔
همدغه شان جهينګې ته په جهينګه مهی وئيلو سره دا چينجې واقعتا مهی نۀ جوړيږی،او بيا بالخصوص دا چې هر سمندری ځناور باندې بيا د سمک او د ماهی اطلاق هم کيږی۔ کما سياتی۔

**وجه د اشتباه**: جهینګې ته د مهی د نوم ورکولو د غلط فهمئ دوه سببه دی:

۱- لفظ د سمک او د ماهی هر سمندری ځناور ته وئیلې شی، ددې وجې نه جهینګې ته هم سمک او ماهی اووئیلې شو.

قال العلامة ابوزکریا النووی رحمه الله: ان الصحیح ان اسم السمک یقع علی جمیعها (المجموع ص۳۲ ج۹)

وقال العلامة شمس الدین الشهیر بالشافعی الصغیر رحمه الله تحت قوله (السمک منه حلال کیف مات و کذا غیره فی الاصح) مما لم یکن علی صورة السمک المشهور فلاینافی تصحیح الروضة ان جمیع ما فیه یسمی سمکا. (نهایة المحتاج ص۱۳۲ ج۸)

وقال ایضا: و اسم السمک یقع علی کل حیوان البحر حیث کان لا یعیش الا فیه و اذا خرج منه صار عیشه عیش مذبوح وان لم یکن علی صورته المشهورة. (نهایة المحتاج ص۱۰۶ ج۸)

وقال العلامة ابو الضیاء نور الدین القاهری رحمه الله تحت (قوله سرطان) بل هو مما یسمی سمکا لانطباق تعریف السمک السابق علیه فهو طاهر یحل الانتفاع به فی الاودیة وغیرها (نهایة المحتاج ص۱۳۳ ج۸)

وفی المنجد: السمک الحیوان من خلق الماء ای المخلوق فیه (المنجد ص۳۵۱)

همدغه شان (ماهی) ماه په معنی د ماء اړخ ته منسوب دې، یعنی د اوبو مخلوق، ددې وجې نه دا د اوبو هر یو مخلوق ته شامل دې.

وفی لسان العرب: واصل الماء ماه والواحدة ماهة وماءة. (لسان العرب ص۵۳۳ ج۱۳)

وفیه ایضا: والنسبة الی الماء مائی وماوی فی قول من یقول عطاوی وفی التهذیب: والنسبة الی الماء ماهی (حواله بالا)

وفیه ایضا: وهمزة ماء مقلبة عن هاء بدلالة ضروب تصاریفه علی ما اذکره الآن من جمعه وتصغیره فان تصغیره مویه وجمع الماء امواه ومیاه وحکی ابن جنی فی جمعه امواء (حواله بالا)

وفی المنجد: الماء: هو المائع المعروف (اصله موه) وتصغیره مویه والنسبة الیه مائی وماوی وماهی، ج میاه وامواه. (المنجد ص۷۸۰)

۲- په مذاهب ثلاثه کښې د نورو سمندری ځناورو په شان جهینګا هم حلاله ده، او د دې د ځینی خواصو له کبله دا چینجې هغوی ته ډیر مرغوب دې، د دې وجې نه د مذاهب ثلاثه متبعین او د هغوی نه علاوه غیر مسلمین هم په کثرت سره دا خوری.

غرض د خبرې دا چې په دې باندې د سمک او د ماهی د اطلاق، د مذاهب ثلاثه د متبعینو او د

غیرمسلمو د بې دریغه حملې کولو، او بې د څه شک شبهې نه د دې په خوړلو باندې د تعامل کولو د وجې نه بعضې احنافو ته د دې مهی کیدلو اشتباه وشوه.

لکه څنګه چې د احرام د پرانستلو دپاره د نورو مذاهبو خلقو ته د کتلو د وجې نه د احنافو عوام هم صرف د دوو دریو ویښتو په پرې کولو باندې اکتفاء کوی. همدغه شان په بازار کښې د بکری د هګئ ورتیدلو او د خوړلو تعامل ته په کتلو باندې عوام دا حلال ګڼی.

همدا حال د جهینګې هم دې، البته دومره فرق دې چې په دې باندې د سمک او د ماهی د اطلاق له کبله بعضې اهل علمو ته هم په دې کښې اشتباه وشوه، بیا د هغوی نه نقل درنقل دا سلسله راروانه شوه، چا صرف په نقل باندې د اعتماد په ځائ د جهینګې صورت ته وکتل او دا فیصله ئې وکړه، نو دې ته ئې دود یعنی چینجې اووئیلو.

## د رالیګلې شوی لیک تجزیه :-

**قوله** : د آنجناب فتوی جاری شوې ده چې د جهینګې مهی خوړل مکروه تحریمی دی، لیکن دقرآنی آیتونو، احادیثو، د صحابهٔ کرامو ﷺ د آثارو، د امت د تعامل، د آئمهٔ اربعه او د متقدمینو ومتاخرینو علماء کرامو نه د چا نه هم د دې په حرمت یا په کراهت باندې څه دلیل نهٔ دې لیکلې شوې.

**اقول**: د مدارِ حکم توضیح کافی ده، ددې وجې نه ما په دې باندې اکتفاء کړې ده، وړاندې د سمندری ځناورو په حکم کښې د څلورو واړو امامانو د اختلاف او د هغوی د مذهبونو د کتابونو په دلائلو کښې لیکلې شوې دی او دا د اهل علمو نه پټه نهٔ ده. سره ددې که دمحرر په خیال کښې د تحریر د دلائلو ضرورت وی نو هغه په خپله د دې استدراک په دې سوال کښې کړې دې، د سوال په تحریر کښې ټول دلائل راغلې دی، بعضې صراحتاً او بعضې التزاماً.

د فتاوی حمادیې د زمانې نه واخله د حضرت حکیم الامت قدس سره پورې د دومره اوږدې زمانې علماؤ مختلف اقوال په سوال کښې درج دی، په دې کښې د (تعامل د امت او د متقدمینو او د متاخرینو علماؤ) بیان صراحتاً راغئ، بیا په دې ټولو اقوالو کښې چې کوم مدار د حکم لیکلې شوې دې، د هغې لاندې التزاماً د ائمهٔ اربعه رحمهم الله او د هغوی ټول دلائل د قرآن، حدیث او د صحابهٔ کرامو ﷺ د آثارو نه راغلل.

**قوله**: صرف د ماهرینو رائې د احنافو په نیزد معتبره نهٔ ده لکه څنګه چې د وختونو په پیژندلو کښې د ماهرینو قول معتبر نهٔ دې.

**اقول**: پیژندل د وختونو د مشاهدې نه کیدلې شی، د دې وجې نه بې د مشاهدې نه صرف د ماهرینو د فلکیاتو رائې معتبره نهٔ ده، د کوم امر تحقیق چې د ماهر فن په رائې باندې موقوف وی هلته شریعت د ماهر فن د اتباع حکم کړې دې، لکه بکارت، تداوی بالمحرم، د اوبو د ضرر د وجې

نه د تیمم جواز، په حالت د مرض کښې ترک د صوم، ونظائرها کثیرة مشهورة وفی کتب المذاهب مزبورة مسطورة وعمن اوتی مسکة من العلم غیر مستورة.

د دې کلیې د لاندې چې د کوم یو حیوان په یو جنس کښې دخول یا عدم د دخول بدیهی وی په هغې کښې د ماهرینو د فن رائې معتبره نهٔ ده، لیکن چرته چې حالت مشتبه وي هلته د ماهرینود حیواناتو په رائې باندې د عمل نه علاوه بله لاره نشته.

د فقهې په کتابونو کښې په مسائلو د حیواناتو کښې د ماهرینو د رائې مطابق د فیصلې کولو نصوص موجود دی.

پورته (د بداهت د نظر او د عقل فیصله) د لاندې د لاندینی تفصیل مطابق د جهینګې د مهی په جنس کښې عدم دخول بدیهی دې، د دې وجې نه په دې کښې د ماهرینو د فن اړخ ته رجوع ضرورت نهٔ وو، خو سره ددې مونږ د هغوی رائې تبرعاً و لیکله.

که بالفرض ماهرینو جهینګې ته مهې وئیلې وې نو دهغوی رائې به د عقل او د نظر د بداهت د خلاف کیدلو د وجې نه مردوده وه.

**قوله**: د ټولو نه لوئې دلیل په دې وخت کښې د امت د تعامل دې کوم چې د حرمت خلاف دې.

**اقول**: ۱- د دې تعامل حقیقت او وجه د (وجې د اشتباه) دلاندې تیره شوه.

۲ - په خپله په رالیګلې شوی تحریر کښې د مختلف دور دعلماؤ مختلف اقوال ذکر کړې شوې دی، نو په دې باندې تعامل د امت څنګه وشو؟

۳ - د امت نه د محرر د ماحول امت مراد کیدې شی اوکه نه نو ډیر لوئې امت داسې دې چې هغوی په هیڅ صورت کښې هم د جهینګې مهی منلو ته تیار نهٔ دی، بلکه دا داسې یو کریه المنظر چنیجې ګڼی چې د دې د تصور نه په هغوی باندې غشیان طاری شی، د دې وجې نه سلیم الطبع خلق دا په حکم قرآنی (ویحرم علیهم الخبائث) کښې داخل ګڼی۔ والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۱۹ ربیع الاول ۱٤۰۵ هجری

## د ملا چرګک ((هُدهُد)) حکم

**سوال**:- آیا د ملا چرګک خوړل حلال دی او که حرام؟ په عالمګیریه او طحطاوی کښې ئې حلال لیکلی دی، او په شامیه کښې ئې مکروه لیکلې دی، په هندیه کښې دی: اکل الخطاف والصلصل والهدهد لاباس به لانها لیست من الطیور التی هی ذوات مخلب کذا فی الظهیریة. (عالمګیریة ص۲۹۰ ج۵)

په حاشیة الطحطاوی کښې دی: و یوکل القمری والسوادنیٰ والزرزور والصلصل والهدهد والبوم والطاؤوس. (طحطاوی علی الدر ص۱۰۰ ج۴)

او علامه شامی رحمه الله فرمائی: قال فی غرر الافکار: عندنا یؤکل الخطاف والبوم ویکره الصرد والهدهد. (ردالمحتار ص۳۰۶ ج۱) ، عن ابن عباس رضی الله عنهما نهی رسول ﷺ عن قتل اربع من الدواب النملة النحلة والهدهد والصرد رواه ابوداود والدارمی.

د دې حدیث د لاندې ملا علی قاری رحمه الله لیکی:

قال الخطابی انما جاء النهی فی قتل النملة عن نوع خاص منه وهو الکبار ذوات الارجل الکبار لانه قلیلة الاذی والضرر واما النحلة فلما فیها من المنفعة وهو العسل والشمع واما الهدهد والصرد فلتحریم لحمهما لان الحیوان اذا نهی عن قتله ولم یکن لاحترامه والضرر فیه کان لتحریم لحمه الا تری انه نهی عن قتل الحیوان لغیر ماکله ویقال ان الهدهد منتن الریح فصار فی معنی الجلالة. (المرقاة ص ۱۴۹ ج ۸)

ملا علی قاری رحمه الله د دې حدیث نه د ملاچرګک په حرمت باندې استدلال کړې دې، حلت، حرمت، او کراهت کوم یو قول راجح دې او وجه دترجیح ئې څه ده؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د حاشیة الطحطاوی او د عالمګیریه عبارتونه په حلت د ملاچرګک باندې صریح دی، همدې ته به ترجیح وی.

د ملا علی قاری رحمه الله د دې حدیث نه استدلال کول محل د اشکال دې، ځکه چې د ملاچرګک د قتل نه د نهی علت احترام هم کیدې شی، او د فقهی نصوصو په موجودګئ کښې همدا د قیاس موافق دې، ددې د احترام وجه دا ده چې الله تعالی دا د حضرت سلیمان علیه السلام د خدمت د پاره غوره کړو، او دې د یو قوم د ایمان راوړلو سبب وګرځیدلو، د دې وجې نه په ټولو مارغانو کښې دۀ ته یو ځانګړې حیثیت حاصل دې ، بله دا چې ملا علی قاری رحمه الله قول د حلت هم ذکر کړې دې، و نصه:

وقیل یحل اکله لانه یحکی عن الشافعی رحمه الله وجوب الفدیة فیه وعنده لا یفتدی الا الماکول. (المرقاة ص۱۵۱ ج۸)

علامه ابن عابدین رحمه الله چې د غرر الافکار نه کوم کراهت نقل کړې دې، هغه هم ددې احترام له کبله په کراهت تنزیهیه باندې محمول کیدلې شی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۰ رجب ۱۴۰۰ هجری

## زیز ((یوقسم چینجې)) حرام دې

**سوال**:- یو وړوکې شان ځناور دې د کوم نوم چې په منجد کښې زیز لیکلې شوې دې، دا د سپرلې په آخره کښې پیدا کیږی، او تقریبا دوه هفتې پس مړ شی، په وونو باندې اوسیږی او تیز آواز اوباسی، ددې د غذا په حقله معلومه نده چې څه شی دی آیا دا حلال دې او که نه؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په لغت کښې د زیز او د جراد (یعنی ملخ) د تعریف او د جراد د قسمونو د کتلو نه دا خبره معلومیږی چې زیز د جراد نه د یو جدا جنس چینجې دې، لهذا دا حلال نۀ دې؟

په زيز او جراد كښې په لاندينو امورو كښې فرق دې:

١ - جراد د مستقيمة الاجنحه (يعنى د پوره وزرو) د قبيلې نه دې او زيز د نصفية الاجنحه د قبيلې نه دې.

٢ - زيز د تيز آواز ويستونكو حشراتو نه دې او جراد داسې نهٔ دې.

٣ - زيز د هغه حشراتو نه دې چې د هګو نه د ماشى يا د چينجې په شكل كښې راوځى، او د دې نه پس دا بيا خپل اصل شكل اختياروى، او جراد په خپل اصلى شكل كښې د هګئ نه راوځى، په جديدو تحقيقاتو كښې د دې تصريح موجوده ده.

۴ - زيز د بوټو عرق يعنى رس څښى او جراد د بوټو پاڼې خورى.

قال فى المنجد: جرادة ج جراد(ح): دويبة من مستقيمات الاجنحة انواعها عديدة تختلف باختلاف الشكل منها ما يكثر ويغزو المزروعات والاشجار بحيث لا يبقى على شىء (المنجد ص٨٦)

وقال فى الافصاح: الجراد و انواعه الجراد: معروف وجنس حشرات مضرة من فصيلة الجراديات و رتبة مستقيمات الاجنحة، واحدته: جرادة، تقع على الذكر والانثى، سمى بذلك لانه يجرد الارض و ياكل ما عليها، جرد الجراد الارض يجردها جردا: اكل ما عليها من النبات، و جرد الزرع: اصابه الجراد فهو زرع مجرود و ارض مجرودة وجردة كذلك وقيل: ارض مجرودة: كثيرة الجراد.

العُنظاب: العُنظاب، والعُنظُب والعُنظوب، والعُنظبان: الجراد الضخم، او الذكر الاصغر من الجراد.

الجُندُب: الجُندُب والجِندَب: ذكر الجراد، وقيل: مثل الصغير من الجراد، وقيل: نوع من الجراد يصر (يصوت) ويقفز ويطير، الجمع: جنادب، الجُخدُب: الجُخدُب والجخادب: الذكر من الجراد، العُنظُوانة: الانثى من الجراد

العَرادة: الجرادة الانثى-

الدِبأساءة: الانثى من الجراد والجمع: الدبأساء.

السِلقة: الجرادة التى القت بيضها.

البُصاق: لعاب الجراد.

الجَرْدَم: جراد اخضر الرؤس سود

القمل: قيل صغار الجراد: وقيل: شىء صغير له جناح احمر. (الافصاح ص٨٨٦ ج٢)

وقال فى المنجد: زيز: ا ـ الزيز ج زيزان (ح): حشرة من فصيلة الزيزيات و تبة نصفيات الاجنحة، راسها كبير و اجنحتها طويلة، تحط على جذول الشجر و تسمع صوتا صرصريا كانها تقول (زيز) فسميت به (المنجد ص٣٣)

وقال ایضا: (مستقیمات الاجنحة (ح) حشرات یتقارب جناحاها عند الاستحراحة.منها انواع کثیرة لها قوائم قویة تساعدها علی القفز مثل الجراد

(نصفیة الاجنحة) (ح) حشرات من ذوات الاربعة اجنحة تتدرج من البیضة الی المعوضة قبل ان تصل الی شکلها النهائی تعیش من نسغ النباتات الجناحیة (المنجد ص۱۰۳) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۰ رجب ۱٤۰۰ هجری

## د شیعه، قادیانی وغیره زندیقانو ذبیحه حرامه ده

**سوال**: شیعه،آغاخانی،او د قادیانی وغیره گمراهو فرقو د ذبیحو څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: شیعه، قادیانی،آغاخانی،ذکری،پرویزی،انجمن دینداران او ددې قسمه چې نورې کومې فرقې دی کوم چې د کافر کیدلو باوجود ځان ته مسلمانان وائی،په اسلام کښې په تحریف کولو سره خپل کفری عقائد په توگه د اسلام ظاهروی،او ددې اشاعت کوی، دا ټول زندیقان دی، د دوئ ذبیحه حرامه ده.

ددې زندیقانو د احکامو تفصیل کتاب الایمان والعقائد او باب البغاة کښې دې، او زیات تفصیل ئې بیا په کتاب الحظر والاباحة کښې دې.والله هو الهادی الی سبیل الرشاد.

غرة ذی الحجه ۱٤۱٤ هجری

## که په وخت د ذبحې که بسم الله وئیل ترې نه هیر شو نو ذبیحه ئې حلاله ده

**سوال**:- که د ذبحې په وخت کښې ئې بسم الله هیره شوه نو دا ځناور به حلال وی او که نه؟ که چیرې په مینځ کښې یا په آخره کښې ئې رایاد شی نو بیا بسم الله وئیل ضروری دی او که نه؟ بینواتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرې بسم الله ترې نه هیره شوه نو بیا ئې هم ذبیحه حلاله ده،که د رگونو د پرې کولو نه وړاندې ورته رایاد شو نه بسم الله وئیل ضروری دی،که ددې نه وروستو ورته رایاد شو نه ضروری نهٔ دی.

قال فی التنویر وشرحه: وتارك تسمية عمدا خلافا للشافعی رحمه الله علیه فان ترکها ناسیا حل خلافا لمالك رحمه الله علیه.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله علیه (قوله خلافا لمالك کذا فی اکثر کتبنا الا ان المذکور فی مشاهیر کتب مذهبه انه یسمی عند الارسال وعند الذبح فان ترکها عامدا لا یؤکل علی المشهور وناسیا یؤکل غرر الافکار. (ردالمحتار ص۲۱۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۲ جمادی الثانیة ۱۳۸۹ هجری

## آس مکروه تحریمی دې

**سوال**:- آس حلال دې او که حرام؟بعضې ورته مکروه وائی،د مکروه کیدلو په صورت کښې به دا مکروه تحریمی وی او که مکروه تنزیهی به وی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د مفتی به قوله په بنیاد سره آس مکروه تحریمی دې.

قال فی التنویر وشرحه: ولا یحل ذوناب یصید بنابه فخرج نحو البعیر او مخلب یصید بمخلبه ای ظفره فخرج نحو الحمامة من سبع بیان لذی ناب والسبع کل مختطف منتهب جارح قاتل عادة او طیر بیان لذی مخلب ولا الحشرات هی صغار دواب الارض واحدها حشرة والحمر الاهلیة بخلاف الوحشیة فانها ولبنها حلال والبغل الذی امه حمارة فلو امه بقرة اکل اتفاقا و لو فرسا فکامه والخیل و عندهما والشافعی رحمهم الله تحل وقیل ان ابا حنیفة رحمه الله رجع عن حرمته قبل موته بثلاثة ایام وعلیه الفتوی عمادیة ولا باس بلبنها علی الاوجه.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله و علیه الفتوی)فهو مکروه کراهة تنزیه و هو ظاهر الروایة کما کفایة البیهقی و هو الصحیح علی ما ذکره فخر الاسلام و غیره قهستانی ثم نقل تصحیح کراهة التحریم عن الخلاصة والهدایة و المحیط و المغنی وقاضیخان و العمادی و غیرهم و علیه المتون و افاد ابو السعود انه علی الاول لا خلاف بین الامام و صاحبیه رحمهم الله لانهما و ان قالا بالحل لکن مع کراهة التنزیه کما صرح به فی الشرنبلالیة عن البرهان قال ط والخلاف فی خیل البر اما خیل البحر فلا تؤکل اتفاقا (رد المحتار ص۲۳ ج۵)

والله سبحانه وتعالی اعلم      ۱۷ جمادی الثانیة ۱۳۸۹ هجری

## د اسپې او د ځنګلی خر د یو ځائ کیدو نه چې کوم بچې پیدا شو هغه مکروه تحریمی دې

**سوال**:- که چیرې اسپې د ځنګلی خر نه خر راوړلو نو د هغه غوښه حلاله ده او که حرامه؟ په ځنګلی او د کور په خر کښې څه فرق دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په حیواناتو کښې بچې د مور تابع وی،لهذا دا بچې د اسپې په حکم کښې د کیدلو د وجې نه به مکروه تحریمی وی.

ځنګلی خر کوم ته چه حمارِ وحش او ګورخر وائی دا حلال دې،دا خر په دې ملک کښې نهٔ وی.

والله سبحانه وتعالی اعلم.      ۲ ذی الحجه ۱۳۹۸ هجری

## د ذبح کولو طریقه

**سوال**- څناور څنګه ذبحه کول پکار دی ؟بینواتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د ذبحه کولو طریقه دا ده چې قبلې ته یې ورله مخ کړې شی او سم دې څملولې شی او تیرۀ چاړۀ دې په لاس کښې واخستې شی او بسم الله، الله اکبر دې اووئیلې شی او دا چاړۀ دې ورله په مرئ باندې راښکلې شی، تر دې پورې دې پرې چاړۀ راکاږی چې څلور رګونه ئې پرې شی، یو ګرګرو (حلقوم) چې څناور پرې سا اخلی،دویم هغه رګ په کوم باندې چې خوراک څښاک دننه ځی،او دوه نور رګونه کوم چې دګرګرو (حلقوم) نه ښی او ګس اړخ ته وی،که په دې څلور رګونو کښې درې رګونه پرې شی نو بیا هم ذبح صحیح ده،او ددې خوراک بیا حلال دی.البته که دوه رګونه ئې پرې شو نو بیا دا څناور مردار دې،ددې خوړل روا نۀ دی.

قال فی التنویر وشرحه:وعروقه الحلقوم والمرئ والودجان وحل بقطع ای ثلاث منها.

وقال ایضا:وندب احداد شفرته قبل الاضجاع (ردالمحتار ص۲۰۶ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۳ شوال ۱۳۹٤ هجری

## قنفذ (شکوڼ) حرام دې

**سوال**- قُنفُذ یعنی شکوڼ د کوم په جسم چې اوږده اوږده غشی وی دا حلال دې او که حرام؟په حقیقت کښې په ده کښې د حرام والی هغه شرطونه نشته کوم چې د فقهې په کتابونو کښې ذکر کړې شوې دی.بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : سیه یعنی شکوڼ د خبائثو نه دې ددې وجې نه دا حرام دې،ستاسو په خیال کښې دحرمت هغه یو علت دې کوم چې په نولی وغیره کښې موندې شی لیکن په شکوڼ کښې نۀ شی موندلې. والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۵ رجب ۱۳۹٦ هجری

## په وخت د ذبحې کښې بسم الله په عربئ کښې وئیل ضروری نۀ دی

**سوال**- آیا په وخت د ذبحې کښې بسم الله په عربئ کښې وئیل ضروری دی یا په بله ژبه کښې ئې هم وئیلې شې؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : بسم الله عربئ کښې وئیل ضروری نۀ دی.لان الفقهاء رحمهم الله لم یشترطوا العربیة ولو کان لذکروه

قال فی الخانیة:رجل ضحی وذبح وقال بسم الله بنام خدای وبنام محمد ﷺ قال الشیخ الامام ابوبکر محمد بن الفضل رحمه الله ان اراد الرجل بذکر اسم النبی ﷺ تبجیله وتعظیمه جاز ولا باس به وان اراد به الشرکة مع الله تعالی لاتحل الذبیحة. (خانیة بهامش الهندیة ص۳۰۰ ج۳)

قلت لما افادات شرکة الغیر بغیر العربیة التحریم فتعتبر التسمیة ایضا بغیر العربیة. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۳ جمادی الثانیة ۱۳۹۷ هجری

## په څارووکښې اووه څیزونه حرام دی

**سوال**:- په حلال څاروی کښې څو څیزونه حرام دی، او هغه کوم کوم څیزونه دی؟ او کوم کوم څیزونه مکروه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اووه څیزونه په کښې حرام دی: ۱- روانه وینه ده ۲- د مذکر د متیازو ځائ ۳- خصیتین ۴- د مونث د متیازو ځائ ۵- غدود ۶- مثانه ۷- تریخې.

قال فی الهندیة: واما بیان ما یحرم اکله من اجزاء الحیوان سبعة الدم المسفوح والذکر والانثیان والقبل والغدة والمثانة والمرارة کذا فی البدائع. (عالمگیریة ص۲۹۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۷ ربیع الاول ۱۳۹۸ هجری

## د ذبیحې او د ذابح دواړو قبلې ته مخ کیدل سنت مؤکده دی

**سوال**:- په وخت د ذبحې د څاروی کښې قبلې اړخ ته مخ کول مستحب دی او که سنت موکده؟ بله دا چې د ذابح د پاره څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ذبیحې له د قبلې اړخ ته مخ کول او د ذابح په خپله هم قبلې اړخ ته مخ کول دواړه کارونه سنت مؤکد دی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: وکره ترک التوجه الی القبلة لمخالفة السنة.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله لمخالفة السنة) ای المؤکدة لانه توارثه الناس فیکره ترکه بلا عذر اتقانی (ردالمحتار ص۱۸۸ ج۵)

وقال العلامة الطوری رحمه الله تعالی: ویکره ان یذبحها موجهة لغیر القبلة لمخالفة السنة فی توجیهها للقبلة وتوکل. (تکملة البحر ص۱۷۰ ج۸)

وقال فی الهندیة: والسنة فی الشاة والبقر ان یذبح کل منهما مضجعا لانه امکن لقطع العروق ویستقبل القبلة فی الجمیع کذا فی الجوهرة النیرة. (عالمگیریة ص۲۸۷ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۰ جمادی الثانیة ۱۳۹۷ هجری

## په وخت د ذبحه کښې ئې که ټول ځټ پریک شو نو د هغې حکم

**سوال:**- که په وخت د ذبحې کښې د چرګ ځټ پرې شی نو څه حکم ئې دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قصداً داسې کول مکروه دی، او بې د قصد نه که داسې وشی نو په دې کښې څه کراهت نشته دې، او غوښه ئې په هر صورت کښې مکروهه نۀ ده۔ واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم۔

۲۷ ربیع الاول ۱۳۹۸ هجری

## د کافر د دکان نه د غوښې اخستلو حکم

**سوال:**- په عوامو کښې مشهوره ده چې د غوښې نه علاوه هر څیز چې تر څو پورې درته هغه ناپاکه نۀ وی ثابت شوې نو هغه پاک دی، د غوښې په حقله چې تر څو پورې دا تحقیق ونۀ شی چې ذبیحه چا مسلمان په اسلامی طریقې سره ذبحه کړې ده او د ذبحه کیدلو نه تر خرڅولو پورې څوک مسلمان ددې نګهبان پاتې شوې دې نو دا به ناپاکه ګڼلې کیږی، په بعضې ځایونو کښې دا رواج دې چې د هندوانو یو قوم د چیلو (وزو) د غوښې کاروبار کوی، دغه خلق چیلئ (وزې) په مسلمانانو باندې ذبحه کوی، او د ذبحه کولو له وخت نه د خرڅولو تر وخته پورې یو مسلمان مستقل په دکان باندې موجود وی، آیا شرعاً دا ضروری دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په غوښه کښې اصل حرمت دې، د دې حلت په بعضو شرطونو باندې موقوف دې، ددې وجې نه د ذبحې د وخت نه واخله د خرڅولو تر وخته پورې د چا مسلمان نګرانی ضروری ده۔

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله علیه: وفی التتارخانیة قبیل الاضحیة عن جامع الجوامع لابی یوسف رحمه الله علیه من اشتری لحما فعلم انه مجوسی واراد الرد فقال ذبحه مسلم یکره اکله اهـ ومفاده ان مجرد کون البائع مجوسیا یثبت الحرمة فانه بعد اخباره بالحل بقوله ذبحه مسلم کره اکله فکیف بدونه تامل (ردالمحتار ص ۲۱۹ ج ۵) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم۔

۲۳ شعبان ۱۳۹۸ هجری

## د ښځې ذبیحه حلاله ده

**سوال:**- د ښځې ذبیحه حلاله ده او که نه؟ څه کراهت خو په کښې نشته دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بې د کراهته حلاله ده۔ واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم۔

۲۳ شوال ۱۳۹۸ هجری

## د داسې چرګې حکم کومې باندې چې حرامه غوښه خوړلې شوې وی

**سوال**:- د مردارو ځناورو غوښه په تپ (حرارت) باندې پخه کړې شی او د مشینونو په ذریعه میده کړې شی او بیا وچه کړې شی او میده پوډر ترې نه جوړ کړې شی، او دا بیا د چرګو په خوراک کښې استعمالولې شی، کله کله په دې غوښه کښې د سپې غوښه هم وی، آیا د دې چرګو غوښه خوړل حلال دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د داسې چرګې غوښه حلاله ده، که په خوراک کښې ئې غالب حرام وی نو ښه خبره دا ده چې داسې چرګه دې درې ورځو پورې بنده کړې شی، او حلاله غذا دې پرې وخوړلې شی، او بیا دې ذبحه کړې شی، البته که دحرامې غذا او د نجاست د خوړلو د وجې نه د چرګې په غوښه کښې بدبوئې پیدا شوې وی، نو دا دومره مودې پورې بندول پکار دی او خوراک ورکول پکار دی چې د دې دا بدبو زائله شی، که د بدبویئ د زائله کولو نه وړاندې ذبحه کړې شوه نو ددې غوښه به بیا حلاله نهٔ وی۔ واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم۔ ۲۳ شوال ۱۳۹۸ هجری

## د ټپوس وغیره ویشتل

**سوال**: حرام ځناورلکه ټپوس وغیره په ټوپک سره شوقیه ویشتل روادی اوکه نه؟ بینواتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ټپوس او د کارغهٔ په شان دضررناکو ځناورو ویشتل دثواب کار دې، او که په نیت د جهاد د نښې د ویشتو د مشق په غرض ئې ولی نو بیا خو نور هم دثواب کار دې، لیکن د ویشتو نه پس ئې په ټوپونو وهلو کښې پریښودل روا نهٔ دی، داسې طریقه دې اختیار کړې شی چې زر تر زره ترې نه سا وځی.

عن عائشة رضی اللہ عنہا ان النبی ﷺ قال: خمس فواسق یقتلن فی الحرم الفارة والعقرب والحدیا والغراب والکلب العقور. (صحیح البخاری ص۲۴۷ ج۱) واللہ سبحانہ وتعالیٰ اعلم ۸ ذی القعده ۱۳۹۸ هجری

## د مذبوح ځناور د خیټې نه د راوتونکی بچی حکم

**سوال**:- د مذبوح ځناور د خیټې نه مړ بچې راو وتلو، نو آیا د هغې خوړل حلال دی او که حرام؟ د ذکاة الجنین ذکاة امه څه مطلب دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا حرام دې، د ذکاة الجنین ذکاة امه مطلب دادې چې د بچی د ذبحې هم هغه طریقه ده کومه طریقه ئې چې د مور د ذبحې ده.

قال فی شرح التنویر: وفی منظومة النسفی قوله ان الجنین مفرد بحکمه لم یتذك بذكاة امه لحذف المصنف ان وقالا ان تم خلقه اكل لقوله علیه الصلوة والسلام ذكاة الجنین ذكاة امه وحمله الامام علی التشبیه ای

كذا كاة امه بدليل انه روى بالنصب وليس في ذبح الام اضاعة الولد لعدم التيقن بموته (ردالمحتار ص ۲۱۳ ج ۵)

والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۱ ربيع الثانى ۱۳۹۹ هجرى

## بګلا (یعنی ډینګ) او شارک (یوقسم مارغه) حلال دی

**سوال:-** د بګلې دوه قسمه دی ،یو قسم خو ئې بالکل سپین دې او د دویم وزرې داسې خړېخونې غوندې وی، دا دواړه قسمونه چینذخ وغیره خوری، بعضې په کښې چرګې وخوری، البته د کارغهٔ په شان ئې د خوراک په وخت کښې نهٔ شلوی،صرف په مخوکه باندې ئې خوری،آیا دا حلال دې او که حرام ؟

د شارک هم دوه قسمه دی،د یو مخوکه سره وی او د دویم مخوکه زیړه وی،دا دواړه قسمه د چرګې په ګندګی وغیره کښې مخوکه وهی،آیا دا هم د چرګې په شان درې ورځو پورې بند کړې شی او که نه همداسې ښکار کړې شی نو خوراک ئې روا دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د بګلې او د شارک دواړه قسمه حلال دی،درې ورځو پورې د بندولو ضرورت یې نشته دې . **والله سبحانه وتعالى اعلم.** ۲۲ ذی الحجه ۱۳۹۹ هجری

## د حرام او د حلال ځناور د معلومولو اصول

**سوال:-** د حلال او دحرام ځناور د معلومولو څه اصول دی؟ برابره خبره ده که ځناور وی او که مارغهٔ وی۔بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : کوم ځناور چې ښکار کوی او هغه خوری یا د هغوی خوراک فقط نجاست وی هغه حرام دی،لکه زمرې، شرمخ، ګیدړ، پیشو، سپې، بیز، شکرې، باز، تپوس وغیره اوکوم چې داسې نهٔ وی هغه حلال دی،لکه طوطی،ښارو،کوړکوړه،مرغۍ،مړز،زانې، کونتره ، ځنګلی غوا،اوسۍ، بطخه ،سوه وغیره **والله سبحانه وتعالى اعلم** ۲۲ ذی الحجه ۱۳۹۹ هجری

## اومه (خامه) غوښه خوړل

**سوال:-** د حلال ځناور اومه غوښه خوړل حلاله ده او که مکروه ده ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ددې دحلت او دحرمت مدار په ضرر باندې دې،که چیرې اومه غوښه خوړل دصحت دپاره ضرری وی نو بیا حرامه ده او که ضرری نهٔ وی نو بیا حلاله ده،د ضرر او دعدم ضرر تحقیق دې له طبیب نه وکړې شی۔**والله سبحانه وتعالى اعلم.** ۱۰ محرم ۱۴۰۰ هجری

## د اهل کتابو ذبیحه

**سوال**:- ددې زمانې یهود او نصاری ځان ته اهلِ کتاب وائی،د دوی لوئې لوئې راهبان موجود دی،کوم چې د خپلو عوامو د تعلیم او تربیت په تکل کښې دی،دعبادت پاره ئې باقاعده گرجې جوړې کړې دی، په کومې کښې چې د هغوی عوام او خواص عبادت کوی،نکاح،جنازه او نور کارونه د خپل مذهب مطابق ادا کوی،دا څیزونه دوی ته د اهل کتاب وئیلو دپاره کافی دی،لهذا د دوی ذبیحه او د اهل کتابو د ملکونو نه راتلونکې غوښه حلالیدل پکار دی او که نه ؟

د دې زمانې د اهل کتابو په حقله په عامه توگه دا اشکالات ذکر کولې شی :

۱ - ددې زمانې اکثر اهل کتاب دهریان دی.

۲ - ځناور په اسلامی طریقې سره نهٔ حلالوی.

۳ - بسم الله نه وائی.

**جواب**: د اولنی اشکال جواب دا دې چې داسې خو په مسلمانانو کښې هم د داسې خلقو کمې نشته دې چې هغهٔ دهریان، زندیقان،او ملحدین دی،او کوم خلق چې شپه او ورځ کفریه کلمات وائی هغه بې حده او حسابه دی،ددې باوجود په اسلامی ملکونو کښې د بازار غوښې ته بې د څه شک او شبهې نه حلاله وئیلې شی،صرف په دې بنا چې دا د مسلمانانو ملک دې، تر څو پورې چې د یو ذابح په حقله د دهٔ د غیرمسلمه کیدلو څه قطعی دلیل نهٔ وی نو همدا به گڼلې کیږی چې دا چرته د یو صحیح العقیده مسلمان ذبیحه ده.

همدغه شان که د اهل کتابو په حقله دا ومنلې شی چې په دوی کښې اگرچه ډیر خلق دهریان شوې دی لیکن ټول خو داسې نهٔ دی،د تعمق او د علتونو د لټولو نه پس د حقیقت معلومولو کوشش کول څنگه چې په اسلامی ملکونو کښې روا نهٔ دی دغه شان داهل کتابو په ملکونو کښې هم روا نهٔ دی،ابهموا ما ابهم الله.

د دویم او ددریم اِشکال جواب همدا دې چې د مسلمانانو قصابانو په حقله ډیرې خبرې راروانې دی چې هغوی د ذبحې په وخت کښې کنځل کوی،او کیف ما اتفق چاړهٔ راکاږی یو ځناور په ترقیدو کښې پریږدی او د دویم په ذبح کولو باندې شروع وکړی،لیکن څو پورې چې د چا په حقله په غیر اسلامی طریقې سره د ذبحې کولو یا په قصد سره د تسمیې پریښودلو یقین نهٔ وی شوې نو د هغهٔ ذبیحې ته حلاله وئیلې شی.

د فقهې په کتابونو کښې تصریح موجوده ده،چې یو کتابی مذبوح ځناور راوړی نو د هغې خوړل حلال دی،او همدغه شان که یو اهل کتاب د مسلمان په وړاندې ذبحه وکړی او دې ترې نه تسمیه وانه وری نو بیا هم حلاله ده،البته که د مسلمان په وړاندې د ذبح کولو په وخت کښې د غیر

الله نوم واخستې شی یعنی مسلمان هغه په وخت د ذبحه کښې د غیر الله د نوم په وئیلو باندې واوریدلو نو دا ذبیحه حرامه ده.

قال فی التنویر: وشرط کون الذابح مسلما حلالا خارج الحرم ان کان صیدا او کتابیا ذمیا اوحربیا.

وقال الامام الحصکفی رحمه الله: الا اذا سمع منه عند الذبح ذکر المسیح. (ردالمحتار ص۲۰۸ ج۵)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: وفی التتارخانیة قبیل الاضحیة عن جامع الجوامع مع لابی یوسف رحمه الله من اشتری لحما فعلم ان مجوسی واراد الرد فقال ذبحه مسلم یکره اکله اهـ ومفاده ان مجرد کون البائع مجوسیا یثبت الحرمة فانه بعد اخباره بالحل بقوله ذبحه مسلم کره اکله فکیف بدونه تامل (ردالمحتار ص۲۱۹ ج۵)

وقال العلامة الطوری رحمه الله: قال فی العنایة الکتابی اذا اتی بالذبیحة مذبوحة اکلنا فلو ذبح بالحضور فلا بد من الشرط وهو ان لا یذکر غیر اسم الله (تکملة البحر ص۱۶۸ ج۸)

وقال ایضا: وفی شرح الطحاوی وذبیحة اهل الکتاب انما تؤکل اذا اتی بها مذبوحة وان ذبح بین یدیک فان سمی الله تعالی لاباس باکلها وکذا اذا لم یسمع منه شیء وان سمی باسم المسیح وسمعه منه فلا یؤکل (تکملة البحر ص۱۶۹ ج۸)

وقال الامام الکاسانی رحمه الله: ثم انما تؤکل ذبیحة الکتابی اذا لم یشهد ذبحه ولم یسمع منه شیء اوسمع وشهد منه تسمیة الله تعالی وحده لانه اذا لم یسمع منه شیئا یحمل علی انه قد سمی الله تبارک وتعالی وجرد التسمیة تحسینا للظن به کما بالمسلم ولو سمع منه ذکر اسم الله تعالی لکنه عنی بالله عزوجل المسیح علیه الصلوة والسلام قالوا تؤکل لانه اظهر تسمیة هی تسمیة المسلمین الا انه اذا نص فقال بسم الله الذی هو ثالث ثلاثة فلا تحل وقد روی عن سیدنا علی رضی الله عنه قد احل الله ذبائحهم وهو یعلم مایقولون فاما اذا سمع منه انه سمع المسیح لا تؤکل ذبیحته کذا روی سیدنا علی رضی الله عنه ولم یروعنه غیره خلافه فیکون اجماعا (بدائع الصنائع ص۴۶ ج۵)

ددې نه علاوه د امام شافعی رحمه الله په نیز باندې چې په کوم یو څناور باندې په قصد سره تسمیه پریښودلې شی هغه حلال دې، دې ته د خرق اجماع وئیلو څه حیثیت حاصل دې؟

پورته د ذکر کړې شوې تفصیل مطابق د اهل کتاب ملکونو نه راغوښتلې شوې غوښې کښې د خوراک ګنجائش پکار دې اګر چې احتیاط په کښې اولی دې.

تاسو نه دا طمع لرو چې دا لیک به په غور سره وګورئ او ددې اصلاح به اوفرمایئ، بینوا بیانا شافیا توجروا اجرا وافیا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** قال العلامة الالوسی رحمه الله: والحق عندی ان المسالة اجتهادیة وثبوت

الاجماع غير مسلم ولو كان ما خرقه الامام الشافعي رحمۃ اللہ علیہ واستدلاله على مدعاه على سمعت لا يخلو عن مقالة (روح المعاني ص١٠ ج٣)

وقال الامام النووي رحمۃ اللہ علیہ: (فرع) في مذاهب العلماء في التسمية على ذبح الاضحية وغيرها من الذبائح وعلى ارسال الكلب والسهم وغيرهما الى الصيد

مذهبنا انه سنة في جميع ذلك فان تركها سهوا او عمدا حلت الذبيحة ولا اثم عليه قال العبدري وروى هذا عن ابن عباس وابي هريرة وعطاء وقال ابو حنيفة التسمية شرط للاباحة مع الذكر دون النسيان وهذا مذهب جماهير العلماء وعن اصحاب مالك قولان (اصحهما) كمذهب ابي حنيفة (والثاني) كمذهبنا وعن احمد ثلاث روايات (الصحيحة) عندهم والمشهورة عنه ان التسمية شرط للاباحة فان تركها عمدا او سهوا في صيد فهو ميتة (والثانية) كمذهب ابي حنيفة (والثالثة) ان تركها على ارسال السهم ناسيا اكل وان تركها على الكلب والفهد لم يؤكل قال وان تركها في ذبيحة سهوا حلت وان تركها عمدا فعنه روايتان وقال ابن سيرين وابو ثور وداود لا تحل سواء تركها عمدا او سهوا هذا نقل العبدري وقال ابن المنذر عن الشعبي ونافع كمذهب ابن سيرين قال وممن اباح اكل ما تركت التسمية عليه ابن عباس وابو هريرة وسعيد بن المسيب وطاؤس وعطاء والحسن البصري والنخعي وعبد الرحمن بن ابي ليلى وجعفر بن محمد والحكم وربيعة ومالك والثوري واحمد واسحق وابو حنيفة رحمہم اللہ (المجموع ص٤١٠ ج٨)

وقال ايضا: (فرع) ذبيحة اهل الكتاب حلال سواء ذكروا اسم الله تعالى عليها ام لا لظاهر القران العزيز هذا مذهبنا ومذهب الجمهور وحكاه ابن المنذر عن علي والنخعي وحماد بن سليمان وابي حنيفة واحمد واسحق وغيرهم فان ذبحوا على صنم او غيره لم يحل قال ابن المنذر وقال عطاء اذا ذبح النصراني على اسم عيسى فكل قد علم الله انه سيقول ذلك وبه قال مجاهد ومكحول وقال ابو ثور اذا سموا الله تعالى فكل وان لم يسموه فلا تاكل وحكى مثله عن علي وابن عمر وعائشة قال ابن المنذر واختلفوا في ذبائحهم لكنائسهم فرخص فيه ابو الدرداء وابو امامة الباهلي والعرباض بن سارية والقاسم بن مخيمرة وحمزة بن حبيب وابو مسلم الخولاني وعمر بن الاسود ومكحول وجبير بن نفيل والليث بن سعد وكرهه ميمون بن مهران وحماد والنخعي ومالك والثوري والليث وابو حنيفة واسحق وجمهور العلماء ومذهبنا تحريمه وقد سبق ذلك في باب الاضحية وقالت عائشة لا ناكله

(فرع) ذكرنا ان مذهبنا تحريم ذكاة نصارى العرب بني تغلب وتنوخ وبهراء وبه قال علي بن ابي طالب و

عطاء و سعید بن جبیر و اباحها ابن عباس و النخعی و الشعبی و عطاء الخراسانی والزهری والحکم و حماد و ابو حنیفة واسحق بن راهویه وابو ثور دلیلنا ما ذکره المصنف.

(فرع) ذبائح اهل الکتاب فی دار الحرب حلال کذبائحهم فی دار الاسلام و هذا لاخلاف فیه ونقل ابن المنذر الاجماع علیه. (المجموع ص۸۰ ج۹)

وقال العلامة القرطبی رحمه الله: السادسة. واما ذبیحة نصاری بنی تغلب و ذبائح کل دخیل فی الیهودیة والنصرانیة. فکان علی رضی الله عنه ینهی عن ذبائح بنی تغلب لانهم عرب ویقولانهم لم یتمسکوا بشیء من النصرانیة الا بشرب الخمر و هو قول الشافعی و علی هذا فلیس ینهی عن ذبائح النصاری المحققین منهم و قال جمهور الامة ذبیحة کل نصرانی حلال سواء کان من بنی تغلب او غیرهم و کذلك الیهودی و احتج ابن عباس رضی الله عنهما بقول تعالی (ومن یتولهم منکم فانه منهم) فلو لم تکن بنو تغلب من النصاری الا تبولیهم ایاهم لا کلت ذبائحهم. (الجامع لاحکام القرآن ص۸۰ ج۶)

وقال الامام الاجل ابن العربی رحمه الله: وقد قلت لشیخنا ابی الفتح المقدسی: انهم یذکرون غیر الله. فقال لی هم من ابائهم، وقد جعلهم الله تبعا لمن کان قبلهم مع علمه بحالهم (احکام القران ص۵۵۲ ج۲)

وقال الشیخ محمد بن یوسف ابو حیان رحمه الله: والظاهر حل طعامهم سواء سموا علیه اسم الله ام اسم غیره وبه قال عطاء والقاسم بن مخیمرة والشعبی وربیعة و مکحول واللیث وذهب الی ان الکتابی اذا لم یذکر اسم الله علی الذبیحة وذکر غیرالله لم تؤکل وبه قال ابوالدرداء وعبادة بن الصامت وجماعة من الصحابة وبه قال ابو حنیفة وابو یوسف ومحمد وزفر ومالك و کره النخعی والثوری اکل ما ذبح واهل به لغیر الله (البحر المحیط ص۴۳۱ ج۳)

وقال القاضی محمد ثناء الله العثمانی رحمه الله: **مسالة**: لو ذبح یهودی علی اسم عزیر و نصرانی علی اسم عیسی لا یحل اکله عندنا قال فی الکفایة انما یحل ذبیحة الکتابی فیما اذا لم یذکر وقت الذبح اسم عزیر او اسم المسیح و اما اذا ذکر فلا یحل کما لا یحل ذبیحة المسلم اذا ذکر وقت الذبح اسم غیر الله تعالی لقوله تعالی و ما اهل به لغیر الله لحال الکتابی فی ذلك لا یکون اعلی من حال المسلم.

وقال البغوی اختلف العلماء فی هذه المسالة قال ابن عمر لا یحل وذهب اکثر اهل العلم الی انه یحل وهو قول الشعبی وعطاء والزهری ومکحول سئل الشعبی وعطاء عن النصرانی یذبح باسم المسیح قال یحل فان الله تعالی قد احل ذبائحهم وهو یعلم ما یقولون وقال الحسن اذا ذبح الیهودی او النصرانی فذکر اسم غیر الله تعالی و

انت تسمع فلا تأكله واذا غاب عنك فكل فقد احل الله لك.

قلت والصحيح المختار عندنا هو القول الاول يعني ذبائح الكتابي تاركا للتسمية عامدا او على غير اسم الله تعالى لا يؤكل ان علم ذلك يقينا او كان غالب حالهم ذلك وهو محمل النهي عن اكل ذبائح نصارى العرب ومحمل قول علي ﷺ لا تأكلوا من ذبائح نصارى بني تغلب فانهم لم يتمسكوا من النصرانية بشيء الا بشرب الخمر فلعل عليا ﷺ علم من حالهم انهم لا يسمون الله عند الذبح او يذبحون على غير اسم الله تعالى فكذا حكم نصارى العجم ان كان عادتهم الذبح على غير اسم الله تعالى غالبا لا يؤكل ذبيحتهم ولا شك ان النصارى في هذا الزمان لا يذبحون بل يقتلون بالوقذ غالبا فلا يحل طعامهم (التفسير المظهري ص۳۰ ج۳)

د ذكر كړې شوو تحريراتو نه دا امور ثابتيږي :

۱- د امام شافعي رحمه الله قول حلت متروك التسميع عمدا ته خرقِ اجماع وئيل محل د نظر دې، د داسې جليل القدر امام نه د اجماع مخالفت كول د قياس موافق نۀ دى، د دوى نه وړاندې هم د ډيرو صحابهٔ كرامو ﷺ د تابعينو او د مذهب د امامانو رحمهم الله نه دا قول منقول دې.

۲ - بعضې شوافعو هغه ذبيحې ته مكروه وئيلې دى په كومې باندې چې قصدا تسميه پريښودلې شي.

د دې نه مراد د هغې كراهتِ تنزيهيه دى، لان كراهة التحريم تنافي الحلة وهي ثابتة عندهم بلا خلاف. على انهم يذكرون درجة كراهة التحريم بين الحرام و كراهة التنزيه كما يذكرون درجة الواجب بين الحرام والمستحب.

۳ - د بنو تغلب غوندې د نوم نصارى ذبيحې ته حضرت علي ﷺ حرام وئيلې دى ليكن جمهور يې د حلت قائله دى.

۴ - چې نصراني په وخت د ذبح كښې د حضرت عيسى عليه السلام نوم واخستلو نو هم عند البعض ذبيحه حلاله ده ،ځكه چې د هغوى په عقيده كښې د الله تعالى او د حضرت عيسى عليه السلام مصداق هم يو دې، كه الله يې اووئيلو نو هم عيسى مراد دې او كه عيسى ئې اووئيلو نو هم ترې نه مراد الله دې، ددې وجې نه برابره خبره ده كه د الله تعالى نوم ئې واخستلو او كه د عيسى عليه السلام نوم ئې واخستلو په هر حال كښې ذبيحه حلاله ده.

د دوى دا دليل خو قوى معلوميږي ليكن سره د دې نه هم جمهور دې ته حرام وائي.

۵ - كتابي عمداً د الله تعالى نوم پريښودلو، ليكن د غير الله نوم ئې وانخستلو، نو ددې په حلت كښې هم اختلاف دې، عند الجمهور حلال دى.

ددي نه ثابته شوه چي عمداً په تسمیه پرېښودلو کښې د مسلم د فعل په نسبت فعل د کتابی اهون دي، عندالجمهور اول حرام دي او ثانی حلال دي.

ددي نه علاوه متروک التسمیة جاهلا حلال دي، ورسره دا چي علم د اهلیت د ذابح شرط نهٔ دي (ردالمحتار)

ما دپاکستان نه واخله د روم (اټلی) پورې دنصاری د مشهورو مرکزونو نه نیغ په نیغه تحقیق وکړو نو ثابته شوه چي هغوی د ذبحي په وخت کښې نه بسم الله وائی او نه د حضرت عیسی ﷺ نوم اخلی.

د ذکر کړي شوي تفصیل مطابق په داسې صورت کښې څه ګنجائش وو لیکن د تحقیق نه ثابت شو، چي هغوی د اسلامی طریقې مطابق ذبحه ضروری نهٔ ګنی، په هره طریقه چي وی وژل ئې کافی ګنی، او دا د هغوی معمول دي، چرګ ئې ونیولو، څټ ئې ورله تاو کړلو او رائې ښکلو او بیل ئې لرې کړلو ترې نه بس دا کافی دی.

لهذا د هغوی ذبیحه یا موقوذه حرامه ده.

په سوال کښې د مسلمانانو د ملکونو په حقله چي کوم حالات لیکلي شوي دی، هغه صرف احتمالات دی، یا بس داندازو یو څو جزئیات دی، او د اهل کتابو په ملکونو کښې دا عمومی واقعات او حقیقتونه دی. فافترقا والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۷ رجب ۱٤۱۵ هجری

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

الذكاة ما بين اللبة واللحيين (الحديث)

# الجوهرةُ الفردَة

# في

# حكم الذبح فوق العقدة

((د مرئ د غوټې نه پورته ذبح کړې شوې ځاروی حلالوالي د حديث، فقهې، عقل او تجارب فيصله))

## الجوهرة الفردة

دتاليف تاريخ ــــــ ۲۸ ذی الحجه ۱۳۷۲ هجری

اولنئ طبع ــــــ ۲۳ جمادی الثانيه ۱۳۷۹ هجری

## د بحث سرټکی:

- د مستحلينو او د محرمينو دلائل
- د علامه ابن عابدين رحمه الله توقف
- د حضرت حکيم الامت قدس سره توقف
- په امداد المفتيين کښې اختيار کړې شوې توقف
- د حضرت مؤلف دامت برکاته رحمه الله مشاهده او د هغې مطابق د حلت فتوی
- د حضرت سهارنپوری قدس سره مشاهده او د هغې مطابق دحلت فتوی
- د حضرت حکيم الامة قدس سره د توقف نه رجوع او د حلت فتوی

## د مرئ د غوټې نه بره د ذبح کولو دحکم تحقیق

**سوال:**- آیا د مرئ دغوټې نه بره په ذبح کولو سره ذبیحه حرامیږی او که نه؟په وضاحت سره په دې لړه رڼا واچوئ او مونږ له د شکریه ادا کولو موقع راکړئ.**بینوا بالبراهان توجروا عند الرحمن**

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې حقله د فقهاء کرامو ﷺ اختلاف دې : مستحلین دعموم د حدیث **(الذکاۃ ما بین اللبۃ واللحیین)** او د فقهې په کتابونو کښې د مبسوط د عبارت : **(الذبح ما بین اللبۃ واللحیین)** نه استدلال کوی.

اودحرمت قائلین دحدیث: **(افر الاوداج بما شئت)** نه تخصیص کوی،ځکه چې اوداج اسم جمع دې چې اقله درجه ئې درې دی،او د ذبحې فوق العقده سره درې رګونه نهٔ پرې کیږی لهذا دا حرامه ده.

د جامع الصغیر عبارت : **(لا بأس بالذبح فی الحلق کله وسطه واعلاه و اسفله)**. او د تنویر الابصار عبارت : **(وذکاۃ الاختیار ذبح بین الحلق واللبۃ)**. هم ددې مرسته کوی،ځکه چې د عقدې (یعنی غوټې) نه پورته حلق نشته دې . **(الحلق فی الاصل الحلقوم کما فی القاموس ای من العقدۃ الی مبدا الصدر) (ردالمحتار ج۰)** لهذا د حرمت د قائلینو خیال دې چې حدیث : **(الذکاۃ ما بین اللبۃ واللحیین)** اود مبسوط عبارت : **(الذبح ما بین اللبۃ واللحیین)** د تحت العقده سره مقید دې .

مستحلین وائی چې د ذبحې فوق العقده سره رګونه منقطع شی،او د جامع الصغیر او د تنویر عبارتونو هم ذبح فوق العقده لره شامل دی،ځکه چې د(حلق)اطلاق په ما فوق العقده باندې هم کیږی. **و کلام التحفۃ والکافی وغیرهما یدل علی ان الحلق یستعمل فی العنق بعلاقۃ الجزئیۃ فالمعنی بین مبدا الحلق ای اصل العنق کما فی القهستانی (ردالمحتار ج۰)**

په خپله د جامع الصغیر عبارت : **(لا بأس بالذبح فی الحلق وسطه واعلاه و اسفله والاصل فیه قوله علیه الصلوۃ والسلام الذکاۃ ما بین اللبۃ واللحیین)**. په دې خبره باندې ښه ښکاره دلیل دې چې د حلق لفظ مافوق العقده ته شامل دې .

د ذکر کړې شوی تفصیل نه معلومیږی چې د اختلاف مبنی صرف دا امر دې چې په ذبحې فوق العقده سره رګونه پرې کیږی او که نه .

علامه شامی ﷫ هم د ډیر بحث او د تمحیص نه پس همدا لیکلې دی چې د تجربې د خاوندانو نه معلومول غواړی، یا په خپله مشاهده کول غواړی چې رګونه ورسره پرې کیږی او که نه.

په امداد المفتیین او امداد الفتاوی کښې هم همدا مضمون دې،چا څه فیصله نهٔ ده کړې .

ما د ذبحه کړې شوې غوا سر راوغوښتلو او مشاهده مې وکړه نو معلومه شوه چې حلقوم او مرئ دواړه په عقده باندې ختم شی، د فوق العقده په ذبحه کولو سره نۀ منقطع کیږی

د دې نه په ظاهره د قائلینو د حرمت مرسته کیږی،ددې وجې نه چې: د امام مالک رحمه الله په نیز څلور واړه رګونه حلقوم،مرئ،او ودجین قطع کول شرط دی.

د امام شافعی او احمد رحمهما الله تعالی په نیزد صرف دمرئ او د حلقوم قطع کول ضروری دی.

او د امام ابو یوسف رحمه الله په نیزد د حلقوم،مرئ او د احدالودجین پرې کول واجب دی.

امام محمد رحمه الله فرمائی چې په څلورو رګونو کښې د هریواکثره حصه پرې شی نو دا کافی دی.

د امام اعظم رحمه الله نه یو روایت دامام محمد رحمه الله د روایت مطابق دې،او دامام صاحب رحمه الله مختار او مفتی به قول دا دې چې بې د تعیین کولو نه د درې رګونو پرې کول ضروری دی.

غرض د خبرې دا چې د امام صاحب رحمه الله د قول مختار نه علاوه ټول امامان رحمهم الله او په خپله امام صاحب رحمه الله هم په یو روایت کښې د حلقوم او د مرئ پرې کول ضروری بولی،او د قول مختار او مفتی به مطابق هم کم نه کم درې رګونه پرې کول شرط دی،او په ذبح فوق العقد کښې صرف ودجین پرې کیږی، حلقوم او مرئ نۀ منقطع کیږی،لهذا مذبوح فوق العقده په اتفاق سره حرامیدل پکار دی. لیکن د ژور نظر کولو نه بعد معلومیږی چې په ذبحې فوق العقده سره به هم څلور واړه رګونه پرې شی،کوم چې په څو وجوهو سره ثابتیدې شی:

۱-د قطعې نه مراد (**قطع العروق من وسطها**) نۀ دې، بلکه ددې نه مراد **قطع من الراس او الصدر** دې.

**قال المقدسی لم یحصل قطع واحد منهما ممنوع بل خلاف الواقع لان المراد بقطعهما فصلهما عن الراس او عن الاتصال باللبة اهـ** (ردالمختار ج ۵)

او د ذبح فوق العقدې نه **انفصال العروق الاربعة عن الراس** مراد دی.

۲- که د قطع نه هم )**قطع العروق من وسطها**) مراد واخستې شی نو بیا به هم حلقوم او مرئ د ذبح فوق العقده په صورت کښې منقطع کیږی،حلقوم د دې وجې نه چې حلق اګر چې حقیقةً په عقده باندې ختمیږی لیکن د حلق او د حلقوم د لفظ په مافوق العقده باندې هم اطلاق کیږی،لکه څنګه چې مونږ پورته بیان وکړو.

په اشتراط د قطعې د حلقوم کښې د حلقوم په عموم باندې څو قرینې دې:

۱- حدیث **الذکاة ما بین اللبة واللحیین.**

۲- **عبارة الجامع الصغیر: لا بأس فی الحلق کله وسطه واعلاه و اسفله الاصل فیه قوله علیه الصلوة والسلام الذکاة ما بین اللبة واللحیین.**

۳ - د مبسوط عبارت: الذبح ما بين اللبة واللحيين
٤ - د قطعې د حلقوم نه مقصد توحية اخراج الروح دې او دا مقصد د مافوق العقده د قطعې نه هم حاصلیږی.

او د ذبح فوق العقدې سره مرئ ددې وجې نه منقطع شی چې په عقده باندې حلقوم او مرئ دواړه متحد شی، او ما فوق العقده چې کوم سورې دې هغه د مرئ او د حلقوم د دواړو مجموعه ده، او د دواړو کار ورکوی، د نفس او د خوراک د دواړو مجری همدا دې، لهذا د دې قطع د مرئ په مقطع باندې شامل دې، د مرئ د قطعې انقطاع به هله لازمیدله چې د مرئ سورې د عقدې سره بالکل بند شوې وې، او مافوق العقده چې کوم سورې دې په هغې کښې به نۀ وې شامل.

غرض د خبرې دا چې مافوق العقده کوم سورې دې هر کله چې هغه مرئ ته شامل دې، او د مرئ کار هم ورکوی، او ددې په پرې کولو سره به هغه مقصد هم حاصل شی کوم چې د مرئ په پرې کولو سره مقصود دی. یعنی قطع مجری النفس للتوحية فی اخراج الروح خو څه وجه هم نشته چې د عدم انقطاع د مرئ قول دې وکړې شی، او په ذبحه کښې تحت العقده شرط د خپل اړخه زیات کړې شی، حال دا چې په کلام الله او په کلام الرسول ﷺ کښې چرته هم ددې قید نشته دې.

د (الذكاة ما بين اللبة واللحيين) عموم په دې باندې دال دې چې په ذبحه ما فوق العقده کښې هغه ټول رګونه پرې شی د کومو پرې کول چې ضروری دی.

لهذا ذبیحه فوق العقده په اتفاق د ټولو امامانو رحمهم الله حلاله ده.

که بالفرض د مرئ مستقلا د پرې کولو ضرورت ومنلې هم شی، نو بیا هم د امام صاحب رحمه الله په مفتی به او مختار قول باندې درې رګونه یعنی حلقوم او ودجین باید پرې شی.

۳ - که فرضِ محال چیرې حلقوم او مرئ دواړه دعقد پورې محدود تسلیم کړې شی، او په مافوق العقده کښې په دواړو کښې یو هم تسلیم نۀکړې شی، نو بیا هم د حدیث نه د فوق العقده ذبیحې حلت ثابت دې، ځکه چې الذكاة ما بين اللبة واللحيين عموم دې لره شامل دې، او (افر الاوداج) د دې منافی نۀ دې، ځکه چې د اوداج اقله درجه ثلاثه ده، او درې رګونه فوق العقده هم موجود دی، او یو هغه سورې کوم چې مجری د نفس او د علف دې او ودجین.

په حدیث کښې مطلقا د درې رګونو ذکر دې، دحلق او د مرئ نوم په کښې نشته، د عروقو نه داسې عروق مراد دی د کومې د قطعې نه چې توحية فی اخراج الروح وانهار الدم وی.

پس که په مافوق العقده باندې د حلق او مرئ اطلاق هم ونۀ شی نو بیا هم په هر حال رګ خو موجود دې، د کومې قطعه چې د توحية فی اخراج الروح باعث دې، لهذا دفوق العقده په حالت کښې

د عروق ثلاثه د منقطع کیدلو د وجې نه ذبیحه حلاله ده. فقط وهذا ما جاء فی فهم هذا الفقیر والعلم عند الله اللطیف الخبیر.

رشید احمد ۲۸ ذی الحجه ۱۳۷۲ هجری

## الحاق

ددې تحریر نه تقریباً شپږ کاله پس ۳۰ رمضان ۱۳۷۸ هجری کښې په امداد الفتاوی کښې د حضرت مولانا خلیل احمد صاحب سهارنپوری رحمه الله مشاهده او فتوی د بنده (یعنی مفتی رشید احمد صاحب) د فتوې او مشاهدې مطابق وموندل شوه، د حضرت حکیم الامة رحمه الله آخری فیصله هم ددې مطابق لیکلې ده، فالحمد لله علی ذلک. د امداد الفتاوی دا پوره مضمون لاندې لیکلې شوې دې.

**سوال:** جناب مولانا مولوی محمد اشرف علی صاحب سلمکم الله تعالی،

السلام علیکم و رحمة الله! مطلب که آنچه درباره مذبوحه فوق العقده فتوی او شان باشد ازان مطلع فرموده باشند و از مولانا خلیل احمد صاحب نیز جواب خواستانیده شده است، واز مدرسه دیوبند شریف نیز جواب باین الفاظ: (اقول بالله التوفیق : حل المذبوح فوق العقدة هو الراجح روایة و درایة - فقط والله تعالی اعلم، کتبه الاحقر عزیزالرحمن عفی عنه مفتی دارالعلوم دیوبند) .

آمده است اکنون آنچه بنظر او شان موجب شریعت غراء آمده است ارسال داشته باشند تا عندالله ماجور و عندالناس مشکور بوده باشند .

**نقل د تحریر د حضرت مولانا خلیل احمد صاحب مدظله العالی :**

مکرم محترم جناب حاجی شیرمحمد شاه صاحب سلمکم الله تعالی، ستاسو عزت نامه سره د تحریر د فریقینو مسئله ذبح فوق العقده راورسیدله، په دې مسئله کښې ماته د ډیرو کلونو نه د تحقیق اتفاق شوې دې، او ما د دې دتحقیق دپاره په خپله دغوا سر راغوښتې دې او مشاهده مې کړې ده، زما په نیزد محرمین څوک چې دا وائی : (که چیرې ذبح فوق العقده وی نو حلقوم او مرئ به په کښې نۀ قطع کیږی، دا صحیح نۀ دې، منشا د دې عدم تجربه ده، وګورئ حلقوم به په عقده باندې نۀ ختمیږی، بلکه د سر اړخ ته د عقدې نه بره پورې تلې دې لهذا دا دعوی : (که ذبح فوق العقده واقع شوې وی، نو حلقوم او مرئ به نۀ وی قطع شوې وی)

دا نهایته د تعجب خبره ده، او دا یو داسې قول دې چې ددې مرسته نۀ د کتاب الله نه کیږی او نۀ د حدیث د رسول الله ﷺ نه ددې مرسته کیږی، بلکه حدیث (الذکاة ما بین اللبة واللحیین) په خپله ددې مصدق دې، ددې په حقله چې څومره روایات مولانا محمد سعد الله صاحب انصاری مفتی د خیر پور لیکلې دی هغه کافی او شافی دی، ما ته ددې نه د زیاتو دلیکلو حاجت نشته دې، لیکن صرف ستاسو د اطمینان د پاره د امام شمس الائمه سرخسی د مبسوط نه یو څه نقل کوم:

وان نحر البقرة حلت ويكره ذلك كما بينا ان السنة في البقر الذبح قال الله تعالى ان الله يأمركم ان تذبحوا بقرة بخلاف الابل فالسنة فيه النحر وهذا لان موضع النحر من البعير لا لحم عليه وما سوى ذلك من حلقه عليه لحم غليظ فكان النحر في الابل اسهل فاما في البقر اسفل الحلق واعلاه فاللحم عليه سواء كما في الغنم فالذبح فيه ايسر والمقصود تسييل الدم والعروق من اسفل الحلق الى اعلاه فالمقصود يحصل بالقطع في اى موضع كان منه فلهذا حل وهو معنى قوله ﷺ الذكاة ما بين اللبة واللحيين ولكن ترك الاسهل مكروه في كل جنس لما فيه من زيادة ايلام غير محتاج اليه (مبسوط جزء ۱۲ كتاب الذبائح)

**الجواب من اشرف علی :**

د حلت او د حرمت د دواړو قولونو د اختلاف مبنی صرف دا ده چې په ذبح فوق العقده کښې حلقوم او مرئ قطع کيږي او که نه، لهذا دا امر د مشاهدې متعلق دې، د مشاهدې نه پس په دې کښې د اختلاف گنجائش نشته دې، او مشاهده د قطعې د ثقاتو د روايت نه محقق شوې ده ددې وجې نه به د حلت حکم پرې لګولې کيږي، خه موده وشوه چې احقر ددې د حرمت فتوی د فقهې د کتابونو نه نقل کړې وه، د هغې نه رجوع کوم. ۲۳ ذی قعده ۱۳۳۹ هـ (ترجيح خامس ص ۱۲۲).

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

((اُحِلَّ لَکُمُ الطَّیِّبٰتُ وَمَا عَلَّمْتُمْ مِّنَ الْجَوَارِحِ (القرآن)

# حرمة المقعاص برمية الرصاص

((د ټوپک د ښکار د حلت په حقله د يو تحرير جواب د قرآن د آيتونو نه، د حديث نه، د فقهي او د دلائلو عقليه نه د حرمت اثبات))

## د ټوپک په ښکار باندې مفصل بحث

**سوال:-** په دې مسئله کښې احقر ته په خپله تردد دې، په لاندينو دليلونو باندې تاسو نظر واچوئ او مونږ د خپلې رائې نه خبر کړئ، او نفسِ دلائلو لاندې **فانظر الی ما قال ولا تنظر الی من قال** په موجب خپله رائې قائمه کړئ.

آيا د ټوپک ښکار به د مرمی بالسهم په حکم کښې راوستې شی او په معهودو شرطونو باندې به ورته حلال وئيلې شی او که نه؟ باوجود د دې چې لاندينی دلائل د دې په حلت باندې دال دی:

۱- **قل احل لکم الطیبت وما علمتم من الجوارح مکلبین تعلمونهن مما علمکم الله فکلوا مما امسکن علیکم واذکروا اسم الله علیه. الایة.**

د جوارح ماده جرح ده، او هم ددې تفسير د لاندې حضرت امام ابو حنيفة رحمه الله د سپی په ښکار کښې د زخم او د وينې راوتلو شرط لګوی، د کومې نه چې معلومه شوه چې په ذبح اضطراری کښې مدار د حل په خروج د دم باندې دې، او دا خبره په ټوپک کښې په درجه د کمال سره موندې شی.

۲- حديث د حضرت عدی بن حاتم رضی الله عنه، د معراض په حقله رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائی: **کل ما خزق وما اصاب بعرضه فقتل فانه وقیذ فلا تاکله** (بخاری ج۲ ص۸۲۳) منجد کښې دی: **خرقه بالرمح طعنه طعنا خفیفا.** او خرق په ټوپک کښې په ښه طريقه سره موندې شی.

۳- **ما انهر الدم وذکر اسم الله فکل لیست السن والظفر الحدیث** (بخاری ج۲)

دا حديث په ذبحه اختياری کښې دې، په دې کښې د سن يعنی د غاښ او د ظفر يعنی د نوک د استثناء نه معلوميږی، چې په ذبح اختياری کښې د انهار الدم نه علاوه خصوصيت د آلې ته هم دخل شته. په خلاف د اضطرار چې هلته خصوصيت د آلې معتبر نۀ دې. مدار د حل فقط انهار الدم دې، **بای آلة کان** ځکه که د سپې يا د باز د غاښونو يا د نوکونو نه چيرې **عند القدرة علی الذکاة الاختیاریة** د يو حيوان ودجين اومرئ او حلقوم پرې هم کړل نو بيا هم حرام دی، او **عند الاضطرار**

مثلا د ښکار په وخت کښې هم په دې غاښونو او نوکونو کوم چې د سپی یا د باز دی که چیرې خروج د دم وشی نو حلالیږی.

دا خبره معلومه شوه چې په ذبحه اختیاری کښې خروج الدم مع خصوصیة الآلة وی، او په ذبحه اضطراری کښې فقط خروج الدم کافی وی، البته دا خبره ضرور معلومیدل پکار دی چې مرګ د جرح او د خروج الدم دواړو اړخ ته منسوب وی، دق او ثقل اړخ ته منسوب نهٔ وی، **كما يدل عليه لفظ الجوارح في كتاب الله.**

که چیرې دق او ثقل موجب د موت وی نو باوجود د دې چې لږه وینه تړې نه هم تلې وی دا به حلال نهٔ وی، **صرح به قاضيخان في فتاواه وسائر الفقهاء رحمهم الله.**

صاحب د هدایې یوه قاعده لیکلې ده : **والاصل في هذه المسائل ان الموت ان كان مضافا الى الجرح بيقين كان حلالا وان كان مضافا الى الثقل بيقين كان حراما وان وقع الشك ولا يدرى مات بالجرح او بالثقل كان حراما احتياطا (كتاب الصيد)**

اوس دا کتل دی چې په ټوپک کښې اګر چې زخم او انهار الدم کامل دې، آیا دا دلته دا مرګ مضاف الی الثقل و الدق دې که نهٔ دې؟

د تجربې او د مشاهدې نه داخبره ثابته ده، چې د ټوپک ګولۍ چې لګی نو په دغه وخت کښې بیخی نه محسوسیږی، څوک چې په دې ګولۍ ولګی نو چې تر څو پورې ئې وینه نهٔ وی لیدلې یا د زخمونو نه بې دمه شوې نهٔ وی نو پته ورته نهٔ لګی چې زه په ګولۍ لګیدلې یم، دا عجیبه دق او ثقل دې چې څوک پرې ولګی نو هغه ته دا محسوسیږی هم نه ، بلکه دا خو د دې په ډیر زیاتې تیزۍ باندې دلالت کوی.

دا هم د مشاهدې نه ثابته ده چې یوه تخته که داسې ودرولې شی چې که معمولی غوندې لوټه نه بل اړخ ته وځی لیکن دا تخته به راونهٔ غورځیږی، که چیرې همدا تخته، تهٔ په ټوپک باندې وه ولې نو هم راغورځیږی، که چیرې همدا تخته، تهٔ په ټوپک باندې وه ولې نو ګولۍ ترې که چیرې دا دق عنیف وی لکه څنګه چې علامه شامی رحمه الله په کتاب الصید کښې لیکلې دی نو بیا به د تختې ودریدل څنګه ممکن وو، دا خبره معلومه شوه چې په ټوپک کښې مرګ د زخم او خروج الدم اړخ ته مضاف دې.

۴- په شامی جلد ۵ کتاب الذبائح کښې دی : **وفي المنح عن الكفاية ان سال بها الدم تحل وان لم يسل لا.**

هر کله چې ذبحه اختیاری بالنار صحیح ده **كما تدل عليه هذه العبارة** نو داضطراری جواز به په طریقهٔ اولی وی.

دا هم تجربه ده چې هر کله ګولئ د انګار په شان سره وی نو هغه وخته پورې د دې رفتار برابر وی، چې څنګه دا یخه شی بس وغور ځیږی، په اوبو کښې بالکل دا وراندې نۀ څی.

داخبره معلومه شوه چې کله ځناور په ګولئ باندې لګی نو په دغه وخت کښې دا د انګار په شان سره وی، چې په دې کښې تیرهٔ والې او تپ (حرارت) وی، نو دا به د اخراج الدم په حکم کښې وی، اوکه نه نو چې کله یخه شی نو په نفسِ دق اوثقلِ محض سره حیوان بالکل نۀ شی وژلې. کماهومشاهد

۵- د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد قتل بالمثقل کښې قصاص واجب نۀ دې،د زخمی کوونکې آلې کیدل ضروری دی، لیکن د دې باوجود په هدایه وغیره کښې دی چه که په سنجات میزان سره څوک اووهلی شی او زخمی کړې شی او وینه ئې ترې نه راوه ویستله نو موجب د قصاص به وی.

باوجود د دې چې دغلته د وجې د مما يندرء بالشبهات نه احتیاط ددې په ساقطیدو کښې دې نه په وجوب کښې،او دلته اضطراری ذبح او سهم او ښکاری ځناور کښې د زخمی شوې ځناور حلت رخصت دې، او رخصت کښې تساهل فی الشروط منظور نظر کیدل پکار دی.

دا دلیل نه دې فقط تبرعا پیش کړې شو.

۶- د رسول الله ﷺ په زمانه کښې په غشی،معراض،سپی او په باز وغیره سره دښکار کولو عادت وو،د دې وجې نه تسهیلاً بشرط الجرح په دې څیزونو د ښکار کړې شوی ځناور د حلت حکم ورکړې شو. د (وماعلمتم)نزول وشو.

(ولوطعنت فی فخذها لاجزاعنك)رواه الترمذی ارشاد وشو.

باوجود د دې چې په دې څیزونو کښې قدرة على الذكاة الاختيارية غالب الحصول وی،سمدستی مرګ په دوی کښې نۀ وی،بله دا چې اخراج الدم په کښې هم ناقص وی.

او اوس خو د کونترې نه واخله تر هوسئ پورې چې څومره ښکار دې دا په ټوپک سره کیږی،قدرة على الذكاة الاختيارية شاذ او نادر په لاس راځی،او اخراج الدم په کښې هم کامل وی.

نو ددې ضرورتِ شدیده باوجود تمييز الدم المسفوح باكمل وجه وهو المقصود ته چې حرام اووئیلې شی نو ددې معنی به دا وی چې د دې زمانې خلق دې د خدائې پاک د رخصت نه فائده وانخلی.

دا خبره صحیح ده چې بې وجې د جدیدو آلاتو او د نوې زمانې سره په احکامو کښې ترمیم کول الحاد او زندقه ده،او د فقهاء کرامو رحمهم الله د عبارتونو او د اشاراتو خلاف یو حکم نافذ کول هم د فتنې نه خالی نۀ دې، لیکن د شرعی دلیلونو په موجودګئ کښې د فقهاء کرامو رحمهم الله د مقرر کړې شوو اصولو دلاندې په یو مسئله باندې غور او فکر نۀ کول به هم قابل د ملامتیا وی.

او بیا په ټوپک کښې خو یواځې د ګولۍ او د چرې په ذریعه ښکار نۀ کیږی، بلکه د څوکه دارې ګولۍ څوکه د مقراض د څوکې نه څه کمه خو نۀ وی، ټول په یو حکم کښې راوستل به څنګه صحیح شی.

دا خیالات مې د خپل پورته ذکر کړې شوو دلیلونو لاندې ولیکل، تاسو په دې باندې غور وکړئ او جواب راله راکړئ، بلکه تاسو به مغربی پاکستان علماء کنونشن ته هم ضرور تشریف راوړئ ستاسو به ډیر مهربانی وی، ستاسو شرکت په دې کښې ډیر زیات ضروری دې،دلته په ملاقات کښې به تفصیلی خبرې او په مسائلو کښې به د خیالاتو تبادله هم وشی د دې وجې نه تاسو ضرور راشئ.والسلام

محمود عفاالله عنه مفتی مدرسه قاسم العلوم ملتان

**الجواب و منه الصدق والصواب** : ستا د تحریر مواد تقریبا هم هغه دې کوم چې د مودودی صاحب د تحریر دی کوم چې په رسائل و مسائل کښې په اولنۍ حصه کښې په ص ۱۰۲ باندې لیکلې شوې دی، د دې وجې نه د مودوی صاحب دا تحریر هم د بحث لاندې راوستل مناسب دی، لهذا اولاً دې تحریر هغه جملې [1] نقل کولې شی په کومو باندې چې د بحث کولو ضرورت دې.

۱- ماته په دې خبره باندې حیرانتیا ده چې تاسو ته د کوم ځائ نه دا خبره معلومه شوه چې په ټوپک باندې وژلې شوی ښکار په حرمت باندې څلور واړه امامان متفق دی، آیا په آئمهٔ اربعه کښې د چا په زمانه کښې ټوپک ایجاد شوې وو؟ د آئمهٔ اربعه نه د اکثرو علماؤ د یوې ډلې یا د ټولو د هغوی د مستنبط مسائلو نه د څه مسئلې تخریج کول او د هغې نه څه حکم راویستل بیله خبره ده او په خپله د ائمهٔ اربعه څه حکم بیانول بیله خبره ده۔ الخ.

۲- دویم قسم (ذبحهٔ اضطراری) د ځناورو هغه دی کوم چې زمونږ په قابو کښې نۀ و ،لکه ځنګلی ځناور یا هغه د کور ځناور کوم چې تختیدلی وی، او د وحشی په حکم کښې راغلې وی،یا هغه ځناور چې چرته راغورځیدلې وی او د هغه د ذکاة شرط په مقرره طریقه باندې نه شی ادا کیدلې،یا هغه ځنارو چې په څه وجه باندې مرګ ته نزدې وی،او د ذبح کولو د پاره د چاړې په کتلو کتلو کښې د هغې د مرګ امکان وی.

۳- په ړومبی قسم (ذبح اختیاری) کښې ضروری دی،چې په تیره مخ آله باندې د هغې حلقوم دومره حده پورې پرې کړې شی چې ګر ګرو (مرئ) او د ساه رګ ئې پرې شی،او په دویم قسم (ذبح اضطراری) کښې په څه څیز باندې که هغه هر څیز وی د دوی په جسم کښې دومره شلول کافی کیږی چې وینه ترې نه اوبهیږی.

په دې سلسله کښې چې کوم نصوص مونږ ته د کتاب او د سنت نه ترلاسه کیږی هغه دلته په

---

۱ - بعضې بعضې ځایونو کښې په عبارت کښې اختصار کړې شوې دې مطلب نۀ دې بدل کړې شوې

ترتیب سره لاندې ذکر کولې شي.

۱- **احل لکم الطیبت وما علمتم من الجوارح الخ**

۲- **کل ما خزق وما اصاب بعرضه فقتل فانه وقیذ فلا تأکه (متفق علیه)**

۳- رافع بن خدیج فرمائی چې ما عرض اوکړو: اې د الله رسوله ﷺ! صبا له دښمن سره زمونږ مقابله ده، او مونږ سره چړې نشته دی، چې مونږ پرې ځناور ذبح کړو، نو آیا مونږ د شلیدلی بانړس په تیره څوکه باندې ذبح کولې شو؟

رسول الله ﷺ اوفرمائیل: **ما انهر الدم وذکر اسم الله فکل لیست السن والظفر (متفق علیه)**

د دې نه دا خبره معلومه شوه چې اصل څیز هغه آله نۀ ده د کومې نه چې کار اخستلې کیږی، بلکه د ذکاة د شرط په پوره کولو کښې صرف دا خبره معتبره ده چې وینه تویه کړې شی د دې مرسته دا حدیث کوی، چې حضرت عدی بن حاتم تپوس وکړو: یارسول الله! که چیرې په مونږ کښې چا ته ښکار لاسته ورشی، او هغه سره چاړۀ نۀ وی، نو آیا هغه په تیرۀ کانی یا په شلیدلی لرګی سره هغه ذبحه کولې شی؟

رسول الله ﷺ اوفرمائیل: **امرر الدم بما شئت واذکر اسم الله.**

۴- **لوطعنت فی فخها لاجراعنك (ترمذی، ابوداود، نسائی، ابن ماجه، دارمی)** د دې نه دا خبره ثابته شوه چې اصل څیز هغه آله نۀ ده د کومې نه چې کار واخستې شی بلکه یو اخې جسم شلول دی چې وینه ترې اوبهیږی.

۵- کعب بن مالک فرمائی چې زمونږ چیلئ په سلع مقام باندې څریدلې، ناګهانه زمونږ وینزې وکتل چې یوه چیلئ مرګ ته نزدې ده، هغه سمدستی یو کانړې مات کړو او په هغې باندې ئې هغه ذبحه کړو، رسول الله ﷺ د هغې د خوړلو اجازت ورکړو. (بخاری)

۶- عطاء بن یسار وائی چې په بنو حارثه کښې یو سړې وو هغه احد ته نزدې په یو خوړ کښې یوه اوښه څروله، ناګهانه هغۀ وکتل چې دا اوښه مری لیکن داسې څه څیز ورته په لاس رانغلو چې هغه ئې پرې ذبحه کړې وې، آخر دا چې هغه د خیمې د ښولو یو میخ راواخستلو او هغه ئې د هغه اوښ په لبلبه کښې ورښخ کړو، تر دې چې د هغې وینه تویی شوله، بیا ئې رسول الله ﷺ ته ددې خبر ورکړو، او رسول الله ﷺ د هغې د خوړلو اجازت ورکړو. (ابوداود، موطا)

۴- د مات شوی کانی تیرۀ اړخ خو بیا هم د تیرۀ څیز په حکم کښې راځی، لیکن د لرګی څوکه دار میخ د آلې په حکم کښې داوستل چې کومې پورې کیدې شی ظاهره ده.

۵- ګولئ چې په کوم قوت سره د ټوپک نه وځی، او بیا په کوم رفتار سره چې هغه ښښې ته (تقریباً ۵۰۰ ګزه په یوه ثانیه کښې) لاره وهی، په دې بنا هغه چرته څه یخ کانړې نۀ وی، بلکه په ښه

شان سره نرم او تقريبا نوکه دار شي او د جسم په شلولو سره دننه ورننوځي.

**په ذکر شوو عباراتو باندې بحث:**

د ټوپک د ښکار د حلت بنا دا ښودلې شوې ده چې په ذبحه اضطراري کښې خصوصيت د آلې شرط نۀ دې، دا د آئمۀ اربعه رحمهم الله د تصريحاتو خلاف دی، **قال الحافظ العينى رحمه الله (قوله وما اصابه بعرضه) بفتح العين يعنى بغير طرفه الحد فلا تأكل وبه قال ابو حنيفة ومالك والشافعى والثورى واحمد واسحاق رحمهم الله وقال الشعبى وابن جبير يوكل اذا خزق وبلغ المقاتل الخ (عمدة القارى ج۱۰ص۱)**

قال الشعبى - الخ . د تقابل نه معلومه شوه چې تيره نۀ وی نو که په هغې سره هر څومره زخمي شي نو بيا هم آئمۀ اربعه رحمهم الله د دې د حرمت قائل دی.

**وقال الحافظ العسقلانى رحمه الله وحاصله ان السهم وما فى معناه اذا اصاب الصيد بحده حل وكانت تلك ذكاته واذا اصابه بعرضه لم يحل (الى ان قال) قوله بعرضه بفتح العين اى بغير طرفه المحدد وهو حجة للجمهور فى التفصيل المذكور وعن الاوزاعى وغيره من فقهاء الشام حل ذلك (فتح البارى ص۲۰۰ ج۹)**

که چيرې په آئمۀ اربعه رحمهم الله کښې هم څوک امام د جمهورو خلاف وې نو حافظ رحمه الله به دهغه نوم ضرور ذکر کړې وو.

لهذا دا وئيل چې (دا مسئله د آئمۀ اربعه خلاف نۀ ده بلکه د آئمۀ اربعه د مقلدينو فقهاؤ خلاف ده) دا خبره صحيح نۀ ده، البته که د آلې د خصوصيت انکار نۀ وې کړې شوې، بلکه دا منلې شوې وې او د ټوپک ښکار ته ئې د څه قسم په اجتهاد باندې حلال وئيلې شوې وې نو قائل دا وئيلې شو چې ما د آئمۀ اربعه مخالفت نه دې کړې بلکه د مذاهبو اربعو د فقهاؤ خلاف مې کړې دې.

په عدم اشتراط د آلې باندې چې څومره دلائل هم وړاندې کړې شوې دی، په هغې کښې يو دليل هم صراحتا مثبت د دعوې نۀ دې، په دې کښې د جرح، خزق، انهار الدم، امرار الدم، طعن وغيره الفاظ نشته ، حالانکه په ذبحه اختياری کښې د همدې قسمه الفاظ انهار الدم، امرار الدم، وغيره الفاظ وارد شوی دی، لهذا چې څنګه په ذبحه اختياری کښې دا الفاظ دال دی د آلې په بالطبع جارح او منهر الدم کيدلو باندې، او دا شرط متفق عليه دې نو بيا څه وجه ده چې په ذبحه اضطراری کښې بعينه په همدې الفاظو سره دا دلالت خارج کړې شی، بيا په خاص توګه دا چې آئمۀ اربعه رحمهم الله هم د دې دلالت لحاظ ساتی، **کمامر،**

که په دې الفاظو کښې د آلې په بالطبع جارح او منهر الدم کيدلو باندې دلالت نشته ، نو په ذبح اختياری کښې ئې دا شرط ولې ولګولو ؟ په ذبح اختياری کښې د حدت د آلې شرط غالبا منصوص نۀ دې، صرف د امرار الدم غوندې الفاظو نه مستنبط دی، برسيره پر دې په ذبح اضطراری کښې

بعينه همدا الفاظ وارد کيدلو نه علاوه دا شرط هم منصوص دې:

**عن عدى بن حاتم رضي الله عنه قال سالت النبى ﷺ عن صيد المعراض فقال ما اصاب بحده فكله و ما اصاب بعرضه فهو وقيذ (بخاری ج۲،ص۸۲۳)**

که چيرې د آلې غيرِ محدد دې داسې زخم په کومې کښې چې مرګ مضاف الى الثقل نۀ وى بلکه مضاف الى الجرح او امرار الدم وى موجب د حلت کيدلې نو مصاب بالعرض او بالبندقه باندې به مطلقاً حکم د حرمت نۀ لګولې کيدلو، بلکه د مذکوره صورت استثناء ترې نه ضرورى وه. څکه چې اصابع العرض او اصابة البندقه کښې دا صورت ممکن او محتمل دى، خو سره ددې هم په روایاتو کښې بې د څه تفصيل نه او د فرق نه مطلقاً حکم د حرمت دې.

**ولا تاكل من المعراض الا ما ذكيت ولا تاكل من البندقة الا ما ذكيت رواه احمد (نيل الاوطار ج۸،ص۱۳۰)**

دريم دليل يعنى حديث د رافع بن خديج رضي الله عنه مودودى صاحب د ذبحې اضطرارى متعلق وګڼلو او د دې نه ئې په اطلاق د آلې باندې استدلال کړې دې، حالانکه دا حديث د ذبح اختيارى په حقله دې، پخپله مودودى صاحب چې کوم صورتونه د ذبحې اضطرارى بيان کړې دى، د دې حديث مضمون په هغې کښې په يو کښې هم داخل نۀ دې، که چيرې مودودى صاحب ته دا علم وې چې دا حديث د ذبح اختيارى په حقله دې نوتقريباً په همدې الفاظو سره به ئې په خصوصيت د آلې باندې استدلال کولو او د **ما انهر الدم** نه به ئې بالطبع جارح او مهر الدم مراد اخستلو.

آيا دا بې انصافى نۀ ده چې يو لفظ په يو ځائ کښې په يو مفهوم باندې دال تسليم کړې شى او په بل ځائ کښې بې د څه دليله او د قرينې صارفې نه د دې دلالت نه انکار وکړې شى.

مودودى صاحب په ذبحه اضطرارى کښې داسې څناور هم داخل کړې دې کوم چې د څه وجې نه مرګ ته نزدې وى او د هغه د ذبح کولو دپاره د چړې په کتلو کتلو کښې د هغۀ د مرګ امکان وى، په همدې بنا تاسو په دليل خامس او سادس کښې د کعب بن مالک او د عطاء بن يسار رضي الله عنهما روايات ذکر کړې دى، حالانکه داسې څناور په ذبح اضطرارى کښې داخلول ډيره لرې خبره ده، د نورو امامانو رحمهم الله د اقوالو تحقيق خو ما ونه کړې شو، البته په مشايخو د احنافو رحمهم الله کښې يو مرجوح قول شته دې، ليکن د موقوذة او مترديه او د منخنقه د پاره د **الا ما ذكيتم** د شرط منصوص نه پس د دې څه ګنجائش نۀ پاتې کيږى.

بيا هر کله چې مودودى صاحب د مات شوى کائى په تيرۀ والى باندې دتيرۀ والى اطلاق منى، نو د حديث د کعب بن مالک رضي الله عنه نه د استدلال کول **چه معنى دارد** ؟ مودودى صاحب د تيرۀ مخ او په څوکه دار کښې فرق کوى، غالباً د عطاء بن يسار رضي الله عنه د روايت نه ئې استدلال په همدې بناء باندې کړې دې، او د همدې وجې نه د تيرۀ مخ د آلې د خصوصيت نه د انکار کولو باوجود په آخر کښې د

توپک د ګولۍ د څوکه داره کيدلو د ثابتولو کوشش ئې کړې دې.د دې نه دا ظاهريږی چې دۀ د تيره مخ نه مراد چاړۀ يا د چاقو غوندې تيرۀ مخ ګڼلې دې.حالانکه د جمهورو مراد محدد دې،اګر که څوکه دار وی.لکه څنګه چې د فتح الباری ص ۴۷۲ ج ۹ د تير شوی عبارت **السهم ومافی معناه.**

**الخ** نه ظاهر دی

غرض د خبرې دا چې په دې دواړو روايتونو کښې ذبح اختياری ده، **کما مر** په کوم کښې چې تاسو هم د جارحې آلې شرط منئ.او په دې بنا باندې به د ميخ او د کانږی تيره والې د جارح کيدلو په منلو باندې مجبوره شئ.

او که بالفرض ستاسو د قول مطابق ستاسو دا صورت ذبح اضطراری ومنلی شی نو بيا هم ددې روايتونو نه اطلاق د آلې نه ثابتيږی،په دې دواړو واقعو کښې په آلې جارحې سره ذبح موندلې شوې ده.

ګولۍ لره د څوکه داره ثابتولو د کوشش نه دا خبره معلومه شوه چې دمودودی صاحب اختلاف جمهورو سره په خصوصيت د آلې کښې صرف نفظی دې کوم چې د جمهورو په مطلب باندې په نۀ پوهيدلو باندې مبنې دې، ليکن سره د دې د همدې نه ستاسو دا دعوی غلطه ثابتيږی: ((زۀ د آئمۀ اربعه د تصريحاتو خلاف نۀ يم)). ځکه چې د خصوصيت دآلې په حقله د آئمۀ اربعه دتصريحاتو کوم مطلب تا په خپله اخستې دې تۀ دهغې دخلاف قائل ئې، نو تاسو په خپل زعم او ګمان کښې د آئمۀ اربعه خلاف فتوی ورکوئ،اګرچې په حقيقت کښې تاسو د هغوی خلاف نۀ يئ.

باقی پاتې شوه داخبره چې ګولۍ ننبې ته د رسيدلو نه وړاندې څوکه داره جوړه شی،که چيرې دا دعوی د مشاهدې نه ثابته شی،نو ددې نه بيا د انکار کولو ځائ نشته ،اوکه نه نو صرف په تخيل سره د يو امر اثبات ناممکنه دې،**ان الظن لايغنی من الحق شيئا.**

د مودودی صاحب د تحرير په حقله چې کوم څه د ضرورت مطابق عرض کول وو هغه عرض کړې شو.اوس ستاسو دتحرير نه صرف په هغته امورو باندې د رائې اظهار کول دی په کومو باندې چې پورته صراحتاً يا ضمناً کلام و نۀ شو.

**قولکم:** د سن او د ظفر د استثناء نه معلومه شوه چې په ذبحه اختياری کښې د انهارالدم نه علاوه خصوصيت د آلې ته هم دخل دې ـ الخ.

**اقول** : په سن مقلوع او په ظفر مقلوع سره ذبحه اختياری اګرچې ممنوع ده ليکن ذبحه پرې صحيح ده،يعنی مذبوحه حلاله ده.اوپه ذبح اضطراری کښې هم همدا آلات دی،فرق په کښې صرف دا دې چې د آسانتيا دپاره ئې قيد د قلع باقی پاتې نه کړو،دا خو د آلې فرق نه شو بلکه د آلې د استعمال د طريقې فرق شو. لکه څنګه چې تيسراً د ذبحې د محل د قيد اعتبار نۀ دې کړې شوې.

که چیرې د آلې فرق تسلیم هم کړې شی نو بیا هم ذبح اضطراری خلاف دقانون نهٔ ده،هغه خو د ذبح بالجارح د قانون مطابق ده،اشکال خو به په ذبح اختیاری باندې کیږی، چې ذبح بالجارح کیدلو باوجود ولې حلاله نهٔ ده؟ دسن او د ظفر په جارح کیدلو کښې خو څه شبه نشته.

**قولکم:** د ټوپک ګولۍ باندې چې څوک لړی نو دا خو هغه ته بیخی محسوسیږی هم نه.

**اقول :** هر مفاجاتی ګذار برابره خبره ده که په محدد سره وی او که په مثقل سره ابتداءً نهٔ محسوسیږی، بیا په خاص توګه هغه وخت چې آله د ضرب د صغیر الحجم کیدلو د وجې نه په لږ ځائې باندې ضرب ولګیږی،لکه د لیندې په پټاخ کښې چې څومره آله وی.

**قولکم:** یوه تخته که داسې اودرولې شی۔ الخ.

**اقول :** که چیرې په داسې ګیټکی باندې اوویشتلې شی چې په وزن او حجم کښې د ګولۍ نه زیات نه وی نو بیا کیدې شی چې داسې تخته راونهٔ غورځیږی،تجربه دې وکړې شی، نو که بالفرض هم غورځیږی نو په دې تجربو سره یو بالمشاهده غوندې څیز محدد بالکل هم نه شی ثابتیدلې، تخته کهٔ وغورځیږی او که ولاړه وی بهر حال ګولۍ ته څوک محدد نهٔ شی وئیلې.

**قولکم:** ولوبعارالخ

**اقول:** د ګولۍ په یخیدلو سره پریوتل د قیاس نه لرې معلومیږی،هر کله چې څه څیز د څه وجې نه رفتار تیزوی نو دا رفتار د څه وخته پورې قائم وی، برابره خبره ده که دا څیز تود وی او که یخ.

په اوبو کښې د ګولۍ مزل نه کول د وجې د مزاحمت نه دې،د لیندۍ ګوذار هم په اوبو کښې مزل نه کوی، حال دا چې په هوا کښې ښهٔ لرې پورې ځی.

غرض دا چې اول خو دا یقین نشته چې ګولۍ په حالت د حرارت کښې لګیدلې ده۔

او که د جرحې د شدت نه په حالت د حرارت کښې د ګولۍ د لګیدلو ظن غالب هم شی نو دا یقین نشته چې دا حرارت مستقلاً قوت د شلولو ته رسیدلې دې او که نه؟

او که د دې هم یقین وکړې شی مثلا د شلولو اثرات په کښې موجود وی یا نښه ئې ډیره د نزدې نه ویشتې وی، نو د مرګ مضاف الی الاحراق کیدل قطعی نهٔ دی،ځکه چې دې سره ضربِ شدید هم موجود دې، او جرح او انهار الدم هم، او احراق او ضربِ غیر محدد دواړو اړخخونو ته منسوب دې ، لهذا څو پورې چې د مرګ او د جرح مضاف الی الاحراق کیدل په قطعی توګه معلوم نهٔ شی نو د حلت حکم دې پرې ونهٔ لګولې شی ۔ **کما وردت النصوص فی المرمی الواقع فی الماء بعد الرمی والملدوغ واستنبط منها الفقهاء** رحمهم الله **اصلا وفرعوا علیه صورا عدیدة.**

د دې وجې نه علامه شامی رحمه الله باوجود د دې چې ټوپک ئې محرق منلې دې د حرمت فتوی ئې ورکړې ده. **ونصها لا یخفی ان الجرح بالرصاص انما هو بالاحراق والثقل بواسطة اندفاعه العنیف اذ لیس له**

حد فلا يحل وبه افتى ابن نجيم.(ردالمحتار ج۵ص۳۱۴)

په دې مقام باندې ضروری معلومیږی چې په توپک باندې د احراق په حقله د قطب العالم ابوحنیفهٔ عصر حضرت مولانا رشید احمد صاحب گنگوهی قدس الله سره تجربه هم نقل کړې شی، هغوی فرمائی: د مولانا مملوک صاحب نه مونږ دا معلومه کړې وه هغوی اوفرمائیل چې مالوچ په نښه وه وله، معلوم به شی درته، لهذا مونږ همداسې وکړل، ګولئ ترې نه بل اړخ ته اووتله او مالوچ لګ هم ونه سوزیده ، لهذا ګولئ ماتونکې ده، محرقه نهٔ ده، ترڅو پورې چې ذبح نهٔ کړې شی نو د توپک ښکار حلال نهٔ دې۔(تذکرة الرشید ج ۱ ص ۱۳۹)

**قولکم:** د حضرت امام ابوحنیفه رحمه الله په نیزد په قتل بالمثقل کښې قصاص واجب نهٔ دې۔ الخ.

**اقول:** ۱ - هر کله چې په ذبح اضطراری کښې د تیره آله کیدل د نص او د آئمهٔ اربعه او د جمهورو رحمهم الله په اتفاق سره ثابت دی نو د دې قیاس ځائ پاتې نهٔ شو.

۲ - د ظاهری عبارتونو نه دا خبره معلومیږی چې د قصاص د وجوب د پاره د امام صاحب رحمه الله په نیزد د حدید محدد کیدل ضروری نهٔ دی، صرف جرح شرط ده، په ظاهر الروایة کښې خو جرح هم شرط نهٔ ده.

قال فی شرح التنویر بآلة تفرق الاجزاء مثل سلاح ومثقل لو من حدید ومحدد من خشب الخ

وفی الشامیة وروی الطحطاوی رحمه الله عن الامام رحمه الله اعتبار الجرح فی الحد ونحوه (الی قوله) وعلی کل فالقتل بالبندقة الرصاص عمد لانها من جنس الحدید وتجرح الخ (ردالمحتار ج۵ص۳۶۶)

وایضا فی الشرح کل ما به الذکاة به القود والا فلا وفی حدید غیر محدد کالسنجة روایتان اظهرهما انها عمد الخ

وفی الشامیة ذکر هذه النقول الثلاثة (ای وفی حدید الخ) نقضا لعکس الکلیة وهو قوله والا فلا وهو ظاهر لانه المشروط فی الذکاة فری الاوداج وانهار الدم وذلک لا یحصل بالسنجة الخ (ردالمحتار ج۵ص۳۶۷)

وایضا فی الشرح وان قتله بمر یقتص ان اصابه حد الحدید او ظهره وجرحه اجماعا (ردالمحتار ۵ص۳۶۹)

ظهر المر جارح نهٔ دې، د دې باوجود په دې باندې دزخمی کیدلو په حالت کښې اجماعا قصاص شته دې.

۳- که چیرې دا خبره هم ومنلې شی چې د امام صاحب رحمه الله په نیزد دحدید محدد کیدل لازم دی نو په سنجات میزان سره به د قصاص وجوب د امام صاحب رحمه الله په قول باندې مبنی نهٔ وی، بلکه د ظاهر الروایة په بنا به وی.

لما فی الشامیة (قوله اظهرهما انها عمد) بناء علی عدم اشتراط الجرح فی الحدید ونحوه (ردالمحتار ج۵ص۳۶۷)

په هر حال دا خبره ثابته نهٔ شوه چې امام صاحب رحمه الله د محدد د شرط د لګولو باوجود غیر محدد د عند الجرح په وخت کښې په حکم د محدد کښې ګرځوی.

**قولکم:** د رسول الله ﷺ په زمانه کښې غشې، معراض، سپی ـ الخ.

**اقول:** واقعی حتی الامکان د تسهیل الامر او د رخصت نه کار اخستل ښهٔ دی. لیکن د جمهورو مخالفت کول په خاص توګه د حلت او دحرمت په معامله کښې تر هغه وخته پورې روا نهٔ دی تر څو پورې چې یو قوی او اطمینان موجب دلیل نهٔ وی، **اجرؤهم علی الفتیا اجرؤهم علی النار** نه ویریږو.

**قولکم:** بلکه د څوکه دارې ګولۍ څوکه خو د معراض د څوکې نه کمه نهٔ وی.

**اقول:** د داسې ګولۍ د ښکار په حلت کښې څه شبه نشته او نهٔ په دې کښې د څه قسم اختلاف څه ګنجائش شته دې، په امداد المفتین کښې هم د داسې ښکار د حلت فتوی لیکلې شوې ده. البته که چیرې همداسې ګولۍ باندې دومره وړوکې ځناور وه ویشتلې شو چې دغه ځناور د دې ګولۍ د ثقل تحمل او برداشت نهٔ شی کولې، یعنی که ګولۍ تیره او څوکه داره نهٔ وی نو بیا هم ددغې د ثقل نه ځناور مړ شی، نو دا ځناور حلال نهٔ دې.

**قال فی شرح التنویر او بندقة ثقیلة ذات حدة لقتلها بالثقل لا بالحد ولو کانت خفیفة بها حدة حل لقتلها بالجرح وفی الشامیة (قوله ولو کانت خفیفة) یشیر الی ان الثقیلة لا تحل وان جرحت قال قاضیخان لا یحل صید البندقة والحجر والمعراض والعصا وما اشبه ذلك وان جرح لانه لا یخرق الا ان یکون شیء من ذلك قد حدده وطوله کالسهم (الی قوله) والاصل ان الموت اذا حصل بالجرح بیقین حل وان بالثقل او شك فیه فلا یحل حتما او احتیاطاً.** (ردالمحتار ج۵ص۳۱۶)

**فقط: وهذا ما جاء فی فهم هذا الفقیر والعلم عند الله اللطیف الخبیر.**

رشید احمد، ۲۸ ربیع الاول ۱۳۷۶ هجری

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿وَمَا تَوْفِيقِيٓ إِلَّا بِٱللَّهِۚ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ﴾

# رفع الحجاب

## عن

# حكم الغراب

د كارغهٔ په حرمت باندې د يو ې رسالې جواب

## معذرت

په دين اسلام باندې د هره ورځ د دې نوو نوو فتنو حملو په دې دور كښې چې كله هم ددې مسئلې په شان په يو مسئله باندې دليكلو دعوت راكړې شي.يا كله كله سترګو وړاندې يا په زړهٔ كښې مو داسې څه مسئلې ته خيال راشي نو بې خياله مې د زړهٔ درد د لاندينو شعرونو په صورت كې په ژبه باندې راشي

جب چلی بغداد میں تاتار کی تیغ نیام — مفتیان شرع میں جاری تھی اک جنگ کلام

ایک کہتا تھا کہ کوا اثبات وسالم حلال — دوسرا کہتا کہ کالی چونچ سے تا دم حرام

اس زمانے کے مورخ نے جو دیکھا تو کہا — مفتیان را مژدہ کار ملت بیضا تمام

**توجمه** هر كله چې په بغداد باندې تاتاريانو حمله وكړه نو د دين مفتيانو هغه وخت بحث كولو يو به ورته ويل چې كارغهٔ حلال دی بل به ورته ويل چې حرام دې.د هغه زمانې تاريخ ليكونكو چې دا حالت وكتلو نو وې ويل چې مفتيانو ددين دغمرازي كارپوره كړو

ليكن كله كله: آخرت نه ناخبره خلق داسې قسمه څه مسئله راپورته كړی چې هغه په خپله د يوې قسمې ضرورت احتيار كړی نو بيا بل ناخواسته په هغې باندې دقلم د پورته كولو ضرورت پيدا شي. والى الله المشتكى ((رشيد احمد))

## د غراب «کارغه» اهلی په هکله تحقیق

د غراب «کارغه» اهلی متعلق د لاندینی تحریر په حقله زما نه استفتاء وکړې شوه، د وخت د نشت والی له کبله دا مسئله ما د جواب د پاره عزتمند مولوی محمد تقی سلمه الله تعالی متعلم شعبه تمرینِ افتاء له ورکړه، الحمد لله هغوی هم هغسې کافی او شافی جواب ولیکلو د څنګه جواب طمع چې د هغوی د قابلیت نه زمونږ وه، کتونکو ته بهٔ د جواب د کتلو نه ددې اندازه وشی- زاده الله تعالی علما وعملا وصلاحا. «رشید احمد»

**سوال**:- د شکار پور سنده علماؤ د کارغهٔ په حرمت کښې یو تحریر لیکلې دې کوم چې ستاسو په خدمت کښې درلیږمه، دا تحریر د جمهورو د مسلک خلاف دې د دې وجې نه د دې په حقله جواب په جلتئ سره چې څومره تحقیق په کښې ممکن وی راکړئ- والاجر عندالله الکریم.

**سوال**:- غراب ملکی حلال ست یا حرام؟ بینوا توجروا-

**جواب**:- غراب ملکی حرام ست از جمله فواسق و موذیات ست، در حدیث شریف:

فی مؤطا الامام مالک عن نافع عن عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ان رسول الله ﷺ قال خمس من الدواب لیس علی المحرم فی قتلهن جناح الغراب والحداة والعقرب والفارة والکلب العقور،

و **در حاشیه مصفی** علی الموطا قال البغوی اتفق اهل العلم علی انه یجوز للمحرم قتل هذه الاعیان ولا شیء علیه فی قتلها فی الاحرام والحرم لان الحدیث یشتمل علی اعیان بعضها سباع وبعضها هوام وبعضها لا یدخل فی معنی السباع ولا هی من جملة الهوام وانما هو حیوان مستخبث اللحم وتحریم الاکل یجمع الکل و قالت الحنفیة لا جزاء بقتل ما ورد فی الحدیث وقاسوا علیه الذئب وقالوا فی غیرها من الفهد والنمر والخنزیر و جمیع ما لا یؤکل لحمه علیه الجزاء بقتلها الا ان یبتدئه شیء فیدفعه عن نفسه فیقتله فلا شیء علیه.

وفی البحر معنی الفسق فیهن خبثهن و کثرة الغرر فیهن،

در هدایه می آرد: والمراد الغراب الذی یاکل الجیف و یخلط لانه یبتدء بالاذی و فی بعض النسخ او یخلط کما نقل عبارتها فی البحر او یخلط الحب بالنجس معناه یاکل الحب تارة والنجس تارة.

و کذا فی الحاشیة للسید الشامی علی البحر نقلا عن النهر عن البدائع قال ابو یوسف رحمه الله تعالی علیه الغراب المذکور فی الحدیث الذی یاکل الجیف او یخلط لان هذا النوع هو الذی یبتدء بالاذی،

د ر مسکین شرح کنز تحت: (قوله ولا شیء بقتل الغراب) می آرد: والمراد به الابقع الذی یاکل الجیف و

يخلط النجس مع الطاهر في التناول.

و درحاشیه علامه ابوالسعود می نویسد: الواو بمعنى او اذ لا حاجة بضم الخلط الى اكلها كما ذكره الحموي انتهى.

و فقهاء کرام دو نوع غراب را از غراب که درحدیث شریف مذکور ست استثناء ساخته اند، یکی غراب الزرع دیگر عقعق کما فی عامة الکتب، بقتل این هر دو نوع برمحرم جزا واجب ست،

در ردالمحتار درتعریف غراب الزرع می نویسد: وهو الذي يلتقط الحب ولا يأكل الجيف ولا يأتي في القرى والامصار.

در تعریف عقعق می آرد : هو طائر نحو الحمامة طويل الذنب فيه بياض وسواد وهو نوع من الغرب يتشاءم به يعقعق بصوت يشبه العين والقاف.

پس این هر دو نوع حلال اند و ازین جاست که فقهاء کرام درکتاب ما یحل اکله و ما لا یحل همین دو نوع غراب را حلال نوشته اند ـ

و در تنویر الابصار می نویسد: وحل غراب الزرع الذي يأكل الحب والارنب والعقعق وهو غراب يجمع بين اكل جيف وحب.

ولا شك ان غراب ديارنا غير العقعق و غير غراب الزرع فيكون داخلا في الغراب المذكور في الحديث فيكون فاسقا وحراما كسائر نظائره.

و آنچه بعض فضلاء این غراب ملکی را حلال دانسته و تمسک گرفته بآنچه بعبارات فقهاء واقع شده: نوع يأكل الحب مرة والاخرى جيفة غير مكروه عند الامام الاعظم رحمة الله عليه

فانه يتوهم منه في بادي الراي ان الغراب المعروف في ديارنا غير مكروه عند الامام رحمة الله عليه لانه يخلط بين الحب والنجاسة.

فنقول ان الفقهاء الكرام حصروا هذا النوع في العقعق.

قال في العناية شرح الهداية اما الغراب الاسود والابقع فهو انواع ثلاثة نوع يلتقط الحب ولا يأكل الجيف و ليس بمكروه ونوع لا يأكل الا الجيف وانه مكروه ونوع يخلط يأكل الحب مرة والجيف اخرى وهو غير مكروه عند الامام رحمة الله عليه ومكروه عند ابي يوسف رحمة الله عليه.

وفي الحاشية السعدية للجلبي اقول قال الزيلعي و نوع يخلط بينهما و هو يوكل عند ابي حنيفة رحمة الله عليه و هو

العقعق كما في المنح وسياتي.

وفي حاشية شرح الوقاية نوع يجمع بين الحب والجيف وهو حلال عند ابي حنيفة رحمه الله وهو العقعق الذي يقال له بالفارسية عكه.

وفي تكملة البحر للعلامة الطرطوسي في شرح (قوله الا بقع) والغراب ثلاثة انواع (الى بقوله) ونوع يخلط بينهما وهو ايضا يوكل عند الامام رحمه الله وهو العقعق.

پس ظاهر شد که این نوع که جامع ست درمیان حب و جیفه و آن نزد امام حلال است منحصر ست درعقعق و او موذی نیست و آنچه درهدایه و شرح مسکین آورده (و یخلط) مراد ازان آن است که اوموذی باشد وآن حرام است، پس غراب که جامع باشد در میان حب وجیفه دوصنف ست یکی که او موذی نیست و آن حلال ست منحصر ست درعقعق و صنف دیگر او موذیست حرام ست.

در تیسیرالقاری شرح صحیح البخاری می آرد : فاسق بودن غراب از آنست که پشت مجروح دواب را وچشم شتر را می کند. انتهی - وبزبان سندهی مشهور ست: (کانو کرکی گذه کنبی)

یعنی وقتیکه غراب آواز دهد حیوانیکه ریش دارد می لرزد، مصداق آن درديار ما همین غراب معروف ست چنانچه در اوصاف ذمیمه او ظاهر ست.

و در رد المحتار می آرد تحت (قوله ولا شیء بقتل غراب لا العقعق) لان الغراب دائماً يقع على دبر الدابة كما في غاية البيان.

ازین عبارت واضح گردید که این غراب که درديار ما ست موذی ست ریش دابه رامی کند و در دبر دابه می افتد و چشم شتر را می کند حرام ست وعقعق غير آنست عقعق را در سندهی(متاه) گویند ـ والله اعلم بالصواب

**المحرر فقير عبدالحكيم صدر مدرس مدرسه اشرفيه شكار پور**

**اسماء گرامی مصدقین بالالفاظ المذكورة في الاصل**

محمد فضل الله مهتمم مدرسه اشرفیه شکارپور ـ عبدالقادر ثانی مدرس ـ الفقير عبدالفتاح ـ مولوی عبدالحق،مولوی غلام مصطفی ،مولوی عبدالمالک،مولوی تاج محمد، مولوی مظفر دین سومرو،مولوی عزیز الله، الفقیر محمد عظیم،عبدالحی جتونی، عبدالكريم چشتی،محمد عارف چشموی، امیدعلی جیکب آبدا، محمد اسمعیل عودوی ثم الشکارفوری،انا عبدالعزيز الباندوی،العبد عبدالغنی، حامد الله بلوچستانی اجمیری، عطاء الله انقلابی، مولوی مظهر الدین مدرسه هاشمیه، عبدالعزیز جتونی .

**العبارات والروايات الزيدة:**

عالمگیریه اردو ص ۴۴۰: کوم مارغان چې نجس او مردار خواره وي، لکه اهلی غراب وغیره پاک طبیعت دې لره خبیث او پلید گڼي. انتهی.

عن هشام عن عروة عن ابيه رضي الله عنهما انه سئل عن اكل الغراب فقال ومن ياكله بعد ما سماه رسول الله ﷺ فاسقا يريد به الحديث المعروف خمس فواسق يقتلن في الحل والحرام.

وفي (المخصص) للاندلسي يقال للغراب ابن داية سمي بذلك لانه مولع بالوقوع على الدبر التي على دايات ظهور الابل والعقعق طائر كالغراب يحجل حجلانا وهو يدجن والغراب لا يدجن والعقعق يسرق كل شيء من الدراهم والدنانير وكل شيء ويخبأه ثم ربما رده بعد ذلك.

نهى النبي ﷺ عن كل ذي مخلب من الطير وروى نهى عن كل ذي خطفة ونهبة والغراب الذي ياكل الحب والزرع حلال بالاجماع. (بدائع الصنائع ص ۳۹ ج ۵)

سالت اباحنيفة عليه الرحمة عن اكل الغراب فرخص في غراب الزرع وكره الغداف فسالته عن الابقع فكره ذلك. (بدائع ص ۴۰ ج ۵)

وفي الموعد الابقع هو الذي في صدره بياض.

قال في المحكم غراب ابقع يخالط فيه سواد وبياض وهو اخبثها.

ردالمحتار از عنایه نقل کرده: نوع لا ياكل الا الجيف وهو الذي سماه المصنف الابقع وانه مكروه الخ.

حقیقت همین است که یک نوع غراب ابقع سوای جیف نمی خورد مراد عنایه همین نوع ست مگر در حدیث از غراب ابقع همان مراد ست که هر دو خلط می کند کما فی تبیین الحقائق والمراد بالابقع ما ياكل الجيف ويخلط كذا في الهداية.

**الجواب**

اقول وبالله استعين. فاضل مجيب د ملکی کارغه په حرمت باندې کوم استدلال کړې دې د هغې حاصل دادې چې فقهاء کرامو ﷺ د کارغهٔ کوم قسم بیان کړې دې چې هغه نجاست وغیره کثبې گډوډ والې کوي. د هغې هم دوه قسمه دي:

۱- عقعق کوم چې موذی ندې.

۲- هغه کارغهٔ کوم چې گډوډوالې کوی او ضرری دې

په دې کښې رومبې قسم خو حلال دې لیکن دا دویم قسم حرام دې، او ملکی کارغهٔ په دویم

قسم کښې داخل دې د دې وجې نه به هغهٔ حرام وی.

په ضرری کیدلو یا نهٔ کیدلو باندې هغوی دا دلیل وړاندې کړې دې، چې په کوم ځائ کښې فقهاء کرام رحمهم الله دا لیکی چې په حالت د احرام کښې د کارغهٔ قتلول روا دی او په دې باندې څه جزاء نشته دې، د هغې لاندې دې کارغهٔ ته ابقع او د هغه قسم سره خاص کوی کوم چې په نجاست او زرع کښې د ګډوډ والی کولو عادتی وی، او د هغې نه پس عقعق د دې نه مستثنی کړی، کما فی الهداية وغيرها. د هغوی د دې فعل نه دا معلومیږی، چې د ګډون کوونکی دوه قسمه دی، یو هغه چې ضرری دې، د دهٔ په قتلولو باندې جزاء واجبه نهٔ ده، دویم عقعق چې دې هم ګډون کوی، لیکن دې ضرری نهٔ دې د دې وجې نه د دهٔ په قتل باندې جزاء واجبه ده.

د ضرری کارغهٔ په حرام کیدلو باندې فاضل مجیب دا دلیل وړاندې کړې دې چې:

شاه ولی الله صاحب رحمه الله په مسوی [1] کښې لیکلې دی چې کوم پنځه ځیزونه په حدیث شریف کښې د عام حکم نه مستثنی کړې شوې دی او دا وئیلې شوې دی چې د دوی په قتلولو کښې څه ګناه نشته دې هغهٔ ټول مکمل حرام دی.

او د فقهاء کرامو رحمهم الله د عبارتونو نه دا معلومه شوه چې په دې ځیزونو کښې هغه ضرری کارغهٔ هم داخل دې کوم چې ګډون کوی.

نو د مسوی د دې عبارت نه د دې کارغهٔ حرامیدل هم معلوم شو.

د خلاصې په توګه استدلال په دې مقدماتو باندې موقوف دې:

۱-د ګډون کوونکی دوه قسمه دی: ۱- ضرری ۲ - عقعق کوم چې ضرری نهٔ دې.

۲- د ضرری کارغهٔ په وژلو په محرم باندې جزاء نه واجبیږی، او د غیر موذی په قتل باندې پرې جزاء راځی.

۳- د مسوی په عبارت کښې دی چې ټول فواسق خمسه د کومو په قتلولو چې په محرم باندې جزا نهٔ راځی هغه حرام دی.

د دې استدلال صحیح کیدل یا نهٔ صحیح کیدلو دارو مدار په دې مقدماتو باندې دې، د دې وجې نه مونږ به په دې کښې د هرې یوې مقدمې نه بحث کوو.

**اوله مقدمه**: دا مقدمه علی الاطلاق صحیح نهٔ ده، ځکه چې عقعق هم کله کله ضرر رسوی.

د صاحب د هدایې د دې قول: **((المراد بالغراب الذی یاکل الجیف او یخلط لانه یبتدء بالاذی اما العقعق غیر مستثنی لانه لا یسمی غرابا ولا یبتدء بالاذی. الخ))**

---

[1] - په اصل جواب کښې کیدې شی چې سهواً مصفی شوې دې کوم چې غلط دې.

لاندې علامه اکمل الدین بابرتی رحمه الله لیکی : **قیل فعلی هذا یکون فی قوله فی العقعق ولا یبتدیٔ بالاذی نظر لانه یقع علی دبر الدابة (عنایة علی هامش الفتح ج۲ص۲۶۰)**

او مولانا عبدالحی صاحب رحمه الله خو تر دې پورې ولیکل چې : **انه دائما یقع علی دبر الدابة (حاشیه هدایه ج۱ص۲۶۳)**

همدغه شان علامه زین الدین ابن نجیم رحمه الله هم د هدایې په دې عبارت باندې اعتراض کړې دې او لیکلې ئې دی : **فیه نظر لانه دائما یقع علی دبر الدابة کما فی غایة البیان (البحر الرائق ص۳۱ ج۳)**

اګر چې علامه شامی رحمه الله د بحر په حاشیې باندې او په ردالمحتار کښې د صاحب د بحر دا اعتراض رد کړې دې او لیکلې ئې دی: **واشار فی المعراج الی دفع ما فی غایة البیان بانه لا یفعل ذلک غالباً.**

لیکن ددې نه هم د عقعق اصلا د ضرری نه کیدلو ثبوت نۀ ترلاسه کیږی، ځکه چې صاحب د معراج د غالباً لفظ استعمال کړې دې،د کومې نه چې معلومیږی چې هغۀ هم کله کله ضرر رسوی .

دویمه دا چې په خپله علامه شامی رحمه الله وړاندې لیکلې دی : **ثم رایته فی الظهریة قال وفی العقعق روایتان والظاهر انه من الصیود قلت وبه ظهر ان ما فی الهدایة هو ظاهر الروایة (منح علی البحر ص۳۱ ج۳)**

علامه عثمانی رحمه الله هم په فتح الملهم کښې د ظهیریې دا قول نقل کړې دې **(ص۲۳۱ ج۳)**

د کومې نه چې معلوم شوچې یو مرجوح روایت دعقعق په حقله دا هم دې چې د هغې په قتل باندې په محرم باندې جزاء نشته ،ظاهره خبره ده چې د دې روایت بنا همدا ده چې عقعق ضرری وی، ځکه چې د احنافوپه نیزد دفواسقو خمسو په قتل باندې د جزاء نه کیدلو علتِ مشترکه هغه ضرردې، لکه څنګه چې علامه ابن رشد په بدایة المجتهد ص ۴۷۰ ج ۱ کښې نقل کړې دې و **سیاتی نصه.**

پس دا خبره ثابته شوه.چې عقعق هم په یوه درجه کښې ضرری دې،که ستاسو په نیز ضرری کارغه حرام دې نو بیا خو عقعق هم حرامیدل پکار دی،**وذلک خلف.**

په هر حال ؛ مقدمة الاولی علی الاطلاق صحیح نۀ ده بلکه په دې کښې د بعضې حضراتو رائې مختلفه ده او کوم حضرات چې دې ته ضرری نۀ وائی،هغوی هم کله کله ددې د ایذا قائل دی .

**دویمه مقدمه** : دا مقدمه د راجح قول په بنا صحیح ده،اګرچې علامه ابن نجیم صاحب رحمه الله په دې سلسله کښې د ټولو خلقو نه متفرد دې او هغوی لیکلې دی : **واطلق فی الغراب فشمل الغراب بانواعه الثلاثة**

لیکن دا صاحب د نهر، علامه حصکفي، علامه شامي او مولانا عثماني ﷫ رد کړې دي -

(شامیه ص۳۰ ج۶، فتح الملهم ص۳۳۱ ج۳)

**دریمه مقدمه** : دا مقدمه هرګز صحیح نهٔ ده. او ددې عدم صحت به د مسوی د اصل عبارت په
کتلو باندې واضحه شي. دا امر ډیر افسوسناک او د حیرانتیا دې چې فاضل مجیب د مسوی د عبارت
په نقل کولو کښې مجرمانه قطع او برید نه کار اخستې دې، کوم چې د علماؤ د شان نه ډیر لرې او یو
ډیر بې ځایه او غلط حرکت دې. زمونږ ذهن ددې فعل د تاویل په تکل کښې ډیرې سرکوندئ وار ولې
لیکن څه لاره ورته ښکاره نهٔ شوه، لږ د مسوی په اصل عبارت باندې یو نظر واچوئ

قال البغوی اتفق اهل العلم علی انه یجوز للمحرم قتل هذه الاعیان المذکورة فی الخبر ولا شیء علیه فی
قتلها وقاس الشافعی رحمه الله علیها کل حیوان لا یوکل لحمه، فقال لا فدیة علی من قتلها فی الاحرام والحرم لان
الحدیث یشتمل علی اعیان بعضها سباع وبعضها هوام وبعضها لا یدخل فی معنی السباع ولا هی من جملة
الهوام وانما هو حیوان مستخبث اللحم وتحریم الاکل یجمع الکل فاعتبروه وقالت الحنفیة رحمهم الله لا جزاء
بقتل ما ورد فی الحدیث وقاسوا علیه الذئب وقالوا فی غیرها من الفهد والنمر والخنزیر وجمیع ما لا یوکل لحمه
علیه الجزاء بقتلها الا ان یبتدئه بشیء فیدفعه عن نفسه الخ (مسوی مع مصفی ص۳۰۲ ج۱)

د کومو جملو لاندې چې کرښې راښکلې شوې دي هغه فاضل مجیب نهٔ دي نقل کړې د کومې نه
چې دا ظاهرېږي چې د **تحریم الاکل یجمع الکل** حکم د احنافو ﷫ دې، حال دا چې د اصل عبارت د
کتلو نه هرڅوک په دې باندې پوهیدې شي چې دا هر څه د امام شافعي رحمه الله د قیاس مطابق بیانیږي
مونږ په ذاتیاتو باندې د حملې کولو عادت نهٔ یو. لیکن دومره عرض کول ضروري ګڼو چې
داسې خو د هر مسلمان ذمه واري ده چې هر وخت خپل آخرت ځان ته وړاندې کړي . لیکن د فتوی
ورکوندې نازک مقام باندې بیا دا ذمه واري ډیره مؤکده شي.

د داسې بزدلئ مظاهره په فتوی کښې یو بل ځائ هم کړې شوې ده چې فاضل مجیب د بحر د
عبارت یوه ټوټه : **ومعنی الفسق فیهن خبثهن وکثرة الضرر فیهن**
نقل کړې ده او ددې نه لږ شان وړاندې د صاحب د هدایې پورتنې قول هم، دې د پاره چې صاحب
د بحر ئې په دې کښې ملګرې معلوم شي، حالانکه دا دومره د خندا او د افسوس حرکت دې چې
چې په حقله څه وئیل نهٔ دي پکار، ځکه چې په خپله د صاحب د بحر د ټول کلام نه د فاضل مجیب

د يوې مزعومې ترديد [۱] کيږي.

صاحب د بحر ليکلې دی: **واطلق في الغراب فشمل الغراب بأنواعه الثلاث.**

او د دې نه پس په صاحب د هدايې باندې ئې هم اعتراض کړې دې: **انه دائما يقع على دبر الدابة**

د کومې نه چې دا هم واضح کيږي چې د صاحب د بحر په نيزد د ټولو قسمونو د کارغانو حکم هم يو دې [۲] او دا هم چې د هغوی په نيز باندې عقعق هم ضرری دې.لهذا که چيرې ضرر رسول علت د حرمت شو نو بيا به عقعق هم د هغوی په نيز حرام شوې وې.حالانکه د عقعق په حلت باندې دټولو فقهاؤ حنفيو رحمهم الله اجماع ده. **الا ابا يوسف رحمه الله**. د دې باوجود فاضل مجيب هغوی هم خپل همخيال ښکاره کول شروع کړل. **سبحان الله هذا بهتان عظيم**.معلومه نده چې د **واذا قلتم فاعدلوا ولو كان ذا قربى** ارشاد د کومو خلقو د پاره دې.

بهر حال د مسوی د کوم عبارت نه چې فاضل مجيب استدلال کړې دې هغه خو د امام شافعی رحمه الله مسلک ثابت شو.اوس لږ په دې حقله د احنافو رحمهم الله مسلک وګورئ.د احنافو رحمهم الله په نيز د دې پنځو فواسقو د قتلولو علت ابتداء بالاذی ده، اکل د نجاست يا خلط نۀ دې او نۀ د حلت او د حرمت سره ددې څه تعلق شته ، لکه څنګه چې په خپله د مسوی د ذکر کړې شوی عبارت د آخری جملو نه مستفاد کيږي.

**وقالوا في غيرهما من الفهد والنمر والخنزير وجميع ما لا يوكل لحمه عليه الجزاء بقتلها الا ان يبتدئه شيء فيدفعه عن نفسه فيقتله فلا شيء عليه.**

يعنی که يو ځناور ابتداء په ضرر وکړی او په دفاع کښې هغه قتل کړې شی نو بيا په کښې هيڅ جزاء واجبه نۀ ده.معلومه شوه دا خبره چې ابتداء بالاذی علت دې،علامه ابن رشد رحمه الله هم او د مالکيانو هم همدا مسلک دې:

**قال (المسألة الثالثة) و هي اختلافهم في الحيوان امامور بقتله في الحرم و هي الخمس المنصوص عليها، الغراب والحدأة والفارة والعقرب والكلب العقور فان قوما فهموا من الامر بالقتل لها مع النهي عن قتل البهائم المباحة الاكل ان العلة في ذلك هو كونها محرمة، وهو مذهب الشافعي رحمه الله وقوما فهموا من ذلك معنى**

---

۱- اے چشم اشکبار ذرا دیکھ تو سہی یہ گھر جو بہہ رہا ہے کہیں تیرا گھر نہ ہو - رشید احمد    **ترجمه** ائې د ژړا د سترګو خاونده لږ اوخو ګوره دا کور چې کوم لاهو کيږي چرته ستا کور خو نۀ دې

۲- پس که چيرې هر مباح القتل ځناور حرام دې نو بيا خو په کښې د غراب الزرع حرمت هم لازم راځی حالانکه د هغې د حرمت څوک هم قائل نۀ دی - **رشيد احمد**

التعدی لامعنی التحریم وهو مذهب مالك وابی حنیفة وجمهور اصحابهما (بداية المجتهد ص۳۰۰ ج۱)

په دې عبارت کښې د وضاحت سره د احنافو دا مذهب لیکلې شوې دی چې په حدیث کښې دمباح القتل د فرمائیلو علت ابتداء بالاذی ده،او د دې دلیل نه د یو خاص خیز په حرمت باندې دلیل نهٔ شی قائمیدلې،ددې نه علاوه د ټولو فقهاء کرامو د عبارتونو نه همدا معلومیږی، څکه چې هغوی د یو خاص ځناور په قتلولو باندې د جزاء د واجب کیدلو یا نهٔ کېدلو په حقله ابتداء [۱] بالاذی ته مدار وائی، کما فی الهداية والبحر والعناية وغيرها.

هر کله چې دا خبره ثابته شوه نو ورسره دا خبره هم واضحه شوه،چې د کارغهٔ د حلالیدلو یا د حرامیدلو مسئله مونږ له په کتاب الحج کښې کتل نهٔ دی پکار بلکه ددې صحیح مقام د کتاب الذبائح هغه ځائ دې کوم ځائ کښې چې فقهاء کرام د غراب د انواعو او د اقسامو نه بحث کوی، هم دا بنیادی غلطی ده چې یو مسئله د هغې د صحیح مقام نه اخواته په بل غیر متعلقه ځائ کښې کتلې شی،حالانکه په کتاب الذبائح کښې د فقهاء کرامو عبارتونه واضحه دی او د هغې نه د ملکی کارغه حلت ثابتیږی .

۱ - ملک العلماء امام کاسانی لیکی :

والغراب الذی یاکل الحب والزرع والعقعق ونحوها حلال بالاجماع (بدائع ص۳۹ ج۵)

۲ - شمس الائمه سرخسی لیکی:

خمس فواسق يقتلن فی الحرم والمراد به ما یاکل الجیف واما الغراب الزرعی الذی یلتقط الحب فهو طیب مباح لانه غیر متسخبث طبعا وقد یألف الادمی کالحمام فهو والعقعق سواء ولاباس باکل العقعق وان کان الغراب بحیث یخلط فیاکل الجیف تارة والحب تارة فقد روی عن ابی یوسف انه یکره وعن ابی حنیفة

---

۱ - غالبا مستدل ته هم ددې نه انکار نشته دې بکله هغه د هر ضرری یا په نورو الفاظو د هر مباح القتل د حرمت مدعی دې،د مستدل دلیل به په صورت د شکلِ اول کښې دا وی : (هر مباح القتل موذی دې او هر موذی حرام دې،نتیجه ئې دا راوتله چې هر مباح القتل حرام دې).

د دې دلیل کبری مسلمه نهٔ ده : اول : څکه چې حضرات فقهاء کرامو د حرمت په اصولو کښې د ضرر ذکر نهٔ دې کړې. وسیاتی ذکر اصول حرمة الطیور،فانتظر

دویم : څکه چې دملکی غراب په حلت باندې دحضراتو فقهاء کرامو صریح عبارتونه وړاندې راروان دی

دریم : څکه چې صاحب د نهر او ابن عابدین وغیرهما د صاحب د بحر د قول اباحة قتل الغراب بانواعه الثلاثة باندې د رد کولو په وخت کښې دا وجه نهٔ ده وړاندې کړې چې په صورت د تعمیم کښې به غراب الزرع او د عقعق حرمت لازم راځی، بلکه د هغې په غیر موذی کیدلو باندې ئې استدلال کړې دې۔ رشیداحمد

انه لا باس باکله وهو الصحیح علی قیاس الدجاجة فانه لا باس باکلها وقد اکلها رسول الله ﷺ وهی قد تخلط ایضا وهذا لان ما یاکل الجیف فلحمه ینبت من الحرام فیکون خبیثا عادة وهذا لا یوجد فیما یخلط (مبسوط سرخسی ص۲۲۶ ج۱۱)

۳- په عالمگیریه کښې د فتاوی قاضیخان نه نقل کړې شوې دی:

عن ابی یوسف رحمه الله قال سالت اباحنیفة رحمه الله عن العقعق فقال لا باس به فقلت انه یاکل النجاسات فقال انه یخلط النجاسة بشیء آخر ثم یاکل فکان الاصل عنده ان ما یخلط کالدجاج لا باس (عالمگیریة کتاب الذبائح ص۲۹۰ ج۵)

دکومو جملو لاندې چې کرښې راښکلې شوې دی په هغې باندې په خاص توگه غور کولو نه پس به دا خبره واضحه شی چې هر گډون کوونکې کارغهٔ حلال دې.

پاتې شو دا اعتراض چې فقهاء کرامو ﷺ چې د گډون کوونکو کارغانو په حقله دا حکم کړې دې چې هغه حلال دی، هغه ئې بیا د عقعق سره محصور کړی دی.

لهذا د دې بنا صحیح نهٔ ده، ځکه چې د دې دلیل دا وړاندې کړې شوې دې چې فقهاء کرام ﷺ د گډون کوونکی کارغه نوعه اوښائی او وړاندې وروسته بیا فرمائی **وهو العقعق** او دا دلیل د یو څو وجوهو نه باطل دې.

۱- **وهو العقعق** غوندې الفاظ خود حصر بالکل ندی، که محصورول ئې مقصود وو نو په صراحت سره به ئې دا وئیلې وو چې **هذا النوع محصور فی العقعق** ځکه چې د حلت او د حرمت اهمه مسئله ده، همدا وجه ده چې ټولو فقهاء کرامو ﷺ داسې نهٔ دی کړې چې په آخر کښې ئې د عقعق تصریح کړې وی، لکه عنایه، مبسوط او بدائع وغیره، معلومه شوه دا خبره چې دا قید اتفاقی دې احترازی نهٔ دې.

۲- د دې په خلاف د مبسوط، بدائع او د عالمگیریه عبارتونه په عقعق او د غیر عقعق د تفصیل [1] نهٔ کیدلو وجې نه واضحه دی، ښه صفا ترې نه دا خبره معلومه شوه چې هر گډون کوونکې کارغهٔ حلال دې، برابره خبره ده که عقعق وی او که نه.

۳- په اصل کښې د عقعق په کارغهٔ کیدلو کښې اختلاف دې، بعضې خلق دا په غراب کښې

---

[1] - یعنی گډون کوونکې کارغه د عقعق نه ځان له بیل په مستقله توگه ذکر کول صریح دلیل دې چې د حلت حکم د عقعق سره مخصوص نهٔ دې بلکه د عقعق نه علاوه بل کارغه هم کوم چې گډون کوی حلال دې. رشید احمد

داخل بولی او بعضې ئې نۀ بولی،لکه ځنګه چې لویس معلوف یسوعی د خپل لغت په مشهور کتاب کښې لیکلې دی : **العقعق طائر علی شکل الغراب اوهو الغراب (منجد ص ۵۲۳)**

لهذا د صاحب د هدایې په نیزد عقعق غراب نۀ دې،لکه ځنګه چې هغوی لیکلې دی :

**اما العقعق غیر مستثنی لانه لایسمی غرابا (هدایة مجتبائی ص ۴۲۳ ج۱)**

او د نورو بعضو فقهاء کرامو ﷺ د عبارتونو نه د دې غراب کیدل معلومیږی،نو چې اوس کومو خلقو عقعق په غراب کښې داخل ونۀ منلو ،هغه حضرات د غراب انواع بیان کړی او تیر شی او **وهو العقعق** نه وائی بلکه یا خو له سره ددې ذکر نۀ کوی او یا **وکذا العقعق** وغیره وائی او چا چې عقعق په غراب کښې شامل کړې دې هغې حضراتو د ګډون کوونکی کارغۀ نوم عقعق کیښودلو، ددې وجې نه په دې سلسله کښې د فقهاء کرامو ﷺ په عبارتونو کښې څه تفاوت په نظر راځی.

په هر حال ! معلومه شوه چې **وهو العقعق** وئیلو سره د ګډون کوونکی نوعې حصر عقعق کښې نۀ دې کړې شوې.

## د العبارات المزیدة جواب :

د فتوې په آخر کښې چې کوم «عبارات مزیده» وړاندې کړې شوې دی،په هغې کښې د «المخصص» للاندلسی نه چې کوم عبارت نقل کړې شوې دې،هغه د پورته بحث نه پس قابل د اعتناء نه پاتې کیږی، **کمالایخفی**.

البته د څو روایتونو د نقل کولو نه پس چې فاضل مجیب کوم تحقیق کړې دې هغۀ ډیر عجیبه دې، چې د ابقع هم دوه قسمه دی،یو ګډون کوونکې او بل صرف نجاست خوړونکې،ځکه چې په تبیین الحقائق کښې دی : **والمراد بالابقع الذی یاکل الجیف ویخلط کذا فی الهدایة**.

او بیا ئې هماغه دلیل وړاندې کړو چې ابقع حرام دې،چونکه په حدیث کښې د غراب نه مراد ابقع دې او حضرت عروه ﷺ فرمائی : **ومن یاکله بعد ما سماه رسول الله فاسقا**.

د دې جواب دا دې چې **(ابقع)** لغتا هغه کارغه ته وئیلې شی،چې په کښې تور والې او سپین والې دواړه موجودوی، لهذا ددې اطلاق د کارغانو په درې واړو قسمونو [1] باندې کیږی ، صرف دانه خوړونکې کارغه ته هم ابقع وئیلې کیدې شی،ګډون کوونکې کارغه ته هم،او صرف نجاست خوړونکی کارغه ته هم،لهذا علامه شامی د غراب الزرع تشریح کړې ده او فرمائیلې ئې دی :

---

۱ - **قال فی العنایة واما الغراب الاسود والابقع فهو انواع ثلاثة نوع یلتقط الحب ولا یاکل الجیف الخ** (عنایة مع الفتح ص ۶۲ ج ۸) ۱۲ رشیداحمد ۱

**قال القهستانی واريد به غراب لم ياكل الا الحب سواء كان ابقع او اسود او زاغا وتمامه فی الذخيرة (شامية ص۲۰۸ ج۵)**

دويمه دا که چيرې واقعتاً داسې وې، نو ټولو فقهاء کرامو رحمهم الله به دا په صراحت تامه سره تحرير کړې وو، ځکه چې دا معامله اهمه ده، په خصوصيت سره په کتاب الذبائح کښې خو پوره تفصيل ذکر کيدل پکار وو، حالاناکه فقهاء کرام رحمهم الله ابقع په عامه توګه د نجاست په خوړونکو کښې خاص[1] کوی، د مثال په توګه د عالمګيريې دا عبارت لږ وګورئ: **الغراب الابقع وهو ما ياكل الجيف (عالمگيريه ص۲۸۸ ج۵)**

پاتې شو د حضرت عروه رضی الله عنه قول نو په دې سلسله کښې مونږ صرف دومره عرض کوو چې شمس الائمه سرخسی رحمه الله د کارغهٔ په حقله څه ليکلې دی هغه ئې د دې حديث[2] د نقل کولو نه پس ليکلې دی، د هغې پوره عبارت داسې دې:

**(وعن) هشام بن عروة عن ابيه رضی الله عنهما انه سئل عن اكل الغراب فقال ومن ياكله بعد ما سماه رسول الله ﷺ فاسقا يريد به الحديث المعروف خمس يقتلن فی الحرم، والمراد به ما ياكله الجيف اما الغراب الزرعی الذی يلتقط الخ (مبسوط سرخسی ص۲۲۶ ج۱۱)**

د دې وجې نه اوس په دې کښې د څه بحث ګنجائش باقی پاتې نهٔ دې:

البته عالمګيريه د اردو چې کوم عبارت وړاندې کړې شوې دې، هغه په دې مسئله کښې صريح

---

[1] - په خپله مستدل د شاميې نه نقل کړې دی: **نوع ياكل الا الجيف وهو الذی سماه المصنف الابقع وانه مكروه ايضا فيها والغداف وهو المعروف عند اهل اللغة بالابقع الخ (ص۲۳۰ ج۲)** د دې جواب حاصل دا دې چې مباح القتل ملکی کارغهٔ ته نهٔ دې شامل، ليکن هر کله چې پورته دا ثابت کړې شو چې هر مباح القتل حرامه نهٔ دې نو ددې د جواب ضرورت نهٔ پاتې کيږی -رشيد احمد.

[2] - ابن رشد رحمه الله هم په بداية المجتهد کښې همدا حديث ملحوظ ساتلې دې او د امام ابوحنيفة او د امام مالک رحمهما الله تعالی نه ئې د حلت قول نقل کړې دې، **كما مر نصه**

د حضرت عروة رضی الله عنه د فسق د لفظ نه په حرمت باندې استدلال کول مسلم نهٔ دی، **قال الامام النووی رحمه الله:**

**تسمية هذه الخمس فواسق تسمية صحيحة جارية على وفق اللغة فان اصل الفسق لغة الخروج وفسقت الرطبة اذا خرجت من قشرها فوصفت بذلك لخروجها عن حكم غيرها من الحيوان فی تحريم قتله او حل اكله او خروجها بالايذاء والافساد (نيل الاوطار ص۲۲ ج۵) وفی فتح الملهم واما المعنى فی وصف الدواب المذكورة بالفسق فقيل لخروجها عن حكم غيرها من الحيوان فی تحريم قتله وقيل فی حل اكله وقيل لخروجها عن حكم غيرها بالايذاء والافساد وعدم الانتفاع (الى ان قال) وهو يرجح القول الاخير والله اعلم كذا فی الفتح (فتح الملهم ص ۲۳۰ ج ۳) ۱۲ رشيد احمد.**

کیدې شی، لیکن افسوس چې عالمگیریه اردو مونږ سره نشته او په اصل عربی عالمگیریه کښې باوجود د تکل نه ددې مطلب څه عبارت ترلاسه نۀ شو، بلکه ددې خلاف یو صراحت ترلاسه شو کوم چې مونږ پورته ذکر کړې دې، تر څو پورې چې مونږ ته اصل عبارت ترلاسه نۀ شی تر هغه وخته پورې مونږ څه فیصله قطعی ددې عبارت په حقله نۀ شو کولې، لاسیما اذا جربنا ما جربنا.

او که دا عبارت بالفرض صحیح هم وی نو څومره صراحتونه چې مونږ وړاندې کړل، د هغې نه پس د دې څه معتدبه حیثیت پاتې نۀ شو، ددې خلاف په خپله هم په عالمگیریه کښې دومره قدر صریح نص موجود دې.

## د کلام خلاصه

فاضل مستدل د ټولو استدلاتو بنیاد د کتاب الحج عبارتونه جوړ کړې دی، حال دا چې دا بنیادی غلطی ده، ځکه چې په حرم یا په حالت د احرام کښې د قتل د اباحت علت ایذاء[۱] ده، کما صرح به ابن رشد ویستفاد من سائر کتب الفقه، حرمت یا اکل د نجاست او گډون نۀ دې، په خلاف د کارغۀ د حلت او د حرمت چې هلته علت صرف نجاست خوړل یا گډون کول دی کما صرح به فی الهدایة والمبسوط، ددې وجې نه د یو جوړ د بل سره یو ځائ کول او حکم لگول په هیڅ شان سره هم صحیح کیدې نۀ شی.

بلکه د کارغۀ د حلت او د حرمت د معلومولو دپاره په کتاب الذبائح کښې هغه ځائ کتل پکار دی کوم ځائ کښې چې فقهاء کرامو ﷺ ددې مسئلې ذکر کړې دې او د مختلف قسمونو کارغان او د دې احکام ئې ذکر کړې دی او ددې نه دا معلومیږی چې هر گډون کوونکې کارغۀ حلال دې برابره خبره ده که هغه ضرری وی او که نۀ وی ضرری، او همدا فیصله زمونږ د اکابرو مثلاً د حضرت مولانا گنگوهی وغیره نه منقوله ده. هذا ما بدالی بعد تحقیق وفوق کل ذی علم علیم

احقر محمد تقی عثمانی غفرالله له ۴ ربیع الاول ۱۳۸۰ هجری دارالعلوم کراچی ۱۴

---

## تکمله له جانبه د بنده رشید احمد نه

حامداً ومصلیاً، امابعد قال العلامة البابرتی رحمه الله:

واما الغراب الاسود والابقع فهو انواع ثلاثة نوع یلتقط الحب ولا یاکل الجیف ولیس بمکروه ونوع منه لا

---

۱- او ایذاء علت د حرمت نۀ دې کما ثبت" رشید احمد

یاکل الا الجیف و هو الذی سماه المصنف الابقع الذی یاکل الجیف و انه مکروه و نوع یخلط یاکل الحب مرة والجیف اخری ولم یذکره فی الکتاب وهو غیر مکروه عند ابی حنیفة رحمه الله مکروه عند ابی یوسف رحمه الله (العنایة علی هامش الفتح ص۱۲ ج۸)

نوع منه لایاکل الا الجیف او د دې تفسیر د وهو الذی سماه ـ الخ نه ثابت شو چې فقط هغه ابقع حرام دې کوم چې صرف نجاست خوری.

بله د ونوع یخلط (الی قوله) ولم یذکره فی الکتاب نه معلوم شو چې هر یو ګډون کوونکې کارغهٔ حلال نهٔ دې، په دې کښې د عقعق څه تخصیص نشته دې، دا عبارت یواځې دا نهٔ چې د عقعق د تخصیص نه ساکت دی بلکه په عدم تخصیص باندې ناطق دی، ځکه چې د عقعق ذکر خو په هدایه کښې هم په دې موقع باندې موجود دې لهذا ولم یذکره فی الکتاب صریحی نص دې چې د نوع یخلط نه مراد عقعق نهٔ دې.

د مبسوط او د بدائع د عبارت نه هم دا ثابته کړې شوه.

مخدوم عبدالواحد سیوستانی رحمه الله هم د غراب اهلی د حلت تصریح فرمائیلې ده. ونصه:

ماحکم خرء الغراب الذی یطیر فی الامصار والقری و یخلط بین التقاط الحب والعذرات وما حکم سوره؟

**الجواب**: الظاهر ان الغراب الابقع الذی فیه سواد و بیاض و هو مکروه عند الصاحبین رحمهما الله تعالی وغیر مکروه عند الامام رحمه الله لما فی السراجیة والابقع والاسود ان کان یخلط فیاکل الجیف ویاکل الحب قال ابوحنیفة رحمه الله لایکره وقال صاحباه رحمهما الله تعالی یکره انتهی، فیکون ماکول اللحم (الی ان قال) وان لم یکن لخرئه رائحة کریهة یکون طاهرا لکون خرئه خرء ماکول اللحم من الطیور التی تزرق فی الهواء الخ (فتاوی واحدیه ص۳۹)

د پورتنو عبارتونو نه علاوه په لاندینی نصوصو کښې هم ددې تصریح ده چې د حلت او د حرمت مدار په خوراک باندې دې:

۱- واصل ذلك ان ما یاکل الجیف فلحمه نبت من الحرام فیکون خبیثا عادة وما یاکل الحب لم یوجد ذلك فیه وما خلط کالدجاج والعقعق فلا باس باکله عند ابی حنیفة رحمه الله وهو الاصح لانه النبی ﷺ اکل الدجاجة وهی ما یخلط (العنایة مع الفتح ص۱۲ ج۸)

۲- فکان الاصل عنده ان ما یخلط کالدجاج لاباس (عالمگیریة ص۲۲۱ ج۵)

په آخر کښې د ابو حنیفهٔ عصر، فقیه النفس حضرت ګنګوهی رحمه الله فیصله هم د تذکرة الرشید نه

**کولې شي ونصه:**

هر کله چې دا فیصله له خپله د فقهې په کتابونو کښې ذکر شوې ده چې مدار د دې په خوراک باندې دې، لهذا دا کارغۀ کوم چې په دې کلو کښې موندې شی که چیرې دا عقعق نۀ وی نو بیا هم ددې په حلت کښې څه شبه نشته دې، ددې وجې نه هر کله چې دا کارغه هم ګډون کوی او نجاست او غله او دانه وغیره هر څه خوری نو ددې حلت هم په شان د عقعق معلوم شو برابره خبره ده که دې ته عقعق اووئیلې شی او که ونه وئیلې شی، **فقط والله اعلم.** **رشید احمد گنگوهی عفی عنه**

د ذکر شوی عبارت په حاشیه کښې لیکلې شوې دی:

هر کله چې د مخالفینو په دې مسئله باندې شور زیات شو نو د اویاو نه د زیاتو عالمانو د مواهیرو نه مو یو رساله په نوم د (فصل الخطاب) چاپ کړو، بله دا چې یو حاجی د علماؤ د حرم نه د دې د حلت فتوی واخسته، **وهی هذه** :

**الحمد لله وحده. رب زدنی علماً. الغراب المذکور حلال من غیر کراهة عند ابی حنیفة رحمه الله علیه وهو الاصح وهو المسمی بالعقعق بتصریح فقهائنا رحمهم الله واصاب من افتی بحله وجواز اکله وکیف یلام الحنفی علی اکل ما هو حلال عند امامه من غیر کراهة.**

**والاصل فی حل الغراب وحرمته الغذاء وکونه ذا مخلب لا بصورته ولونه کما یدل علیه تصریحات فقهائنا رحمهم الله فی غالب معتبرات المذهب کما فی البحر الرائق والدر المختار والعناية وغیرها وفیما نصه جامع الرموز اشعار بانه لو اکل کل من الثلاثة الجیف والحب جمیعا حل ولم یکره وقالا یکره والاول اصح فثبت مما صرح به علماؤنا ان الغراب بانواعه سواء کان عقعقا او غیره اذا کان یجمع بین جیف وحب یجوز اکله عند امامنا الاعظم رحمه الله علیه. والله اعلم.**

**قاله بفمه وامر برقمه عبد الله بن عباس بن صدیق مفتی مکة المشرفة.**

د همدې مضمون د علماؤ د مدینې منورې هم فتوی موجوده ده. **(تذکرة الرشید حصه اول ص۱۸)**

د دې تحریر نه پس دا مسئله داسې واضحه شوه چې د انکار څه ځائ په کښې پاتې نۀ شو، **فبای حدیث بعده یؤمنون ۞ فقط والله الهادی الی سبیل الرشاد.**

**رشید احمد**

**۱۵ ربیع الاول ۱۳۸۰ هجری**

**لله در المجیب الاول وارشاد الرشید الثانی حیث اوضحوا الحق والصواب بحیث لا یبقی منه ریب مرتاب.**

**بنده محمد شفیع عفا الله عنه دار العلوم کراچی ۲۱ ربیع الاول ۱۳۸۰ هجری**

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

﴿وَمَا تَوۡفِيۡقِيۡٓ اِلَّا بِاللّٰهِؕ عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُ وَاِلَيۡهِ اُنِيۡبُ﴾

# احسن القضاء

# فی

# الذبح باعانة الكهرباء

**«د ماشینی د ذبیحې حکم ، په دوو متضادو فتواګانو کښې محاکمه»**

## احسن القضاء

تاریخ د تالیف ـــــــــــــــــــ ۲۲ ربیع الاول ۱۳۸۲ هجری

اولنۍ طبع ـــــــــــــــــــ ۱۳۸۲ هجری

**ملاحظات** : ـــــــــــ

دحلت سره له عدم جواز نه فتوی : **له مفتی محمد شفیع صاحب نه**

دحرمت فتوی : **له مفتی محمود صاحب قاسم العلوم ملتان نه**

محاکمه : **له طرفه د مؤلف رحمه الله تعالی**

د دلائلو نقلیو او عقلیو سره حلت سره د ثبوت د عدم جواز نه .

## د ماشینی ذبیحې حکم

د ماشینی ذبیحې په حقله د حضرت مفتی محمد شفیع صاحب او د مفتی محمود صاحب قاسم العلوم ملتان دوه متضاد فتوی ګانې ستاسو په خدمت کښې درلیږم تاسو ئې وګورئ او خپله رائې پرې قائمه کړئ. والاجر عندالله الکریم.

**څه فرمائی علماء دین او مفتیان د شرعې په دې مسئله کښې:**

۱- بعض علماء وائی چې په احادیثو کښې کومې طریقې د ذبحې ذکر کړې شوې دی، یعنی په حلق او لبې باندې چاړهٔ، چاقو وغیره د تیز مخ آلې باندې ذبح یا نحر کول، دا (امر تعبدی) نهٔ دې بلکه (امر عادی) دې، په عربو کښې همدغسې ځناور ذبح کولې شی، د دې وجې نه رسول الله ﷺ د یو څو هدایاتو سره همدا طریقه قائمه وساتله، لهذا مسلمان یا کتابی چې بسم الله الله اکبر اووائی او په کومه طریقه باندې ئې هم ذبحه اوکړی، ذبیحه به حلاله وی آیا دا قول صحیح دې او که نه؟

۲- د صنعتی ترقئ په دې ماشینی دور کښې انسان د زیات نه زیات کار په خپل لاس باندې د کولو په ځائ له ماشینونو نه اخلی، لهذا په اروپا او امریکا کښې داسې برقی ماشینونه ایجاد شوې دی چې ډیر ځناور د هغې د لاندې ودرولې شی او په یو ځل بټن وهلو سره د هغې ټولو ځناورو ځټونه پرې شی، نو که چیرې بټنه وهونکې مسلمان یا کتابی بسم الله، الله اکبر اووائی او بټنه اووهی نو آیا دا ذبیحه حلاله ده او که حرامه؟

**الجواب:** له طرفه د حضرت مفتی محمد شفیع صاحب نه:

۱ - دا قول صحیح نهٔ دې، د ځناور د ذبحه کولو د پاره په نص د قرآن سره (**ذکاة شرعی**) ضروری دې، او د **ذکاة اختیاری** شرعی طریقه ذبح یا نحر ده، او ددې محل حلق او لبه ده، د کومې تعین چې په حدیثِ صحیح کښې د (**امورِ عادیه**) په طریقه نه بلکه په (**تشریعی**) طریقه باندې کړې شوې دې.

۲- دغه شان د ځناور د ځټ د پورته اړخ نه پرې کول او بیلول، برابره خبره ده که په لاس سره وی او که په چاړهٔ سره وی یا د څه ماشین په ذریعه وی، دا د ذبحې د شرعی طریقې خلاف دی او په اتفاق د جمهورو ناجائز او ګناه ده، البته کوم ځناور چې په دې ناروا طریقه سره ذبح کړې شو، د هغې د غوښې په حلت کښې دا تفصیل دې چې که د بټنې په وهلو باندې دا چاړهٔ د ټولو ځناورو په ځټونو باندې په یو وخت کښې راغله او د بټنې وهلو په وخت کښې بسم الله وئیلې شوې وه، نو دا یوه بسم الله د ټولو د پاره کافی شوه، او که نه وړاندې وروستو ترې نهٔ ځټونه په وار وار پرې شو نو دا بسم الله به صرف د ړومبی ځناور دپاره کافی شی او د باقی پاتې ځناورو دپاره به دا بسم الله معتبره نهٔ وی، او د دې وجې نه په اتفاق د امت سره به دا ټول ځناور حرام او مردار وی.

بیا دغه شان د څټ د اړخې پورته نه د ذبحه شوې څناور، په کومو باندې چې بسم الله وئيل معتبره هم ده ددې په حلت کښې د فقهاؤ، د صحابهٔ کرامو، او د تابعينو اختلاف دې، د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه د دې هم د حرام کيدل منقول دی، او د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما دې طريقې د ذبحې ته ناروا او د ګناه وئيلو باوجود د دې غوښې ته حلاله وائی. (صحيح بخاری کتاب الذبائح)

### د جواب تفصيل او تشريح:

تفصيل د دې اجمال دا دې چې قرآن کريم د يو څناور د غوښې د حلاليدلو دپاره ذکاة ضروری ګرځولې دې، بغير د شرعی ذکاة نه ذبيحه قطعاً حرامه ده، دا ذکاة د قرآن يو اصطلاحی لفظ دې، چې تشريح ئې عنقريب راروانه ده.

په سورهٔ مائده کښې د قرآن کريم واضح ارشاد دې: ﴿حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَالدَّمُ وَلَحْمُ الْخِنزِيرِ وَمَا أُهِلَّ لِغَيْرِ اللَّهِ بِهِ وَالْمُنْخَنِقَةُ وَالْمَوْقُوذَةُ وَالْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيحَةُ وَمَا أَكَلَ السَّبُعُ إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ﴾.

په دې آيت کريمه کښې د حرمت نه مستثنې صرف هغه څناور دی کوم چې په ذکاة شرعی سره حلال کړې شوې وی، د ذکاة شرعی په حقله امام راغب اصفهانی رحمه الله په مفردات القرآن کښې فرمائيلې دی: وحقيقة التذكية اخراج الحرارة الغريزية لكن خص فى الشرع بابطال الحياة على وجه دون وجه.

د امام راغب د دې تصريح نه دوه خبرې معلومې شوې، يوه دا چې ذکاة مطلقا د څناور دقتلولو نوم نهٔ دې، بلکه د دې د پاره يوه خاصه طريقه مقرره ده، بله دا چې خاص طريقه هسې د عادتونو او د رسمونو پابنده نهٔ ده، بلکه يوه شرعی اصطلاح او يو قانون دې.

بيا قرآن او سنت د ذکاة دوه صورتونه ټاکلی دی، يو اختياری، لکه د کور او د ساتلو شوو څناورو ذکاة، دويم غير اختياری، لکه د ښکار، يا کوم څناور چې په څه وجه له کنټرول نه بهر شی، په مقرره طريقه باندې نهٔ شی ذبحه کيدلې، د دويم صورت ذکاة مطابق د تصريح د احاديثو صحيحو په بسم الله وئيلو سره غشې يا نيزه وغيره باندې زخم لګول او زخمی کول او وينه تړې نه توبول دی، ذبح يا نحر په کښې شرط نهٔ دې.

او د ړومبی قسم يعنی اختياری ذکاة د پاره ذبح يا نحر ضروری دې، په غوا، غوئی او بکرئ کښې د ذبحې او په اوښ کښې د نحر حکم دې.

د ذبحې حقيقت دا دې چې څلور رګونه يعنی حلقوم، مرئ، او د دې دواړو اړخ ته د څټ دوه رګونه کومې ته چې ودجين وائی، هغه پرې کول، او د نحر دا صورت دې چې څناور اودرولې شی او د هغې په لبه يعنی د حلقوم په کنده کښې هغه په نيزه يا په چاړهٔ باندې اووهلې شی او وينه تړې نه توبی کړې شی

په قرآن کریم کښې د غوا په حقله ((ان تذبحوا البقرة)) او د ((فذبحوها)) الفاظو سره او د ګډ په حقله د ((وفدیناه بذبح عظیم)) الفاظو نه دا خبره معلومه شوه چې په غوا، غوټی، بکرۍ او ګډ وغیره کښې ذبح کول مسنون دی، او د ((فصل لربك وانحر)) د الفاظو نه د اوښ نحر کول معلوم شو، ځکه چې دا آیت د اوښ د قربانی کولو په حقله نازل شوې دې، بل ځائ کښې په قرآن کریم کښې د اوښانو په حقله د ((صواف)) لفظ هم راغلې دې، ددې نه هم د اوښ نحر کول مفهومیږی.

د رسول الله ﷺ او د صحابهٔ کرامو رضی الله عنهم تعامل هم همیشه همدا وو، د دې په خلاف کول یعنی د اوښ ذبح کول اود غوا، بکرۍ وغیره نحر کول چرته هم منقول نهٔ دی.

د دې وجې نه په اتفاق د امت سره داسې کول روا نهٔ دی، که چا د سنتو خلاف داسې وکړل، نو د امام مالک رحمه الله په نیز ددې غوښه هم حرامه شوه، د نورو امامانو رحمهم الله په نیز اګرچې د دهٔ د سنتو نه د خلاف د ذبحې کولو ګناه وشوه لیکن په حقیقت کښې په کښې ذکاة وموندلې شو د دې وجې نه ددې غوښه حلاله ده.

**لما فی البدائع ولو نحر ما یذبح وذبح ما ینحر یحل لوجود فری الاوداج ولکن یکره لان السنة فی الابل النحر و فی غیرها الذبح (الی قوله) و قال مالك اذا ذبح البدنة لا تحل لان الله تبارك وتعالی امر فی البدنة بالنحر بقوله عزشانه فصل لربك وانحر فاذا ذبح ترك المأمور به فلا یحل (بدائع ص۴۱ ج۵)**

**ترجمه:** په بدائع کښې ذکر کړې شوې دی چې که ذبح کیدونکې ځناور ئې نحر کړو، یا نحر کوونکې ځناور ئې ذبح کړو نو ذبیحه به ئې حلاله وی، ځکه چې د ځټ د رګونو پرې کیدل په کښې وموندې شول، لیکن مکروه به وی، ځکه چې سنت په اوښ کښې هغه نحر دې او په باقی پاتې ځناورو کښې ذبحه ده، دامام مالک قول دې که اوښه ذبحه کړې شوه، نو دا به حلاله نهٔ وی ځکه چې الله تعالی په آیت کریمه ((فصل لربك وانحر)) کښې د اوښ د نحر کولو حکم کړې دې، نو هر کله چې دې سړی په ځائ د نحر دا ذبحه کړو نو هغهٔ فعل مامور به (د کوم چې حکم وو) ترک کړو.

د ځناور د حلالیدلو د پارهٔ ذکاة شرعی شرط او د ذکاة قسمونه او احکامو په حقله د پورته قرآنی، او د احادیثو تصریحاتو نه، او د اقوالو د صحابه کرامو او د تابعینو نه دومره خبره د پوهې د پاره کافی ده چې د ذبحې کومه طریقه رسول الله ﷺ تعلیم فرمائیلې ده هغه هسې رسم او عادت نهٔ دې، بلکه د جاهلیت رسمونه او عادتونه بدل کړې شو او یوه (تعبدی) طریقه جاری کړې شوه، د کومې خلاف کول چې ګناه ده، او په بعضې صورتونو کښې پرې ذبیحه هم نهٔ حلالیږی.

په موجوده سوال کښې د ذکاة غیر اختیاری او د اوښ د نحر بحث نهٔ دې، د بحث لاندې صرف هغه ځناور دی د کومو د ذکاة مسنونه طریقه چې ذبحه ده، یعنی غوا، غوټې، بکرۍ، او ګډ وغیره، د

دې وجې نه د ذبحې په شرعی حقیقت او ددې په شرطونو باندې څه قدر له نور تفصیل لیکلې کیږی، د کومې نه چې به د دویم سوال جواب واضح شی.

د ذبحې تعریف په صحیح بخاری کښې د حضرت عطاء بن ابی رباح نه دا نقل کړې شوې دې، ((الذبح قطع الاوداج)). په دې کښې ((اوداج)) د ((ودج)) جمع ده، کوم چې د حلقوم او مرئ نه ښی او چپ اړخ ته د دوو پریړو رګونو نوم دې، او عادةً د دې پرې کول هم د حلقوم او د مرئ سره کیږی، د دې وجې نه مراد دا څلور څیزونه پرې کول دی. یعنی حلقوم په کومې چې سا دننه ځی، او مرئ په کومې چې غذا د ننه ځی، او دواړو اړخو ته د څټ پریړ اوډبل رګونه د کومو نه چې د وینې سیلان جاری وی، او ددې د محل د متعین کولو دپاره په هدایه کښې د رسول الله ﷺ حدیث نقل کړې شوې دې په کوم کښې چې ارشاد دې: ((الذکاة بین اللبة واللحیین)) یعنی ذبحه د دوو ژامو د لاندې د څټ او د سینې د مینځ کندې پورې دې، په دې مینځ کښې چې په کوم ځائ کښې په چاړهٔ باندې پرې کړې شی نو ذبحه به درسته شی، د جمهورو فقهاء د امت په نیز د ذبحې همدا تعریف دې، او په عامو کتابونو کښې همدا ذکر کړې شوې دې، البته په دې کښې د آئمه مجتهدینو اقوال مختلف دی چې په دې څلورو واړو کښې که یو رګ پاتې شی نو ذبیحه به حلاله وی او که نه، د کومې په تفصیل کښې چې د ژور تللو دا ځائ نهٔ دې، د دې نه دا خبره معلومه شوه چې د ذبحې مسنونه او شرعی طریقه هم هغه ده کومه چې په عامه توګه په مسلمانانو کښې جاری ده، چې ځناور دې سملولې شی او د مرئ دا څلور رګونه دې پرې کړې شی، د کومو نه چې وینه تویه شی او سر ئې بالکل د بدن نه بیل هم نهٔ شی، غاړه چې د آخره پورې پرې کړې شی نو دې ته نخع وئیلې شی، په حدیث د صحیح بخاری کښې ددې نه منع کړې شوې ده:

**عن ابن جریج قال اخبرنی نافع ان ابن عمر نهی عن النخع یقول یقطع ما دون العظم ثم یدع حتی یموت.**

یعنی حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما به د نخعې نه منع فرمائیله او فرمائیل به ئې چې د څټ آخر هډوکې کومې ته چې نخاع وئیلې شی، دا نهٔ دی پرې کول پکار، بلکه څلور رګونه دې پرې کړې شی او بیا دې پرېښودې شی تر دې چې ځناور مړ شی.

او په بدائع الصنائع کښې د رسول الله ﷺ دا ارشاد نقل دې ((الا لا تنخعوا الذبیحة)) یعنی د مذبوح ځناور سر بالکل د بدن نه مهٔ بیلوئ.

او دا خبره ظاهره ده چې دا خبره د رائې او د قیاس معامله نهٔ ده، د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما منع کول ددې خبرې دلیل دې چې په خپله رسول الله ﷺ د نخعې نه منع فرمائیلې ده، ددې وجې نه د غاړې رګونه دومره ژور پرې کول چې آخر د څټه پورې ورسیږی، ددې حدیث په بنیاد ناروا ثابت شو، او ددې نه زیاته ګناه او ناروا دا دی چې د څټ دا اړخ نه پرې کړې شی، او سر د بدن نه بیل کړې

شی، په هدایه کښې دی : **ومن بلغ بالسکین النخاع او قطع الراس کره له ذلك و توکل ذبیحته وان ذبح الشاة من قفاها فبقیت حیة حتی قطع العروق حل لتحقق الموت بما هو ذکاة**

یعنی کوم سړی چې د ذبحې په وخت کښې چاړهٔ نخاع پورې یعنی د شټ د آخر هډوکی پورې ورسوله نودا مکروه دی لیکن ذبیحه ئې حلاله ده، او که چیرې بکرئ ئې د شټ له اړخه ذبحه کړه او هغه د رګونو د پرې کولو پورې ژوندئ وه نودا ذبیحه حلاله ده لیکن داسې کول مکروه او ناروا دی

په درمختار او شامی کښې دی: **و کره ذبحها من قفاها ان بقیت حیة حتی تقطع العروق و الالم تحل لموتها بلا ذکاة والنخع وقطع الراس**

یعنی څناور د شټ له اړخه ذبحه کول مکروه دی که چیرې څناور د رګونو د پرې کولو پورې ژوندې پاتې شی او که نه نو حلال نهٔ دې ځکه چې هغه دذبحې نه وړاندې مړ شو، او نخع کول هم مکروه دی، یعنی د شټ آخری هډوکی پورې پرې کول او د سر پرې کول هم مکروه دی.

او په بدائع الصنائع کښې دی : **ولو ضرب عنق جزور او بقرة او شاة بسیفه فابانها وسمی فان کان ضربها من قبل الحلقوم توکل وقد اساء اما حل الاکل فلانه اتی بفعل الذکاة وهو قطع العروق واما الاساءة فلانه زاد فی المها زیادة لایحتاج الیها فی الذکاة فیکره ذلك وان ضربها من القضا فان ماتت قبل القطع بان ضرب علی التانی و التوقف لاتوکل لانها ماتت قبل الذکاة فکانت میتة وان قطع العروق قبل موتها توکل لوجود فعل الذکاة وهی حیة الاانه یکره ذلك (بدائع ص ۳۳ ج ۵)**

او که چیرې اوښ، غوا، یا بکرئ په شټ په توره باندې اووهلې شوه او شټ ترې نه بیل کړې شو او بسم الله ئې اوؤئیله او داسې ئې وکړل، نو کهٔ دا کار ئې د غاړې د اړخ نه کړې وی نو بیا خو ذبیحه حلاله ده لیکن داسې کول ښهٔ نهٔ دی، د ذبیحې حلال والې خو د دې وجې نه دی چې د ذکاة شرطونه په کښې وموندل شول، او بدی او ګناه ئې ددې وجې نه ده، چې دې سړی بې د څه ضرورت نه څناور له غیر ضروری تکلیف ورکړلو، د دې وجې نه مکروه دی، او که د شټ له اړخ نه ئې په توره باندې وهلې وی او شټ ئې ترې نه بیل کړې وی نو که د ذبحې د رګونو د پرې کیدلو نه وړاندې څناور مړ شوؤ، لکه ورو ورو ئې پرې کړو، او د ذبحې رګونو ته د رسیدلو نه وړاندې هغه مړ شو نو دا مردار دې، خوراک ددې حلال نهٔ دې، او که سمدستی پرې کړې شو او د مړ کیدلو نه وړاندې ئې د ذبحې رګونه پرې شو نو غوښه ئې حلاله ده، اګرچې د ذبحې دا طریقه ناروا او مکروهه ده.

د پورته ذکر کړې شوو روایتونو نه دا خبره ثابته شوه، چې څناور د شټ د پورته اړخ نه پرې کول د ذبحې مشروع طریقې نه خلاف او ناروا دی، او شټ د بدن نه پرې کول او جدا کول ځان له یو مکروه فعل دې، که د شټ د اړخه په پرې کولو کښې په رو رو پرې کړې شی د کومې د وجې نه چې

د ذبحې د رګونو د پرې کولو نه وړاندې دا څاروې مړ شی، نو په دې صورت کښې به ذبيحه هم حرامه او مرداره شی، البته که په تيرهٔ چاړهٔ سره ترې نه سمدستی څټ پرې کړې شی نو طريقه د ذبحې ئې د شرعې نه د خلاف کيدلو د ګناه نه باوجود که د دې کار په شروع کښې ئې بسم الله وئيلې وی او بيا ئې دا کار کړې وی نو دا ذبيحه ئې حلاله ده.

د بجلئ په مشينونو د پورته نه د څټ په اړخ په چاړهٔ ايخودلو باندې او د څټ په پرې کولو کښې به په ظاهره دا صورت خو نهٔ وی چې د رګونو په پرې کيدلو باندې ئې مرګ واقع شی ځکه چې دا قطع ډيره په سرعت او تيزئ سره وی، ددې وجې نه که د ماشين د چاړهٔ ايښودونکې په څټ باندې د دې چاړهٔ د ايښودلو په وخت کښې بسم الله وئيلې وی او چاړهٔ ئې ايښې وی نو اګر چې د ذبحې په غير مشروع طريقې سره د واقع کيدلو ګناه به ئې کيږی ليکن غوښه به ئې حلاله شی.

البته دلته يوه بله مسئله دا مخې ته رازی، چې ډير څناور د ماشين د لاندې ودرولې شی او يو ځل پرې بسم الله هم اووايی نو آيا دا يو ځل بسم الله وئيل به د ټولو څناورو د حلاليدلو د پاره کافی شی اوکه نه صرف د ړومبې څناور د حلاليدلو دپاره به کافی وی، او نور څناور به مردار وی.

د دې په حقله مقتضی د نصوصو اود اصولو د شرعې دا ده چې بسم الله وئيل او ذبح کول دواړه متصل واقع شی، معمولی د يوې دقيقې يا نيمې دقيقې د تقديم خو به څه اثر نهٔ وی، ځکه چې عادةً د دومره فرق راتللو نه خلاصې نشته ، ليکن ددې نه زيات تقديم که وشو نو دا تسميه به د ذبحې سره د متصل نهٔ کيدلو له کبله کالعدم شی، او څناور به مردار شمارلې کيږی.

په بدائع الصنائع کښې دی:

**فوقتها فی الذکاة الاختيارية وقت الذبح لا يجوز تقديمها عليه الا بزمان قليل لا يمکن التحرز عنه لقوله تبارك وتعالی ولا تأکلوا مما لم يذکر اسم الله عليه والذبح مضمر فيه معناه ولا تأکلوا مما لم يذکر اسم الله تعالی عليه من الذبائح ولا يتحقق ذکر اسم الله تعالی علی الذبيحة الا وقت الذبح (بدائع الصنائع ص۴۸ ج۵)**

يعنی د تسميې (بسم الله) وئيلو وخت په اختياری ذکاة کښې بعينه د ذبحه کولو وخت دې، لهذا د وړاندې نه بسم الله وئيل ناروا دی، ما سوا د دومره لږې زمانې نه چې د هغې نه بچ کيدل ممکن نهٔ وی، ځکه چې د الله تبارک و تعالی ارشاد دې «او مهٔ خورئ د هغه څناور غوښه په کومو باندې چې د الله تعالی نوم وانخستې شی» د ذبحې لفظ ليکل دلته مضمر (پټ) دی او معنی ئې دا ده چې د ذبحې په وخت کښې په کوم څناور باندې د الله تعالی نوم وانخستلې شی نو د هغې غوښه مهٔ خورئ، لهذا په ذبيحه باندې به د الله تعالی نوم اخستل په هغه وخت کښې متحقق کيږی چې د ذبحې په وخت کښې نوم اخستې شوې وی.

په همدې بناء، صاحب د بدائع د امام ابويوسف رحمه الله دا روايت نقل کړې دې چې که يو سړی يوه

بکرۍ د ذبح کولو د پاره سملوله، او په هغې باندې ئې بسم الله وه وئیله، او بیا ئې هغه پرېښودله او بلې بکرۍ له ورغئ او په سابقه تسمیه باندې ئې اکتفاء وکړه او دا دویمه بکرۍ ئې ذبحه کړه نو دا بکرۍ مرداره ده د دې خوړل روا نۀ دی، ځکه چې کومه بسم الله وئیلې شوې ده د هغې او د ذبحې ترمینځه فصل او جدایی راغلې ده.

او په مبسوط کښې د امام محمد رحمه الله په حقله دا روایت نقل کړې شوې دې:

**ارایت الذابح یذبح الشاتین والثلاثة فیسمی علی الاول ویدع التسمیة علی غیر ذلك عمداً قال یاکل الشاة التی سمی علیها ولا یاکل ما سوی ذلك (بدائع الصنائع ص۰ ج۰)**

حضرت مسئله راته وښایئ، یو ذبحه کوونکې دوه یا درې بکرۍ ذبحه کوی او د الله تعالی نوم په رومبی ځل اخلی، او په باقی باندې ئې په قصد سره پرېږدی، (د دې څه حکم دې؟) هغوی اوفرمائیل (په داسې صورت کښې) صرف رومبۍ بکرۍ حلاله ده او باقی حلالې نۀ دی.

البته که چیرې دوه بکرۍ ئې په یو ځائ سملولې او په دواړو باندې ئې په یو ځائ چاړه راخکله نو دا تسمیه د دواړو د پاره کافی کیږی او دواړه به حلالې شی.

**لواضجع شاتین وامر السکین علیهما معاان تجزیٔ فی ذلك تسمیة واحدة (بدائع ص۰ ج۰)**

او که دوه بکرۍ ئې په یو ځائ په زمکه باندې سملولې او په دواړو باندې ئې په یو ځائ چاړۀ راښکله نو په دې صورت کښې به یو ځل بسم الله وئیل کافی شی.

د ذکر کړې شوې روایتونو په رڼا کښې په دې زیر بحث مسئله (ډیر ځناور چې د ماشین د چړې لاندې ودرولې شی او بسم الله وه وئیلې شی او د هغوی څټونه پرې کړې شی) په دې کښې په غیرمشروطه طریقه د ذبحې کولو د ګناه نه علاوه به صرف هغه ځناور حلال ګڼلې کیږی په کومو باندې چې چاړۀ په یو ځل راپریوته، په دې شرط چې د ماشین د چړې چلولو په وخت کښې بسم الله وئیلې شوې وی، او د بعضې صحابه کرامو رضی الله عنهم په نیزد دا هم په غیر مشروع طریقې سره د ذبح کولو له وجې نه حرام دی، او د کومو ځناورو په څټونو چې دا چاړۀ د بسم الله وئیلو نه پس په وار وار راغلې ده هغه ځناور د تسمیې د ترک د وجې نه د جمهورو په نیز حرام او مردار دی.

## د کلام خلاصه

پورته په ذکر کړې شوی تفصیل کښې د سوال د دواړو نمبرو جواب راغې، او خلاصه د دې دا ده چې د اروپا د ښارونو مروجه طریقه د ذبحې خلاف د شرعې او موجب د ګناه ده، د مسلمانانو چې څومره وس کیږی د دې نه دې ځان وساتی او په خپلو ملکونو کښې دې د دې رواج ختم کړی، او د اروپا په علاقو کښې اوسیدونکې مسلمانان کوم چې د دې طریقې په بدلولو باندې قدرت نۀ

لری او د غوښې ضرورت بهر حال شته دې، د هغوی د پاره د دې لاندې شرطونو سره ددې غوښې استعمال روا دې، که په دې کښې په کښې یو شرط هم ونهٔ مونده شو نو حرامه به وی:
۱- د ماشین په ذریعه چې کوم سرې ذبحه کوی چې هغه مسلمان، نصرانی یا یهودی وی.
۲- د ماشین چاړهٔ د ځناورو څټونو ته د رسیدلو په وخت کښې هغه خالص د الله تعالی نوم، بسم الله، الله اکبر وئیلی وی.
۳- دا چاړهٔ چې د څومره ځناورو په څټونو باندې په یو وخت راغلې وی هغه ځناور ممتاز او بیل وی، نور ځناور په کومو باندې چې چاړهٔ بیا وروستو راغلې وی هغه مردار دی، نو چې ددې ځناورو غوښه د رومبو ځناورو د غوښې سره ګډه وډه شوې نهٔ وی، لیکن ظاهره خبره ده چې بهر ملکونو ته د تلونکو او د مختلفو علاقو د اوسیدونکو مسلمانانو ته د دې شرطونو د پوره کیدلو علم کیدل آسانه نهٔ ده، ددې وجې نه ددې نه ځان ساتل ښهٔ خبره ده. **والله سبحانه وتعالی اعلم**

بنده محمد شفیع عفا الله عنه دار العلوم کراچی

۲۲ ذی قعده ۱۳۸۴ هجری

**جواب**: از مفتی محمود صاحب قاسم العلوم ملتان:

زهٔ دا ګنم چې بټنه وهونکی مسلمان هم وی او د بټنې د وهلو په وخت کښې ئې تسمیه هم وئیلې وی نو بیا هم د ماشین مروجه ذبیحې ته حلاله نهٔ شی وئیلې کیدې بلکه هغه هم مرداره ده.

تاسو دې ته وګورئ چې بټن وهونکی خو صرف همدا کړی دی چې د برقی طاقت او د ماشین کوم کنکشن (تعلق) ختم شوې وو او ددې دواړو تر مینځه چې کوم مانع وو هغه ئې لرې کړو او له سره یې بیا ورله کنکشن جوړ کړو، او بس نور ئې څه نهٔ دی کړې، په اصل کښې د ماشین چاړهٔ چلونکې او د ځناور مرئ پرې کوونکې برقی چپه (کرنټ) ده، نه چې د یو مسلمان د لاس قوتِ محرکه، او دا مرئ پرې کول د برقی قوت او د ماشین فعل دې، د یو مسلمان فعل خو ندې.

او په ذبحه اختیاری کښې د ذابح (یعنی د ذبح کوونکی) فعل (په خپل لاس سره د مرئ پرې کول) او د هغهٔ د تحریک موثر کیدل شرط دی، دلته خو د بټنې وهونکی فعل ماسوا د رفعې د مانع نه بل هیڅ هم نهٔ دی، په رفع د مانع سره د فعل د ذبحې نسبت درافع اړخ ته څنګه کیدې شی؟ او دهٔ ته ذبح کوونکې څنګه وئیلې کیدې شی؟

د دې په مثال داسې پوهه شئ:

۱- یو مجوسی په لاس کښې چاړهٔ اخستې وه او یو ځناور ئې ذبح کول غوښتل، یو بل سړې راشی او د هغهٔ لاس ونیسی او ذبح کوونکې حصار کړی اوس یو مسلمان بسم الله، الله اکبر اووائی او دهغه حصارونکی لاس راکاږی او د مجوسی لاس خلاص کړی او هغهٔ فورا د ځناور په څټ باندې چاړهٔ راکاږی. نو آیا دا ذبیحه به حلاله شی؟

وګورئ په دې مثال کښې خو د رفعې د مانع فعل يو مسلمان کړې دې او بسم الله ئې وئيلې ده او د ذبحې اهل هم دې ليکن اصل ذبح کوونکې د چا تحريک چې مؤثر دې هغه مجوسی دې ددې وجې نه لازما اصل محرک او مؤثر ته وکتلې شو او د دې ذبيحې د حرمت حکم ولګولې شو او د رافع د مانع د فعل اعتبار ونهٔ کړې شو.

۲ - همدغه شان که د يو تيرهٔ مخ آله مثلا چاړهٔ پورته په يوه رسئ پورې تړلې شوې زوړنده وی، او د هغې لاندې بالکل نيغ په نيغه چرګه يا د بکرئ يو بچې يا يو بل ځناور ولاړ وی، اوس که څوک مسلمان تسميه اووائی او دغه رسئ پرې کړی او دغه آله په خپل طبعی ثقل سره لاندې راوغورځيږی او د دغه ځناور غاړه پرې کړی نو آيادا ذبيحه به حلاله وی؟ او دا فعل د ذبحې به دې رافع د مانع ته منسوب کيږی او دهٔ ته به د ځناور د ذبحه کوونکې او دې ځناور ته به د مسلمان ذبيحه وئيلې شی؟

که په دې دواړو مثالونو کښې د ذبيحې حکم د حلت نهٔ وی او دا ذبيحه حلاله نهٔ وی، او يقيناً چې نهٔ ده، نو د ماشين په ذبيحوباندې به د حلت حکم څنګه ولګولې شی او په دې دواړو کښې فرق څه دې؟

دويمه خبره په کښې قابل د غور دا ده چې که چيرې دې حقيقت نه سترګې پټې هم شی او د يوې لمحې دپاره دا ومنلې شی چې (بټن وهل يو مؤثر او اختياری فعل) دې، نو د بټنې د وهلو فعل خو د بټنې په وهلو باندې ختم شی، د ماشين دچليدلو او د غاړې دپرې کولو په وخت کښې خو د دهٔ فعل موجود نهٔ وی، ماشين چليږی او غاړې پرې کيږی، هغه خو د غاړو د پرې کيدلو نه وړاندې د خپل عمل نه فارغه شی.

دا صورتِ حال په ذبحه اضطراری کښې خو شرعاً برداشت دې، چې د غشی په ويشتلو سره د رامی عمل ختم شی او اصابة سهم په وخت کښې د هغهٔ فعل په ظاهره باقی پاتې نهٔ وی، ليکن په دې صورت کښې شريعت صرف د عذر د اضطرار د وجې نه د اصابة سهم نسبت رامی سره قائم ساتلې دې، او دهٔ ته ئې ذبح کوونکې وئيلې دې، او د دې وجه دا هم ده چې په غشی کښې په خپله ښکار ته د رسيدلو طاقت نشته، دا طاقت په غشی کښې رامی پيدا کړې دې، مؤثر په حقيقت کښې هم يو دې او هغه د رامی قوت دې، ددې په عکس دماشين مؤثر برقی طاقت دې، اوهغه د ماشين چاړه چلوی، د بټنې دوهونکی قوت په دې کښې مطلق مؤثر نهٔ دې، لهذا دبټنې د وهونکی فعل د رامی په فعل باندې نهٔ شی قياس کولې، په اصل کښې د هغه فعل صرف رمی کول دی او بس، تر دې چې د اصابة سهم په وخت کښې د دې رامی اهل کيدل هم ضروری نهٔ دی هر کله چې دې په وخت د رمی کښې اهل وو.

امام ابو بکر الکاسانی په بدائع صنائع ص ۴۹ کښې لیکی:

**ولو رمی او ارسل وهو مسلم ثم ارتد او کان حلالا فاحرم قبل الاصابة واخذ الصید یحل ولو کان مرتدا ثم اسلم وسمی لا یحل لان المعتبر وقت الرمی والارسال فتراعی الاهلیة عند ذلك.**

که غشې ئې اوویشتلو یا (تربیت ورکړې شوې ښکاری ځناور) ئې پریښودلو په دې حالت کښې چې هغه مسلمان وو بیا هغه سمدستی د غشې د لګیدلو نه وړاندې مرتد شو یا دې حلال وو او سمدستی ئې احرام وتړلو او ښکار ته غشې یا ځناور ور ورسیدلو نو هغه ښکار حلال شو، او که د غشې د ویشتلو یا د ښکاری ځناور د پریښودلو په وخت کښې مرتد وو او بیا مسلمان شو او تسمیه ئې هم اووئیله نو هغه ښکار به حلال نهٔ وی، ځکه چې اعتبار د غشی د ویشتلو یا د ځناور د پریښودلو د وخت دې، په هماغه وخت به اهلیت د ذبحې ته کتلې شی (چې اهل دې او که نه).

همدغه شان په هدایه ج ۴ ص ۴۸۷ کښې ئې لیکلې دی:

**ولان الکلب والبازی آلة والذبح لا یحصل بمجرد الالة الا بالاستعمال وذلك فیهما بالارسال فنزل منزلة الرمی وامرار السکین**

ځکه چې تربیت ورکړې شوې سپې او باز په حکم د آلې کښې دې او ذبح د آلې نه د کار اخستلو نه بغیر نه شی کیدلې او د سپی او د باز په صورت کښې د دې پریښودل هم د هغوی نه کار اخستل دی دا پریښودل د غشی د ویشتلو او چړې د چلولو قائم مقام دی.

د ذبح اختیاری او د ذبحه اضطراری بنیادی فرق همدا دې چې په اختیاری ذبح کښې **امرار سکین** عمل د ذبحې دې او په ذبح اضطراری کښې رمې او ارسال د شریعت مطابق د عمل د ذبحې قائم مقام دې، وګورئ امام شافعی رحمه الله هم په ذبح اختیاری کښې (فعل انسانی) لره شرط بولی په کتاب الام کښې فرمائی:

**والذکاة وجهان وجه فیما قدر علیه الذبح والنحر وفیما لم یقدر علیه ما ناله الانسان بسلاح بیده او رمیه بیده فهی عمل یده او ما احل الله عزوجل من الجوارح ذوات الارواح المعلمات التی تاخذ بفعل الانسان کما یصیب السهم بفعله فاما الحفرة فانها لیست واحدا من ذا کان فیها سلاح یقتل او لم یکن، ولو ان رجلا نصب سیفا او رمحا ثم اضطر صیدا الیه فاصابه فذکاه لن یحل اکله لانها ذکوة بغیر فعل احد (الام ص ۲۳۳ ج ۲)**

د ذبحې (شرعی) دوه صورتونه دی یو صورت ئې دا دې چې ځناور ئې په قابو کښې وی په دې صورت کښې ذبح کول یا نحر کول شرعی لازم دی او که ځناور ئې په قابو کښې نهٔ وی نو په دې صورت کښې دې انسان په خپل لاس په وسله باندې قتل کړی یا په خپل لاس دې غشې وه ولی، یا د هغهٔ ځناورو په ذریعه کوم چې الله تعالی (د ښکار د پاره) حلال کړی دی کوم چې د غشی په شان د

انسان په فعل باندې کار کوی، ښکار وکړی، باقی کنده کنستل برابره خبره ده چې په دې کښې څه وسله وغیره وی او که نه هغه په دې دواړو صورتونو کښې د یو صورت نه هم نۀ دې، او که یو سړی یوه توره یا نیزه یو ځائ کښې ښخه کړه او بیا ئې ښکار هغه اړخ ته په منډه باندې مجبور کړو او دې تورې یا نیزې سره د هغه غاړه پرې شوله نو د هغه خوراک به حلال نۀ وی، ځکه چې هغه بغیر د یو انسان د فعل نه ذبح شو.

او په دې کښې شک نشته چې په برقی ماشین سره کومې د څناورو مرئ پرې کیږی، هغه یقینا نۀ د انسان فعل دې او نۀ د هغۀ د لاس د قوت په دې کښې څه دخل شته دې، همدا وجه ده چې د یو ادنی نه د ادنی پوهې خاوند هم دې ته د انسان فعل نۀ شی وئیلې، له همدې وجې نه دې ته ماشینې ذبیحه وائی، آلهٔ شرعا هم هغې ته وائی چې هغه په خپله مؤثر او محرک نۀ وی، ماشین بی شکه یوه آله ده، لیکن ددې چلونکی او مؤثر طاقت برقی قوت دې نه بټن وهونکی یا د هغه طاقت.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د حضرت مفتی محمد شفیع صاحب مدظلهم جواب صحیح دې، یعنی په مشین سره ذبحه کول روا نۀ دی لیکن ذبیحه به ئې حلاله وی

په دویم جواب کښې د وجې د حرمت حاصل دا دې چې په ذبح اختیاری کښې د فعل د ذبحې مباشرت ضروری دې او د ماشین د بټنې وهل مباشرت نۀ دې بلکه رفع د مانع دې، د مانع د رفع کیدلو نه پس برقی چپه په خپله د ماشین چاړه چلوی، لهذا فعل د ذبحې به برقی چپې ته منسوب کیږی نه د بټن وهونکی اړخ ته.

حقیقت دا دې، چې بټن وهل رفع د مانع نۀ ده بلکه په بټنه کښې دننه د دوو تارونو په مینځ کښې کومه فاصله ده هغه د پیټلو د ټکړې نه ډک کړې شی او آله د حرکت (برقی چپه) چرې پورې رسولې شی، د بټنې په وهلو باندې څه تعلق (کنکشن) ختمولې نه شی بلکه جوړولې شی، لهٰذا ددې حقیقت **ایصال آلة الذبح الی المذبوح** دې، په رفع د مانع کښې او ایصال په واسطې دیو شی کښې فرق بدیهی دې، چې رومبې **اعدام الموجود** دې او دویم **ایجاد المعدوم** دې، یا داسې اووائې چې په اول کښې **رفع الشیء** دې او په دویم کښې **اتیان بالشیء** دې **فشتان بینهما**.

مانع هغې ته وائی چې سبب موجود وی لیکن د هغې د تاثیر نه څه عارض مانع وی، لکه چې چاړهٔ د رسئ په ذریعه پورته وتړلې شی، نو د هغې د غورځیدلو سبب یعنی ثقل خو موجود دې لیکن د هغې د تاثیر نه رسئ مانعه ده.

اوس غور وکړئ چې په برقی چپه کښې خو د هغې د وړاندې تیریدلو سبب یعنی تار بالکل موجود نۀ دې، د بټنې په وهلو باندې سبب پیدا کولې شی.

مثلاً د اور شغلې لرې پورې تلل غواړی، لیکن د اوسپنې تخته وغیره ترې مانع ده، نو دې ته به

مانع وائی او د دې تختې اخوا ته کولو ته به رفع د مانع وئیلې شی،د دې په عکس سره که چیرته یو څیز اور نۀ وی حصار کړې لیکن هغه ددې وجې نه وړاندې نۀ ځی چې وړاندې هغۀ لره قبلولو والا څه څیز بیخی نشته ، نو دا مانع نه بلکه انعدام السبب دې.

اوس فرض کړئ چې د اور نه په څه فاصله باندې مالوچ یا پټرول پراتۀ دی تا څه ریښه وغیره واخسته اودهغې یو سر مو په اور کښې کیښودلو او دویم سر مو ورله په پټرولو کښې کیښودلو، په دې طریقه تا اور هغه ځائ ته ور ورسولو،نو ظاهره خبره ده چې دا رفع د مانع نۀ ده بلکه ایجاد السبب دې بلکه مباشرت د فعل دې.

حضراتو فقهاء کرامو ﷺ اگر چې په بعضو ځایونو کښې رفع د مانع ته هم تسبیب وئیلې دی، لیکن ایجاد د سبب رفع د مانع نۀ ده،بیا په ایجاد د سبب باندې د مسبب ترتب که ضروری نۀ وی نو هغۀ ته هم د رفعې د مانع په شان تسبیب وئیلې شی،اوکه د مسبب ترتب لازم وی نو دا به مباشرت وی.

لهذا په مشین سره د ذبحې مثال داسې وگنئ چې اور بلیږی تا د اوسپنې نلکه واخسته او بسم الله دې اووئیله او د دې په ذریعه دې اور مذبوح ته راورسولو ،یا د نلکې په ځائ باندې دې بل څه څیز د اور او د مذبوح ترمینځه کیښودلو د کومې په ذریعه چې اور د مذبوحه پورې راورسیدلو، او رگونه ئې پرې شو او وینه ترې نه راروانه شوه، نو آیا د داسې ځناور په حلت کښې څه شبه کیدې شی؟

قال فی الشامیة قوله(ولو بنار) قال فی الدر المنتقی وهل تحل بالنار علی المذبوح قولان الاشبه لا کما فی القهستانی عن الزاهدی قلت لکن صرحوا فی الجنایات بان النار عمد وبها تحل الذبیحة لکن فی المنح عن الکفایة ان سال بها الدم تحل وان تجمد لا اه فلیحفظ لیکن التوفیق اه (ردالمحتار ص۲۰۸ ج۵)

وفی الخانیة والحمامة اذا طارت من صاحبها فرماها صاحبها اوغیره قالوا ان کانت لا تهتدی الی المنزل حل اکلها سواء اصاب السهم المذبح اوموضعا اخر لانه عجز عن الذکاة الاختیاریة وان کانت تهتدی الی المنزل فان اصاب السهم المذبوح حل وان اصاب موضعا اخر اختلفوا فیه والصحیح انه لا یحل اکلها مروی ذلك عن محمد رحمه الله تعالیٰ لانها اذا کانت تهتدی الی المنزل یقدر علی الذکاة الاختیاریة والظبی اذا علم فی البیت فخرج الی الصحراء فرماه رجل وسمی ان اصاب المذبح حل والا فلا الا ان یتوحش فلا یؤخذ الا بصید (خانیة علی هامش الهندیة ص۳۰۶ ج۳)

د خانیې په دې جزئیه کښې خو بیا هم وصول د سهم کښې د رامی قوت کار کوی، لیکن د اور په مثال کښې خو دا هم نشته ، لکه څنگه چې اور بالطبع محرق دې لیکن د مختار فاعل استعمال د فعل د احراق نسبت د نار نه قطع کړو او ذابح ارخ ته ئې کړو، همدغه شان برقی چپه اگرچې

بالطبع محرک وی مگر د مختار فاعل د استعمال یعنی د بټنې د وهلو نه به د دې نسبت فاعل ارخ ته کیږي ، که بټن وهل مباشرت د فعل نهٔ وی بلکه تسبیب او رفع المانع دې نو که داسې دې څوک انسان قتل کړویعنی د ماشین د چړو لاندې دې وتړلو او بټن دې اووهله نو آیا په دهٔ باندې به قصاص نهٔ وی؟

په دې تحریر کښې په ماشین سره د ذبحې کولو دوه مثاله لیکلې شوې دی :

۱- مجوسی په لاس کښې چاړهٔ اخستې وه او یو څناور ئې ذبح کول غوښتل چې یو سړی د هغهٔ لاس ونیولو او د ذبحې کولو نه ئې حصار کړو،اوس یو مسلمان بسم الله، الله اکبر وایی او د هغه حصارونکی لاس راکاږی او د مجوسی لاس خلاص کړی او هغه سمدستی د څناور په څټ باندې چاړهٔ راکاږی نو آیا دا ذبیحه به حلاله وی؟

۲ - یوه تیرهٔ مخ والا آله (مثلا چاړهٔ) په یوه رسئ باندې وتړلې شی او زوړنده وی او د هغې لاندې بالکل نیغ په نیغه چرګه،د بکرئ بچې، یا بل یو څناور ودرولې شی،اوس که یو مسلمان تسمیه اووائی او دا رسئ پرې کړی او هغهٔ آله په خپل طبعی ثقل باندې لاندې راپریوځی او د دغه تړلې شوی څناور مرئ پرې کړی نو آیا دا ذبیحه به حلاله وی؟

په دې دواړو مثالونو کښې د تسمیې په ویولو سره د لاس راښکونکې یا په چاړهٔ سره د رسئ پرې کوونکې مسلمان نه حقیقتا د فعل د ذبحې مباشر دې او نه عرفا دهٔ ته د چاړهٔ استعمالونکې وئیلې شی، په دویم مثال کښې خو د چاړهٔ استعمال بیخی نشته، او په اولنی مثال کښې ددې چړې مستعمل مجوسی دې د دې وجې نه به دا څناور حرام وی ، د دې په عکس د بټنې وونکی ته د دې مستعمل وئیلې شی او د بټنې په ذریعه باندې برقی چپه مذبوح پورې رسول همداسې مباشرت د ذبحې دې لکه څنګه چې اور مذبوح ته رسول مباشرت د ذبحې دې.

اوس که چیرې تسمیه اووئیلې شوه او اور د مذبوح ترحلقه پورې ورسولې شو او بیا ترې نه اور وروسته شی او اور خپل کار کوی لګیا وی نو آیا دا څناور به حلال نهٔ وی؟

د دې نه د مفتی صاحب ددې اشکال جواب هم وشو چې فاعل خو بټن وه وهی او لرې شی، وراندې ماشین په خپله کار کوی لګیا وی.

غرض د خبرې دا چې د دې ذبیحې په حلت کښې څه شک او شبه نشته لیکن سره د دې همدا طریقه بې شکه او شبې غلطه او ناروا ده ـ **فقط والله تعالیٰ اعلم.**

رشید احمد ۲۲ ربیع الاول ۱۳۸۶ هجری

# كتَابُ الاضحيَة وَالعَقيقَة

## وړه بکرۍ په شهادت سره غټه ثابتول روا نهٔ دی

**سوال**:- د یوې بکرې مالک عادل اقرار کوی چې ددې بکرۍ عمر په مشکله لس میاشتې دې، او په ظاهره چې بکرۍ ته وګورې نو همدا معلومیږی، لیکن یو مولوی صاحب د دوو نا آشنا کسانو نه ددې د عمر په حقله پوښتنه وکړه، هغوی ورته اووئیل چې مونږ د چیلو د عمر نه نا آشنا یو ـ لیکن مولوی صاحب پې ډیر زور راوړو چې په اندازې سره راته اووایئ، په دې باندې هغوی اووئیل چې د دې بکرۍ عمر به تقریبا یو کال یا یونیم کاله وی، پس مولوی صاحب د دوو شهادتونو اعتبار وکړو او د دې عقیقه ئې وکړه، آیا دا عقیقه صحیح ده او که نه؟بینوا توجروا ـ

**الجواب و منه الصدق والصواب** : د مولوی صاحب دا کار د دې لاندینو وجو له کبله غلط دې :

۱- دا شهادت د ظاهری عمر خلاف دې ـ

۲- د بکرۍ د مالک عادل د قول مطابق دبکرۍ عمر کم دې ـ

۳ - د چا په ملک کښې چې حیوان پیدا شو د هغهٔ قول قابل د قبلیدلو دې ـ

۴ - نا معلوم خبر ورکونکی د چیلو د عمر نه واقف نه دی، او په جزئیاتو د فقهه کښې تصریح ده چې د حیواناتو په عمر کښې به د واقفو خلقو د قول اعتبار وی، د ناواقفه قول به معتبر نهٔ وی ـ

البته د عقیقې د صحت دپاره د څناور د عمر څه قید نشته، له همدې کبله عقیقه ئې صحیح شوه ـ والله سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۲۷ شوال ۱۳۷۱ هجری

## د موهوب څناور قربانی روا ده

**سوال** : زما یو ملګری ما ته د ګډ یو بچې بې قیمته مفت راکړو، ما ورته اووئیل چې قیمت ئې واخله، نو هغهٔ اووئیل چې ما په خپله خوښه درکړې دې، قیمت ئې درنه نهٔ اخلم، اوس زهٔ د دې ګډ قربانی کول غواړم، د دې څه حکم دې؟بینوا توجروا ـ

**الجواب و منه الصدق والصواب** هر کله چې تا د ملګری په اجازت سره په دې ګډ باندې قبضه وکړه نو دا هبه مکمله شوه او دا ګډ ستا مملوک شو، لهذا د دې قربانی صحیح ده، په خپله د رسول الله ﷺ نه د موهوب ګډ قربانی ثابته ده، کما ورد فی الصحاح والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.

۲۶ ذی قعده ۱۳۷۱ هجری

## د قربانۍ د څناور د شیدو او د سوټو (ګندګی) حکم

**سوال**:- د قربانۍ څناور که شیدې ورکوی نو ددې څه حکم دې؟بینوا توجروا ـ

**الجواب و منه الصدق والصواب** : په لاندینو صورتونو کښې د قربانۍ د ځناور د شیدو په استعمال کښې راوستل او ددې نه نفع اخستل بې د څه کراهته روا دی :

۱ - ځناور په کور کښې ساتلې شوې وی.

۲ - ځناور ئې په بیعه اخستې وی لیکن د اخستلو په وخت کښې ئې د قربانۍ نیت نۀ وی.

۳ - د قربانۍ په نیت سره ئې اخستې وی لیکن د دې ګذاره د بهر په څرېدو باندې نۀ وی بلکه په کور کښې وابښه وغیره خوری.

که د قربانۍ په نیت ئې اخستې وی او بهر په څرېدو باندې ګذاره کوی نو ددې د پیو په حقله اختلاف دې، جواز او عدم جواز دواړه ظاهر الروایة دی، والاول اوسع وایسر والثانی احوط واشهر، وفی قول یجوز للغنی لا للفقیر.

د عدم جواز قول په مطابق ددې شیدې په استعمال کښې راوستل مکروه دی، که شیدې ئې ترې نه واخستلې نو ددې صدقه کول واجب دی، د داسې ځناور شیدې د یخو اوبو په شیندلو سره په غلانزه کښې وچول پکار دی، که چیرې نۀ وچیږی او ځناور ته تکلیف وی نو بیا دې را وه ویستلې شی او صدقه دې کړې شی.

د قربانۍ د ځناور د سوتو (ګندګی) همدا حکم دې، چې که ځناور بهر په څرېدو باندې خپله ګذاره کوی نو د سوتو ئې په استعمال کښې راوستل روا نۀ دی او که داسې نۀ وی نو بیا روا دی.

قال الامام قاضیخان رحمه الله: وان اشتری شاة یرید بها الاضحیة لا تصیر اضحیة، و کذا لو کانت الشاة عنده فاضمر بقلبه لا تصیر اضحیة فی قولهم، ولو اشتری شاة للاضحیة ثم باعها و اشتری اخری فی ایام النحر فهذه علی وجوه الثلاثة، الاول اذا اشتری شاة ینوی بها الاضحیة، والثانی ان یشتری بغیر نیة الاضحیة ثم نوی الاضحیة والثالث ان یشتری بغیر نیة الاضحیة ثم یوجب بلسانه ان یضحی بها فیقول لله علی ان اضحی بها عامنا هذا ففی الوجه الاول فی ظاهر الروایة لا تصیر اضحیة ما لم یوجبها بلسانه وعن ابی یوسف عن ابی حنیفة رحمهما الله تعالی انها تصیر اضحیة بمجرد النیة کما لو اوجبها بلسانه وبه اخذ ابو یوسف رحمه الله و بعض المتاخرین، وعن محمد رحمه الله فی المنتقی اذا اشتری شاة لیضحی بها واضمر نیة التضحیة عند الشراء تصیر اضحیة کما نوی فان سافر قبل ایام النحر باعها سقطت عنه الاضحیة بالمسافرة، واما اذا اشتری شاة بغیر نیة الاضحیة ثم نوی الاضحیة بعد الشراء لم یذکر هذا فی ظاهر الروایة وروی الحسن عن ابی حنیفة رحمهما الله تعالی ان لا تصیر اضحیة لو باعها یجوز بیعها وبه ناخذ، فاما اذا اشتری شاة ثم اوجبها اضحیة بلسانه وهو الوجه الثالث تصیر اضحیة فی قولهم ولو ولدت ولدا یکون ولدها للاضحیة ولو باعها یجوز بیعها فی قول ابی حنیفة و محمد رحمهما الله تعالی الا انه یکره، وقال ابو

يوسف رحمه الله تعالى لا يجوز بيعها وهي كالوقف عنده (خانية بهامش الهندية ص۳۳۱ ج۳)

وقال في العلائية: ويكره الانتفاع بلبنها قبله

وقال في الشامية: فان كانت التضحية قريبة نضح ضرعها بالماء البارد والا حلبه وتصدق به كما في الكفاية (ردالمحتار باب الاضحية ص۲۰۹ ج۵)

وفي الهندية: ولو اشترى شاة للاضحية يكره ان يحلبها او يجز صوفها فينتفع به (الى ان قال) والصحيح ان الموسر والمعسر في حلبها و جز صوفها سواء هكذا في الغياثية ولو حلب اللبن من الاضحية قبل الذبح او جز صوفها يتصدق به ولا ينتفع به (الى ان قال) ولو اشترى بقرة بروها فان كان يعلفها فما اكتسب من لبنها او انتفع من روثها فهو له ولا يتصدق بشيء كذا في محيط السرخسي. (عالمگيرية كتاب الاضحية ص۳۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم

۵ ذی الحجه ۱۳۷۱ هجری

## د قربانۍ د څناور د وړۍ حکم

**سوال**:- د قربانۍ د څناور وړۍ چې پرې کړې شي نو په خپل کار کښې ئې راوستل روا دی او که نه صدقه کول ئې پکار دی؟ بینوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق والصواب**: که چیرې څناور د کور ساتلې شوې وی یا په بیعه د اخستلو په وخت کښې ددې د قربانۍ نیت نهٔ وی کړې شوې، نو ددې وړۍ استعمال کښې راوستل روا دی.

کوم څناور چې د قربانۍ په نیت اخستې شوې وی نو ددې د وړۍ د استعمال په جواز کښې اختلاف دې، على التفصيل الذى حررنا فى جواب السؤال السابق.

مطابق دعدم جواز د قول وړۍ ترې نه پرې کول روا نهٔ دی، که پرې ئې کړه نو بیائې صدقه کول واجب دی، البته د ذبحې نه پس ئې وړۍ پرې کولې شی او په خپل کار کښې ئې راوستلې شی، یا دې خرڅه کړی او قیمت دې صدقه کړی، قیمت په خپل کار کښې راوستل روا نهٔ دی

وتحرير الدلائل قدمر فى جواب السؤال السابق والله سبحانه وتعالى اعلم.

۵ ذی الحجه ۱۳۷۱ هجری

## چې د قربانۍ ورځې تیرې شوې نو قیمت د ګډ واجب دې

**سوال**:- په یو سړی باندې قربانی واجبه وه، لیکن د قربانۍ په ورځو کښې هغه قربانی ونهٔ کړه، اوس د بکرۍ د قیمت په ځائ د غوا د اوومې حصې قیمت خیرات کړی یا یو بکرۍ واخلی ژوندۍ ئې یو مسکین ته ورکړی یا داسې اووه کسان رایوځائ شی او د یوې غوا قیمت یا نفس غوا یو مسکین ته ورکړی نو په دې سره به واجب ساقط شی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب** : د قربانئ قابل د متوسطې درجې د بکرئ یا د گډ قیمت صدقه کول واجب دی، په دې شرط چې قربانی کوونکی غنی وی، اوکه غنی نۀ وی نو بیا پرې واجب نه دی، د غوا د اوومې حصې د قیمت برابر صدقه کول نۀ کافی کیږی، ځکه چې د قربانئ نه مقصد اراقة الدم دې په کومې کښې چې شرکت متصور نۀ دې، د قربانئ په ورځو کښې په غوا کښې جواز د شرکت خلاف القیاس دې، وروستو وجوب د قیمت په دې باندې نۀ شی قیاس کولې.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله: ولو تركت التضحية ومضت ايامها تصدق بها حية ناذر فاعل تصدق لمعينة لو فقيرا.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله و مضت ايامها الخ) قيد به لما في النهاية اذا وجبت بايجابه صريحا او بشراء لها فان تصدق بعينه فعليه مثلها مكانها لان الواجب عليه الاراقة و انما ينتقل الى الصدقة اذا وقع الياس عن الضحية بمضي ايامها و ان لم يشتر مثلها حتى مضت ايامها تصدق بقيمتها لان الاراقة انما عرفت قربة في زمان مخصوص ولا تجزيه الصدقة الاولى عما يلزمه بعد لانها قبل سبب الوجوب (ردالمحتار ص۲۰۲ ج۵)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله: وتصدق بقيمتها غني شراها اولا لتعلقها بذمته شراها اولا فالمراد بالقيمة قيمة شاة تجزي فيها. (ردالمحتار ص۲۰۲ ج۵) ،والله سبحانه وتعالى اعلم ۲۵ جمادی الاولی ۱۳۷۲ هجری

## جواز اشتراء اضحیه قبل ایام النحر

**سوال**:- چه می فرمایند علماء عظام درین مسئله که علماء این دیار اختلاف کرده اند بعض می گویند که حیوان برای اضحیه قبل ایام النحر گرفته شود وبعض می گویند که فی ایام النحر ، فرقه اول دلیل و سند می گیرد از حدیث شریف : سمنوا ضحاياكم فانها على الصراط مطاياكم

وفرقة ثانی دلیل میگیرند از روایة ردالمحتار ص ۳۱۳ ج ۵ .

واعلم انه قال في البدائع ولو نذر ان يضحي شاة وذلك في ايام النحر وهو موسر فعليه ان يضحي بشاتين عندنا شاة بالنذر وشاة بايجاب الشرع ابتداء الا اذا عنى هو الاخبار عن الواجب عليه فلا يلزمه الا واحدة ولو قبل ايام النحر لزمه شاتان بلا خلاف لان الصيغة لا تحتمل الاخبار عن الواجب اذ لا وجوب قبل الوقت و كذا لو كان معسرا ثم ايسر في ايام النحر لزمه شاتان.

وايضا فيه تحت (قوله ناذر لمعينة) قال في البدائع اما الذي يجب على الغني والفقير فالمنذور به بان قال لله على ان اضحي شاة او بدنة او هذه الشاة او البدنة او قال جعلت هذه الشاة اضحية لانها قربة من جنسها ايجاب وهو هدي المتعة والقران والاحصار فتلزم بالنذر كسائر القرب والوجوب بالنذر يستوي فيه الغني والفقير اه واستفيد منه ان الجعل المذكور نذر وان النذر بالواجب صحيح اهـ بينوا توجروا.

**الجواب و منه الصدق والصواب** : فریق ثانی که فتوائ عدم جواز اشتراء اضحیه قبل النحر اختراع نمودند در ضلالت بینه هستند زیراکه: ۱- اشتراء بنیت تضحیه سبب وجوب بر فقیر است نه بر غنی.

قال فی شرح التنویر :لو ضلت او سرقت فشری اخری فظهرت فعلی الغنی احداهما وعلی الفقیر کلاهما(ردالمحتار ص۲۰۰ ج۵)

وایضا فیه: وفقیر شراها لها لوجوبها علیه بذلك حتی یمتنع علیه بیعها(ردالمحتار ص۲۰۲ ج۵)

وفی الشامیة: جاز له(ای للغنی)ان یبدلها بغیرها مع الکراهة(ردالمحتار ص۲۱۳ ج۵)

و اما نیت تضحیه بعد از شراء یا نیت درحیوان پروردهء خانه پس برفقیر هم موجب تضحیه نیست

قال فی الشامیة:فلو کانت فی ملکه فنوی ان یضحی بها اواشتراها ولم ینو الاضحیة وقت الشراء ثم نوی بعد ذلك لا یجب لان النیة لم تقارن الشراء فلا تعتبر(ردالمحتار ص۲۰۳ ج۵)

۲- درکتب مذهب مسطور ست که لبن اضحیه دراستعمال خود آوردن روانیست، پس اگر تضحیه قریب ست بآب بارد نضح ضرع کند و الا بعد الحلب صدقه کند .

قال فی شرح التنویر: ویکره الانتفاع بلبنها قبله.

وفی الشامیة :فان کانت التضحیة قریبة نضح ضرعها بالماء البارد والاحلبه وتصدقه به(ردالمحتار ص۲۰۹ ج۵)

پس اگر قبل از وقت تضحیه اشتراء اضحیه روا نباشد محمل این جزئیه چه خواهد شد؟ اگر گفته شودکه مراد ازین اضحیه منذوره هست پس جزئیه ذیل ابطال این تاویل خواهد کرد.

ومنهم من اجازهما للغنی لوجوبها فی الذمة فلا تتعین(شرح التنویر)

وفی الشامیة :والجواب ان المشتراة للاضحیة متعینة للقربة الی ان یقام غیرها مقامها فلا یحل له الانتفاع بها مادامت متعینة ولهذا لا یحل له لحمها اذا ذبحها قبل وقتها بدائع ویأتی قریبا انه یکره ان یبدل بها غیرها فیفید التعیین ایضا.(ردالمحتار ص۲۰۹ ج۵)

۳ - سوق الهدی من سیدالکونین ﷺ الی هذا الاوان قبل ایام النحر معمول به ست کسی از امت مسلمه بصیرورة این هدی واجب بالنذر و بوجوب دم تمتع و قران علی حده قول نه کرده است، نه خود سید الکونین ﷺ دم تمتع یا قران جداگانه اداء فرمودند .

٤ - عوام الناس الفاظیکه برای جانور اضحیه اطلاق میکنند (مثلاً این جانور برای قربانی خرید کرده ام یا این جانور برای قربانی ست) ازین الفاظ نذر نخواهد شد، چراکه درعرف مثل این الفاظ برای اظهار اراده هستند نه برای ایجاب، ووجوب نذر بلفظی موقوف بر عرف ست یعنی اگر لفظ

برای نذر درعرف مستعمل ست از و نذر واجب خواهد شدوالا فلا، لان العرف قاض .

قال فی شرح التنویر: الن الایمان مبنیة عندنا علی العرف (ردالمحتار ص۰۰ ج۳)

۵ - اگر تسلیم کرده شود که مثل این چنین الفاظ موجب نذر هستند پس مقصد عوام اخبار از وجوب فی المستقبل ست،اگرچه نیت اضحیه واجبه قبل ایام النحر صحیح نیست چنانکه مستدل گفت و لیکن عوام الناس درین الفاظ محض نیت اضحیه واجبه نمی کنند بلکه درالفاظ هم مصرح می کنند که این جانور برای قربانی عید ست،اگر کسی لفظ عید زائد نه کرد بلکه لفظ قربانی مطلقًا گفت پس چونکه در عرف لفظ قربانی برای قربانی عید معین شده است فلذا لفظ عید باوجود حذف بحکم مذکور ست (لان المعروف کالمشروط) فلذا باین چنین الفاظ که درعوام الناس رائج هستند وجوب نذر نخواهد گشت، پس تضحیه این جانور از واجب اصلی خواهد شد .

**تنبیه**: د حدیث ((سمنوا ضحایاکم ـ الخ)) هیڅ ثبوت نشته دي .

قال العلامة الطرابلسی رحمه الله: (استسمنوا.وفی لفظ.استفرهوا ضحایاکم فانها مطایاکم) قال الامام ابن الصلاح رحمه الله: لا اصل له (الکشف الالهی)،قال الدکتور احمد محمود بکار فی تعلیقه:

رواه الدیلمی من طریق ابن المبارک عن یحیی بن عبدالله عن ابیه عن ابی هریرة رضی الله عنه،قال السیوطی فی الدرر یحیی ضعیف وقال السخاوی یحیی ضعیف جدا وجاء بلفظ: عظموا ضحایاکم فانها علی الصراط مطایاکم.

وقال ابن الصلاح هذا الحدیث غیر معروف ولا ثابت فیما علمناه وقال ابوبکر ابن العربی فی شرح الترمذی لیس فی فضل الاضحیة حدیث صحیح،قال صاحب المغیر هو من وضع الزنادقة اعداء الاسلام الذین یریدون تشویه الشریعه و ادخال امثال هذه المجازفات المضحکة فیها فاذا کان المسلمون سیرکبون الخرفان علی الصرط فسیکون عدد الخرفان فیه اکثر من عدد الحصی اذ ما من احد من المسلمین،غالبا .الا وقد ذبح فی عمره الکثیر و ایضا اذا کانت الخرفان مطایا المسلمین فیلزمه ان کل واحد منهم سیرکب عدة کباش،هل یعقل ان ینطق بهذا من لا ینطق عن الهوی ﷺ.ولعن الله اعداء شریعته.

وحمل الغماری حملته الشدیدة علی المناوی حین وجه الخبر علی انه ضعیف وحمله علی الحقیقة لا علی المجاز.

والفارة: القوی النشیط.(الکشف الالهی ص۱۰۳ ج۱)

قال السخاوی رحمه الله: حدیث: استفرهوا ضحایاکم فانها مطاکم علی الصراط،اسنده الدیلمی من طریق ابن المبارک عن یحیی بن عبیدالله عن ابیه عن ابی هریرة رضی الله عنه رفعه بهذا و یحیی ضعیف جدا، ووقع فی النهایة لامام الحرمین ثم فی الوسیط ثم فی العزیز: عظموا ضحایاکم فانها علی الصراط مطایاکم و قال الاول معناه: انها تکون مراکب

للمضحين، وقيل انها تسهل الجواز على الصراط لكن قد قال ابن الصلاح: ان هذا الحديث غير معروف ولا ثابت فيما علمناه وقال ابن العربي في شرح الترمذي: ليس في فضل الاضحية حديث صحيح، ومنها قوله انها مطايا كم الى الجنة (المقاصد الحسنة ص ۸۸)

وهكذا قال الشيخ العجلوني رحمه الله (كشف الخفاء ومزيل الالباس ص ۱۳۳ ج ۱) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۹ محرم ۱۳۷۵ هجری

**تحقیق دحدیث ((سمنوا ضحایاکم))** : پورته د عنوان (**جواز اشتراء اضحیه قبل ایام النحر**) د لاندې دې

## که په ړومبۍ ورځ ئې د څه عذر د وجې نه مونځ ونۀ کړو نو پس د زوال نه قربانی کول روا دی

**سوال**:- دلته د باران د شدت د وجې نه په ړومبۍ ورځ د اختر مونځ و نه کړې شو اوس قربانی په کوم وخت کښې ذبح کړو؟بینوا توجروا۔

**الجواب و منه الصدق والصواب** : په همدغه ورځ پس د زوال نه قربانی کولې شئ.

قال فی شرح التنویر: وبعد مضی وقتها لو لم یصلوا العذر ویجوز فی الغد وبعده قبل الصلوة لان الصلوة فی الغد تقع قضاء لا اداء زیلعی وغیره.

وفی الشامیة: ووقت الصلوة من الارتفاع الی الزوال (ردالمحتار ص ۲۰۲ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۱ ذی الحجه ۱۳۷۵ هجری

## د چرګې قربانی روا نۀ ده

**سوال**:- یو سړې وائی چې که د قربانئ په نیت سره چرګه ذبحه کړې شی نو واجبه قربانی به ادا شی،او په استدلال کښې تهجیر الی الجمعة باندې د ثواب هغه حدیث وړاندې کوی،آیا د هغۀ دا وینا صحیح ده ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د چرګې په ذبحه کولو باندې واجبه قربانی نۀ ادا کیږی، په کوم سړی باندې چې قربانی واجبه نۀ وی،هغۀ که د قربانئ په نیت سره چرګه ذبحه کړی نو هم مکروه تحریمی ده.

د حدیث تهجیر الی الجمعة نه استدلال کول د دوو وجوهو نه صحیح نۀ دي:

۱- د حدیث نه مقصود د اجر مقدار بیانول دی نۀ جواز د اضحیې.

۲- که چیرې د معهودو حیواناتو نه علاوه د یو بل څناور لکه چرګه، مرغۍ وغیره قربانی جائز

وې نو رسول الله ﷺ او صحابه کرام ﷺ به په زمانه دفقر کښې کله خو په دې عمل کړې وي.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ورکها ذبح ما یجوز ذبحه من النعم لا غیرهت فیکره ذبح دجاجة ودیك لانه تشبه بالمجوس بزازیة.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله فیکره ذبح دجاجة ودیك الخ) ای بنیة الاضحیة والکراهة تحریمیة کما یدل علیه التعلیل ط وهذا فیمن لا اضحیة علیه والا فالامر اظهر (ردالمحتار ص۲۰۰ ج۵)

وقال العلامة عبدالحلیم اللکنوی رحمه الله: وقالت الظاهریة یجوز التضحیة بکل حیوان وحشی او انسی و کل طائر یؤکل لحمه لحدیث ابی هریرة ﷺ مرفوعا مثل المهجر الی الجمعة کمثل من یهدی بدنة ثم کمن یهدی بقرة ثم کمن یهدی شاة ثم یهدی دجاجة ثم کمن یهدی بیضة والعصفور قریب الی البیضة والجواب عنه المراد به بیان قدر الثواب لا انه یجوز التضحیة به. (حاشیة الهدایة ص۴۴۸ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم

یوم العرفة ۱۳۸۳ هجری

## په شریکانو کښې په هر یو شریک باندې قربانی واجبه ده

**سوال:-** څلور ورونو خپل مشترک میراث تقسیم کړو او بیل شول، ددې نه پس دوو ورونو فیصله وکړله چې هغوی به بیل اوسیږی، او معامله به یو ځائ چلیږی، اوس د هغوی منقول مال مشترک دې او غیر منقول مال ئې غیر مشترک دې.

نو پوښتنه داده چې په دې دواړو باندې به ځان له بیله بیله قربانی واجب وی او که نه یوه قربانی به ددې دواړو د اړخه کافی شی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دواړو باندې ځان له بیله بیله قربانی واجبه ده.

قال العلامة التمرتاشی رحمه الله: فتجب التضحیة علی حر مسلم مقیم موسر (ردالمحتار ص۲۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۱ شعبان ۱۳۸۵ هجری

## د قربانئ څرمن او غوښه خرڅول روا نهٔ دی

**سوال:-** آیا دذابح دپاره دقربانئ د ځناور څرمن او غوښه خرڅول روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د غوښې خرڅول خو په هر حال کښې ناروا دی، که چا خرڅه کړه نو د هغې دقیمت تصدق پرې واجب دې، البته دیو دائمی استعمال د څیز سره ددې بدلون کول روا دی په څرمن کښې تفصیل دا دې چې ددې نه د مصلی وغیره په شان د دائمی استعمال څیز جوړ کړی نو په خپله ئې هم استعمالولې شی یا ددې په شان د بل څیز سره ئې بدلولې هم شی، د څرمنې

خرخول روا نهٔ دی، که چا خرخه کړه نو قیمت ئې په مسکینانو باندې صدقه کول واجب دې البته که بعینه څرمن ورکول غواړی نو مالداره ته ئې هم ورکولې شی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ویتصدق بجلدها او یعمل منه نحو غربال وجراب وقربة وسفرة ودلو او یبدله بما ینتفع به باقیا کما مر لا بمستهلك كخل ولحم ونحوه کدراهم فان بیع اللحم او الجلد به ای بمستهلك او بدراهم تصدق بثمنه ومفاده صحة البیع مع الکراهة وعن الثانی باطل لانه کالوقف مجتبی.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله فان بیع اللحم او الجلد به الخ) افاد انه لیس له بیعهما بمستهلك وان له بیع الجلد بما تبقی عینه وسکت من بیع اللحم به للخلاف فیه ففی الخلاصة وغیرها لو اراد بیع اللحم لیتصدق بثمنه لیس له ذلك ولیس له فیه الا ان یطعم او یاکل اھ والصحیح کما فی الهدایة وشروحها انهما سواء فی جواز بیعهما بما ینتفع بعینه دون ما یستهلك وایده فی الکفایة بما روی ابن سماعة عن محمد رحمه الله لو اشتری باللحم ثوبا فلا باس بلبسه اھ (ردالمحتار ص ۲۰۰ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۹ ذی الحجه ۱۳۸۹ هجری

## د خراب تی د څناور قربانی

**سوال**: یو سړی د قربانۍ د پاره بکرۍ یا غوا واخستله، لیکن د هغې تی خراب وو، آیا د داسې څناور قربانی روا ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چې د غوا دوه تی او د بکرۍ یو تې خراب وی نو دهغې قربانی کول روا نهٔ دی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: لا بالعمیاء (الی قوله) والجذاء مقطوعة رؤس ضرعها او یابستها ولا الجدعاء مقطوعة الانف ولا المصرمة اطباؤها وهی التی عولجت حتی انقطع لبنها ولا التی لا الیة لها خلقة مجتبی.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله وهی التی عولجت الخ) وفی التتارخانیة والشطور لا تجزء وهی من الشاة ما قطع اللبن عن احدی ضرعیها ومن الابل والبقر ما قطع من ضرعیها لان لکل واحد منهما اربع اضرع (ردالمحتار ص ۲۰۰ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲ رجب ۱۳۸٦ هجری

## د قربانۍ څناور بدلول

**سوال**: چا د قربانۍ په غرض سره بکرې وساتلو یا ئې به بیعه واخستلو، نو آیا د دې بدلون کولې شی او که نه؟ بینوا بالتفصیل مع الدلیل اجرکم الله المولی الجلیل.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بکرۍ که د کور ساتلې شوې وی یا ئې د اخستلو نه پس په کښې د قربانۍ نیت کړې وی، ددې بدلول بهر حال روا دی، او که د قربانۍ په نیت سره ئې اخستې وی نو په دې کښې بیا درې روایتونه دی:

۱- د غنی او د فقیر دواړو دپاره موجب نهٔ دې، لهذا د دواړو د پاره بدلول روا دی.

۲. د دواړو د پاره موجب دی، په غنی باندې په قدر د مالیت او په فقیر باندې هم د دغه ځناور قربانی واجبه ده.

د دې روایت مطابق په استبدال د غنی کښې اقوال مختلف دی، اعدل الاقاویل دا معلومیږی چې چرته د دویمې اضحیې د ذبحه کولو نه پس د ړومبۍ ترک بې د کراهته روا دې، د ذبحې نه وړاندې تبدیل د اولی مکروه تنزیهی دې، په دواړو صورتونو کښې ئې که د ادنی سره بدلون وکړو نو زیادت ئې واجب التصدق دې.

د فقهاء کرامو رحمهم الله په بعضې عبارتونو کښې (**اقامة غیرها مقامها**) نه ذبحه ثانیه مراده ده. **هکذا افادملك العلماء الامام الكاسانی رحمة الله علیه**

دا دواړه قوله ظاهر الروایة دی.

**والاول اوسع وایسر واوفق لقاعدة (ان النذر لا ینعقد بدون الایجاب باللسان).**

**والثانی احوط واشهر واوفق لقاعدة (الاحتیاط فی باب العبادات واجب)**

۳ - د غنی د پاره موجب نهٔ دی، د فقیر د پاره موجب دی، لهذا د غنی دپاره بدلول مطلقا روا دی، او د فقیر دپاره مطلقا ناروا دی.

## فروع:

۱- په نیت د قربانۍ ئې ځناور واخستلو، هغه ورک شو، بیا ئې دویم ځناور واخستلو، د هغې نه پس دقربانۍ په ورځو کښې ړومبې ځناور هم بیاموندې شو نو د ړومبې روایت مطابق غنی او فقیر دواړو ته اختیار دې چې په دواړو ځناورو کښې هر یو چې وی هغه او یا د دې دواړو نه علاوه بل یو ذبح کړی، فقیر ته دا هم اختیار شته دې چې هیڅ یو ځناور ذبح نهٔ کړی.

د دویم روایت مطابق په غنی باندې په دې دواړو ځناورو کښې د یو ځناور قربانی واجبه ده، البته د دویم ځناور د ذبحه کولو په صورت کښې که دا د اولنی نه د کم قیمت وی نو د زیاتی پیسو تصدق پرې هم واجب دې، د ړومبی د ذبحه کولو په صورت کښې پرې زیاتې واجب نهٔ دې، د دواړو ذبح کول بهتر دی.

په فقیر باندې د دواړو ذبحه کولو واجب دی.

د دریم روایت مطابق غنی ته د ړومبی روایت د تفصیل مطابق اختیار دې، او په فقیر باندې د

دویم روایت په شان د دواړو ذبحه کول واجب دی.

۲- په نیت دقربانۍ ئې څناور واخستلو، بیا هغه روک شو یا مړ شو نو:
په غنی باندې د دریم روایت مطابق د دویم څناور ذبح کول واجب دی، اگرکه هغه د ړومبي نه کم قیمت وی، په فقیر باندې هیڅ هم واجب ندې.

۳- په نیت د قربانۍ ئې څناور واخستلو، بیا هغه ورک شو، بیا ئې دویم څناور واخستلو او دقربانۍ په ورځو کښې ئې هغه ذبح کړو، ددې نه پس د قربانۍ په ورځو کښې هغه ورک شوې څناور بیاموندې شو نو: د ړومبی روایت مطابق په غنی او فقیر دواړو باندې هیڅ هم واجب نۀ دی، د دویم روایت مطابق په غنی باندې ددې ذبحه کول واجب نۀ دی.

ددویم صورت د کم قیمت دکیدلو په صورت کښې د زیاتی پیسو تصدق واجبیدل پکار وو لیکن د ادنی اختیاردلته عمداً ونۀ موندې شو ددې وجې نه زیاتې په کښې واجب التصدق نۀ دې.

په فقیر باندې ددې ذبح کول هم واجب دی.

د دریم روایت مطابق په غنی باندې ددې ذبح کول واجب نۀ دی، په فقیر باندې د دې ذبح کول واجب دی.

۴- په نیت د قربانۍ ئې څناور واخستلو، هغه ورک شو، بیا ئې دویم څنارو واخستلولیکن د قربانۍ په رځوکښې ئې ذبح نه کړو، د قربانۍ د ورځو د تیریدلو نه پس ړومبې څنارو هم بیاموندې شو نو: د ړومبی روایت مطابق غنی باندې واجب دی چې په دواړو کښې چرته یو څناور ژوندې صدقه کړی یا د یو لائق د ذبحې د څنارو قیمت صدقه کړی، په فقیر باندې هیڅ هم واجب نۀ دی

د دویم روایت مطابق په غنی باندې په دواړو کښې د افضل تصدق واجب دې.

د دې روایت مقتضی خو دا ده چې د غنی دپاره ددې څناور د قیمت یا د دې په شان د یو بل څناور تصدق دې هم روا شی، لیکن د قربانۍ د ورځو په تیریدلو باندې ددې څناور عین د قربت د پاره متعین شو.

په فقیر باندې د دواړو څنارو ژوندی صدقه کول واجب دی.

د غنی او د فقیر د دواړو دپاره ذبح کول روا نۀ دی، که چا ذبح کړو نو په هغۀ باندې د ټولو غوښو تصدق واجب دې، که د غوښې قیمت د ژوندی څناور د قیمت نه کم وی، نو د زیاتی تصدق پرې هم واجب دې.

د دریم روایت مطابق په غنی باندې د ړومبی روایت د تفصیل په شان تصدق واجب دې.
په فقیر باندې د دواړو څنارو صدقه کول واجب دی.

۵- په نیت د قربانۍ ئې څناور واخستلو، هغه ورک شو، بیا ئې دویم څناور واخستلو او په ورځو د قربانۍ کښې ئې هغه ذبح کړو، د قربانۍ د ورځو د تیریدلو نه پس ورته هغه ړومبې څناور

هم ترلاسه شو نو: د وړومبی روایت مطابق په غنی او فقیر دواړو باندې څه هم واجب نهٔ دی.
د دویم روایت مطابق په غنی باندې څه هم واجب نهٔ دی.
دا حکم اګر چې ددې روایت د مقتضی خلاف دې لیکن په وجه د عدم وجود د عمد په کښې زیاتی واجب التصدق نهٔ دې.
په فقیر باندې د دې څناور ژوندې صدقه کول واجب دی.
د دریم روایت مطابق په غنی باندې څه هم واجب نهٔ دی.
په فقیر باندې ددې څناور ژوندې صدقه کول واجب دی.
۶ - په نیت د قربانۍ ئې څناور واخستلو، لیکن د قربانۍ په ورځو کښې ئې ذبح نهٔ کړو نو:
د وړومبی روایت مطابق په غنی باندې همدا څناور ژوندې یا د کوم یوڅناور هم چې لائق د قربانۍ وی د هغې قیمت صدقه کول واجب دې. په فقیر باندې هیڅ هم صدقه کول واجب نهٔ دی.
د دویم روایت مطابق په غنی او فقیر دواړو باندې ددې څناور ژوندې صدقه کول واجب دی.
په ظاهره د غنی دپاره د دې روایت مطابق په تصدق بالعین کښې اوپه تصدق بالقیمة کښې اختیارکیدل پکار دی، لیکن د قربانۍ د ورځو په تیریدلو باندې عین متعین شوکمامرفی الفرع الرابع.
د دریم روایت مطابق په غنی باندې په وجوب کښې هم هغه تفصیل دې کوم چې په دویم روایت کښې تیر شو، په فقیر باندې همدا څناور ژوندې صدقه کول واجب نهٔ دې.
۷ - فقیر د قربانۍ په نیت سره څناور واخستلو او ذبح ئې کړو، بیا د قربانۍ په ورځو کښې مالداره شو نو: د ړومبی روایت مقتضی عدم وجوب دې، او د دویم روایت مقتضی وجوب دې.
امام کاسانی رحمه الله دویم روایت اختیار کړې دې، د هغې مطابق هغوی دلته وجوب ته صحیح وئیلې دی.
البته امام کردری رحمه الله په ظاهره دویم روایت ته د ترجیح ورکولو باوجود دلته عدم وجوب راجح ګرځولې دې.
۸ - په نیت د قربانۍ سره د اخستلې شوی څناور د شیدو، سوټو او د وړئ استعمال:
د ړومبې روایت مطاب د غنی او د فقیر دواړو دپاره روا دی.
د دویم روایت مطابق د دواړو دپاره روا نهٔ دی.
د دریم روایت مطابق د غنی د پاره روا او د فقیر دپاره ناروا دی.
په شیدو او سوټو کښې دا تفصیل په دې صورت کښې دې، چې څناور بهر څریدل کوی، که چیرې په کور کښې واښه وغیره خوری نو دغنی او د فقیر دپاره بهر حال روا دی.

وھذہ نصوص الفقھاء رحمہم اللہ :

قال الامام شمس الائمة السرخسی رحمہ اللہ: و اذا اشتری اضحیة ثم باعها فاشتری مثلها فلا بأس بذلك لان بنفس الشراء لا تتعين الاضحية قبل ان يوجبها (المبسوط ص۱۳ ج۱۱)

وقال الامام قاضیخان رحمہ اللہ: ولو اشتری شاة للاضحية ثم باعها واشتری اخری فی ایام النحر فهذه علی وجوه ثلاثة الاول اذا اشتری شاة ينوی بها الاضحية والثانی ان يشتری بغير نية الاضحية ثم يوجب بلسانه ان يضحی بها فيقول لله علی ان اضحی بها عامنا هذا ففی الوجه الاول فی ظاهر الرواية لا تصير اضحية مالم يوجبها بلسانه وعن ابی يوسف عن ابی حنيفة رحمهما الله تعالی انها تصير اضحية بمجرد النية كما لو اوجبها بلسانه وبه اخذ ابويوسف رحمہ اللہ: و بعض المتاخرين و عن محمد رحمہ اللہ فی المنتقی اذا اشتری شاة ليضحی بها واضمر نية التضحية عند الشراء تصير اضحية كما نوی فان سافر قبل ايام النحر باعها وسقطت عنه الاضحية بالمسافرة و اما اذا اشتری شاة بغير نية الاضحية ثم نوی الاضحية بعد الشراء لم يذكر هذا فی ظاهر الرواية وروی الحسن عن ابی حنيفة رحمهما الله تعالی انه لا تصير اضحية لو باعها يجوز بيعها وبه ناخذ فاما اذا اشتری شاة ثم اوجبها اضحية بلسانه وهو الوجه الثالث تصير اضحية فی قولهم ولو ولدت ولدا يكون ولدها للاضحية ولو باعها يجوز بيعها فی قول ابی حنيفة ومحمد رحمهما الله تعالی الا انه يكره وقال ابو يوسف رحمہ اللہ لا يجوز بيعها و هی كالوقف عنده. (خانية بهامش الهندية ص۳۳۶ ج۳)

وقال الامام طاهر بن عبد الرشيد البخاری رحمہ اللہ: و بالشراء بنية الاضحية ان كان المشتری غنيا لا يجب عليه باتفاق الروايات حتی لو باعها و اشتری بثمنها اخری والثانية دون الاولی جاز ولا يجب عليه شیء وان كان المشتری فقيرا قال فی شرح الشافی من اشتری شاة ليضحی بها تعينت لها بالنية عند الطحاوی رحمہ اللہ قال و مذهب الجمهور انها لا تصير لها الا ان يقول علی ان اضحی بها لان نفس النية غير موجبة وهكذا ذكر شمس الائمة الحلوانی رحمہ اللہ و ذكر الامام خواهرزاده رحمہ اللہ فی ظاهر الرواية عن اصحابنا تصير واجبة و هكذا ذكر الطحاوی رحمہ اللہ وفی الزيادات فی كتاب الهبة رجل اشتری شاة فاوجبها اضحية وجبت عليه موسرا كان او معسرا واختلف المشائخ رحمہم اللہ فی قوله فاوجبها اضحية قال بعضهم اوجبها بلسانه بعد الشراء فيقول لله علی ان اضحی بهذه الشاة وقال بعضهم اراد به انه اشتراها بنية الاضحية و قوله اوجبها ای بذلك الشراء قال و ظاهر المذهب هذا (خلاصة الفتاوی ص۳۱۸ ج۴)

وقال الامام الکاسانی رحمۃ اللہ علیہ: وان کان معسرا فاشتری شاۃ للاضحیۃ فھلکت فی ایام النحر او ضاعت سقطت عنہ ولیس علیہ شیء آخر لما ذکرنا ان الشراء من الفقیر للاضحیۃ بمنزلۃ النذر فاذا ھلکت فقد ھلک محل اقامۃ الواجب فیسقط عنہ ولیس علیہ شیء آخر بایجاب الشرع ابتداءً لفقد شرط الوجوب وھو الیسار ولو اشتری الموسر شاۃ للاضحیۃ فضلت فاشتری شاۃ اخری لیضحی بھا وجد الاولی فی الوقت فالافضل ان یضحی بھما فان ضحی بالاولی اجزاہ ولا تلزمہ التضحیۃ بالاخری ولا شیء علیہ غیر ذلک سواء کانت قیمۃ الاولی اکثر من الثانیۃ او اقل والاصل فیہ ما روی عن سیدتنا عائشۃ رضی اللہ عنہا انہا ساقت ھدیاً فضاع فاشترت مکانہ اخر ثم وجدت الاول فنحرتھا ثم قالت الاول کان یجزیء عنی فثبت الجواز بقولھا والفضیلۃ رضی اللہ عنہا ولان الواجب فی ذمتہ لیس الا التضحیۃ بشاۃ واحدۃ وقد ضحی وان ضحی بالثانیۃ اجزاہ وسقطت عنہ الاضحیۃ ولیس علیہ ان یضحی بالاولی لان التضحیۃ بھا لم تجب بالشراء بل کانت الاضحیۃ واجبۃ فی ذمتہ بمطلق الشاۃ فاذا ضحی بالثانیۃ فقد ادی الواجب بھا بخلاف المتنفل بالاضحیۃ اذا ضحی بالثانیۃ انہ یلزمہ التضحیۃ بالاولی ایضا لانہ لما اشتراھا للاضحیۃ فقد وجب علیہ التضحیۃ بالاولی ایضا بعینھا فلا یسقط بالثانیۃ بخلاف الموسر فانہ لا یجب علیہ التضحیۃ بالشاۃ المشتراۃ بعینھا وانما الواجب فی ذمتہ وقد اداہ بالثانیۃ فلا تجب عیلہ التضحیۃ بالاولی وسواء کانت الثانیۃ مثل الاولی فی القیمۃ او فوقھا او دونھا لما قلنا غیر انہا ان کانت دونھا فی القیمۃ یجب علیہ ان یتصدق بفضل ما بین القیمتین لانہ بقیت لہ ھذا الزیادۃ سالمۃ من الاضحیۃ فصار کاللبن ونحوہ ولو لم یتصدق بشیء ولکنہ ضحی بالاولی ایضا وھو فی ایام النحر اجزاہ وسقطت عنہ الصدقۃ لان الصدقۃ انما تجب خلفا عن فوات شیء من شاۃ الاضحیۃ فاذا ادی الاصل فی وقتہ سقط عن الخلف واما علی قول ابی یوسف رحمۃ اللہ فانہ لا تجزیہ التضحیۃ الا بالاولی لانہ یجعل الاضحیۃ کالوقف (بدائع ص ۶۶ ج ۵)

وقال العلامۃ الطوری رحمۃ اللہ علیہ: فلو قال کلاما نفسیا للہ علی ان اضحی بھذہ الشاۃ ولم یذکر بلسانہ شیئا فاشتری شاۃ بنیۃ الاضحیۃ ان کان المشتری غنیا لا تصیر واجبۃ باتفاق الروایات فلہ ان یبیعھا ویشتری غیرھا وان کان فقیرا ذکر شیخ الاسلام خواھر زادہ فی ظاھر الروایۃ تصیر واجبۃ بنفس الشراء وروی الزعفرانی رحمۃ اللہ علیہ عن اصحابنا لا تصیر واجبۃ واشار الیہ شمس الائمۃ السرخسی رحمۃ اللہ علیہ فی شرحہ والیہ مال شمس الائمۃ الحلوانی فی شرحہ وقال انہ ظاھر الروایۃ (تکملۃ البحر ص ۱۷۸ ج ۸)

وترکنا تحریر الدلائل علی الفروع حذراً من الاطالۃ واللہ سبحانہ وتعالی اعلم۔ ۲ رجب ۱۳۸۶ ھجری

## په نوکر باندې د قربانۍ غوښه خوړل

**سوال:**-کوم نوکران چې په کورونو کښې د کار د پاره ساتلې شوې وی دهغوی خوراک دمالک په ذمه وی، آیا مالک په هغوی باندې د خپلې قربانۍ غوښه خوړې شی او که نه؟

دلته د علماؤ دوه ډلې دی، یو فریق ئې د جواز قائل دې او بل فریق ئې د عدم جواز قائل دې، د عدم جواز قائلین دا دلیل وړاندې کوئ چې کوم نوکر ته څوک روټۍ نه ورکوی د هغه تنخوا زیاته وی مثلا شپیتۀ روپۍ، او کوم نوکر له چې روټۍ ورکولې کیږی د هغه تنخوا کمه وی مثلا څلویښت روپۍ، لهذا کومه روټۍ چې په نوکر باندې خوړلې کیږی هغه د دۀ د باقی پاتې تنخوا په مقابله کښې وی، او دا بیعه ده او د قربانۍ غوښه خرڅول روا نۀ دی۔

کوم حضرات ئې چې د جواز قائل دې هغوی دا دلیل بیانوی چې دې ته بیعه نۀ شی وئیلې کیدې، ځکه چې د بیعې د پاره انشاء ایجاب او قبول ضروری دې او هغه دلته مفقود دې۔

تاسو غور وکړئ او فیصله اوفرمایئ چې د کوم فریق قول صحیح دې؟ که د عدم جواز د قائلینو قول راجح وی نو په نوکر باندې دغوښې خوړلو څه حیله شته او که نه؟ د کتابونو په حوالو سره او سره د مخالفینو له جواب نه راته فیصله اوفرمایئ ډیره مهربانی به مو وی۔بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قول د عدم جواز صحیح دې، لیکن د دې چې کوم دلیل وړاندې کړې شوې دې هغه کافې نۀ دې، صحیح دلیل دا دې چې خوراک د نوکر د اجرت یو جز دې،او د قربانۍ غوښه په اجرت کښې ورکول روا نۀ دی.

نوکر باندې د غوښې خوړلو حیله دا اختیارول کیدې شی چې هغه ته د هغه ورځو د خوراک قیمت ورکړې شی.

**قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ولا یعطی اجر الجزار منها لانه کبیع و استفیدت من قوله علیه الصلوة والسلام من باع جلد اضحیته فلا اضحیة له هدایة (ردالمحتار ص۲۰۹ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.**

۲ ذی الحجه ۱۳۸٦ هجری

## د قربانۍ څرمن د مدرسې په تعمیر وغیره باندې لګول روا نۀ دی

**سوال:** یو تنظیم د مسلمانانو د فلاح کارونه په محدوده پیمانه باندې کوی،د هغې تنظیم اراده دیوې مدرسې او د یوې شفاخانې د جوړولو ده،او ددې په تعمیر باندې د قربانۍ څرمن، صدقة الفطر او د زکوة پیسې لګول غواړی،آیا دا روا دی؟ بینوا توجروا۔

د زکوة، صدقة الفطر،او د قربانۍ د څرمنو پیسې د جمات،مدرسې،او د شفاخانې یا د هر قسمه رفاهی ادارې په تعمیر کښې لګول روا نۀ دی،ځکه چې ددې ټولو څیزونو د فقیر په ملکیت

کښې ورکول ضروري دي، او دلته تملیک د فقیر ونهٔ موندې شو.

البته په مدرسه کښې د سبق ویونکو غریبانانو طالبانو په طعام وغیره باندې ئې خرچ کولې شي.

قال فی التنویر: هی لغة الطهارة والنماء وشرعا تملیك جزء مال عینه الشارع من مسلم فقیر غیر هاشمی ولا مولاه مع قطع المنفعة عن المملك من كل وجه لله تعالی (ردالمحتار ص۲ ج۲)

وقال فی التنویر وشرحه: لا یصرف الی بناء نحو مسجد

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله نحو مسجد) كبناء القناطیر والسقایات واصلاح الطرقات وكری الانهار والحج والجهاد وكل مالا تملیك فیه زیلعی (ردالمحتار ص۱۳ ج۲)

وقال العلامة الحصكفی رحمه الله: ویتصدق بجلدها او یعمل منه نحو غربال وجراب وقربة وسفرة ودلوا و یبدله بما ینتفع به باقیا كما مر. (ردالمحتار ص۲۰۹ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲ ذی الحجه ۱۳۸٦ هجری

## د قربانۍ څرمن او غوښه کافر له ورکول روا دي

**سوال:**- د قربانۍ څرمن او غوښه کافر له ورکول روا دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: روا دي.

قال فی الهندیة: ویهب منها ما شاء للغنی والفقیر والمسلم والذمی كذا فی الغیاثیة (عالمگیریة ص۳۰۰ ج۵)

والله سبحانه وتعالی اعلم

## د وصیت د قربانۍ غوښه خوړل روا نهٔ دي

**سوال:**- زید وصیت وکړو او مړ شو، چې زما د مال نه قرباني وکړئ، او د هغې نه ځان د پاره هم غوښه وساتئ، د هغوی د وصیت مطابق د قربانۍ غوښه ځان له ساتل او خوړل روا دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**:

دا روا نهٔ دي، البته که د مړي د حکم نه بغیر د خپل مال نه قرباني وکړي نو بیا روا دي.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (فرع) من ضحی عن المیت یصنع كما یصنع فی اضحیة نفسه من التصدق والاكل والاجر للمیت والملك للذابح قال الصدر والمختار انه ان بامر المیت لا یاكل منها و الا یاكل بزازیة و یسئل كره فی النظم. (ردالمحتار ص۲۰۹ ج۵)

وقال العلامة الحصكفی رحمه الله: وعن میت بالامر الزم تصدقا.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله و عن ميت) اى لو ضحى عن ميت وارثه بأمره الزمه بالتصدق بها وعدم الاكل منها وان تبرع بها عنه له الاكل لانه يقع على ملك الذابح والثواب للميت ولهذا لو كان على الذابح واحدة سقطت عنه اضحيته كما فى الاجناس قال الشرنبلالى لكن فى سقوط الاضحية عنه تأمل اهـ اقول صرح فى فتح القدير فى الحج عن الغير بلا امر انه يقع عن الفاعل فيسقط به الفرض عنه و للاخر الثواب فراجعه (ردالمحتار ص۲۱۴ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۹ ذی الحجه ۱۳۸٦ هجری

## په عشرې (لسو ورځو) د ذولحجې کښې د نوکونو خوړلو وغيره حيثيت

**سوال**: په کوم سړی باندې چې قربانی واجبه نۀ وی که حجامت ونۀ کړی او نوکونه پرې نۀ کړی نو هغه ته به ثواب ورکول کيږی او که نه ؟بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه ! دۀ ته ثواب نۀ ورکول کيږی، دا استحباب صرف د قربانئ کوونکو سره خاص دې، هغه هم په دې شرط چې د نامه نه د لاندې او د تخرګونو د صفايئ او د نوکونو د پرې کولو ځلويښت ورځې نۀ وی تيرې شوې، که ځلويښت ورځې تيرې شوې نو د ذکر کړې شوو څيزونو صفائې واجبه ده.

عن ام سلمة رضی الله عنها قالت قال رسول الله ﷺ: اذا دخل العشر و اراد بعضكم ان يضحى فلا يمس من شعره و بشره شيئا و فى رواية فلا يأخذن شعرا و لا يقلمن ظفرا و فى رواية من رای هلال ذی الحجة و اراد ان يضحی فلا يأخذ من شعره ولا من اظفاره رواه مسلم (مشكوة ص۱۲۷ ج۲)

و قال العلامة الحصكفی رحمه الله: و يستحب حلق عانته و تنظيف بدنه بالاغتسال فی كل اسبوع مرة والافضل يوم الجمعة وجاز فی كل خمسة عشر و كره تركه وراء الاربعين مجتبى (ردالمحتار ص۳۱۱ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۵ ذی الحجه ۱۳۸٦ هجری

## چې پلار او ځوئ شريک وی نو په ځوئ باندې قربانی نشته

**سوال**- عمرو د خپل پلار سره په کاروبار کښې شريک دې، خوراک څښاک وغيره هر څه ئې يوځائ دی، آيا شرعاً په عمرو باندې صدقه د فطر، قربانی او حج فرض دې او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که د عمرو په کاروبار کښې مستقله حصه نۀ وی او ځان له هغه سره په قدر د نصاب مال نۀ وی نو په هغه باندې هيڅ هم فرض نۀ دی۔ والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۵ ذی الحجه ۱۳۸٦ هجری

## په نابالغه باندې قرباني واجبه نۀ ده

**سوال**:- چې نابالغه هلک مالدار وي نو په هغۀ باندې قرباني واجبه ده او که نه؟ آیا ولي د هغه له خوا نه د هغه د مال نه قرباني کولې شي او که نه؟ که ولي قرباني وکړه نو د غوښې د تقسیم په حقله څه حکم دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په نابالغه باندې قرباني واجبه نۀ ده،ولي له د هغه د پاره دهغه د مال نه قرباني کول روا نۀ دي،که ولي قرباني وکړه نو ولي له نۀ د دې نه خوراک کول روا دي او نه ددې صدقه کول روا دي، نابالغه ترې په خپله خوراک کولې شي،د زیاتې غوښې نه د هغه دپاره یو باقي پاتې کیدونکې څیز لکه کپړه وغیره اخستلې کیدې شي، د نقدو په عوض کښې ئې خرڅول روا نۀ دي.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله: ویضحی عن ولده الصغیر من ماله صححه فی الهدایة وقیل لا صححه فی الکافی قال ولیس للاب ان یفعله من مال طفله ورجحه ابن الشحنة قلت وهو المعتمد لما فی متن مواهب الرحمن من انه اصح ما یفتی به وعلله فی البرهان بانه ان کان المقصود الاتلاف فالاب لا یملکه فی مال ولده کالعتق او التصدق باللحم فمال الصبی لا یحتمل صدقة التطوع وعزاه للمبسوط فلیحفظ ثم فرع علی القول الاول بقوله واکل منه الطفل وادخر له قدر حاجته وما بقی یبدل بما ینتفع الصغیر بعینه کثوب وخف لا بما یستهلك کخبز ونحوه ابن کمال وکذا الجد والوصی.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله قلت وهو المعتمد) واختاره فی الملتقی حیث قدمه وعبر عن الاول بقیل ورجحه الطرسوسی بأن القواعد تشهد له ولانها عبادة ولیس القول بوجوبها اولی من القول بوجوب الزکوة فی ماله (قوله بما ینتفع بعینه) ظاهره انه لا یجوز بیعه بدراهم ثم یشتری بها ما ذکر ط ویفیده ما ذکره عن البدائع (ردالمحتار ص۲۰۱ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۵ ذی الحجه ۱۳۸٦ هجری

## د مړي له اړخه په غوا کښې حصه نیول

**سوال**: دوو ورونو یو ځائې قرباني وکړه، درې حصې یو ونیولې، درې حصې بل ونیولې،او یوه حصه ئې خپل پلار ته ونیوله،د نیمې حصې قیمت یو ورکړو او د نیمې حصې قیمت بل ورکړو،آیا د والدینو له اړخه داسې قرباني کول صحیح ده؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د غوا چې څومره مالکان وي،په هغې کښې حصې هم صرف هغومره وي، په دې صورت د سوال کښې مالکان دوه دي،نو په ټوله غوا کښې به حصې هم صرف دوه وي، ددوو نه زیاتې څه حصې به بیخی نه وي ، لهذا د والد له اړخه ئې قرباني ونۀ شوه

قال العلامة الحصكفي رحمه الله: ولو ضحى بالكل فالكل فرض كاركان الصلوة فان الفرض منها ما يطلق الاسم عليه فاذا طولها يقع الكل فرضا مجتبى.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله لو ضحى الكل الخ) الظاهر ان المراد لو ضحى ببدنة يكون الواجب كلها لا سبعها بدليل قوله في الخانية ولو ان رجلا موسرا ضحى ببدنة عن نفسه خاصة كان الكل اضحية واجبة عند عامة العلماء وعليه الفتوى اه مع انه ذكر قبله باسطر لو ضحى الغني بشاتين فالزيادة تطوع عند عامة العلماء فلا ينافي قوله كان الكل اضحية واجبة ولا يحصل تكرار بين المسالتين فافهم ولعل وجه الفرق ان التضحية بشاتين تحصل بفعلين منفصلين واراقة دمين فيقع الواجب احداهما فقط والزائدة تطوع بخلاف البدنة فانها بفعل واحد واراقة واحدة فيقع كلها واجبا هذا ما ظهر لي (رد المحتار ص۲۱۲ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم

۱۶ ذی الحجه ۱۳۸۶ هجری

د دې تفصیل په رساله «د غوا په قربانۍ کښې د یو سړی دوه حصې» کښې ده.

## د ځناور د اخستلو نه پس ئې عیب معلوم شو

**سوال**: زید د قربانۍ د پاره په دوه سوه باندې د قربانۍ څاروې واخستلو، وروستو ورته معلومه شوه چې د دې دوه غاښونه نشته، اوس ورته دا نه معلومیږی چې عمر ئې یو کال دې او که دوه کاله دې، زید اووئیل چې دا به په ولیمه کښې ذبحه کړو، د قربانۍ د پاره به دویم څاروې واخلو، اوس پوښتنه داده چې دویم ځناور دې هم د دوو سوو روپو وی او که نه د سلو روپو هم اخستلې او قربانی کولې شی، حال دا چې په زید باندې قرباني واجبه ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دویم ځنارو د کم قیمت هم اخستې شی.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله: ولو اشتراها سليمة ثم تعيبت بعيب مانع كما مر فعليه اقامة غيرها مقامها ان كان غنيا وان كان فقيرا اجزاه ذلك وكذا لو كانت معيبة وقت الشراء لعدم وجوبها عليه بخلاف الغني (رد المحتار ص۲۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۵ ذی الحجه ۱۳۸۶ هجری

## د قربانۍ د غوښې د تقسیمولو غلطه طریقه

**سوال**: څو حقیقی ورونو یو ځائ قربانی وکړه، څه غوښه ئې په خلقو کښې تقسیم کړه، د باقی د پاره هر یو بل له په خوشحالئ سره اجازت ورکړو چې د چا څومره زړه غواړی یو دې سی، په تول کولو او د برابر ورکولو څه ضرورت نشته دې. آیا دا طریقه شرعاً روا ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا طریقه روا نۀ ده، البته که په هره حصه کښې د سر یا د خپو څه

حصه کیږدی نو بیا روا ده.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ویقسم لحمه وزنا لا جزافا الا اذا ضم معه من الاکارع او الجلد صرفا للجنس بخلاف جنسه

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله لا جزافا) لان القسمة فیها معنی المبادلة ولو حلل بعضهم بعضا قال فی البدائع اما عدم جواز القسمة مجازفة فلان فیها معنا التملیك واللحم من اموال الربوا فلا یجوز تملیکه مجازفة فاما عدم جواز التحلیل فلان الربا لا یحتمل الحل بالتحلیل ولانه فی معنی الهبة وهبة المشاع فیما یحتمل القسمة لا تصح اهـ وبه ظهر ان عدم الجواز بمعنی انه لا یصح و لا یحل لفساد المبادلة خلافا لما بحثه فی الشرنبلالیة من انه فیه بمعنی لا یصح ولا حرمة فیه (ردالمحتار ص۲۰۲ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۶ ذی الحجه ۱۳۸۷ هجری

## چې خوراک څښاک مشترک وی نو د غوښې تقسیمول ضروری نهٔ دی

**سوال:**- والدینو او ورونو خویندو په شریکه قربانی وکړه، څه غوښه ئې په غریبانانو کښې تقسیم کړه، او باقی پخول او یوځائ خوړل غواړی نو په دې صورت کښې د غوښې تقسیمول او هر یو ته ځان له ځان له حصه ورکول ضروری دی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې تقسیم ضروری نهٔ دې ځکه چې دا اباحت دې د تملیک او تملک معنی په دې کښې نشته دې.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله ویقسم اللحم) انظر هل هذه القسمة متعینة او لا حتی لو اشتری لنفسه ولزوجته واولاده الکبار بدنة ولم یقسموها تجزیهم اولا والظاهر انها لا تشترط لان المقصود منها الاراقة وقد حصلت وفی فتاوی الخلاصة والفیض تعلیق القسمة علی ارادتهم وهو یؤید ما سبق غیر انه اذا کان فیهم فقیر والباقی اغنیاء یتعین علیه اخذ نصیبه لیتصدق به اهـ ط وحاصله ان المراد بیان شرط القسمة ان فعلت لا انها شرط لکن فی استثنائه الفقیر نظر اذ لا یتعین علیه التصدق کما یاتی نعم الناذر یتعین علیه فافهم (ردالمحتار ص۲۰۲ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۶ ذی الحجه ۱۳۸۷ هجری

## د خنثی څناور قربانی صحیح نهٔ ده

**سوال:**- د خنثی څناور قربانی روا ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا روا نهٔ ده.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله: ولا بالخنثى لان لحمها لا ينضج شرح وهبانية وتمامه فيه (ردالمحتار ص۲۰۳ ج۵)

والله سبحانه وتعالى اعلم ۱۰ محرم ۱۳۸۸ هجری

## د بې ښکرو څناور قرباني

**سوال**:- د کوم څناور چې د پیدایش نه دوه یا یو ښکر نه وی یا وروستو ئې ښکرې ماتې شی نو آیا د هغې قرباني روا ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا روا ده ،البته که چیرې یو ښکر ئې هم وځی نو دا بیا روا نۀ ده.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله ويضحى بالجماء) هي التي لا قرن لها خلقة وكذا العظماء التي ذهب بعض قرنها بالكسر او غيره فان بلغ الكسر الى المخ لم يجز قهستاني وفي البدائع ان بلغ الكسر المشاش لا يجزى والمشاش رؤس العظام مثل الركبتين والمرفقين (ردالمحتار ص۲۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم

۲۵ صفر ۱۳۸۸ هجری

## د مات شوی ښکر د څاروی د قربانۍ د عدم جواز په حقله د حدیث جواب

**سوال**:- یو عالم دین فرمائی چې د کوم څناور ښکر مات وی نو د هغې قرباني روا نۀ ده، برابره خبره ده که د پورته نه مات شوې وی او که د بیخ نه مات شوې وی،ځکه چې په حدیث کښې مطلقا ممانعت دې : عن علي رضي الله عنه نهى رسول الله ﷺ ان يضحى باعضب القرن والاذن.

او د فقهې په کتابونو کښې چې کوم لیکلې شوې دی چې د بیخه مات شی نو قرباني ئې صحیح نۀ ده، او د مینځ نه چې مات شی نو صحیح ده،د دې څه اصل نشته دې.

آیا د دوی دا وئیل صحیح دی؟ بینوا توجروا.

**لجواب باسم ملهم الصواب**: عن حجية بن عدى قال اتى رجل عليا رضي الله عنه فسأله عن المكسورة القرن فقال لا يضرك (شرح معاني الآثار ص۱۳۰ ج۲) په دې حدیث کښې په خپله د حدیث د منعې د راوی د حضرت علی رضي الله عنه د جواز فتوی منقوله ده، بلکه دا چې دَ حضرت عمار رضي الله عنه د حضرت سعید بن المسیب او د حضرت حسن بصری رحمهما الله تعالی فتوی هم ددې مطابق ده. (اعلاء السنن ص۲۰۵ ج۱۷)

د حدیث د منعې مختلف جوابونه ورکولې شی:

۱- د حضرت علی رضي الله عنه د فتوې نه ثابتیږی چې دا حدیث منسوخ دې.

۲- د منعې روایت خلاف اولی باندې محمول دې.

۳- ممانعت د داسې څناور نه دې،د کوم ښکر چې بالکل د بیخ نه مات وی.

والله سبحانه وتعالى اعلم

۱۹ ذی الحجه ۱۳۹۸ هجری

## د قربانۍ د وجوب د پاره د کال تیریدل شرط نهٔ دی

**سوال**:- یو سړی سره د قربانۍ په ورځو کښې په قدر د نصاب یا د دې نه زیات مال دې لیکن په ده باندې تر اوسه پورې کال ندې تیر شوې، آیا په ده باندې قرباني واجبه ده او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دهٔ باندې قرباني واجبه ده. په دې شرط چې دا مال ئې د حوائجو اصلیه نه زیات وی، حولان حول په کښې شرط نهٔ دې.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: فتجب التضحیة ای اراقة الدم من النعم عملا لا اعتقادا بقدرة ممکنة هی ما یجب بمجرد التمکن من الفعل فلا یشترط بقاؤها لبقاء الوجوب لانها شرط محض لا میسرة هی ما یجب بعد التمکن بصفة الیسر (در المحتار ص۱۹۹ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم ۵ ذی قعده ۱۳۸۸ هجری

## د بانک د نوکر په شرکت سره د هیچا قربانی هم نهٔ کیږی

**سوال**:- په یوه غوا کښې د بانک یا انشورنس نوکر یا یو همداسې سړې شریک وی چې د چا اکثر آمدن حرام وی، آیا دده په شرکت سره به د نورو شریکانو په قربانۍ باندې څه اثر غورځیږی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې د چا قربانی هم صحیح نهٔ ده.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: وان مات احد السبعة المشترکین فی البدنة وقال الورثة اذبحوا عنه وعنکم صح عن الکل استحسانا لقصد القربة من الکل ولو ذبحوها بلا اذن الورثة لم یجزهم لانه بعضها لم یقع قربة وان کان شریك الستة نصرانیا او مریدا اللحم لم یجز عن واحد منهم لان الاراقة لا تتجزا هدایة.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله وان کان شریك الستة نصرانیا الخ) وکذا اذا کان عبدا او مدبرا یرید الاضحیة لان نیته باطلة لانه لیس من اهل هذه القربة فکان نصیبه لحما فمنع الجواز اصلا بدائع. (رد المحتار ص۲۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۰ ذی الحجه ۱۳۸۸ هجری

## د قربانۍ هډوکی خرڅول روا نهٔ دی

**سوال**:- د قربانۍ د غوښې هډوکی د غوښې پخولو نه وړاندې یا د غوښې د پخولو نه وروستو خرڅول او د هغې پیسې په خپل تصرف کښې راوستل روا دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داسې کول روا نهٔ دی، که چا هډوکی خرڅ کړل نو د هغې پیسې په مسکینانو باندې صدقه کول واجب دی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۳ محرم ۱۳۸۹ هجری

## که څناور ورک شی یا مړ شی نو د دویمې قربانۍ حکم

**سوال**- زید د قربانۍ څناور واخستلو،دا څناور مړ شو یا ورک شو،آیا دویم څناور اخستل او قربانی کول واجب دی او که نه؟ که واجب وی نو د ړومبی څناور د قیمت سره برابریدل ضروری دی او که نه د لږ قیمت څناور هم کافی کیږی؟ یو عالم فرمائی چې په قیمت کښې برابری ضروری ده او په دلیل کښې د درمختار دا عبارت وړاندې کوی:

وکذا الثانية لو قيمتها كالاولى او اكثر وان اقل ضمن الزائد ويتصدق به بلا فرق بين غنى وفقير.

آیا د دوی دا استدلال صحیح دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په غنی باندې د دویم څناور قربانی واجبه ده،په قیمت کښې برابری ضروری نۀ ده،په فقیر باندې هیڅ هم واجب نۀ دی.

قال الامام طاهر بن عبد الرشيد البخاری رحمه الله: والفقير لو سرق شاته ولم يشتر اخرى ليس عليه اخرى والغنى يجب عليه اخرى لان الوجوب على الفقير بالشراء والشراء يتناول هذا المعين فوجب التضحية به فسقط الواجب بهلاك هذا المعين. (خلاصة الفتاوی ص۳۱۸ ج۴)

وقال الامام الكاسانی رحمه الله: ولو اشترى اضحية وهى صحيحة ثم اعورت عنده وهو موسر او قطعت اذنها كلها او اليتها او ذنبها او انكسرت رجلها فلم تستطع ان تمشى لا تجزى عنه وعليه مكانها اخرى لما بينا وكذلك ان ماتت عنده او سرقت. (بدائع ص۷۶ ج۵)

په سوال کښې د ذکر کړې شوی عبارت نه استدلال کول صحیح نۀ دی، ځکه چې دا د هغه صورت سره متعلق دې چې ړومبې څناور په ورځو د قربانۍ کښې بیا موندې شو،د دې نه علاوه بلا فرق بين غنى وفقير ته علامه ابن عابدين رحمه الله مرجوح وئیلې دی، راجح دا دی چې په فقیر باندې د دواړو ذبح کول واجب دی.

په فقیر باندې د وجوب دا دواړه قوله په دې روایت باندې مبنی دی په کوم کښې چې شراء الفقير بنية الاضحية ته موجب وئیلې شوې وی، دویم روایت د عدم وجوب په کښې هم شته،دا دواړه روایتونه ظاهر الروایة دی. ورواية الوجوب احوط واشهر والثانية اوسع وايسر والله سبحانه وتعالى اعلم.

۳۰ محرم ۱۳۸۹ هجری

## د ګوډ څناور قربانی

**سوال**- زید یو څناور واخستلو. وروستو هغه ګوډ شو، د خپې د ماتیدلو ئې څه نۀ معلومیدل.

آيا ددې قرباني روا ده او که نه؟ د امير او د غريب په کښې څه فرق شته او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که ښپه په زمکه ايښودې شي او په هغې باندې څه ځائ پورې تلې شي نو قرباني پرې روا ده او که داسې نۀ وي نو نۀ ده روا، کوم سړې چې د قدر د نصاب مالک نۀ وي هغه د پاره بهر حال قرباني روا ده.

قال العلامة ابن عابدين رحمة الله عليه: (قوله والعرجاء) اى التى لا يمكنها المشى برجلها العرجاء انما تمشى بثلاث قوائم حتى لو كانت تضع الرابع على الارض وتستعين بها جاز عناية (ردالمحتار ص۲۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۸ ربيع الاول ۱۳۸۹ هجرى

## د غلا د خاروى قربانى روا نۀ ده

**سوال**:- زيد د عمرو يوه غوا غلا کړه، او هغه ئې د قربانۍ دپاره ذبح کړه، پوښتنه دا کول دی، چې آيا د زيد دا قرباني وشوه او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د زيد قرباني ادا نۀ شوه ځکه چې هغه د غوا مالک نۀ دې، البته دا ذبيحه حلاله ده، خو سره د دې هم بې د مالک داجازت داخستلو نه ددې غوښه استعمالول روا نۀ دی

قال العلامة ابن عابدين رحمة الله عليه: قال فى البدائع غصب شاة فضحى بها عن نفسه لا تجزئه لعدم الملك (ردالمحتار ص۲۱۰ ج۵)، والله سبحانه وتعالى اعلم ۱۸ جمادى الثانية ۱۳۸۹ هجرى

## په حرام مال باندې قرباني واجبه نۀ ده

**سوال**:- په حرام مال باندې قرباني واجبه ده او که نه؟ لکه د رشوت گټه شوه وغيره وغيره. بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: حرام مال خو ټول صدقه کول واجب دی، لهذا په دې باندې قرباني واجبه نۀ ده.

قال العلامة ابن عابدين رحمة الله عليه: فى القنية لو كان الخبيث نصابا لا يلزمه الزكوة لان الكل واجب التصدق عليه فلا يفيد ايجاب التصدق ببعضه اهـ ومثله فى البزازية (ردالمحتار ص۲۵ ج۲) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۷ محرم ۱۳۹۰ هجرى

## د قربانۍ په وجوب کښې د زمکې حکم

**سوال**:- د قربانۍ په وجوب کښې به د زمکې د قيمت اعتبار وي او که نه د پيداوار اعتبار به ئې کولې شي؟ که د قيمت اعتبار ئې کولې شي نو چې کومه زمکه د کرکروندې قابله نۀ وي د هغې قيمت به لگولې شي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که د قدر د معاش نه زیاته د کر کروندې قابله یا ناقابله زمکه او د پیداوار مجموعه یا په کښې یو په قدر د نصاب وی نو قربانی پرې واجبه ده.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله معزیا الی التتارخانیة سئل محمد رحمه الله عمن له ارض یزرعها او حانوت یستغلها او دار غلتها ثلاثة الاف ولا تکفی لنفقته ولنفقة عیاله سنة؟ یحل له اخذ الزکوة وان کانت قیمتها تبلغ الوفا وعلیه الفتوی وعندهما لا یحل اهـ (ردالمحتار ص۱۵ ج۲)

وقال ایضا: ولو له عقار یستغله فقیل تلزم لو قیمته نصابا وقیل لو یدخل منه قوت سنة تلزم وقیل قوت شهر فمتی فضل نصاب تلزمه والو العقار وقفا فان وجب له فی ایامها نصاب تلزم (ردالمحتار ص۱۹۸ ج۵)

والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۲ محرم ۱۳۹۰ هجری

## په مقروض باندې د قربانۍ د وجوب تفصیل

**سوال**:- چا سره د قربانۍ د وجوب پوره نصاب موجود وی لیکن په دهٔ باندې قرض هم وی، که د نصاب نه د قرض ادا کولو نه پس دومره مالیت پاتې شی چې په هغې باندې د قربانۍ څناور اخستلې شی نو به هغهٔ باندې قربانی واجبه ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د نصاب نه د قرض په ورکولو باندې که په نصاب کښې نقص نهٔ راځی، نصاب کامل باقی پاتې وی نو قربانی پرې واجبه ده او که نه نو نده پرې واجبه.

قال الامام الکاسانی رحمه الله: ولو کان علیه دین بحیث لو صرف الیه بعض نصابه لانتقص نصابه لا تجب لان الدین یمنع وجوب الزکاة فلان یمنع وجوب الاضحیة اولی لان الزکاة فرض والاضحیة واجبة والفرض فوق الواجب (بدائع ص۶۳ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۸ ذی الحجه ۱۳۹۰ هجری

## که په اوښ باندې د اووو شریکانو نه زیات شی نو د چا قربانی هم نهٔ صحیح کیږی

**سوال**: آیا د اوښ په قربانۍ کښې لس کسان شریکیدې شی؟ که د اوو نه زیات کسان په کښې شریک شو نو آیا د دوی قربانی به صحیح شی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د غوا په شان په اوښ کښې هم د زیات نه زیات اوه کسان شریکیدې شی، که د اوو نه زیات شو نو د یو قربانی په کښې هم نهٔ صحیح کیږی۔ والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۸ ذی الحجه ۱۳۹۰ هجری

## د تقسیم نه وړاندې غوښه صدقه کول روا نهٔ دي

**سوال**:- د تقسیم نه وړاندې د مشترکه غوښې په فقیرانو باندې صدقه روا ده او که نه؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرې څو کسان په قربانئ کښې شریک وي،او هغوی ټول غوښه په خپلو کښې نهٔ تقسیموی بلکه ټول ښه په رضا او رغبت سره یوځائ په فقیرانو، رشته دارو، کښې تقسیمول یا پخول او په هغوی باندې خوړل غواړي نو دا روا دي اوکه نه؟.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله ويقسم اللحم)انظر هل هذه القسمة متعينة اولا حتى لو اشترى لنفسه ولزوجته واولاده الكبار بدنة ولم يقسموها تجزيهم اولا والظاهر انها لا تشترط لان المقصود منها الاراقة وقد حصلت(ردالمحتار ص۲۰۲ ج۵)والله سبحانه وتعالى اعلم ۱۹ ذی الحجه ۱۳۹۰ هجری

## که چا د قربانئ د ورځو د ختمیدلو نه وړاندې ټول مال هبه کړو نو په هغه باندې قرباني واجبه نهٔ ده

**سوال**:- هندې سره دومره مال دې چې په هغې باندې قرباني واجبه ده،که هنده خپل ټول مال خاوند ته ورکړی نو آیا په دې باندې به قرباني واجبه پاتې وي او که نه؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که دقربانئ دورځود ختمیدلونه وړاندې هندې خپل خاوندته دومره مال هبه کړو چې هندې سره په قدر دنصاب مال پاتې نهٔ شو نو په هغې باندې قرباني واجبه نهٔ ده۔

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تحت(قوله الى اخر ايامه)والاصل ان ما وجب كذلك يتعين الجزء الذى ادى فيه للوجوب او اخر الوقت كما فى الصلوة وهو الصحيح وعليه يتخرج ما اذا صار اهلا للوجوب فى اخرها بان اسلم او اعتق او ايسر او اقام تلزمه لا ان ارتد او اعسر او سافر فى اخرها(ردالمحتار ص۲۰۱ ج۵)والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۶ ذی قعده ۱۳۹۱ هجری

## د قربانئ د وجوب نصاب

**سوال**:- د قربانئ د وجوب نصاب څه دې ؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چې ۸۷,۴۷۹ گرامه سرهٔ زر یا ۳۵,۲۱۲ گرامه سپین زر وی یا په دې دواړو کښې د یو برابر نقدې روپئ یا مال د تجارت یا د ضرورت نه زیات سامان یا دا پنځه واړه یا په دې کښې بعضې وی نو قربانی پرې واجبه ده.

د درې جوړو نه زیات لباس، راډیو او د ټی وی (تلویزیون) غوندې بې فائدې څیزونه په حاجت کښې داخل نهٔ دی،د دې وجې نه ددې قیمت به هم په نصاب کښې شمارلی شي.

قال الامام الحصکفی رحمہ اللہ: وشرائطها الاسلام والاقامة واليسار الذی يتعلق به وجوب صدقة الفطر.
وقال العلامة ابن عابدين رحمہ اللہ: (قوله واليسار الخ) بأن ملك مائتی درهم او عرضا يساويها غير مسكنه وثياب اللبس ومتاع يحتاجه الی ان يذبح الاضحية (الی قوله) وصاحب الثياب الاربعة لو ساوی الرابع نصابا غنی وثلاثة فلا لان احدها للبذلة والآخر للمهنة والثالث للجمع والوفد والاعياد (ردالمحتار ص ۲۲۱ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. غرة ذی الحجه ۱۳۹۲ هجری

## د غیر (بل چا) په مال باندې د ساتلې شوی څناور قربانی

**سوال**:- زید یوه غوا واخستله او په بازار کښې ئې پریښودله، دا غوا د نورو خلقو مال وغیره خوری او گرځی، او د خلقو نقصان کوی، آیا داسې څناور د مالک نه په بیعه اخستل او ددې قربانی کول روا دی، او قربانی به ترې ادا شی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې غوا کښې د هیڅ قسمه څه قباحت نشته دې، لهذا د دې غوا قربانی روا ده. والله سبحانه وتعالی اعلم غره جمادی الاولی ۱۳۹۲ هجری

## د شیعه په شرکت باندې به د چا قربانی هم نۀ کیږی

**سوال**:- آیا په قربانۍ کښې د اهل سنت سره شیعه شریکیدې شی؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: شیعه کافر دې، که په یو څناور کښې د هغۀ حصه وساتلې شوه نو د چا قربانی هم ونۀ شوه. والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۳ جمادی الاولی ۱۳۹۲ هجری

## د مشرک په شرکت سره به د چا قربانی هم نۀ صحیح کیږی

**سوال**:- د قربانۍ په شریکانو کښې یو شریک بریلوی دې، عقیده ئې داده چې رسول الله ﷺ ته علم غیب حاصل دې، او هغوی ﷺ هر ځائې حاضر او ناظر دی، رسول الله ﷺ او اولیاء کرام رحمهم الله مختار کل دی، نفع او نقصان رسولې شی، بیماری او صحت، عزت او ذلت او اولاد د هغوی په لاس کښې دی، په همدې وجه دغه سړې د اولیاء الله قبرونو له ځی او هلته د خپلو حاجتونو د پوره کیدلو دپاره نذرونه کوی او له هغوئ نه خپل حاجتونه غواړی، آیا داسې سړې چې د قربانۍ په څناور کښې شریک شی نو د نورو شریکانو ورسره قربانی صحیح کیږی؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داسې سړې مشرک دې، دۀ سره د قربانۍ په څاروی کښې شریکیدل روا نۀ دی، کوم خلق چې دۀ سره شریکیږی د قربانۍ په څاروی کښې په هغوی کښې به د چا قربانی هم نۀ صحیح کیږی. والله سبحانه وتعالی اعلم ۷ ذی القعده ۱۳۹۹ هجری

## د شپې قرباني کول

**سوال**:- آيا په شپه کښې قرباني کول بې د کراهته روا دي؟بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په لسمه او ديارلسمه شپه روا نۀ ده،په يوولسمه او دولسمه شپه روا ده البته د شپې د رګونو د نۀ پرې کيدلو،يا د لاس په خوږولو،يا د قربانۍ په آرام کښې د خلل د انديښنې له کبله ذبح کول مکروه تنزيهي دي.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله: وكره تنزيها الذبح ليلا لاحتمال الغلط.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله تنزيها) بحث من المصنف حيث قال قلت الظاهر ان هذه الكراهة للتنزيه ومرجعها الى خلاف الاولى اذ احتمال الغلط لا يصلح دليلا على كراهة التحريم اهـ

اقول وهو مصرح به في ذبائح البدائع (قوله ليلا) اى في الليلتين المتوسطتين لا الاولى ولا الرابعة اذ لا تصح فيهما الاضحية اصلا كما هو الظاهر ونبه عليه في النهاية ومع هذا اخفى على البعض (رد المحتار ص ٢٠٣ ج ٥)

وقال الامام الكاساني رحمه الله: (منها) ان المستحب ان يكون الذبح بالنهار ويكره بالليل والاصل فيها ما روى عن رسول الله ﷺ انه نهى عن الاضحى ليلا وعن الحصاد ليلا وهو كراهة تنزيه ومعنى الكراهة يحتمل ان يكون لوجوه احدها ان الليل وقت امن وسكون وراحة فايصال الالم في وقت الراحة يكون اشد والثاني انه لا يأمن من ان يخطئ فيقطع يده ولهذا كره الحصاد بالليل والثالث ان العروق المشروطة في الذبح لا تتبين في الليل فربما لا يستوفى قطعها (بدائع الصنائع ص ٨٠ ج ٥) والله سبحانه وتعالى اعلم. ٣ رمضان ١٣٩٢ هجری

## د ذبحې نه وړاندې په کښې عيب پيدا شو

**سوال**: په يو سړي باندې قرباني واجبه نۀ وه،هغه د قربانۍ دپاره غوئې واخستلو،بازار نه د راوستلو نه پس غوئې کښيناستلو اونه پاسيدلو ده هغه غوئې ذبح کړو او غوښه ئې خرڅه کړه،آيا په ده باندې د دويم څناور اخستل او د دې قربانول ضروري دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې کښې اختلاف دې،د وجوب او د عدم وجوب د دواړو قول په کښې شته ،او دواړه قوله ظاهر الرواية دي،الاول احوط والثاني اوسع،که آسانه وي ورته نو د بل څناور قرباني دې وکړي.والله سبحانه وتعالى اعلم. ٨ ذى الحجه ١٣٩٢ هجرى

## غنى څناور واخستلو او د قربانۍ په ورځو کښې فقير شو

**سوال**:- زيد مالداره وو،هغه شپږ مياشتې وړاندې د قربانۍ په نيت سره څاروې واخستلو،بيا زيد مسکين شو،نو آيا د دې څناور قرباني په زيد باندې واجبه ده او که مستحبه؟بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: واجبه پرې نهٔ ده:

قال العلامة التمرتاشي رحمه الله: والمعتبر اخر وقتها للفقير و ضده والولادة والموت فلو كان غنيا في اول الايام فقيرا الى اخرها لا تجب عليه وان ولد في اليوم الاخر تجب عليه وان مات فيه لا تجب عليه.

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله والولادة) اى على القول بوجوبها في مال الصغير او الاب و هو خلاف المعتمد كما مر. والله سبحانه وتعالى اعلم ۲۵ ذی الحجه ۱۳۹۲ هجری

## د لیونی ځناور قربانی روا ده

**سوال**:- کوم ځناور باندې چې کله کله د میرگی دوره راځی، او هسې دا ځناور ښه څرب دې، نو آیا د دې ځناور قربانی روا ده او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دهٔ باندې قربانی روا ده.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله: و يضحى بالجماء والخصى والثولاء اى المجنونة (ردالمحتار ص ۲۰۰ ج ۵) والله سبحانه وتعالى اعلم ۲۷ ذی قعده ۱۳۹۷ هجری

## په قرض ورکوونکی باندې قربانی واجبه ده

**سوال**:- زید سعودی عرب ته د تلو د پاره خپل کور او ټول سامان خرڅ کړلو او پنځه زره روپۍ ئې عمرو له ورکړې، عمرو زید سعودی عرب ته ونهٔ لیږلې شو، او عمرو په خپله لاړو او د هغه ځائ نه ئې زید ته خط ولیکلو چې د لوئ اختر نه پس به درته ټولې پیسې راولیږم، اوس پوښتنه داده چې په زید باندې قربانی شته او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دې ته دَین قوی وائی او په دې باندې بالاتفاق زکوة فرض دې، لهذا قربانی به پرې په طریق اولی واجب وی، البته که د قربانۍ د پاره ورسره نهٔ نقدې وی او نهٔ ورسره د ضرورت نه زیات څه سامان وی چې هغه خرڅ کړی او قربانی پرې وکړې شی نو په دې صورت کښې پرې بیا قربانی واجبه نهٔ ده.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: له مال كثير غائب في يد مضاربه او شريكه و معه من الحجرين او متاع البيت ما يضحى به تلزم. (ردالمحتار ص ۱۹۸ ج ۵)

وفي الهندية عن البدائع: ولو كان عليه دين بحيث لو صرف فيه نقص نصابه لا تجب و كذا لو كان له مال غائب لا يصل اليه في ايامه (عالمگیریة ص ۲۹۲ ج ۵) والله سبحانه و تعالى اعلم ۱۸ ذی الحجه ۱۳۹۵ هجری

## د مهر په قرض باندې قرباني واجبه نۀ ده

**سوال**:- زينب د نصاب مالکه نۀ ده، ليکن د هغې په خاوند باندې دوه زره روپئ مهر شته ، آيا په زينب باندې ددې دوو زرو روپو د اخستلو نه وړاندې قرباني واجبه ده؟بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دې درې صورته دی:

۱- مهر معجل وی او خاوند ئې مالداره وی.

۲- مهر معجل وی او خاوند ئې مسکين وی.

۳- مهر مؤجل وی، خاوند ئې برابره خبره ده که غنی وی او که فقير وی.

په ړومبی صورت کښې پرې قرباني واجبه ده، په دويم او دريم صورت کښې پرې قرباني واجبه نۀ ده.

**قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله واليسار الخ) والمراة موسرة بالمعجل لو الزوج مليا و بالمؤجل لا (ردالمحتار ص۱۹۸ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم** ۱۸ ذی الحجه ۱۳۹۵ هجری

## څناور په قرض باندې اخستل او قرباني کول روا دی

**سوال**:- د قربانئ څناور په قرض اخستل او قرباني کول روا دی او که نه؟ زيد وائی چې روا نۀ دی، ځکه چې که د قربانئ کولو نه پس ورته مرګ راشی او وارثان ئې د قرض د ادا کولو نه انکار وکړی نو بيا به څه وی؟بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: څناور په قرض اخستل او قرباني پرې کول روا دی،قرض به د دۀ د ترکې نه ادا کولې شی،که وارثان ترې نه انکار وکړی نو دائن چې هرځنګه هم وی خپل قرض ترې نه اخستلې شی۔ **والله سبحانه وتعالى اعلم** ۱۹ ذی الحجه ۱۳۹۵ هجری

## دکوم څاروی چه غاښونه سوليدلی وی دهغه قرباني

**سوال**:- د کوم څاروی غاښونه چې په سوليدلو سوليدلو اورو سره ولګی، نو د داسې څاروی قرباني صحيح ده او که نه؟ بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د غاښونو نه مقصد په ښه خوړلو باندې قدرت دې.د دې وجې نه که غاښونه ئې بالکل سوليدلې وی نو قرباني پرې روا نۀ ده.

**قال العلامة الحصكفي رحمه الله: ولا بالهتماء التي لا اسنان لها ويكفي بقاء الاكثر وقيل ما تعتلف به.**

**وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله و قيل ما تعتلف به) هو وما قبله روايتان حكاهما في الهداية عن الثاني وجزم في الخانية بالثانية وقال قبله والتي لا اسنان لها وهي تعتلف اولا تعتلف لا تجوز (ردالمحتار ص**

۳۰۰ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.                ۱۹ ذی الحجه ۱۳۹۶ هجری

## په غاښونو کښې د قربانۍ د څناور معيار

**سوال**:- د قربانۍ د څناور د اکثرو غاښونو موجوديدل ضروري دي، پوښتنه داده چې د اکثر نه مراد د مخامخ د اتو غاښونو اکثر غاښونه دي (لکه څنګه چې د غوا او غوټې وغيره صرف د لاندې اورۍ وي اتۀ غاښونه ئې وي پورته ئې نۀ وي) او که نه په ټولو غاښونو کښې ترې نه اکثر غاښونه مراد دي؟ بينوا توجروا -

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د اکثرو اعتبار په کښې نشته ، بلکه معيار په کښې دا دې چې څناور پرې وابنۀ خوړې شی نو قرباني پرې روا ده اوکه نه نو بيا پرې روا نۀ ده، څکه چې د غاښونو نه مقصود همدا دې.

قال الامام الحصکفی رحمه الله علیه: ولا بالهتماء التی لا اسنان لها ویکفی بقاء الاکثر وقیل ما تعتلف به.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله علیه: (قوله وقیل ما تعتلف به) هو وما قبله روایتان حکاهما فی الهدایة عن الثانی و جزم فی الخانیة بالثانیة وقال قبله والتی لا اسنان لها وهی تعتلف او لا تعتلف لا تجوز (ردالمحتار ص۲۰۰ ج۵)

وقال الامام الکاسانی رحمه الله علیه: واما الهتماء وهی التی لا اسنان لها فان کانت ترعی و تعتلف جازت والا فلا وذکر فی المنتقی عن ابی حنیفة رحمه الله علیه انه ان کان لا یمنعها عن الاعتلاف تجزیه وان کان یمنعها عن الاعتلاف الا ان یصب فی جوفها صبا لم تجزیه (بدائع الصنائع ص۷۵ ج۵)

وقال فی الهندیة: واما الهتماء وهی التی لا اسنان لها فان کانت ترعی و تعتلف جازت والا فلا کذا فی البدائع.

(عالمگیریة ص۲۹۸ ج۵)      والله سبحانه وتعالی اعلم      ۲۴ محرم ۱۳۹۹ هجری

## د قربانۍ د څناور نه کار اخستل

**سوال**:- چا د قربانۍ د پاره غوايه واخستلو ، اوس په دې قلبه کول يا چا له په اجرت ورکول روا دي او که نه؟ که چا داسې وکړل نو څه حکم ئې دې؟ بينوا توجروا -

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د جواز او د عدم جواز دواړه قولونه پکښې شته ، او دواړه ظاهرالرواية دي، الاول اوسع و ايسر والثانی احوط و اشهر.

د دې قول ثانی په مطابق که چا د قلبې دپاره غوټې استعمال کړو او په دې سره د هغې په قيمت کښې څه کمې راغلې نو د هغې اندازه دې وکړی نو هغومره صدقه کول پرې واجب دی، او په اجرت باندې د ورکولو په صورت کښې پرې بيا دا اجرت صدقه کول واجب دی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: ولا یرکبها ولا یحمل علیها شیئا ولا یؤجرها فان فعل تصدق بالاجرة حاوی الفتاوی لانه التزم اقامة القربة بجمیع اجزاءها.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله فان جزه تصدق به الی قوله حاوی الفتاوی) یوجد فی بعض النسخ قوله فان فعل تصدق بالاجرة ای فیما لو اجرها واما اذا رکبها او حمل علیها تصدق بما نقصته کما فی الخلاصة.

(ردالمحتار ص۲۰۹ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۰ذی الحجه ۱۳۹۶هجری

## په عیب مانع د تضحیې کښې تفصیل

**سوال**:-د څناور په غوږ، خپه، لکئ، او سترګه کښې چې څومره عیب پیدا شی نو قربانی پرې نۀ ده روا ددې څه معیار دې؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د غوږ یا د لکئ چې په کښې د نیمې نه زیات پرې شوې وی نو قربانی پرې روا نۀ ده. په کومه خپه کښې چې عیب دې که هغه خپه په زمکه ایښودې شی او تلې شی پرې نوقربانی پرې روا ده اوکه نه نو نۀ ده روا پرې.

د سترګې رڼا چې نیمه یا د دې نه کمه پاتې شوې وی نو قربانی پرې روا نۀ ده.

د دې د معلومولو طریقه دا ده چې څناور دې دوه درې ورځې وږې وساتلې شی بیا دې ورله عیب داره سترګه وتړلې شی او واښهٔ دې ورته د لرې نه وښودلې شی او بیا دې ورله دا واښه نزدې راوړې شی،دکوم ځائ نه چې څناور ته ښکاره شی هلته دې نښه ولګولې شی،بیا دې ورله صحیح سترګه وتړلې شی او داسې کار دې ورسره وکړې شی، بیا دې د دواړو فاصلو نسبت معلوم کړې شی،که فرق نیم یا د نیم نه زیات وی نو قربانی پرې روا نۀ ده او که داسې نه وی نو بیا پرې روا ده.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: لا بالعمیاء والعوراء والعجفاء المهزولة لا مخ فی عظامها والعرجاء التی لا تمشی الی المنسك ای المذبح والمریضة البین مرضها ومقطوع اکثر الاذن او الذنب او العین ای التی ذهب اکثر نور عینها فاطلق القطع علی الذهاب مجازا وانما یعرف بتقریب العلف.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله والعرجاء) ای التی لا یمکنها المشی برجلها العرجاء انما تمشی بثلاث قوائم حتی لو کانت تضع الرابعة علی الارض و تستعین بها جاز عنایة (قوله الی المنسك) بکسر السین والقیاس الفتح (قوله ومقطوع اکثر الاذن الخ) فی البدائع لو ذهب بعض الاذن او الالیة او الذنب او العین ذکر فی الجامع الصغیر ان کان کثیرا یمنع وان یسیرا لا یمنع واختلف اصحابنا فی الفاصل بین القلیل والکثیر فعن ابی حنیفة رحمه الله اربع روایات وروی محمد رحمه الله فی الاصل والجامع الصغیر ان المانع ذهاب اکثر من الثلث وعنه انه

الثلث وعنه انه الربع وعنه ان يكون الذاهب اقل من الباقي او مثله اهـ بالمعنى والاولـهي ظاهر الرواية صححها في الخانية حيث قال و الصحيح ان الثلث و ما دونه قليل و ما زاد عليه كثير وعليه الفتوى اهـ و مشى عليها في مختصر الوقاية والاصلاح والرابعة هي قولهما قال في الهداية وقال اذا بقي الاكثر من النصف اجزاه وهو اختيار الفقيه ابي الليث وقال ابو يوسف رحمه الله تعالى اخبرت بقولي اباحنيفة رحمه الله تعالى فقال قولي هو قولك قيل هو رجوع منه الى قول ابي يوسف رحمه الله تعالى وقيل معناه قولي قريب من قولك وفي كون النصف مانعا روايتان عنهما اهـ وفي البزازية و ظاهر مذهبهما ان النصف كثير اهـ وفي غاية البيان و وجه الرواية الرابعة وهي قولهما و اليها رجع الامام ان الكثير من كل شيء اكثره وفي النصف تعارض الجانبان اهـ اي فقال بعدم الجواز احتياطا بدائع وبه ظهر ان ما في المتن كالهداية والكنز والملتقى هو الرابعة و عليها الفتوى كما يذكره الشارح عن المجتبى و كانهم اختاروها لانه المتبادر من قول الامام السابق هو الرجوع عما هو ظاهر الرواية عنه الى قولهما والله تعالى اعلم. (رد المحتار ص۲۰۶ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۸ محرم ۱۳۹۸ هجری

## د ګډ د لکۍ اعتبار نشته

**سوال:** د ګډ د لم لاندې يوه وړه غوندې لکۍ وی، دا لکۍ که چيرې ماته شوه نو ددې ګډ قرباني روا ده او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د ګډ د لکۍ اعتبار نشته. لهذا که پوره لکۍ ئې پرې شوې وی نو بيا پرې هم قرباني روا ده.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولا التي لا الية لها خلقة مجتبى.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ولا التي لا الية لها خلقة) الشاة اذا لم يكن لها اذن ولا ذنب خلقة قال محمد رحمه الله تعالى لا يكون هذا ولو كان لا يجوز وذكر في الاصل عن ابي حنيفة رحمه الله تعالى انه يجوز خانية ثم قال وان كان لها الية صغيرة مثل الذنب خلقة جاز اما على قول ابي حنيفة رحمه الله تعالى فظاهر لان عنده لو لم يكن لها اذن اصلا ولا الية جاز واما على قول محمد رحمه الله تعالى صغيرة الاذنين جائزة وان لم يكن الية ولا اذن خلقة لا يجوز (رد المحتار ص۲۰۶ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۹ محرم ۱۳۹۸ هجری

## په يوه غوا چې رسولۍ «يوقسم دانه ده» وی د هغې د قربانۍ حکم

**سوال:** چې په يو غوا باندې رسولۍ وی. دا رسولۍ په ځتې، سر يا د بدن په کومه حصه هم کيدې شي. ددې غوا په عمل او ددې په شيدو وغيره باندې ددې رسولۍ څه اثر نه غورځي...

د سوداګرو په نظر کښې ددې قیمت کمیږي، آیا د داسې غوا قرباني کیدې شي ؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که د دې غوا صحت باندې ترې نه څه اثر نهٔ غورزیږي نو بیا روا ده، لیکن خلاف اولی ده، او که ددې د وجې نه غوا کمزورې او ضعیفه شوې وی نو بیا روا نهٔ ده.

قال العلامة الحصکفی رحمة الله علیه: ویضحی بالجماء (الی قوله) والجرباء السمینة فلو مهزولة لم یجز لان الجرب فی اللحم نقص. وقال العلامة ابن عابدین رحمة الله علیه: (قوله فلو مهزولة الخ) قال فی الخانیة وتجوز بالثولاء والجرباء السمینتین فلو مهزولتین لا تنقی لا یجوز اذا ذهب مخ عظمها فان کانت مهزولة فیها بعض الشحم جاز یروی ذلك عن محمد رحمة الله علیه اهـ وقوله لا تنقی ماخوذ من النقی بکسر النون واسکان القاف هو المخ ای لا مخ لها وهذا یکون من شدة الهزال فتنبه قال القهستانی واعلم ان الکل لا یخلو عن عیب والمستحب ان یکون سلیما عن العیوب الظاهرة فما جوز ههنا جوز مع الکراهة کما فی المضمرات (ردالمحتار ص۲۰۰ ج۵). والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۳ صفر ۱۳۹۸ هجری

## په قربانۍ کښې شریک له د ذبحې اجرت اخستل روا نهٔ دی

**سوال**:- د قربانۍ په اوو شریکانو کښې یو یا دوه کسانو له د قربانۍ د ذبح کولو او د غوښې د پرې کولو اجرت اخستل روا دی او که نه؟ د مظفر نګر په علماؤ کښې په دې حقله اختلاف دې. تاسو په دې باندې غور وکړئ او جواب راکړئ، که چیرې ناروا وی نو په څه دلیل سره ؟بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په قربانۍ کښې شریک سړی له د ذبحې اجرت اخستل په دوو وجوهو سره ناروا دی:

۱ - ذبح کول په خپله په هغهٔ باندې واجب دی، اصالةً یا نیابةً او په واجب علی التعیین باندې اجرت اخستل روا نهٔ دی.

۲- د مشترک فعل د اجرت استحقاق نهٔ وی.

د ذبحې کولو نه پس د څرمنې ایستلو او د غوښې د جوړولو اجرت صرف د دویمې وجې له کبله ناروا دې.

قال العلامة الحصکفی رحمة الله علیه: ولو استاجره لحمل طعام مشترك بینهما فلا اجر له لانه لا یعمل شیئا لشریکه الا ویقع لنفسه فلا یستحق للاجر.

وقال العلامة ابن عابدین رحمة الله علیه: (قوله لانه لا یعمل الخ) فان قیل عدم استحقاقه للاجر علی فعل نفسه لا یستلزم عدمه بالنسبة الی ما وقع لغیره فالجواب انه عامل لنفسه فقط لانه الاصل وعمله لغیره مبنی علی امر مخالف للقیاس فاعتبر الاول ولانه ما من جزء یحمله الا وهو شریك فیه فلا یتحقق تسلیم المعقود علیه لانه

بمنع تسلیم العمل الی غیره فلا اجر عنایة وتبیین ملخصا. (ردالمحتار ص۴۸ ج۵)

وقال العلامة الرافعی رحمه الله : (قوله وعمله لغیره مبنی علی امر مخالف للقیاس الخ) للحاجة وهی تندفع بجعله عاملا لنفسه لحصول مقصود المستاجر عنایة (التحریر المختار ص۲۰۴ ج۲) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۰ ربیع الاول ۱۳۹۸ هجری

## مسافر پس د قربانۍ نه مقیم شو

**سوال**- یو سړي د اختر په ورځ د سفر په مسافت باندې لاړلو او هلته ئې قرباني وکړه بیا په ۱۲ د ذي الحجې د نمر د ډوبیدو نه وړاندې خپل وطن ته واپس راغئ نو په دهٔ باندې دوباره قربانی کول واجب دي او که نه؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د دهٔ هم هغه قربانی صحیح شوه د سفر نه په واپسئ پرې بیا دوباره قرباني واجبه نهٔ ده.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله والاقامة) فالمسافر لا تجب علیه وان تطوع بها اجزاته عنها (ردالمحتار ص۲۹۹ ج۵)

وقال ایضا تحت (قوله الی اخر ایامه) ولو ضحی الفقیر ثم ایسر في اخره علیه الاعادة فی الصحیح لانه تبین ان الاولی تطوع بدائع ملخصا لکن فی البزازیة وغیرها ان المتاخرین قالوا لا تلزمه الاعادة وبه ناخذ (ردالمحتار ص۳۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۳ محرم ۱۳۹۹ هجری

## د قربانۍ په ورځو کښې مقیم، مسافر شو یا مسافر مقیم شو

**سوال**- که څوک سړې د اختر د ورځې د شروع کیدلو نه وړاندې په سفر باندې اووتلو یا څوک مسافر د ۱۲ د ذي الحجې د نمر د ډوبیدو نه وړاندې وطن ته واپس راغې نو په هغهٔ باندې به قرباني واجبه وي او که نه؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د قربانۍ په وجوب کښې د آخري وخت اعتبار دې، لهذا په ړومبی صورت کښې پرې قرباني واجبه نه ده، او په دویم صورت کښې پرې قرباني واجبه ده.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله : (قوله الی اخر ایامه) دخل فیها اللیل وان کره کما یاتی وافاد ان الوجوب موسع فی جملة الوقت غیر عین والاصل ان ما وجب کذلك یتعین الجزء الذی ادی فیه للوجوب او اخر الوقت کما فی الصلوة وهو الصحیح وعلیه یتخرج ما اذا صار اهلا للوجوب فی اخره بان اسلم او اعتق او ایسر او اقام تلزمه لا ان ارتد او اعسر او سافر فی اخره والله سبحانه وتعالی اعلم.

٤ محرم ۱۳۹۹ هجری

## د قربانۍ په عمر کښې د دوو غاښونو موجودیدل ضروري نهٔ دي

**سوال**:- کله کله د بکرۍ عمر یو کال او د غوا عمر دوه کاله شي لیکن غاښونه ئې نهٔ وي ظاهر شوي، آیا د دوی قرباني کول روا دي؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چې د عمر د پوره کیدلو اطمینان ئې وي نو قرباني کول ئې روا دي . والله سبحانه وتعالی اعلم. ٦ محرم ١٣٩٩ هجری

## د قربانۍ د غوښې د خوراک نه وړاندې خوراک څښاک کول

**سوال**:- د کوم سړي چې د قربانۍ کولو اراده وي ،د هغهٔ د پاره د قربانۍ د غوښې د خوراک نه وړاندې چائې وغیره څښل صحیح دي او که نه؟ د چا چې د قربانۍ اراده نوي د هغهٔ د پاره څه حکم دې ؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که دقربانۍ اراده ئې وي او که نه وي بهر حال د قربانۍ د غوښې نه وړاندې خوراک څښاک نهٔ کول مستحب دی ، چائې دې هم نه څښي ځکه چې په چایو کښې د شیدو او د بورې د وجې نه غذائیت دې.

دا حکم صرف مستحب دې،د دې په خلاف کولو کښې هیڅ قباحت نشته.

قال الامام الحصکفی رحمہ اللہ: وندب تاخیر اکله عنها وان لم یضح فی الاصح ولو اکل لم یکره ای تحریما.

وقال العلامة ابن عابدین رحمہ اللہ: (قوله فی الاصح) قیل لا یستحب التاخیر فی حق من لم یضح بحر (قوله لم یکره)قال فی البحر وهو مستحب ولا یلزم من ترک المستحب ثبوت الکراهة اذ لا بد لها من دلیل خاص (ردالمحتار ص۲۲۳ ج۱)

وقال فی الهندیة :و فی الکبری الاکل قبل الصلوة یوم الاضحی هل هو مکروه فیه روایتان والمختار انه لا یکره لکن یستحب له ان لا یفعل کذا فی التتارخانیة. ویستحب ان یکون اول تناولهم من لحوم الاضاحی التی هو ضیافة الله کذا فی العینی شرح الهدایة. (عالمگیریة ص۱۵۰ ج۱) والله سبحانه وتعالی اعلم

۹ محرم ۱۳۹۹ هجری

## د قربانۍ د غوښې نه د خوراک شروع کول د لسم تاریخه پورې خاص دي

**سوال**:- که قرباني په یوولسم یا په دولسم تاریخ باندې وکړی شي نو قرباني کوونکی دې د قربانۍ د غوښې نه وړاندې څه نهٔ خوري شرعا د دې څه حکم دې ؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا حکم صرف د لسم تاریخ سره خاص دې۔ والله سبحانه وتعالی اعلم.

۸ محرم ۱۴۰۱ هجری

## د شنډ څناور قرباني روا ده

**سوال:** کوم څناور چې د ابتداء نه شنډ وی د هغهٔ قربانی شرعا روا ده او که نه ؟یو عالم وائی چې دا روا نهٔ ده، د دې وجې نه د کتابونو د حوالې سره جواب مطلوب دې. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د شنډ څناور د قربانئ د عدم جواز څهٔ وجه نشته .او نهٔ داسې څه جزئیه زما د نظر لاندې راغلې ده،بلکه د دې لاندې وجوهاتو په بنا د دې جواز ثابت دې.

۱- د شنډ څناور په غوښه کښې څه نقص نهٔ وی،بلکه نسبتا ددې غوښه ښهٔ وی،د دې وجې نه ددې قربانی کول افضل کیدل پکار دی۔ **کما قالوا فی الخصی.**

۲- د خصی څنارو د تولید د قوت د ختمیدلو باوجود د هغهٔ قربانی روا بلکه افضله ده،قیاساً علیه د شنډ څناور قربانی هم روا بلکه افضله کیدل پکار دی،په دواړو کښې د تولید د قوت د ختمیدلو عیب موجود دې.

۳- که د عمر د زیاتوالی له کبله په کښې د تولید قوت ختم شوې وی نو قربانی پرې روا نهٔ ده.

**قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ تحت (قوله ولا تاکل غیرها) بعنوا (لتمة) تجوز التضحیة بالمجبوب العاجز عن الجماع والتی بها سعال والعاجزة عن الولادة لکبر سنها (ردالمحتار ص۲۰۰ ج۵)**

۴- دخنثی د قربانئ د عدم جواز وجه فقهاء کرام رحمهم الله دا بیانوی چې د هغې غوښه نه پخیږی ،د دې نه دا خبره ثابته شوه چې که د غوښې د نهٔ پخیدلو عیب په کښې نهٔ وې نو د خنثی قربانی به بیا روا وی، او دخنثی په نسبت شنډیدل اهون دی،ددې وجې نه ددې قربانی به په طریق اولی روا وی.

۵- اصل څیز اباحت دې لهذا چې تر څو پورې د عدم جواز څه صریحه جزئیه رانهٔ شی نو په دې باندې به د اباحت حکم لګولې شی۔ **والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.** ۱۳ صفر ۱۳۹۹ هجری

## د قربانئ د څناور څرمن خوړل روا دی

**سوال:** - که چا د قربانئ کولو نه پس د قربانئ د څناور څرمن په اور کښې پخه کړه او وې خوړله نو په دهٔ باندې څه ضمان شته او که نه؟دا شبه راته د دې وجې نه پیدا شوه چې په تنویر الابصار کښې دی: **ویتصدق بجلدها اویعمل منه نحو غربال وجراب اویبدلها بما ینتفع به لا بمستهلك كخل ولحم.**

لیکن په عالمګیریه کښې ئې د بدلون تفسیر په اشتراء سره کړې دې.

بله دا چې په بزازیه ص ۲۹۴ ج ۲ کښې ئې هم تفسیر په اشتراء سره کړې دې د کومې نه چې جواز معلومیږی ، د خانیې ص ۳۵۴ ج ۳ نه هم د جواز اړخ ته اشاره ده، **حیث قال: لا باس بان ینتفع باهاب الاضحیة او یشتری بها الغربال والمنخل** بینوا توجروا ۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په صورت د بیعې کښې په کښې دا شرط دې چې د باقی پاتې کیدونکی ځیز سره دې د دې بدلون وکړې شی، په خپله دخپل کار په راوستلو کښې په کښې دا شرط نشته .د دې وجې نه ددې خوړل روا دی۔ واللّٰه سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۲۶ ذی الحجه ۱۳۹۹ هجری

## د دواړو غوږونو پرې شوې حصه به شمارلې کیږی

**سوال**:- که د بکرئ یا د ګډ د دواړو غوږونو دومره حصه پرې شوې وی چې د دواړو مجموعه د ثلث نه زیاته جوړیږی، لیکن د هر یو پرې شوی غوږ حصه د ثلث نه کمه وی،نو آیا ددې قربانی صحیح ده او که نه؟بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : چې د دواړو غوږونو دومره حصه ئې پرې شوې وی چې مجموعه یې نصف یا د نصف نه زیاته وی نو قربانی کول پرې خلافِ احتیاط دی،که چا پرې وکړه نو قربانی به ئې صحیح وی.

**قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: فی البزازیة و هل تجمع الخروق فی اذنی الاضحیة اختلفوا فیه قلت و قدم الشارح فی باب المسح علی الخفین انه ینبغی الجمع احتیاطا (ردالمحتار ص۲۰۶ ج۵) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم.**

۷ ذی قعده ۱٤۰۰ هجری

## ضان غیر ذات الیه (بغیر له لم نه) ته شامل دې

**سوال**:- تاسو د یو سوال په جواب کښې لیکلې دی،چې لفظ د **(ضان)** ذات الیة (د لم والا) او غیر ذات الیة دواړو لره شامل دې. په دې باندې اشکال دادې چې علامه ابن عابدین رحمه الله د **ذوستة اشهر من الضان** د لاندې لیکلې دی **هو ماله الیة**.

لهذا داسې څه جزئیه چې هغه ماله الیة لره مرجوح ګرځوی یا که د تخصیص یا د تطبیق څه صورت کیدې شی نو وئې لیکئ او زمونږ تشفی پرې اوفرمائې.بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** :

**(ضان)**ذات الیة او غیر ذات الیة دواړو ته شامل دې،په بعضو کتابونو کښې چې د ضان تعریف کوم په ذات الیة سره مذکور دې،دا قید احترازی نهٔ دې بلکه تعریف بالنوع الاغلب دې،ځکه چې په عربو کښې زیات تر همدا نوعه ده،په دې باندې دا لاندینی دلائل دی:

۱- په قرآن کښې د ازواج ثمانیه ذکر دې د کومې تفصیل چې داسې دې: **من الضان اثنین و من المعز اثنین. ومن الابل اثنین ومن البقر اثنین.**

په دې کښې ضان ذات الیة او غیر ذات الیة دواړو ته شامل دي.

۲- قال ابن منظور الافریقي: الضأن من الغنم ذو الصوف ویوصف به فیقال کبش ضائن والانثی ضائنة خلاف الماعز. (لسان العرب ص ۲۵۱ ج ۱۳)

په دې کښې د ضان په عموم باندې دوه دلیله دی: ۱- ذوالصوف ۲- خلاف الماعز

د مدعیانو د تخصیص په ذمه د دې خبرې اثبات دې چې که غیر ذات الیة په ضان کښې داخل نهٔ وی نو په لغت د عربو کښې ددې دپاره کوم یو لفظ موضوع دې؟ والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۴ ربیع الثانی ۱۴۰۳ هجری

## چې یو ځائ کښې د اختر مونځ وشی نو د ټولو دپاره قربانی روا ده

**سوال:**- په ښار کښې په ډیرو ځایونو کښې د اختر مونځ کیږی چرته په جمات کښې کیږی او چرته په عیدګاه کښې، او وختونه ئې مختلف وی، نو آیا د قربانئ کولو دپاره دې هرې علاقې والا په خپله خپله علاقه کښې د اختر دمونځ د کیدلو انتظار وکړی او که نه چې چرته یو ځائ د اختر مونځ وشی نو د ټولو د پاره قربانی کول روا دی؟

بله دا چې د جمات د مونځ اعتبار به وی او که د عیدګاه د مونځ اعتبار به وی؟

بله داچې معذور کوم چې د اختر مونځ له نهٔ شی تلې په هغهٔ کښې او روغ انسان کښې به څهٔ فرق وی او که نه؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چې یو ځائ د اختر مونځ وشی نو د ټولو د پاره قربانی کول روا دی. برابره خبره ده که په جمات کښې شوې وی او که په عیدګاه کښې شوې وی.

په معذور او په روغ رمتې کښې هیڅ فرق نشته.

قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالی: واول وقتها بعد الصلوٰة ان ذبح في مصر ای بعد اسبق صلاة عید ولو قبل الخطبة لکن بعدها احب.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله بعد اسبق صلوٰة عید) ولو ضحی بعد ما صلی اهل المسجد ولم یصل اهل الجبانة اجزاه استحسانا لانها صلوٰة معتبرة حتی لو اکتفوا بها اجزاتهم و کذا عکسه هدایة (رد المحتار ص ۲۰۰ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم

۳ ذی الحجه ۱۴۰۳ هجری

## د نذر د قربانئ نه د خوراک د جواز تحقیق

**سوال**: د بدائع ص ۸۰ ج ۵ په عبارت باندې راته اشکال دې:

وجملة الکلام فیه ان الدماء انواع ثلاثة نوع یجوز لصاحبه ان یاکل منه بالاجماع ونوع لا یجوز له ان یاکل

منه بالاجماع ونوع اختلف فيه فالاول دم الاضحية نفلا اوواجبا منذورا كان اوواجبا مبتدا.

شبه په كښې دا ده، چې اولنئ نوعه چې خوراک يې بالاجماع روا دې، په دې كښې د نذر قربانى هم شامله كړې شوې ده، حال دادې چې د نذر د اضحيې نه د ناذر دپاره خوراک كول روا نهٔ دى، په فهم ناقص كښې مې دا خبره راغلې ده چې كيدې شى چې ددې نه هغه نذر مراد وى كوم چې غنى په ايامو د نحر كښې منلې وى او د دهٔ قصد اخبار وى نو ددې منذور نه به خوراک كول روا وى آيا دا خبره صحيح ده ؟

والدليل على ما فهمت ما الشامية ان الموسر اذا نذر فى ايام النحر و قصد الاخبار لم يكن ذلك منه نذرا حقيقة و ان الشاة بايجاب الشرع (ص ۲۰۱ ج ۵). وفيه الصفحة الاتية تحت قول الدر المختار (قوله ولا ياكل الناذر منها) اى نذرا على حقيقته كما علمت (ص ۲۰۸ ج ۵) بينوا توجروا -

**الجواب باسم ملهم الصواب**: كتابونو ته د رجوع نه دا خبره ثابته شوه چې د منختې د قربانئ نه ناذر له خوراک كول حلال دى، او د نذر په ذبحه كښې حلال نهٔ دې .

۱ - قال الامام ابوبكر الجصاص رحمة الله عليه المتوفى ۳۷۰ هجرى:

وروى نافع عن ابن عمر رضى الله عنهما كان يفتى لى النسك والاضحية ثلث لك ولاهلك وثلث فى جيرانك وثلث للمساكين وقال عبد الملك عن عطاء رحمة الله عليه مثله قال وكل شىء من البدن واجبا كان او تطوعا فهوا بهذه المنزلة الا ما كان من جزاء صيد او فدية من صيام او صدقة او نسك او نذر مسمى للمساكين (احكام القرآن ص ۳۳۵ ج ۳)

په دې كښې د اضحيې نه **على الاطلاق جواز اكل** نه پس د اضحيې منذوره دپاره د مسمى للمساكين قيد دې، د كومې نه چې ثابته شوه چې كه په اضحيه منذوره كښې د تصدق نيت ئې كړې هم وى نو د هغې تصدق به واجب وى اوكه نه نو واجب به نهٔ وى

۲ - قال الامام قاضيخان رحمة الله عليه المتوفى ۵۹۲ هجرى:

ولا يبيع لحم الاضحية ليتصدق بل ياكله او يطعم ولو ولدت الاضحية يضحى بالام والولد الا انه لا ياكل من الولد بل يتصدق به فان اكل منه يتصدق بقيمة ما اكل والمستحب ان يتصدق بولدها حيا ولو حلب اللبن من الاضحية قبل الذبح او جز صوفها يتصدق بها ولا ينتفع بها.

وعن محمد رحمة الله عليه اذا نذر ذبح شاة لا ياكل منها الناذر فان اكل كان عليه قيمته (خانية بهامش الهندية ص ۳۳ ج ۳)

په دې كښې ړومبې **على الاطلاق جواز اكل** ليكلې شوې دى. بيا ئې د واجب التصدق دصورتونو

تفصیل بیان کړې دې، او په آخر کښې ئې د امام محمد رحمه الله نه په نذر د ذبحه کښې د تصدق وجوب نقل کړې دې، که چیرې اضحیه منذوره د **ولا یبیع لحم الاضحیة لیتصدق بها بل یاکله او یطعم** په اطلاق کښې داخله نه وی بلکه ددې تصدق واجب وی نو ددې حکم ئې ولې و نۀ لیکلو؟ هر کله چې د واجب التصدق صورتونو تفصیل او په خصوصیت سره دنذر بالذبح حکم ئې لیکلې دې، ددومره لوئ امام نه داسې غلطی بالکل قرینِ قیاس نۀ ده:

۳ - **قال الامام الکاسانی رحمه الله المتوفی ص۵۸۷ هجری: ان الدماء انواع ثلثة نوع یجوز لصاحبه ان یاکل منه بالاجماع ونوع لا یجوز له ان یاکل منه بالاجماع ونوع الختلف فیه الاول دم الاضحیة نفلا کان او واجبا منذورا کان او واجبا مبتدا والثانی دم الاحصار وجزاء الصید ودم الکفارة الواجبة بسبب الجنایة علی الاحرام کحلق الراس ولبس المخیط والجماع بعد الوقوف بعرفة وغیر ذلك من الجنایات و دم النذر بالذبح والثالث دم المتعة والقرن فعندنا یؤکل وعند الشافعی رحمه الله لا یؤکل. (بدائع الصنائع ص۸۰ ج۵)**

دا تاویل قابل نص نۀ دې، چې د اضحیې منذورې نه په جواز اکل او د نذر ذبح نه په عدم جواز باندې اجماع ده.

۴ - په ټولو متونو کښې علی الاطلاق د اضحیې نه جواز د اکل لیکلې شوې دې، او دا اضحیې منذورې ته هم شامل دې، که د اضحیې منذورې حکم مختلف وې، نو ددې تصریح لازمه وه، حال دا چې په متونو کښې په یو کښې هم د دې ذکر نه معلومیږی ، بلکه په هدایه او فتح القدیر غوندې لوئې مرتبې شروحو کښې هم ددې څه ذکر نشته ، په شرح الوقایه، مجمع الانهر او شرح التنویر کښې هم نشته دې.

۵ - مبسوط د سرخسی د ظاهر الروایة کتابونو مجموعه ده، په دې کښې هم د منذورې ځان له حکم موجود نۀ دې.

۶ - په بذل المجهود کښې صرف د امام کاسانی رحمه الله په ذکر کړې شوی تحقیق باندې اکتفاء کړې شوې ده. **(بذل المجهود ص۶۰ ج۵)**

د دې نه دا خبره ثابته شوه چې د حضرت سهارنپوری قدس سره په نیز همدا صحیح دی.

۷ - د شرعي داصولو د لاندې همدا صحیح دی، چې د ذبحې په نذر کښې غوښه واجب التصدق ده، په نذر د قربانۍ کښې نۀ ده، البته که په نذر د تضحیې کښې ئې د غوښې د تصدق نیت هم کړې وی نو بیا به تصدق واجب وی.

په نذر د ذبح کښې او نذر د تضحیې کښې دا تفریق اصولاً ځکه لازم دې، چې که په نذر د تضحیې کښې ئې د غوښې د تصدق نذر نۀ وی کړې، نو دا ولې واجب التصدق شوه، وجوب د

تضحیې وجوب د تصدق لره مستلزم نهٔ دې،او په نذر د ذبحې کښې فعل د ذبحې عبادت نهٔ دې، ددې وجې نه نذر د ذبحې تصدق د لحم لره مستلزم دې،اوکه نه نو د عاقل د فعل ابطال په کښې لازمیږی،او دا عقلاً او شرعا په یو شان له هم صحیح نهٔ دې.

په نذر د ذبح کښې د نذر دتصدق عرف دې،که دا عرف په کښې نه وې نو بیا هم د عاقل د فعل د تصحیح دپاره به عقلا او شرعا دې ته نذر د تصدق وئیلې شی.

غرض د خبرې دا چې نذر د ذبحې نذر د تصدق لره مستلزم و نهٔ منلې شی نو بیا خو دا نذر صحیح نهٔ شو.او که استلزام ئې ومنلې شی نو صحت د نذر او وجوب د تصدق دواړه د اصولو د شرعې مطابق دی.

د فعل د ذبحې د عبادت نهٔ کیدلو باوجود د دهٔ د نذر په صحیح کیدلو کښې د اشکال جواب په امداد الفتاوی کښې داسې ورکړې شوې دې:

په دې کښې د نص د واریدیدلو د وجې نه د دې صحت خلاف القیاس دې:

والنص رواه ابوداود رحمه الله عن ثابت بن ضحاك رضی الله عنه قال نذر رجل على عهد رسول الله ﷺ ان ينحر ابلا ببوانة فاتى النبى ﷺ فقال انى نذرت ان انحر ابلا ببوانة فقال النبى ﷺ هل كان فيها وثن من اوثان الجاهلية يعبد قالوا لا قال هل كان فيها عيد من اعيادهم قالوا لا قال رسول الله ﷺ اوف بنذرك فانه لا وفاء لنذر فى معصية الله و لا فيما لا يملك ابن ادم (سنن ابى داود ص۱۱۰ ج۲)

د بنده په تحریر کښې بیان کړې شوې تفریق مذکور د لاندې صحت د نذر د ذبحې خلاف القیاس نهٔ دې.

۸ - په اضحیه واجبه ابتداءً کښې تصدق د لحم واجب نهٔدې، نو په منذوره کښې د قول د وجوب نه د ایجاب العبد په ایجاب الله تعالی باندې ترجیح لازمیږی.

۹ - شراء د فقیر په حکم دنذر کښې د کیدلو باوجود په دې کښې علی الراجح تصدق واجب نهٔ دې، ددې نه هم د منذورې د واجب التصدق نهٔ کیدلو مرسته کیږی.

په بعضو شروحو او حواشیو کښې د اضحیې منذورې د تصدق وجوب مذکور دې،د هغې په دې باندې د حمل کولو نه خلاصې نشته چې د تضحیې د نذر سره ئې نذر د تصدق هم کړې وی، كما قدمنا عن الامام الجصاص رحمه الله من قوله نذر مسمى للمساكين.

په دې باندې چې محمول نهٔ کړې شی نو بیا به په دې صورت کښې په کښې تعارض راشی، نو ترجیح به بیا د مذهب د امامانو رحمهم الله نصوصو ته ورکولې شی،کوم چې درایةً هم مؤید دی،د کومې تفصیل چې په اووم نمبر دلیل کښې تیر شو.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما ،دحضرت عطاء او دحضرت امام محمد رحمهما الله تعالی اقوال وړاندې وليکلې شو.

او بيا د دې اقوالو ناقلين او د دې مطابق فتوې ورکونکی لکه امام جصاص،امام قاضيخان، او امام کاسانی رحمهم الله د هغوی ذکر هم تير شو،او ددې حضراتو تقدم د زمان او جلالت د شان تسليم کړې شوې دې.

د وجوب تصدق قول د ټولو نه وړاندې په اتمه پيړۍ کښې امام زيلعی صاحب رحمه الله المتوفی ۷۴۳ هجری کړې دې، د هغوی نه پس بعضې نورو شارحينو او محشينو هم دا ليکلی دی، دغه شارحينو او محشينو کښې بعضې د زيلعی رحمه الله اړخ ته نسبت ظاهر کړې دې او بعضو نهٔ دې ظاهر کړې، په ظاهره د دوی ماخذ هم هغه دې،کيدې شی چې د دې حضراتو د نذر د ذبحې نه اشتباه شوې وی.

**والتوفيق اولى من التخطئة.**

د جنتی کالی په حاشيه کښې د وجوب د تصدق په دليل کښې ئې د شرح التنوير دا جزئيه نقل کړې ده: **ولا ياكل الناذر منها (در المحتار ص۲۰۳ ج۵)**

د دې نه استدلال ځکه صحيح نهٔ دې چې دا د قربانۍ د ورځو د تيريدلو نه پس د ذبحې په حقله دې، لکه څنګه چې د دې د سياق او د سباق نه ظاهره ده،او علامه ابن عابدين رحمه الله هم په دې باندې خبردارې فرمائيلې دې - **والله سبحانه وتعالى اعلم.** ۵ ربيع الاول ۱۴۰۵ هجری

## شراء الفقير قبل ايام النحر هم موجب دې

**سوال**:- په شاميه کښې دی: **ووقع في التتارخانية التعبير بقوله شراها ايام النحر وظاهره انه لو شراها لها قبلها لا تجب ولم اره صريحا فليراجع.**

د ايام النحر قيد په اکثرو عبارتونو کښې نشته ،ستاسو فتوی څه ده ؟آيا دا قيد معتبر دې؟ د دې مقتضې دا ده چې کوم څناور د ايام نحر نه وړاندې چا فقير اخستې وی، د دې قربانی به په هغه باندې واجب نهٔ وی، ددې تبديلی کول روا وی.

همدغه شان غنی دپاره به هم ددې ورځو نه وړاندې د اخستلې شوی څناور بدلون مکروهه نهٔ وی، اودکم قيمت د بيعې په صورت کښې به ئې دزيات قيمت تصدق به ذمه نهٔ وی - بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په تاتارخانية کښې د (ايام نحر) نه (قبل مضی ايام نحر) مراد دې. دا قيد احترازی نهٔ دې بلکه قيد واقعي دې، د دې نه وړاندې په **(لو تركت التحية و مضت ايامها)** کښې د **(ايام النحر)** ذکر وو،همدغه سياق کښې دلته هم راغلو،احترازی مقصود نهٔ دې، په دې

باندې دا لاندینۍ قرینې دی:

۱- په بل کتاب کښې ددې ذکر نشته دې.

۲- دا جزئیه د ترك التضحیة ایام النحر په بیان کښې ده، که دا قید احترازی وې نو د شراء الفقیر په مستقل بحث کښې به هم ددې ذکر لازما وو کوم چې ددې اصل ځائ دې. حال دا چې هلته د دې هیڅ ذکر نشته دې.

۳- د حقیقةً نذر په صحت کښې د ایام نحر قید نشته دې نو په دلالةً نذر یعنی شراء الفقیر کښې د دې تقیید څه معقوله وجه نشته.

۴- د خانیې په لاندینۍ جزئیه کښې هم د قبل ایام النحر د الفاظو نه همدا ثابتیږی چې د ایام النحر نه وړاندې هم شراء الفقیر په منزله د نذر ده.

**و اذا اشتری شاة للاضحیة ثم باعها و اشتری اخری فی ایام النحر (الی قوله) و عن محمد رحمه الله تعالی فی المنتقی اذا اشتری شاة لیضحی بها و اضمر نیة التضحیة عند الشراء تصیر اضحیة کما نوی فان سافر قبل ایام النحر باعها و سقطت عنه الاضحیة بالمسافرة و اما اذا اشتری بغیر نیة الاضحیة ثم نوی الاضحیة بعد الشراء لم یذکر هذا فی ظاهر الروایة و روی الحسن عن ابی حنیفة رحمهما الله تعالی انه لا تصیر اضحیة لو باعها یجوز بیعها و به ناخذ(خانیة بهامش الهندیة ص۳۴۳ ج۳)**

بله دا چې په دې کښې دا هم ظاهر دی چې **قبلا ایام النحر** نه **قبل مضی ایام النحر** مراد دې.

**و کذا فی قوله:اذا اشتری الغنی اضحیة فضلت فاشتری اخری ثم وجد الاولی فی ایام النحر کان له ان یضحی بایهما شاء(ص۳۴۰)**

د دې نه دا خبره ثابته شوه چې دا ټول جزئیات د **قبل مضی الایام** په حقله دی،د **قبل المجیء** نه احتراز مقصود نهٔ دی.

**تنبیه**: د **شراء الفقیر بنیة الاضحیة** په موجب تضحیه کیدو کښې اختلاف دې،د وجوب او د عدم وجوب دواړه قولونه په کښې شته ،او دواړه ظاهرالروایة دی.**والاول احوط و اشهر و اوفق لقاعدة (الاحتیاط فی باب العبادات واجب)والثانی اوسع و ایسر و اوفق لقاعدة(ان النذر لا ینعقد حتی یتلفظ بصیغة الالتزام والایجاب)والله سبحانه وتعالی اعلم** ۷ ربیع الاول ۱٤۰۵ هجری

## د قربانۍ څرمن د عطیه په سلسل کښې د لګولو د یوې حیلې ابطال

**سوال**:- د قربانۍ د څرمنې په حقله د لاندینو صورتونو څه حکم دې؟

۱- د جمات منتظمین د محلې د خلقو نه په کم قیمت باندې څرمنې واخلي او په ډیر قیمت ئې خرڅې کړی او ددې منافع بیا د جمات په مصارفو کښې خرچ کوی، او د محلې خلق ئې هم د جمات د وجې نه په کم قیمت ورکوی.

۲- بعضې خایونو کښې د محلې خلق د جمات متولی له څرمنې مفتې ورکوی او د هغوی نیت دا وی چې د دې قیمت په جمات کښې ولګولې شی، بلکه بعضې خایونو کښې په ژبه باندې ددې اظهار هم وکړی.

۳- بعضې خایونو کښې ئې د مدارسو مهتمیمینو له مفتې ورکوی او نیت ئې دا وی چې پیسې به ئې د مدرسې په مصارفو کښې خرچ کړی.

۴- او بعضې خلق ئې د مدرسې د پاره چنده اخستلو له د مدرسې دپاره په چنده کښې ورکړی او ورته وائی هم چې دا چنده ده، نو آیا دا پیسې د جمات او د مدرسې په مصارفو کښې خرچ کول روا دی او که ناروا دی؟بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د قربانۍ څرمن د چا فقیر یا د غنی په ملک کښې ورکول ضروری دی، برابره خبره ده چې په صورت د بیعه کښې وی که په صورت د هبې کښې وی او که په صورت د صدقې کښې وی، بیا ئې هغه سړې خرڅه کړی نو ددې ثمن په مالک ثانی باندې واجب التصدق نۀ دې، په پوښتلې شوی سوال کښې چې د مدرسې او د جمات د پاره کومه حیله لیکلې شوې ده په هغې کښې داسې تملیک نۀ دې موندلې شوې،لهذا د مدرسې مهتمم یا د جمات متولی چې په څو باندې څرمن خرڅه کړه نو د هغې نه دې هغومره پیسې واخلی چې په څو باندې ئې دا اخستې وی او باقی ثمن پرې واجب التصدق دې،دا دې د صدقاتو واجبو په سلسله کښې شاملې کړې شی، او په قدر د شراء د ثمن وضع کړې شوې پیسې د اصل پیسو تابع دی.

داحیله هم صحیح نۀ ده چې مهتمم د مدرسې یاد جمات متولی دې اول د ځان دپاره واخلی،او بیا ئې خرڅې کړی او ثمن ئې په سلسله د عطیې کښې خرچ کړی،ځکه چې بیع اول فاسده ده او واجب الرد ده،په دې کښې په مدرسه یا په جمات باندې د خرچ کولو شرط منصوص یا معروف دې، والمعروف کالمشروط وفیه نفع للبائع فیکون مفسداللعقد.

متعاقدین سخت ګناهګار دی او په دوی باندې توبه واجبه ده. **والله سبحانه وتعالی اعلم.**

۲۴ ربیع الثانی ۱٤۰۸ هجری

## د قربانۍ د څرمنې په تصدق کښې تملیک ضروری دې

**سوال:**- یو مفتی صاحب فتوی ورکړې ده، چې د قربانۍ څرمن د مدرسې او د جمات په تعمیر باندې لګول روا دی،ځکه چې دا هم صدقه ده،د دې فتوی په بناء زمونږ د محلې ...

۱. د جمات منتظمین د محلې د خلقو نه په کم قیمت باندې څرمنې واخلی او په ډیر قیمت ئې خرڅې کړی او ددې منافع بیا د جمات په مصارفو کښې خرچ کوی،او د محلې خلق ئې هم د جمات د وجې نه په کم قیمت ورکوی.

۲. بعضې خایونو کښې د محلې خلق د جمات متولی له څرمنې مفتې ورکوی او د هغوی نیت دا وی چې د دې قیمت په جمات کښې ولګولې شی، بلکه بعضې ځایونو کښې په ژبه باندې ددې اظهار هم وکړی.

۳ . بعضې ځایونو کښې ئې د مدارسو مهتمیمینو له مفتې ورکوی او نیت ئې دا وی چې پیسې به ئې د مدرسې په مصارفو کښې خرچ کړی.

۴ . او بعضې خلق ئې د مدرسې د پاره چنده اخستلو له د مدرسې دپاره په چنده کښې ورکړی او ورته وائی هم چې دا چنده ده ، نو آیا دا پیسې د جمات او د مدرسې په مصارفو کښې خرچ کول روا دی او که ناروا دی؟بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د قربانۍ څرمن د چا فقیر یا د غنی په ملک کښې ورکول ضروری دی، برابره خبره ده چې په صورت د بیعه کښې وی که په صورت د هبې کښې وی او که په صورت د صدقې کښې وی، بیا ئې هغه سړې خرڅه کړی نو ددې ثمن په مالک ثانی باندې واجب التصدق نۀ دې، په پوښتلې شوی سوال کښې چې د مدرسې او د جمات د پاره کومه حیله لیکلې شوې ده په هغې کښې داسې تملیک نۀ دې موندلې شوې،لهذا د مدرسې مهتمم یا د جمات متولی چې په څو باندې څرمن خرڅه کړه نو د هغې نه دې هغومره پیسې واخلی چې په څو باندې ئې دا اخستې وی او باقی ثمن پرې واجب التصدق دې،دا دې د صدقاتو واجبو په سلسله کښې شاملې کړې شی، او په قدر د شراء د ثمن وضع کړې شوې پیسې د اصل پیسو تابع دی.

داحیله هم صحیح نۀ ده چې مهتمم د مدرسې یاد جمات متولی دې اول د ځان دپاره واخلی،او بیا ئې خرڅې کړی او ثمن ئې په سلسله د عطیې کښې خرچ کړی،ځکه چې بیع اول فاسده ده او واجب الرد ده،په دې کښې په مدرسه یا په جمات باندې د خرچ کولو شرط منصوص یا معروف دې، **والمعروف کالمشروط وفیه نفع للبائع فیکون مفسد اللعقد**

متعاقدین سخت ګناهګار دی او په دوی باندې توبه واجبه ده. **والله سبحانه وتعالی اعلم.**

۲۴ ربیع الثانی ۱٤۰۸ هجری

## د قربانۍ د څرمنې په تصدق کښې تملیک ضروری دې

**سوال**- یو مفتی صاحب فتوی ورکړې ده، چې د قربانۍ څرمن د مدرسې او د جمات په تعمیر باندې لګول روا دی،ځکه چې دا هم صدقه ده،د دې فتوې په بناء زمونږ د محلې امام صاحب د

آيا دا فتوى صحيح ده؟ كه صحيح نۀ وى او كومو خلقو ته معلومه شى چې زمونږ د قربانئ د خلقو نه د قربانئ څرمنې اخلى او د هغوى قيمت د جمات او د مدرسې په تعمير باندې خرچ كوى، څرمنو پيسې د جمات او د مدرسې په تعمير باندې مصرف كيږى نو آيا هغوى به برى الذمه شى، بله دا چې د هغوى په قربانئ باندې به څه اثر غورځيږى او كه نه؟بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : كه د قربانئ څرمن په خپل استعمال كښې راوستل نۀ غواړى بلكه صدقه كول ئې غواړى، نو په دې كښې بل مالك جوړول ضرورى دى،كه چا دا څرمن خرڅه كړه نو ددې قيمت پرې صدقه كول واجب دى،او په دې كښې هم تمليك د فقير ضرورى دى،او د مدرسې او د جمات په تعمير كښې تمليك ونۀ موندې شو د دې وجې نه ناروا دى.

كومو خلقو ته چې د څرمنو د قيمت په غير مصرف كښې د خرچ كيدلو علم وى نو د هغوى په ذمه د قيمت تصدق واجب دې،او قربانئ ئې صحيح ده.

قال العلامة الحصكفى رحمه الله: ويتصدق بجلدها او يعمل منه نحو غربال وجراب وقربة وسفرة ودلو اويبدله بما ينتفع به باقيا كما مر لا بمستهلك كخل ولحم ونحوه كدراهم فان بيع اللحم او الجلد به اى بمستهلك او بدراهم تصدق بثمنه.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: ويتصدق بجلدها و كذا بجلالها و قلائدها فان يستحب اذا وجب بقرة ان يجللها ويقلدها واذا ذبحها تصدق بذلك كما فى التتارخانية (ردالمحتار ص۲۰۹ ج۵)

وقال ايضا: فى القنية اشترى بلحمها ما كولا فاكله لم يجب عليه التصدق بقيمته استحسانا (ردالمحتار ص۲۰۹ ج۵)، وقال العلامة الحصكفى رحمه الله : الصدقة كالهبة بجامع التبرع و حينئذ لا تصح غير مقبوضة (ردالمحتار ص۵۱۲ ج۴)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله فى ابتداء كتاب الهبة: وهى تمليك العين مجانا (ردالمحتار ص۵۰۸ ج۴)

وقال فى باب المصرف تحت (قوله اى مصرف الزكوة والعشر) و هومصرف ايضا لصدقة الفطر والكفارة والنذر وغير ذلك من الصدقات الواجبة كما فى القهستانى (ردالمحتار ص۸۰ ج۲)

وقال الامام المرغينانى رحمه الله: ولا يشترى به (اى بالجلد) ما لا ينتفع به الا بعد استهلاكه كالخل والابازير اعتبارا بالبيع بالدراهم والمعنى فيه انه تصرف على قصد التمول.

وقال العلامة ابو محمد العينى رحمه الله: (والمعنى فيه انه تصرف على قصد التمول) اى المعنى فى اشتراء ما لا ينتفع به الا بعد استهلاكه انه تصرف على قصد التمول وهو قد خرج عن جهة التمول فاذا تمولته بالبيع وجب التصدق لان هذا الثمن حصل بفعل مكروه فيكون خبيثا فيجب التصدق (البناية ص۲۳ ج۱۱)

وقال فى حاشية الهداية معزيا الى الكافى : (قوله تصدق بثمنه) لان معنى التمول سقط عن الاضحية فاذا

تمولها بالبیع انتقلت القربة الی بدله فوجب التصدق (هدایة ص۴۰۰ ج۴)

وقال فی الهندیة: ویتصدق بجلدها او یعمل منه نحو غربال وجراب ولا بأس بأن یشتری به ما ینتفع بعینه مع بقائه استحسانا وذلك مثل ما ذكرنا ولا یشتری به ما لا ینتفع به الا بعد الاستهلاك نحو اللحم والطعام ولا یبیعه بالدراهم لینفق الدراهم علی نفسه وعیاله واللحم بمنزلة الجلد فی الصحیح حتی لا یبیعه بما لا ینتفع به الا بعد الاستهلاك فلو باعها بالدراهم لیتصدق بها جاز لانه قربة كالتصدق كذا فی التبیین (عالمگیریة ص۳۰۱ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۴ ربیع الاول ۱۴۱۵ هجری

## که په ورځو د قربانۍ کښې ئې قربانی ونۀ کړه نو وروستو دې بیا د یوم الاداء قیمت صدقه کړی

**سوال:-** یو سړی د قربانۍ په ورځو کښې قربانی ونۀ کړه نو وروستو چې پرې بیا کوم تصدق د قیمت واجب دې، په هغې کښې بیا کوم قیمت معتبر دې؟ د یوم الوجوب او که د یوم الاداء؟

د ضمان اضحیه په مضمون کیدلو کښې د مغصوب قیمت مثل لازم دې، لهذا څنګه چې په ضمان الغصب کښې د یوم الغصب اعتبار دې نو دلته به هم یوم الوجوب معتبر وی.

قال العلامة الحصكفی رحمه الله: وتجب القیمة فی القیمی یوم غصبه اجماعا (ردالمحتار ص۱۲۶ ج۵)

په زکوة د سوائمو کښې د یوم الاداء قیمت معتبر دې، په هغې باندې د قیاس تقاضه دا ده چې په اضحیه کښې دې هم د یوم الاداء قیمت معتبر وی.

قال فی التنویر: وجاز دفع القیمة فی زكوة وعشر وخراج وفطرة ونذر وكفارة غیر الاعتاق.

وقال العلامة الحصكفی رحمه الله: وتعتبر القیمة ویوم الوجوب وقالا یوم الاداء وفی السوائم یوم الاداء اجماعا وهو الاصح (ردالمحتار ص ۲۲ ج ۲)

په دې دواړو کښې په کوم یو باندې قیاس صحیح دې؟ په ضمان د غصب باندې او که نه د سوائمو په زکوة باندې او که نه د دې دواړو نه د اضحیې حکم بیل دې؟ بینوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب:** د زکوة د سوائمو په شان په کښې د یوم الاداء قیمت واجب دې.

**اشکال:-** په زکوة د سوائمو کښې د حیوان نه قیمت اړخ ته حکم نۀ منتقلیږی، مالک چې کله هم زکوة ادا کول غواړی نو په هغه وخت هغۀ ته اختیار دې چې د حیوان قیمت ورکوی او که په خپله حیوان ورکوی، لهذا په وخت د ادا کښې په دواړو کښې مساوات لازمی دې، په خلاف د اضحیې چې د قربانۍ د ورځو په تیریدلو باندې حکم د نفس حیوان نه قیمت اړخ ته منتقل شی، فصار كهلاك المغصوب بل كالاستهلاك.

**جواب**: په مغصوب باندې قياس په هغه وخت کښې صحيح کيدې شو چې د اضحيې څناور معين وې، بيا به د دې د هلاک او د استهلاک د وجې نه قيمت اړخ ته انتقال کيدلو، حالانکه په مسئله زير بحث کښې دا صورت نۀ دې،هيڅ يو حيوان معين نۀ دې،په صدقه کښې ورته اختيار دې چې کوم حيوان صدقه کوی يا د هغۀ حيوان قيمت.لهذا په وخت د اداء کښې لزوم د مساواتو ظاهر دې . البته که چيرې په ذريعه د نذرِ معين يا د مشهور قول په بنا د شراء د فقير نه حيوان متعين شو ، نو ددې قياس په مغصوب باندې صحيح دې، د همدې حيوان ژوندې تصدق لازم دې، او په صورت د استهلاک کښې د هغې ورځې د قيمت تصدق.**والله سبحانه وتعالی اعلم.**

۱۱ ذی الحجه ۱٤۱۱ هجری

## تحقيق د (جعلت هذه الشاة اضحية)

**سوال**: په شاميه کښې دی چې **(جعلت هذه الشاة اضحية)** وئيلو سره د اضحيې نذر منعقد شی،په اردو کښې به د دې تعبير څنگه کيږی؟ آيا بعينه د دې الفاظو په ترجمې سره به نذر واجب شی،او که نه ددې په شان د نورو الفاظو په وئيلو سره به هم پرې نذر واجب شی؟بينوا توجروا۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د نذر د منعقد کيدلو دپاره د التزام الفاظ وئيل ضروری دی،په هغه زمانه کښې به په عرف عام کښې به کيدې شی دا الفاظ د التزام دپاره استعماليدل ، زمونږ په عرف کښې داسې قسمه الفاظ د التزام دَ پاره نۀ وئيلې کيږی،د دې وجې نه به نذر نۀ کيږی.**والله سبحانه وتعالی اعلم.**

۲۷ رجب ۱٤۱۵ هجری

## عقيقه او قربانۍ په يو څناور کښې جمع کول

**سوال**:- په يوه غوا کښې يوه حصه د قربانۍ او باقی شپږ حصې د عقيقې اېښودلې کيدې شی او که نه؟ بينوا توجروا ۔

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د کوم سړی چې د قربانۍ حصه ده هماغه سړې په کښې د عقيقې حصې نه شی نيولې،که وې نيولې په کښې نو د هغه ټولې حصې به راجمع شی او يوه قربانی به ترې نه جوړه شی عقيقه به ئې ونۀ شی ۔

نور خلق په کښې د عقيقې حصې نيولې شی، هغه هم داسې چې په يوه غوا کښې به د يو سړی له اړخه بصرف يوه حصه د عقيقې کيږی.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله وان کان شريك الستة نصرانيا الخ) و كذا لو اراد بعضهم العقيقة عن ولد قد ولد له من قبل لان ذلك جهة التقرب بالشكر على نعمة الولد ذكره محمد رحمه الله (ردالمحتار ص۲۰۰ ج۵)

والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۰ ذی قعده ۱۳۸۷ هجری

د دې مسئلې تفصیل په رساله «د غوا په قربانئ کښې د یو سړی دوه حصې» کښې شته دې.

## د هلک د عقیقې د پاره یوه بکرئ هم کافی ده

**سوال:**- بعضې خلق د جینئ د عقیقې دپاره یو بکرئ او د هلک د عقیقی د پاره دوه بکرئ ضروری گڼی، آیا دا مسئله همداسې ده ؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که هلک وی او که جینئ وی په دواړو صورتونو کښې یوه بکرئ کافی ده،البته د هلک د پاره د دوو بکرو کیدل ښهٔ خبره ده.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: وهی شاة تصلح للاضحیة تذبح للذکر والانثی سواء فرق لحمها نیا اوطبخه بحموضة اوبدونها مع کسر عظما اولا واتخاذ دعوة اولا وبه قال مالک رحمه الله وسنها الشافعی واحمد رحمهما الله تعالی سنة مؤکدة شاتان عن الغلام وشاة عن الجاریة غرر الافکار ملخصا والله تعالی اعلم (رد المحتار ص۲۱۳ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۰ ذی قعده ۱۳۸۷ هجری

## د بالغ کیدلو او د وفات نه پس عقیقه کول

**سوال:**-د ماشوم د بالغ کیدلو نه پس یا د وفات نه پس عقیقه کول صحیح دی او که نه؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د بالغ کیدلو نه پس ئې عقیقه کول صحیح دی،د انتقال نه پس ئې عقیقه کول صحیح نهٔ دی،ځکه چې عقیقه د مصیبت او بلاء د رد د پاره وی والله سبحانه وتعالی اعلم.

۵ محرم ۱۳۹۰ هجری

## په یوه غوا کښې قربانی، ولیمه او عقیقه جمع کول

**سوال:**- د لاندینی درې صورتونو څه حکم دې؟

۱ - په یوه غوا کښې یو سړې د قربانئ حصه نیسی او بل په کښې د ولیمې حصه نیسی.

۲ - یو سړې په کښې د ولیمې حصه نیسی او بل سړې په کښې د عقیقې حصه نیسی.

۳ - یو سړې په کښې د قربانی حصه نیسی بل په کښې د ولیمې او دریم په کښې د عقیقې حصه نیسی.بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: درې واړه صورتونه روا دی.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تحت (قوله وان کان شریک الستة نصرانیا الخ) و کذا لو اراد بعضهم العقیقة عن ولد قد ولد له من قبل لان ذلک جهة التقرب بالشکر علی نعمة الولد ذکره محمد رحمه الله تعالی ولم یذکر

الولیمة وینبغی ان تجوز لانها تقام شکرالله تعالی علی نعمة النکاح ووردت بها السنة فاذا قصد بها الشکر او اقامة السنة فقد اراد القربة.(ردالمحتار ص۲۰۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم ۳۰ جمادی الاولی ۱۳۹۹ هجری

## د عقیقې د څناور هډوکی ماتول روا دی

**سوال**:- په اعلاء السنن ص ۱۱۵ ج ۱۷ کښې ئې د عقیقې هډوکی ماتول خلافِ اولی لیکلې دی، او ددې حدیث نه ئې استدلال کړې دې، **(ولم یکسر لها عظم فیاکل ویطعم ویتصدق)**.حالانکه په کفایة المفتی ص ۲۲۳ ج ۸ کښې لیکلې دی،چې بعضې خلقو د هډوکو ماتول منع لیکلې دی، لیکن د دې ممانعت د پاره څه سند نشته، همدارنګه حضرت مفتی محمد شفیع صاحب نورالله مرقده هم د هډوکو د ماتولو د جواز فتوی ورکړې ده،په ظاهره په دې کښې تعارض راځی، ستاسو به ډیره مهربانی وی چې دا تعارض رفع کړئ او د تسلئ قابل جواب راله راکړئ- بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په جواز او خلاف اولی کښې تعارض نشته.

او په کفایة المفتی کښې ئې د سند د ممانعت نفی کړې ده،یعنی د هډوکو ماتولو نه د منعې او د ناروا وئیلو څه سند نشته ، د خلاف اولی نفی ئې نۀ ده کړې.

حاصل د خبرې دا چې په کومو روایتونو کښې ئې دعدم کسر حکم دې هغه وجوبی حکم نۀ دې بلکه استحبابی خبره ده، عوامو دې له د واجبو درجه ورکړې ده،او د هډوکو ماتولو ته ناروا او ممنوع وائی او دا عقیده غلطه ده او قابله داصلاح ده،د دې وجې نه علماؤ د دې تردید کړې دې، د احنافو او د مالکیانو په نیزد په عدمِ کسر کښې څه فضیلت نشته، د هغوی په نیزد به دا حدیث غیرِ ثابت یا مؤول وی.

قال ابن عابدین رحمه الله معزیا الی غرر الافکار: وهی شاة تصلح للاضحیة تذبح للذکر والانثی سواء فرق لحمها نیا اوطبخه بحموضة اوبدونها مع کسر عظمها اولا واتخاذ دعوة اولا وبه قال مالک رحمه الله (ردالمحتار ص۲۱۳ ج۵)

والله سبحانه وتعالی اعلم. ۳ شعبان ۱٤۱٤ هجری

## تنبیه

د حضرت امام اعظم رحمه الله تحقیق دا دې چې عقیقه په ابتداء د اسلام کښې وه بیا منسوخه شوه، بعضې حضراتو د امام صاحب رحمه الله د قول د قیاس نه لرې لرې تاویلونه کړې دی،د امام صاحب مذهب بې د څه شک او شبې نه همدا دې چې عقیقه منسوخه ده، د دې وجې نه په کتابونو د فقهې کښې د دې د احکامو په حقله ذکر کړې شوی تفصیلات او تقییدات ټول بې معنې دی، وروستو بیا زما د تحقیق مطابق په اعلاء السنن کښې هم یوه ډیره مدلله او مفصله رساله تر لاسه شوه تفصیل به ئې انشاء الله په تتمه کښې راشی.

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ وَقَٰتِلُوهُمۡ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتۡنَةٞ وَيَكُونَ ٱلدِّينُ كُلُّهُۥ لِلَّهِۚ ﴾

**او د دوی (کافرانو) سره جنګیږه تر دې چې فساد پاتې نۀ شی او شی ټول حکم د الله**

﴿ وَمَا تَوۡفِيقِيٓ إِلَّا بِٱللَّهِۚ عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُ وَإِلَيۡهِ أُنِيبُ ﴾

# تَنميةُ الخير فی التضحية عن الغير

**د غير له اړخه د قربانۍ د کولو د روا او ناروا صورتونو تفصيل**

* * * * * * * *
* * * * * *

## د غير له اړخه د قربانۍ کولو حکم

**سوال:-** که د غوا په قربانۍ کښې ديو غائب سړی حصه دهغۀ د امر نه بغير شامله کړې شوه نو په داسې صورت کښې به د هغۀ قرباني او د نورو شريکانو قربانی صحيح شی او که نه؟بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** :

۱- فی الهندية اذا ضحی بشاة نفسه عن غيره بامر ذلك الغير او بغير امره لا تجوز لانه لا يمكن تجويز التضحية عن الغير الا باثبات الملك لذلك الغير فی الشاة ولن يثبت الملك له فی الشاة الا بالقبض ولن يوجد قبض الامر ههنا لا بنفسه ولا بنائبه كذا فی الذخيرة (عالمگيرية ص ۳۰۲ ج ۵)

۲- وفيها ايضا ولو ضحی ببدنة عن نفسه وعرسه واولاده ليس هذا فی ظاهر الرواية وقال الحسن بن زياد فی كتاب الاضحية ان كان اولاده صغارا جاز عنه وعنهم جميعا فی قول ابی حنيفة وابی يوسف رحمهما الله تعالی وان كانوا كبارا ان فعل بامرهم جاز عن الكل فی قول ابی حنيفة وابی يوسف رحمهما الله تعالی وان فعل بغير امرهم او بغير امر بعضهم لا تجوز عنه ولا عنهم فی قولهم جميعا رحمهم الله لان نصيب من لم يامر صار لحما فصار الكل لحما وفی قول الحسن بن زياد رحمه الله اذا ضحی ببدنة عن نفسه وعن خمسة من اولاد الصغار وعن ام ولده بامرها او بغير امرها لا تجوز عنه ولا عنهم قال ابو

القاسم تجوز عن نفسه كذا في فتاوى قاضي خان. (عالمگيرية ص۳۰۲ ج٥)

٣ - وقال العلامة ابن عابدين رحمة الله عليه ولو ضحى ع اولاده الكبار وزوجته لا يجوز لا باذنهم وعن الثاني رحمة الله عليه انه يجوز استحسانا بلا اذنهم بزازية قال في الذخيرة ولعله ذهب الى أن العادة اذا جرت من الاب في كل سنة صار كالاذن منهم فان كان على هذا الوجه استحسنه ابو يوسف رحمة الله عليه فهو مستحسن اه (ردالمحتار ص۳۳۲ ج٥)

٤ - وقال ايضا (قوله وعن ميت) اى لو ضحى عن ميت وارثه بامره الزمه بالتصدق بها وعدم الاكل منها و ان تبرع بها عنه له الاكل لانه يقع على ملك الذابح والثواب للميت ولذا لو كان على الذابح واحدة سقطت عنه اضحيته كما في الاجناس قال الشرنبلالي لكن في سقوط الاضحية عنه تامل اه اقول صرح في فتح القدير في الحج عن الغير بلا امر انه يقع عن الفاعل فيسقط به الفرض عنه وللاخر الثواب فراجعه (ردالمحتار ص۳۳۶ ج٥)

د پورته عبارتونو نه لاندينۍ خبرې ثابتې شوې:

١- د غير له اړخه نفلي قرباني بې د هغهٔ د امر نه هم روا ده، للرواية الرابعة.

البته که چيرې چا په غوا کښې د خپلې حصې سره د غير له اړخه نفلي قرباني يا د عقيقې حصه وساتله، نو دا سړې خو د دې ټولو حصو په خپله مالک دې، د دې وجې نه به د قول راجح مطابق دا ټولې حصې رايوځائ کړې شي او ددهٔ به ترې نه يوه قرباني صحيح شي.

قال في العلائية ولو ضحى بالكل فالكل فرض كاركان الصلوة (ردالمحتار ص۳۳۳ ج٥)

د دهٔ دا قرباني برابره خبره ده که نفلي وي او که واجبه وي چا ته ئې خوښه وي ثواب يې ورته بخښلې شي، لما في ظاهر الرواية الرابعة.

٢ - که په واجبه قربانۍ کښې ئې د غير له اړخه خپله بکرۍ ذبحه کړه نو دغير قرباني به نهٔ کيږی برابره خبره ده که د غير په امر سره وي او که بې د هغه د امرنه وي ،للرواية الاولى.

البته که د غير په امر سره ئې بکرۍ واخستله او قرباني ئې وکړه نو قرباني به ئې صحيح شي ځکه چې مامور په شراء او په قبض کښې د آمر وکيل دې، لهذا د آمر ملک ثابت شو.

٣ - که د غير په امر سره يې د هغه له اړخه په غوا کښې حصه وساتله نو دټولو قرباني وشوله، للرواية الثانية. په دې صورت کښې به د غير ملک ثابت شي، که د غير نه ئې قيمت واخستلو نو دا بيعه شوه او که قيمت يې وانخستلو نو دا هبه شوه، او په هبة المشاع کښې قبض شرط نهٔ دې.

٤- بې د امر نه ئې په غوا کښې د داسې خلقو له اړخه حصه وساتله چې د هغوی له اړخ نه د قربانۍ کولو معمول وي، نو د ټولو قرباني به وشي، للرواية الثالثة.

٥- بې د امر نه ئې د داسې سړی حصه وساتله چې د هغهٔ له اړخه د قربانۍ کولو معمول وي، نو ددې

سري قرباني ونۀ شوه، للرواية الثانية والثالثة.

اوس دابحث باقي پاتې شو چې په دې صورت کښې د نورو شريکانو قرباني به صحيح شي او که نه؟ په روايت ثانيه کښې د عدم جواز تصريح ده.

روايت رابعه د جواز تقاضا کوي.

دراية ترې نه هم جواز معلوميږي، ځکه چې د دغه بل په نوم کړې شوې د حصې هم ذابح مالک دې، نو د هغۀ د قربانۍ د نه صحيح کيدلو څه وجه نشته دې.

په امداد الفتاوی کښې د حضرت مولانا ظفر احمد صاحب رحمه الله د جواز فتوی شته، دوی د روايت ثانيه مسئلې ته اختلافي وئيلې دی او د ابو القاسم قول د جواز ته ئې ترجيح ورکړې ده.

زما په خيال کښې د دوی نه په دې کښې تسامح شوې ده، ځکه چې په روايت ثانيه کښې دوه مسئلې ذکر شوې دی،د ابو القاسم قول د مسئله ثانيه په حقله دې،او دا زير بحث مسئله اولی ده، په کومې کښې چې څه اختلاف نشته، بلکه د في قولهم جميعا تصريح په کښې موجوده ده.

په دواړو روايتونو کښې وجه د فرق دا په پوهه کښې راځي،چې په روايت رابعه کښې د غير له اړخه د نفل قربانۍ بيان دې،د کومې حقيقت چې دا دې چې قرباني خو د ذابح له اړخه کيږي،صرف ثواب په کښې غير ته ورکول کيږي، لهذا د غير دپاره نيت کول د خپله اړخه د هغه حصې نفی کولو لره مستلزم دی.

او په روايت ثانيه کښې د غير له اړخه د واجب قربانۍ نيت کولو سره دې د دغه حصې د خپل ځان نه نفي کوی،د دې وجې نه به دا حصه صرف غوښه شي،او محض د لحم د پاره ځناور ذبحه کول يو معروف او يو مستقل مقصود او مفيد امر دې، په خلاف د حج د ارکانو چې د هغې په ادائيګۍ کښې بې د حج نه بل څه امر مقصود اومفيد نۀ شی کيدلې،د دې وجې نه حج عن الغير بغير د امرله صورت نه به بهر حال د فاعل حج کيږي، اګرچې دغيرله اړخه ئې د فرض د اداء نيت وی

فقط والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۲ صفر ۱۳۹۵ هجری

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿وَمَا تَوْفِيقِي إِلَّا بِاللَّهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيبُ﴾

## د غوا په قربانۍ کښې د يو سړي دوه حصې

* د يو پټ اړخ په رومبی ځل وضاحت
* تحقيق انيق و تدقيق عميق؛
* د حديث او فقه په رڼا کښې يو منفرد بحث
* د نقل اوعقل د روايت او درايت فيصله

*********
*******

# د غوا په قربانۍ کښې

# د

# يو سړي دوه حصې

**په دې حديث کښې دا ثابت کړې شوې دی چې په يوه غوا او يو اوبن کښې د يو سړی د يوې حصې نه زياتې نۀ شی کيدې**

**لهذا:**

**که چيرې څوک پوره غوا يا پوره اوبن قربانی کړی نو اووه قربانۍ به ئې نۀ کيږی مجموعه به ئې صرف يوه وی**

*********
*******

## په يوه غوا کښې د يو شخص له قربانۍ سره سره د ايصال ثواب يا د عقيقې حصه نيول

**سوال:-** که يو سړې په يوه غوا کښې د خپلې واجبې قربانۍ سره سره د ايصال ثواب دپاره نفل حصه ونيسی يا د عقيقې حصه ونيسی، په دې حقله تاسو تحقيق کولو د هغې څه فيصله وشوه؟ که يو سړی پوره غوا ذبحه کړه نو د هغه يوه قربانی وشوه که اووۀ قربانۍ ئې وشوې؟بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که یو سړي پوره غوا ذبحه کړی نو د بعضو په نیزد یوه قربانی واجب او شپږ په کښې نفلی شوې، لیکن د عامو مشایخو قول دا دې چې د پوره غوا صرف یوه قربانی وشوه او په همدې باندې فتوی ده :

قال الامام الحصکفی رحمه الله: ولو ضحی بالکل فالکل فرض کارکان الصلوة.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: الظاهر ان المراد لو ضحی ببدنة یکون الواجب کلها لا سبعها بدلیل قوله فی الخانیة ولو ان رجلا موسرا ضحی ببدنة عن نفسه خاصة کان الکل اضحية واجبة عند عامة العلماء وعليه الفتوی اھ مع انه ذکر قبله باسطر لو ضحی الغنی بشاتین فالزیادة تطوع عند عامة العلماء فلا ینفی قوله کان الکل اضحية واجبة ولا یحصل تکرار بین المسالتین فافهم و لعل وجه الفرق ان الضحية بشاتین تحصل بفعلین منفصلین و اراقة دمین فیقع الواجب احدهما فقط والزائدة تطوع بخلاف البدنة فانها بفعل واحد واراقة واحدة فیقع کلها واجبا هذا ما ظهر لی (ردالمحتار ص۲۳۵ ج۵)

وړاندې په کښې دا بحث پاتې کیږی که یو سړی په یوه غوا کښې د مختلفو قرباتو (ثوابونو) نیت وکړو نو آیا دا به معتبر وی او که نه؟یعنی د دهٔ د نیت مطابق به ټول قربات ادا شی او که نه په دې صورت کښې به هم صرف یوه قربانی وشی؟

په دې حقله د حدیث یا د فقهې څه صریحه جزئیه ترلاسه نهٔ شوه،د لاندې وجوهو له کبله د ډیرو نیتونو عدم اعتبار معلومیږی :

۱- د علائیې او د شامیې عبارت مذکوره : د **ولو ضحی بالکل فالکل فرض کارکان الصلوة الخ** عموم

۲ - په حدیث او فقه کښې **اجزاء عن السبعه** ذکر دې، د یو سړی د طرفه دجهاتو د تعدد د اعتبار څه ثبوت نشته دې.

۳- په کتابونو دفقې کښې دمختلفو جهاتو دصحت ذکر د **اجزاء عن السبعة** د لاندې کړې شوې دې

۴- د شامیې په عبارت کښې د **و کذا لو اراد بعضهم العقیقة** نه که د یو سړی د اضحیې او د عقیقې نیت بیانول مقصود وې نو هغې سره بیا د لفظ (ایضا) اضافه لازمه وه.

۵ - په ډیرو کتابونو کښې د جهاتو مختلفو د اشخاصو مختلفو نه د کیدلو تصریح شته دې.

اراد بعضهم الاضحية وبعضهم جزاء الصيد الخ (عالمگیریة ص۳۰۴ ج۵)،(خانیة بهامش العالمگیریة ص۳۵۰ ج۳ بدائع ص۷۱ ج۵ شلبی علی تبیین الحقائق ص۸ ج۶ الجوهرة النیرة بهامش مختصر القدوری ص۲۰۳)

ددې نه داخبره معلومیږی چې تعدد د نیت معتبر نهٔ دې او دا هم د **ولو ضحی بالکل - الخ** په کلیه کښې داخل دې.

۶ - د فقهې په ټولو کتابونو کښې د بیان د موقعې باوجود د دې نه سکوت شوې دې.

۷ - قال الامام قاضیخان رحمه الله: سبعة اشتروا بقرة للاضحية فنوی احدهم الاضحية عن نفسه لهذه السنة

ونوى اصحابه الاضحية عن السنة الماضية قالوا تجوز الاضحية عن هذا الواحد ونية اصحابه للسنة الماضية باطلة و صاروا متطوعين و وجبت الصدقة عليهم بلحمها و على الواحد ايضا لان نصيبه شائع و لو اشترى بقرة للاضحية و نوى السبع منها لعامه هذا و ستة اسباعه عن السنين الماضية لا يجوز عن الماضية و يجوز عن العام (خانية بهامش الهندية ص ٣٣٩ ج ٣)

په دې جزئيه کښې په صورت د تعدد د اشخاصو کښې په نيت د اضحيې ماضيې سره واقع کيدل د تطوع ذکر دې، ليکن په صورت د توحد د شخص سره واقع کيدل د تطوع ذکر په کښې نشته دې، ددې نه دا خبره ثابته شوه چې د توحد د مالک په صورت کښې تعدد د نيت معتبر نۀ دې، او دا ټوله غوا به اضحيه واجبه شمارلې کيږي.

ورسره دا هم چې د تعدد د اشخاصو په صورت کښې تصدق د غوښې واجب دې، يعنی په اراقة کښې د ماضی د کلونو نيت غير معتبر دې او په لحم کښې معتبر دې، ليکن د شخص واحد په صورت کښې تصدق مذکور نۀ دې.

د دې فرق نۀ ښه وضاحت وشو چې د نيت د تعدد اعتبار نشته .اوکه نه نو د توحد د شخص په صورت کښې به هم لحم واجب التصدق وې.

يو طالب علم ته د خانيې د يوې جزئيې نه د تعدد د نيت د معتبر کيدلو اشتباه شوې ده،د دې وجې نه دهغې وضاحت کولې شی:

ضحى غنى ببدنة عن نفسه وعن ستة من اولاده ليس هذا فى ظاهر الرواية وقال الحسن بن زياد رحمه الله عليه فى كتاب الاضحية له ان كان اولاده صغارا اجاز عنه وعنهم جميعا فى قول ابى حنيفة وابى يوسف رحمهما الله تعالى وان كانوا كبارا ان فعل بامرهم جاز عن الكل فى قول ابى حنيفة رحمه الله عليه وان فعل بغير امر بعضهم لا يجوز لا عنه ولا عنهم فى قولهم جميعا لان نصيب من لم يامر صار لحما فكان الكل لحما. (خانية بهامش الهندية ص ٣٥٠ ج ٣)

په دې جزئيه کښې د اولاد صغار له اړخه اضحيه په صورت د تمليک کښې مراده ده،لهذا د تعدد د املاکو له کبله د ټولو قربانی وشوه، په تمليک باندې دا لاندې شواهد دی:

١ - د تضحيه عن الحی متبادر مفهوم او عام معروفه طريقه هم په صورت د تمليک کښې ده دا نه چې د ايصال ثواب د پاره په ملک د ذابح کښې.

٢ - دا جزئيه د صغير له اړخه د وجوب تضحيه په قول باندې مبنی ده،او اضحيه واجبه بې د ملک نه نۀ ادا کيږي.

قال الامام قاضيخان رحمه الله عليه: وفى الولد الصغير عن ابى حنيفة رحمه الله عليه روايتان فى ظاهر الرواية يستحب ولا يجب بخلاف صدقة الفطر وروى عن الحسن عن ابى حنيفة رحمه الله عليه انه يجب ان يضحى عن ولده الصغير وولد ولده الذى لا اب له والفتوى على ظاهر الرواية فان كان للصغير مال قال بعض مشايخنا رحمهم الله يجب على الاب والوصى

فی قول ابی حنیفة رحمه الله ان یضحی من مال الصغیر قیاسا علی صدقة الفطر ولا یتصدق بلحمه بل یأکل الصغیر فان فضل شیء لا یمکن ادخاره یشتری بذلک ما ینتفع بعینه (خانیة بهامش الهندیة ص ۳۴۳ ج ۳)

۳ - که چیرې دا جزئیه د ایصال ثواب د ملک د ذابح په حقله وې، نو د تضحیه عن الکبار د پاره به ئې د اذن شرط نهٔ لګولو، اشتراط د اذن صرف په صورت د تملیک کښې کیدې شي. لهذا ددې قرین یعنی تضحیه عن الصغار هم په صورت د تملیک کښې مراد ده.

که علی سبیل النزول دا شواهد د اثبات د تملیک دپاره ناکافی ومنلې شي، نو بیا هم احتمال د تملیک په کښې شته او دا د ابطال د استدلال دپاره کافی دی.

د دې نه علاوه په دې جزئیه کښې دې هم عدم تملیک ومنلې شي، نو ددې نه بې صرف د واجباتو متعددو صحت ثابت شي، په واجباتو کښې په خپلو کښې تزاحم کیدې شي لیکن په نفلو کښې د واجبو د تزاحم صلاحیت نشته دې. **فافترقا.**

مفتی عبدالستار صاحب د خیر المدارس ددې جزئیې نه دترک استدلال هم دا وجه بیان کړې ده.

ما دا بحث په غرض د تحقیق نورو اهل دفتواګانو ته وړاندې کړو، په کومو کښې چې مفتی محمود حسن ګنګوهی صاحب دارالعلوم دیوبند، مفتی نظام الدین صاحب دارالعلوم دیوبند، مفتی جمیل احمد صاحب تهانوی جامعه اشرفیه لاهور، او د مفتی عبدالستار صاحب خیر المدارس ملتان جوابونه ما ته راورسیدل. د څلورو واړو لیکونو نه ددې نوره مرسته هم وشوه، چې د نیت دتعدد د اعتبار په حدیث او فقه کښې څه ثبوت نشته، سره د دې نه دې حضراتو د نیت د تعدد د املاکو د تعدد سره پیوستوالې کړې دې. او مختلف نیتونه ئې افراد اعتباری ګرځولې دی او جواز ئې لیکلې دې، دا خبره دې په ذهن کښې وی چې ددې پیوستوالې او د افراد اعتباری په حدیث او فقه کښې څه ثبوت نشته دې. دا ددې حضراتو خپله رائې ده.

## خاتمة الکلام

د خپلې واجبې قربانۍ سره د عقیقې یا د ایصال ثواب د پاره د نفلی حصې په ساتلو باندې ددې بحث څه خاص اثر نهٔ غورځیږي، ځکه چې عقیقه واجبه نهٔ ده، وشوه او که ونهٔ شوه څه لازمی خبره نهٔ ده، او ایصال ثواب د واجبې قربانۍ هم کیدلې شي، لهذا د ایصال ثواب مقصد په هر صورت کښې حاصل دې، البته د اضحیې سره د دم شکر او د دم جنایت په جمع کیدلو باندې دا بحث مؤثر کیدلې شي.

بې د نیت د تعدد نه هم یو مرجوح قول د تعدد دې، بیا د معاصرینو فتوی هم د اعتبار د تعدد دنیت ده، ددې نه علاوه په دې کښې عامه ابتلاء ده، او په قول د عدم جواز کښې حرج عظیم دې، لهذا په یوه غوا کښې د یو سړی د طرفه اضحیه، دم شکر، او دم جنایت د جمع کیدلو د جواز قول

انسب او اوسع دي.

ددې تحرير نه پس د دارالعلوم ديوبند نه د حضرت مفتی محمود حسن صاحب دويم تحرير راورسيدلو چې په کښې ئې د ملتقى الابحر دا عبارت نقل کړې دې: **وان مات احد سبعة وقال ورثته اذبحوها عنكم وعنه صح وكذا لو ذبح بدنة عن اضحية ومتعة وقران**،

زما په خيال ددې عبارت نه هم استدلال کول تام نۀ دی،په دې کښې (ذبح) صيغه د مجهول کيدې شي، د مونث لفظی عام کولوسره تذکير روا نۀ دې،د استدلال د ابطال دپاره د احتمال انشاء کافی ده، او دلته خو متبادر همدا دی، ځکه چې ددې نه وړاندې په تعدد د اشخاصو کښې تصريح ده کومه چې په دې باندې قرينه ده چې په دې مسئله کښې هم تعدد د اشخاصو مراد دې.

دويمه قرينه دا چې په دويم کتاب کښې هم د شخص واحد قرينه نۀ موندې کيږی، لهذا د عامو عباراتو سره د مطابقت مقتضی همدا ده چې دا صيغه د مجهول ده،چنانچه په مجمع الانهر کښې د قول مذکور لاندې فرمائی: **مع اختلاف جهات قربتهم (ملتقى الابحر مع شرح مجمع الانهر ص۵۲۱ ج۲)**

د **قربتهم** د ضمير د جمعې نه ثابت شوچې د شارح په نيز دا مسئله هم د تعددِ اشخاص ده.

د دې نه علاوه بنده ړومبی دا ليکلې دی چې متعدد واجبات د تزاحم صلاحيت لری،په خلاف د تزاحم د نفلو د واجبو سره، لهذا ددې اضحيه واجبه سره د نفلی حصې صحت ثابت نۀ شو،چنانچه حضرت مفتی صاحب دمذکوره جزئيې د نقل کولو نه پس د زيربحث مسئلې په حقله په خپله ليکی:
د دې حکم صراحتاً په کتابونو د فقې کښې ترلاسه نۀ شو.

همدغه شان د حضرت مفتی عبدالستار صاحب قول هم پورته نقل کړې شو.

د تحرير مذکور نه پس ما د حضرت مفتی محمود حسن صاحب په خدمت کښې وليکل چې د ملتقى الابحر په جزئيه: **لو ذبح بدنة عن اضحية ومتعة وقران** کښې (ذبح) صيغه د مجهول ده،ددې وجې نه ددې نه استدلال تام نه دې،ددې په جواب کښې مفتی صاحب وليکل:

(د ملتقى الابحر جزئيه که چيرې په صيغه د مجهول وی نو ددې نه به صراحتاً د شخصې واحد له اړخه په تعدد د جهاتو باندې استدلال قوی نۀ وی)

ددې نه پس ددې جزئيې په حقله يوه بله خبره مې په ذهن کښې راغله، چې يو سړې په يو وخت کښې متعه او قران نۀ شی کولې ، د دې وجې نه دا جزئيه لازماً د تعدد د اشخاصو په حقله ده،د دې په شخصِ واحد باندې محمول کولو کښې هيڅ گنجائش نشته دې.

غرض دا چې اوسه پورې د متعددو واجباتو د صحت په حقله هم څه صريحه جزئيه نۀ ده ترلاسه شوې،او تزاحم النفل بالواجب خو ددې نه هم ابعد دې،ددې جواز به څنگه ثابت شی؟ **والله تعالى اعلم**

۲ ربيع الاخر ۱۴۰۱ هجری

# کتاب الحظر والاباحة

## دقرآن کریم او د احادیثو دکتابونو او داسی نورو مقدسو څیزونو احکام

### په کوموکاغذونو چی قرآنی آیاتونه لیکل شوی وی له هغوڅخه پړئ (پاکټ) جوړول جائزندی

**سوال**: څه فرمائی ددین علماء په دی مسئله کښی چی په انګریزی اخبارونو کښې دقرآن کریم د آیاتونه لیکل کیږی اودهغو لاندی په انګریزی ژبه دهغو ترجمه لیکل شوې وی آیا له داسې کاغذونو څخه پاکټونه جوړول جائزدی ؟ حالانکه داکاغذونه ترپښو لاندې کیږی، په دی اخبارونو کښې د حضور صلی الله علیه وسلم نوم هم لیکل شوې وی آیا د قرآنی آیاتونو د لرې کولوپه صورت کښې د دې کاغذ باقی حصه استعما لول جائزدی اوکه نه ؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په کومو کاغذونو چی قرآنی آیاتونه یا مباحث شرعیه یا مسائل لیکل شوی وی له هغو څخه پاکټونه جوړول جائز ندی . البته که چیری مباحث شرعیه نه وی نو دالله جل جلاله اوانبیاء علیهم السلام اوکتب سماویه نومونو په لری کولو سره له باقی کاغذ څخه پاکټ جوړول جائز دی بیاهم دپښو لاندی غورځول اوبی عزتی کول د هیڅ کاغذ جائز ندی اګر که خالی کاغذولی هم وی .

قال فی الدر ولا یجوز لف شیٔ فی کاغذ فقه ونحوه وفی کتب الطب یجوز وفی الشامیه (قوله ونحوه) الذی فی المنح ونحوه فی الهندیه ولا یجوز لف شیٔ فی کاغذ فیه مکتوب من الفقه وفی الکلام الاولی ان لا یفعل وفی کتب الطب یجوز ولو کان فیه اسم الله تعالی واسم النبی علیه السلام یجوز محوه لیلف فیه شیٔ ومحو بعض الکتابة بالریق وقد ورد النهی عن محو اسم الله تعالی بالبصاق ولم یبین محو کتابة القران بالریق هل هو کاسم الله تعالی او کغیره (شامیه ص۲۲۷ ج۵) ۹جمادی الاولی سنة ۷۶ھ .

### دقرآنکریم زړې شوې پاڼې سوځول جائز ندی

**سوال**: څه فرمایی علماء کرام په دی مسئله کښې چی دقرآن کریم زړې شوې پاڼې سوځول جائزدی اوکه ناجائز دی ؟ بینوا توجروا .

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: دقرآن کریم ناقابل انتفاع اوراق (پاڼې) دې په جاری اوبو کښې واچول شی یا دې په محفوظ مقام کښی دفن (خښ) کړل شی سوځول یې جائز ندی :

قال فی الدر المختار قبیل باب المیاه من کتاب الطهارة المصحف اذا صار بحال لا یقرأ فیه یدفن کالمسلم

(وبعد اسطر) تكره اذابة درهم عليه اية الا اذا كسره.

وفی الشامیه تحت (قوله يدفن) واما غيره من الكتب فسيأتى فى الحظر والاباحة انه يمحى عنها اسم الله تعالى الخ (ردالمحتار ص۱۱۹ ج۱)

وايضاً فى الدر: الكتب التى لا ينتفع بها يمحى عنها اسم الله وملائكته ورسله ويحرق الباقى ولا بأس بأن تلقى فى ماء جار كما هى او تدفن وهو احسن كما فى الانبياء عليهم السلام.

وفى الشامية: يعنى ان الدفن ليس فيه اخلال بالتعظيم لان افضل الناس يدفنون وفى الذخيرة المصحف اذا صار خلقا وتعذر القراءة منه لا يحرق بالنار اليه اشار محمد رحمه الله تعالى وبه ناخذ ويكره دفنه وينبغى ان يلف بخرقة طاهرة ويلحد له لانه لو شق ودفن يحتاج الى اهالة التراب عليه وفى ذلك نوع تحقير الا اذا جعل فوقه سقف وان شاء غسله بالماء ووضعه فى موضع طاهر لا تصل اليه يد محدث ولا غبار ولا قذر تعظيما لكلام الله عزوجل (ردالمحتار ص۲۷۱ ج۵)

وفى الهندية: المصحف اذا صار خلقا لا يقرا منه ويخاف ان يضيع يجعل فى حرقة طاهرة ويدفن ودفنه اولى من وضعه موضعاً يخاف ان يقع عليه النجاسة او نحو ذلك ويلحد له لانه لو شق ودفن يحتاج الى اهالة التراب عليه وفى ذلك نوع تحقير الا اذا جعل فوقه سقف بحيث لا يصل التراب اليه فهو حسن ايضا كذا فى الغرائب المصحف اذا صار خلقا وتعذرت القراءة منه لا يحرق بالنار اشار الشيبانى الى هذا فى السير الكبير وبه ناخذ كذا فى الذخيرة (عالمگیریه ص۳۲۳ ج۵.

دحضرت عثمان رضی الله تعالى عنه دمصحف دسوځولو په باره کښې په شرح سير کبير کښې سیر کبیر ، ص۲۷۷ ج ۲ کښې راغلی دی چې ((لايكاديصح لا اصل لذالك.الحديث)).

ليکن دا روايت چونکه په صحیح البخاری کښی دې دسند په لحاظ دې ته بی بنیاد ویل مشکل دی لهذا حافظ عینی اوعسقلانی اونوروشارحينو ددې مختلف جوابات کړی دی:

۱ - ان يخرق بالخاء المعجمة رواية الاكثرين (الى ان قال) وبالمعجمة اثبت.

۲ - وقد جزم عياض بانهم غسلوها بالماء ثم احرقوها مبالغة فى اذهابها. (عمدة القارى ص۱۸ ج۲۰ فتح البارى ص۱۸ ج۹)

۳ — وقال الحافظ العينى رحمه الله تعالى: قال الكرمانى فان قلت كيف جاز احراق القرآن قلت المحروق هو القرآن المنسوخ او المختلط بغيره من التفسير اوبلغة غير قريش اوالقراءات الشاذة وفائدته ان لا يقع

الاختلاف فيه. (عمدة القاری ص۱۸ ج۲۰)

وقال الحافظ العسقلانی رحمه الله تعالی: وفی رواية سويد بن غفلة عن علی رضی الله تعالی عنه قال لا تقولوا لعثمان فی احراق المصاحف الا خيرا (الی قوله) قال ابن عطيه الرواية بالحاء المهملة اصح هذا الحکم هو الذی وقع فی ذلك الوقت واما الآن فالغسل اولی لما دعت الحاجة الی ازالة. (فتح الباری ص۱۸ ج۹)

علامه عینی رحمه الله د احنافو هغه مذهب نقل کړی دی کوم چی په شامی کښې دی.

قلت وهذا حاصل ما قال ابن عطية وفی البريقة المحمودية شرح الطريقه المحمدية لابی سعيد الخادمی رحمه الله تعالی وفيه (ای فی النصاب) ايضا الکتب التی يستغنی عنها وفيها اسم الله تعالی تلقی فی الماء الکثير الجاری او تدفن فی ارض طيبة ولا تحرق بالنار وفی التتارخانية المصحف الذی خلق وتعذر الانتفاع به لا يحرق بل يلف بخرقة طاهرة يحفر بلحد بلا شق اذ يجعل سقفا ويدفن او يوضع بمکان طاهر لا يصل اليه الغبار والاقذار وفی السراجية يدفن او يحرق انتهی ملخصا وکذا عن منية المفتی وعن المجتبی الدفن افضل من الالقاء فی الماء الجاری کالانبياء عليهم السلام کذا جميع الکتب وفی التتارخانية الافضل ان يغسلها ويأخذ القراطيس وعن الحلبی لا بأس بالاحراق لاحراق عثمان رضی الله عنه مصاحف فيها آيات منسوخة بلا نکير وايضا قيل الاحراق اولی من الغسل لوقوع الغسالة علی الارض والقاضی حسين حرم الاحراق لتنافيه الاحترام وکره النووی هذا، واقول الراجح هو الدفن او الغسل لا الاحراق لقوة قائلهما ودليلهما ولترجيح الحظر علی الاباحة واما ما نقل عن عثمان رضی الله عنه فالظاهر انه ليس بصحيح اذ لو صح ذلك بلا نکير لحل محل الاجماع اليهم سوء ظن بهم وطعن فی فقاهتهم علی ان الاحراق لازم للاستهانة ومخل بالتعظيم. (بريقه محمودية ص۱۹۹ ج۴)

که فی نفسه د سوځولو جواز هم تسلیم کړې شی بیا هم زمونږ په زمانه کښې په سبب دفتنی واقع کیدلو په مینځ د مسلمانانو کښې ناجائز دی، همدارنګه د احترام او بې حرمتۍ مدار په عرف باندې دې او په اوسنی عرف کښې سوځول د انتهای درجې بې حرمتی بلل کیږی والله سبحانه وتعالی اعلم (۲۰ رجب سنه ۷۲)

## د احادیثو دزړو اوراقو سوځول

**سوال**: د احادیثو دزړو اوراقو که چیرې دخښولو وخت پیدا نشی یا په ښارکښې مناسب ځای ددفن کولو لپاره پیدا نشی آیا سوځول ئې جائز دی که ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که له دغو اوراقو څخه دالله جل جلاله او انبیاء علیهم السلام یا ملائکو نومونه محوه کړل شی بیایې سوځول جائز دی لیکن بهتر دادی چی هغه په جاری

اوبو كنبي واچول شي.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: اكتب التي لاينتفع بها يمحى عنها اسم الله تعالى وملائكته ورسله ويحرق الباقي ولاباس بان تلقى في ماء جار كما هي اوتدفن وهو احسن كما في الانبياء عليهم السلام. (ردالمحتار ص۲۷۱ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم ۲۰ ذي الحجة سنة ۸۸هـ

## كوچنيانو ته خلاف ترتيب دقرآن كريم تعليم وركول

**سوال**: ماشومانوته د«عم» سپارې خلاف ترتيب تعليم وركول لكه څنگه چې عموماً نن سبا دغه كار كيږي جائز دى يا ناجائز؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! جائز دى:

قال العلامة الحصكفي رحمه الله: ويكره الفصل بسورة قصيرة وان يقرا منكوسا الا اذا ختم.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وان يقرا منكوسا) بان يقرا في الثانية سورة اعلى مما قرا في الاولى لان ترتيب السور في القراءة من واجبات التلاوة وانما جوز للصغار تسهيلا لضرورة التعليم. (رد المحتار ص۳۶۷ج۱) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۵ شعبان سنه ۷۴

## دالله جل جلاله، له ذكرنه دكوم بل مقصد لپاره وسيله (آله) جوړول جائز ندى

**سوال**: دلته يو پيرصاحب دې دهغه دمريدوانو دا دستوردې كله چې يې دچا راغوښتل مقصود وي نو په ځاى د دروازې ټكولو ياغږ كولو كلمه طيبه «لااله الاالله» وايي، دا طريقه ددوى په منځ كښې مشهوره ده، لهذا دننه سړې پوهيږى چې ما دباندى څوك غواړي، آيا دا طريقه شرعاً صحيح ده اوكه نه؟ بينوا بالدليل آجركم الجليل.

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: داطريقه صحيح نده ځكه چې دالله جل جلاله ذكر د بل مقصد لپاره استعمالول او له هغې نه آله جوړول جائز ندى، لهذا له دې نه دا خبره هم معلومه شوه چې نن سبا په وعظ كونكو كښې رواج ده چې صرف دخلكو د بيدارولو اوپه هغوى كښې دنشاط پيدا كولو لپاره دوعظ په منځ كښې درود شريف وائي، درود شريف خالص دثواب په نيت مقصود گرځول ويل پكاردى، د بل څيز لپاره يې آله گرځول ناجائز دى.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى في اخر كتاب الحظر والاباحة وقد كرهوا والله اعلم ونحوه: لاعلام ختم الدرس حين يقرر.

وفي الشامية تحت قوله ونحوه كان يقول وصلى الله على محمد (قوله لاعلام ختم الدرس) اما اذا لم يكن اعلاما بانتهائه لايكره لانه ذكر وتفويض بخلاف الاول فانه استعمله الة للاعلام ونحوه اذا قال الداخل ياالله مثلا ليعلم الجلاس بمجيئه ليهيؤله محلا ويوقروه واذا قال الحارس لااله الاالله ونحوه ليعلم باستيقاظه فلم يكن المقصود الذكر اما اذا اجتمع القصدان يعتبر الغالب كما اعتبر في نظائره اهـ (ردالمحتار ص۲۷۷ ج۵)

والله سبحانه وتعالى اعلم ۱۲ ذی الحجه سنه : ۷۵هـ

## قرآنی آیاتونه په وینو سره لیکل

**سوال** : آیا دچرگ په وینه دقرآن کریم آیاتونه لیکل اوهغه بیا په غاړه کنبی اچول جائز دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د قرآن مجید آیاتونه په وینه یا په بل نجاست سره لیکل کفردې ، دبعضې خلکو خیال دی که چیرته دځان خطره وی اویقین یی وی چې دده علاج بغیر له دې څخه بل څه نه دې نولیکلې یی شی یعنی گنجائش یی شته. قیاسا علی شرب الخمر للعطشان واكل الميتة فی المخمصة ددې قیاس بطلان بالکل ښکاره دې لهذا په هیڅ حال کنبی ددې دجوازگنجائش نشته.

وقال العلامه ابن عابدين رحمه الله تعالى تحت قوله لكن نقل المصنف الخ) ونص ما في الحاوي القدسي اذا سال الدم من انف انسان ولاينقطع حتى يخشى عليه وقد علم انه لو كتب فاتحة الكتاب اوالاخلاص بذلك الدم على جبهته ينقطع فلايرخص له فيه وقيل يرخص كما رخص في شرب الخمر للعطشان واكل الميتة في المخمصة وهو الفتوى (ردالمحتار ص۱۴۰ ج۱) والله سبحانه وتعالى اعلم ۲ جمادی الاولی سنه ۸۶ هـ

## بنگی ((هغه عیسائی چی گندگی صفا کوی)) ته دزمزم داوبو دورکولوحکم

**سول** : حاجی که چیرته دخپل کور صفایی کونکی ته دزمزم اوبه یا کجورې ورکړی آیا دا جائز دی اوکه ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : بهتره خبره داده چی ورنکړل شی او که بنگی یی خپله وغواړی اویقین یی وی چه دعقیدت دوجی نه یی غواړی او ادب اواحترام یی ملحوظ کوی نو جائز دی والله سبحانه وتعالی اعلم یوم عرفه سنه ۸۶۰هـ

## د قرآنی آیاتونو لیکل شوې لوحې اوکاغذونه ښکلول او مچوکول

**سوال** : زمونږ دمحلی په مسجد کنبې دقرآنی آیاتونو او دالله جل جلاله او رسول الله صلی الله علیه وسلم دنومونو لیکل شوی لوحی دی. زید روزانه هغه ښکل کوی او په هغې لاس تیروی

اوبیایی په ټول بدن را کاږي آیا د زید داعمل جائز دی اوکه ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هو ! جائز دی، مگر التزام اوغلو دې پکښې نکوی همدا راز دقرآن کریم تلاوت اودهغه په احکامو باندی عمل کول دې اهم وګڼی.

د قرآن کریم دتلاوت کولو په وخت کښې دې قرآن کریم خلاص کړی او ښکل دې کړی او په هغه باندې دعمل کولو عهد دې وکړی، له حضرت عمر رضی الله عنه څخه دا دعا نقل شوې ده **عهدربي ومنشورربي عزوجل.**

له دی څخه په قرآن کریم دعمل کولو همت پیداکیږی چی ددنیا او آخرت دهر مصیبت نه دنجات او خلاصون یواځنۍ ذریعه ده ، بعضې خلکو دقرآن کریم تقبیل ته بدعت ویلی دی لیکن هغه قول ضعیف دې.

**قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالى: وفي القنية في باب مايتعلق بالمقابر تقبيل المصحف قيل بدعة لكن روى عن عمر رضي الله عنه انه كان يأخذ المصحف ويقبله ويقول عهد ربي ومنشور ربي عزوجل وكان عثمان رضي الله عنه يقبل المصحف ويمسحه على وجهه (ردالمحتار ص۲۴۶ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم**

۱۳ محرم سنه ۸۷ هـ

## دقرآن کریم هدیرې ته وړل اوهلته یی دتلاوت کولو حکم

**سوال:** قرآن کریم هدیرې ته وړل اوهلته یی تلاوت کول جائز دی که ناجائز ؟ په شرح برزخ کښی یی لیکلی دی چی دقبر خواته قرآن لوستل جائز دی فتوی هم پرهمدی ده **بدليل قوله عليه السلام نوروا قبوركم بالقران** دا استدلال او فتوی صحیح دی که غلطه ده ؟ بینو ا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دا روایت زمونږ له نظره ندې تیر شوې که ثابت هم وی خوددې دا معنی نده چی قرآن مجید دې قبرستان ته یوړې شی او هلته دې تلاوت وکړې شی، بلکه مطلب دادر چی قرآن مجید تلاوت کړئ اوثواب یی مړوته وبښئ، دقرآن کریم هدیرې ته وړل اوهلته یی تلاوت کول له قرون مشهود لها بالخیر څخه ثابت ندی والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۰ ذی الحجه سنه ۸۷هـ

## د حدیث اوفقهې په کتابونو تکیه کول

**سوال** : دحدیث او فقهې له کتابونو څخه کار اخستل یا په هغو باندی ډډه وهل جائز دی که ناجائز ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دقرآن کریم یا د حدیثو اوفقهې دکتابونونه دتکیی کار اخستل یا

هغو ته څنګ وهل سخته ګناه ده لیکن که په سفرکښي یې دحفاظت بله طریقه نه وي نو جائز دی.

قال العلامه الحصکفی رحمه الله تعالی: ویکره وضع المصحف تحت راسه الا للحفظ وقال العلامة بن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله ویکره وضع المصحف الخ) وهل التفسیر والکتب الشرعیة کذلك یحرر اقول الظاهر نعم کما یفیده المسألة التالیة ثم رایته فی کراهیة العلامی (قوله الا للحفظ) ای حفظه من سارق ونحوه (ردالمختار ص۱۱۱ج۱) والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۲ صفر سنه ۸۹ هـ

## دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم له نوم سره د (ص) لیکل

**سوال**: دحضور اکرم صلی الله علیه وسلم له نوم سره په ځای دمکمل صلوة وسلام صرف (ص) لیکل او دصحابه کرامو له نومونو سره صرف (رض) لیکل څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دحضور صلی الله علیه وسلم له محترم نوم سره او دصحابه کرامو دقدرمنو نومونو سره پوره صلوة اوسلام او رضی الله عنهم لیکل په کار دی صرف (ص) لیکل خلاف ادب دی، چیرته چې پاڼې پاڼې اوپوره کتاب لیکل کیدې شي نود پوره صلوة اوسلام او د ترضی په صیغو به څومره ځای مصرف شي؟ په حقیقت کښي دا د محبت دکمښت دلیل دې همدارنګه د تعالی په ځای صرف (تعـ) او درحمه الله پرځای صرف (رح) دلیکلو دستور هم صحیح نه دی والله سبحانه وتعالی أعلم ۲۳ ذی الحجه سنــ ۹۰هــ

## په اخبارونو کښې دلیکل شوی آیت بې اوداسه مسحه کول څنګه دی؟

**سوال**: داخبار په کومه صفحه کښي چې دقرآن کریم آیت لیکل شوې وي هغه سره بې اودسه لاس لګول څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په کوم ځای چې قرآنی آیت لیکل شوې، وی صرف هغه ځای سره بی اودسه لاس لګول منع دی او په نورو ځایونو لاس لګول جائز دی، البته که یو وړوکې آیت وی یعنی چې دشپږو حروفونه هم لږوی نو دیوقول مطابق هغه ته دلاس وړلو ګنجائش شته.

قال العلامه الحصکفی رحمه الله تعالی: ویحرم به ای بالا کبر وبالاصغر مس مصحف ای ما فیه اية کدرهم وجدار.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی تحت (قوله ای ما فیه اية) لکن لایحرم فی غیر المصحف الا المکتوب ای موضع الکتابة کذا فی باب الحیض من البحر وقید بالاية لانه لو کتب ما دونها لایکره مسه کما فی حیض القهستانی وینبغی ان یجری هنا ما جری فی قراءة ما دون اية من الخلاف والتفصیل وینبغی ان یجری هنا ما جری فی قراءة ما دون اية من الخلاف والتفصیل المارین هناك بالاولی لان المس یحرم بالحدث ولو اصغر

بخلاف القراءة فكانت دونه تأمل (رد المحتار ص۱۷۱ ج۱) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۷ رجب سنه ۹۲ هـ

## دپښی مبارکې دنقش بشکل کولو حکم

**سوال**: دحضور صلی الله علیه وسلم دپښی مبارکې نقش په سر کیښودل او مچو کول او دهغې په توسل دعاء غوښتل شرعًا څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا ټول کارونه دمحبت اوتبرك په طور سره کول خلاف شریعت ندی اودعقیدی د فساد دانديښنې له وجې څخه نه کول خلاف محبت ندی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۰ صفر ۹۳هـ

## قرآنکریم دمسقف زینی (کومه سمیټی زینه چه بره چت ته ختلې وی) لاندی کیښودل

**سوال**: دیومسجد د زینی لاندی الماریٔ ده، آیا په هغه الماریٔ کښې دقرآن مجید کیښودل جائز دی اوکه نه؟ په داسی حال کښی چی په دغه زینه خلك پورته کیږی اوښکته کیږی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا جائز دی. والله سبحانه وتعالی اعلم　　۳۰ربیع الاول سنه۹۵هـ

## په لوړ ځای کښې دایښودل شوی قرآن کریم طرفته پښی غزول

**سوال**: په الماریٔ کښی په پورتنۍ خانه کښی قرآن کریم ایښودل شوې دې آیا هغه طرفته پښی غزول یا شا کول جائز دی که ناجائز، په فتاوی رشیدیه کښې یی جائز ورته لیکلی دی، لیکن دفقه کتابونو کښې چیرته زمونږ له نظره ندی تیرشوی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: جائز دی. قال فی الهندية: مد الرجلين الى جانب المصحف ان لم يكن بحذائه لايكره وكذا لو كان المصحف معلقا فى الوتد وهو قد مد الرجل الى ذلك الجانب لايكره كذا فى الغرائب (عالمگیریه ص۳۲۲ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.　　۶ربیع الثانی سنه ۹۹هـ

## په مکان یا دکان وغیره کښې دقرآنی آیاتونو زوړندول

**سوال**: په مکان یا دوکان کښی په ګته یا بل څه دقرآن آیاتونه لیکل او زوړندول څنګه دی همدا راز په دیوال یا دروازه ((بسم الله الرحمن الرحيم)) یا ((ماشاء الله)) یا ((هذا من فضل ربی)) لیکل څنګه دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په کوم ځای کښی چی تلویزون غږولی شی یا تصویرونه وی هلته آیاتونه لیکل او رازوړندول دقرآن کریم بی عزتی ده، له همدې کبله ناجائز دی. که چیری دا

خرافات نه وی او تعظیم یې ملحوظ وی او دګرد او غبار نه صفا وی نو جائز دی، په دیوال یا دروازه د آیاتونو لیکل په هر حال مکروه تنزیهی دی.

قال العلامه الحصکفی رحمه الله تعالی: بساط اوغیره کتب علیه الملك لله یکره بسطه واستعماله لا تعلیقه للزینة وینبغی ان لایکره کلام الناس مطلقا وقیل یکره مجرد الحروف والاول اوسع وتمامه فی البحر و کراهیة القنیة قلت وظاهره انتفاء الکراهة بمجرد تعظیمه وحفظه علق اولازین اولاوهل مایکتب علی المراوح وجدر الجوامع کذا یحرر.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله مطلقا) ای سواء استعمل اوعلق (قوله وتمامه فی البحر) حیث قال وقیل یکره حتی الحروف المفردة ورای بعض الائمة شبانا یرمون الی هدف کتب فیه ابوجهل لعنه الله فنهاهم عنه ثم مربهم وقد قطعوا الحروف لکن الاول احسن واوسع اه قال سیدی عبد الغنی ولعل وجه ذلك ان حروف الهجاء قران انزلت علی هود علیه السلام کما صرح بذلك الامام القسطلانی فی کتابه الاشارات فی علم القرات اه

(قوله قلت وظاهره الخ) کذا یوجد فی بعض النسخ ای ظاهر قوله لا تعلیقه للزینة (قوله یحرر) اقول فی فتح القدیر وتکره کتابة القران واسماء الله تعالی علی الدراهم والمحاریب والجدران ومایفرش اه والله سبحانه وتعالی اعلم (ردالمحتار ص۱۲۰ج۱). ۲۹ ربیع الاول سنه ۱۴۰۰ هـ

## په اخبارونو او رسمی خطونو کښې قرآنی آیاتونه اوبسم الله لیکل

**سوال**: په اخبارونو کښی دقرآن مجید د آیاتونه او «بسم الله الرحمن الرحیم» او احادیثو وغیره لیکلو رواج را روان دې پداسی حال کښی چی په اخبارونو کښی تصویرونه او دسینما اشتهارات هم موجود وی بیا دا اخبارونه په ردی شیانو کښې هم خرڅیږی بیا دکانداران خپلو مشتریانو ته پدغو اخبارونو کښې سودا وغیره ورکوی همد راز دا اخبارونو یوځای ، بل ځای پراته وی او له پښو لاندی کیږی آیا پداسې صورت کښې په اخبارونو کښې آیاتونه او احادیث لیکل جائز دی ؟ همداراز له څه وخت راهیسی په حکومتی دفترونو کښې په رسمی خطونو کښې مکمل بسم الله الرحمن الرحیم لیکل دستور چلیږی، بیا ددغو کاغذونو هم پورتني انجام وی نو آیا په دغو خطونو کښی بسم الله لیکل جائز دی ؟ او که دپوره بسم الله په ځای صرف بسمه سبحانه وتعالی یا بسمه تعالی یا۷۸۶ ولیکل شی نو دبسم الله ثواب حاصلیږی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په اخبارونو او اشتهاراتو کښې دقرآن آیاتونه اوبسم الله الرحمن

الرحيم ليكل جائز ندى، په دولتى دفترونو كښې په مكتوبونو باندې جائزخه چې مستحسن دى او ګناه يى دبى عزتى كونكې په غاړه ده، دبسم الله پرځاى نور كلمات يا ۷۸۶ ليكل دقرآن كريم او عمل رسول الله صلى الله عليه وسلم او دامت دمتوارث عمل خلاف دى، دحديبيه دصلحى په موقع حضور صلى الله عليه وسلم دبسم الله الرحمن الرحيم دليكلو امر كړې وو، مشركينو اعتراض كړې وو او ويلى يى وو ((اكتب ما كنت تكتب باسمك اللهم)) له دې څخه ثابته شوه چې اسلام دبسم الله ليكلو لپاره خاصه طريقه ښودلې ده، دهغې په ځاى دنورو كلمو په ليكلو سره دبسم الله ثواب نه حاصليږى او سنت هم نه ور باندى اداء كيږى والله سبحانه وتعالى اعلم. سنــ ۵ربيع الاول ۱۴۰۱هـ

## په روپئ باندى قرآنى آيت ليكل

**سوال** : دپاكستان حكومت په كال ۱۹۷۷ميلادى كښې ديوې روپى سكه جارى كړه چې په هغې كښې آيت (واعتصموا بحبل الله جميعاً ولاتفرقوا) او كلمه طيبه ليكل شوى وو آيا په سكه باندې آيت يا بل څه ليكل جائز دى ؟ او په داسى سكه باندې كاروبار كولې شى پداسى حال كښې چې زمونږ كاروبار له غير مسلم خلكو سره هم وى ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په سكه باندى قرآنى آيت ليكل مكروه تنزيهى دى، ليكن كاروبار ورباندې كول بلاكراهيته جائز دى.

قال العلامه ابن عابدين رحمه الله: تحت (قوله يحرر) اقول فى فتح القدير وتكره كتابة القران واسماء الله تعالى على الدراهم والمحاريب والجدران ومايفرش اهوالله تعالى اعلم (ردالمحتار ص۱۲۰ج۱)

وقال فى الهندية : لابأس بكتابه اسم الله تعالى على الدراهم لان قصد صاحبه العلامة لاالتهاون كذا فى جواهر الاخلاطى (عالمګيريه ص۳۲۳ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم ۸جمادى الاولى سنه ۱۴۰۱هـ

## بې اودسه دقرآن كريم ليكل

**سوال** : بغير له اودس نه په كومه ورقه دقرآن كريم آيت ليكل څنګه دى ؟ كه معلمې يا متعلمې ته دحيض په حالت كښى دكوم آيت دليكلو ضرورت پيښ شى آيا دهغې دليكلو ګنجائش شته او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په كاغذ لاس لګولو سره د آيت دليكلو ګنجائ نشته بغير دلاس لګولو په جواز دكتابت كښى اختلاف دى په وخت دضرورت كښى يى ګنجائش شته.

قال الشيخ الاسلام ابوبكر بن على الحداد رحمه الله تعالى وهل يجوز للجنب كتابة القران قال فى منية المصلى لايجوز وفى الهندية يكره للجنب والحائض كتابة القران اذا كان مباشر اللوح والبياض وان وضعها على

الارض و كتبه من غير ان يضع يده على المكتوب لا بأس به (الجوهرة ص ۳۵ ج ۱)

قال العلامة الحلبي رحمه الله تعالى: وذكر في الجامع الصغير المنسوب الى قاضيخان لا بأس للجنب ان يكتب القران والصحيفة او اللوح على الارض او الوسادة عند ابي يوسف رحمه الله تعالى خلافا لمحمد رحمه الله تعالى لانه ليس فيه مس القران ولذا قيل المكروه مس المكتوب لا مواضع البياض ذكره الامام التمرتاشي رحمه الله تعالى وينبغي ان يفصل فان كان لا يمس الصحيفة بان وضع عليها ما يحول بينها وبين يده يؤخذ بقول ابي يوسف رحمه الله تعالى لانه لم يمس المكتوب ولا الكتاب والا فيقول محمد رحمه الله تعالى لانه ان لم يمس المكتوب فقد مس الكتاب (حلبي كبير ص ۵۸)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ولا تكتب الحائض القران ولا الكتاب الذي في بعض سطوره اية من القران وان لم تقرا شمل ما اذا كان الصحيفة على الارض فقال ابو الليث رحمه الله تعالى لا يجوز وقال القدوري رحمه الله تعالى يجوز قال في الفتح وهو اقيس لانه ماس بالقلم وهو واسطة منفصلة فكان كثوب منفصل الا ان يمسه بيده (رسائل ابن عابدين ص ۱۱۳ ج ۱)

**تنبيه** : بعضې علماؤ ته دبعضې رواياتوله ظاهر څخه په صورت دمس كښې هم دجواز كتابت شبه پيدا شوې ده .

**اول** : دابن عابدين درسائل عبارت : ((الا ان يمسه بيده)) كښې د ((يمسه)) ضمير مذكر دې اوصحيفه مؤنث ده، لهذا ددې مرجع مكتوب كيدلى شى چه دكلام دسياق څخه معلوميږى .

**دويم** : په الجوهره كښې دمكتوب تصريح موجوده ده .

**دريم** : كه چيرته د كومې ورقې په يوې حصې باندې آيت ليكل شوې وى د آيت نه ماسوا دنورې حصې مسه په اتفاق جائزه ده نو په وخت دكتابت كښې مس ورق ولى ندى جائز؟ ما به الفرق څه دى

**جواب** (۱) : د ((يمسه)) دضمير مرجع صحيفه ده خو په تاويل دبياض سره، دكلام دمفهوم تاويل بلادليله او بلاضرورت دې، همدارنگه كه مرجع مكتوب ((آيت مكتوبه)) شى نو دوضع على الارض قيد لگول څه ظاهرى فائده نه وركوى .

(۲) : دالجوهره په عبارت كښې (مكتوب) په معنا دكتاب يا صحيفه سره دې اوكه نه نو دصدر دكلام ((مباشراللوح والبياض)) سره به ددې تعارض راشى، همدارنگه د ((ان وضعهما على الارض)) قيد لگولو به كومه فائده نه ظاهريږى. ځكه كه چيرته آيت مكتوبه مراد شى نو بيا د وضع على الارض او حمل فى اليد ترمينځ هيڅ فرق نشته .

(۳) دريمه وجه دفرق دا معلوميږى چى قلم ذريعه دكتابت ده، لهذا دهغه قياس په باريك شى

باندې تام قیاس ندې د ذکرشوی فرق دوجی نه قلم من وجه واسطه ده او من وجه واسطه نده، دکتابت دوه صورتونه دی : یو په کاغذ لاس کیښودل ، دویم : په کاغذ باندی دلاس کیښودلو نه بغیرپه میز وغیره باندی کیښودل، په اولنی صورت کښی دمتعارف کیدو دوجی نه دقلم دواسطی غیر معتبرو لوسره دعدم جواز قول شوې دې، اوپه دوم صورت کښی دغیر متعارف کیدوله وجی نه دقلم دواسطی پ؛ معتبرولو دجواز قول اختیار شوې دې ، والله سبحانه وتعالی اعلم.

محرم سنــ۱۴\ ۱۴۱۸ هـ

★★★★★★

# دپردې وغیره متعلقه مسائل

## د ښځو معانقه کول

**سوال** : دښځوپه خپل منځ کښی معانقه کول سنت دی اوکه نه ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دمعانقې مروجې طریقه دسړو لپاره هم جائزه نده، ددی تفصیل دمصافحې اومعانقې په رساله کښې دې ، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۴ذی القعده سنــ ۱۴۸۶هـ

## دښځوله بازار ځخه دسودا راوړل

**سوال** : دښځو دسامان اخستلو لپاره بازار ته تلل جائز دی اوکه ناجائز ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دښځو لپاره په اندازه دضرورت له کوره دباندې وتل جائز دی، په اوسنۍ زمانه کښې خلکو خپلو خواهشات نفسانیه اوهوس ته دضرورت نوم ورکړې دې، نو دښځی په متعلقینو سړو دافرض دی چی بلاضروته ښځه له بهر وتلو ځخه منع کړی اوکه نه نو هغویٔ به هم سخت گنهگاروی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲محرم ۱۴۸۷ هـ

## دتنگ لباس اغوستل جائزندی

**سوال** : سړی یا ښځی ته دتنگو جامو اغوستل جائزدی اوکه ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په کوم لباس کښې چې دواجب الستر اندامونو حجم او جوړښت ښکاریږی اوپه نظر راځی، دغه قسم لباس سړو اوښځو ټولوته حرام دې، او هغه طرفته کتل هم حرام دی او د تنگ لباس په اغوستلو کښې یو قباحت بل هم دې، هغه دا چی پدې کښی دکفاروسره مشابهت دې، لهذا ددې وجی نه جائز ندې.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى تحت (قوله ولا يضر التصاقه) وعبارة شرح المنية اما لو كان غليظا

لایری منه لون البشرة الا انه التصق بالعضو وتشکل بشکله فصار شکل العضو مرئیا فینبغی ان لا یمنع جواز الصلوة لحصول الستر اھ قال ط وانظر هل یحرم النظر الی ذلك المتشکل مطلقا او حیث وجدت الشهوة اھ قلت سنتکلم علی ذلك فی کتاب الحظر والاباحة والذی یظهر من کلامهم هناك هو الاول (رد المحتار ص۲۷۵ ج۱)

وقال فی الحظر بعد نقل کلام الفقهاء رحمهم الله تعالی : وعلی هذا لا یحل النظر الی عورة غیره فوق ثوب ملتزق بها یصف حجمها (رد المحتار ص۲۳۴ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ محرم سنــ۸۷ھـ

## له محرم لرونکې ښځې سره سفرکول جائز ندی

**سوال** : یوه دینداره ښځه له خپل محرم سره حج ته روانه ده، نورې ښځې غواړی چی له دغې ښځی سره حج ته لاړې شی آیا که له یوې دینداره او با اعتماده ښځې سره خپل محرم سرې موجود وی نوله دغی ښځی سره دنورو ښځو چی ددې ښځی له محرم سره نامحرمی وی سفر کول جائز دی اوکه نه ؟ بعضې حضرات دمعتدې او دهغې دخاوند ترمنځ د یوې ثقه ښځی دحائل جوړیدلو په جواز دسفر دجواز استدلال کوی آیا ددوئ دا استدلال صحیح دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : جائز ندی که څه هم دا ښځه ډیره زړه وی بیا یی هم دنامحرم سره سفر کول حرام دی، په حدیث کښی په دی باندی سخت وعید راغلې بلکه څومره چی ښځې زیاتې وی هغومره دفتنی اندیښنه زیاته وی، د ثقې ښځې له حائل کیدلو څخه د جواز استدلال صحیح ندې، ځکه چی هغه دحضر (په کور کښې د اوسیدلو) مسئله ده په خپل کور کښې ښځه خاوند اوحائل جوړیدونکې ښځه دخپل خاندان نه له حیاء او دبدنامی له خطره مانع دمعصیت وی همدارنګه که چیرته سړې دبدنامئ اراده وکړی نو حائل جوړیدونکې ښځه فریاد کوی اونور خلك راخبروی لیکن په سفر کښې هغه لاچاره اومجبوره وی اوپه خپله دفاع قادره نه وی.

قال العلامه ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله ولو عجزوا) ای لاطلاق لنصوص بحر قال الشاعر:

لکل ساقطة فی الحی لاقطة وکل کاسدة یوما لها سوق

(قوله فی سفر) هو ثلاثة ایام ولیالیها فیباح لها الخروج الی ما دونه لحاجة بغیر محرم بحر.

وروی عن ابی حنیفة وابی یوسف رحمهما الله تعالی کراهة خروجها وحدها مسیرة یوم واحد وینبغی ان یکون الفتوی علیه لفساد الزمان شرح اللباب ویؤید حدیث الصحیحین لا یحل لامراة تؤمن بالله والیوم الاخر ان تسافر مسیرة یوم ولیلة الا مع ذی محرم علیها وفی لفظ لمسلم مسیرة لیلة وفی لفظ یوم (رد المحتار ص۱۳۶ ھ).

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: (وحسن ان یجعل القاضی بینهما امرا ثقة ترزق من بیت المال بحر عن

تلخيص الجامع (قادرة على الحيلولة بينهما)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله امراة ثقة) لايقال المراة على اصلكم لاتصلح للحيلولة حتى لم تجيزوا المراة السفر مع نساء ثقاة وقلتم بانضمام غيرها تزداد الفتنة لانا نقول تصلح للحيلولة فى البلد لمقاء الاستحياء من العشيرة وامكان الاستغاثة بخلاف المفاوز زيلعى وافادان معنى القدرة عليهما امكان الاستغاثة (ردالمحتار ص۲۲۱ ج۲) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۶ صفر سنه ۸۷هـ

## له نابالغ محرم سره سفر كول

**سوال**: دښځې لپاره بغير له محرم څخه سفر كول جائز ندى، كه له نابالغ محرم سره سفر وكړي آيا دا جائز دى اوكه د محرم بالغ كيدل ضرورى دى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له دولس كالو چې كم عمر ولرى له هغه هلك سره بالاتفاق سفر جائز ندى، اوپه دولس كلن هلك كښې اختلاف دې، لهذا كه چيرته دولس كلن هلك هوښيار وى په عقلى او جسمانى لحاظ سره لكه دبالغ داسې معلوميږى نو هغه سره دسفر كولو گنجائش شته.

وقال العلامة التمرتاشى رحمه الله تعالى فى الحج: مع امن الطريق وزوج او محرم بالغ عاقل والمراهق كبالغ جوهرة (ردالمحتار ص۱۴۴ ج۲)

وقال العلامة الرافعى رحمه الله تعالى: (قول المصنف والمراهق كبالغ) جعل الرحمتى كصبى لانه يحتاج الى من يدفع عنه ولذا كان للاب معه عن جهة الاسلام يصلح لحمايتها وفى المحيطين والبدائع الذى لم يحتلم لاعبرة له لكن مافى الجوهرة لمافى الخلاصة والبزازية اهسندى (التحرير المختار ص۱۵۷ ج۱)

وقال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: وادنى مدته (اى البلوغ) له اثنتا عشرة سنة ولها تسع سنين هو المختار كما فى احكام الصغار فان راهقابان بلغ هذا السن فقالا بلغنا صدقا كان لم يكذبهما الظاهر وهما حينئذ كبالغ حكما الخ (ردالمحتار ص۹۷ ج۵) والله سبحانه وتعالى أعلم. ۲۵ ذى القعده سنه ۹۸ هـ

## اجنبى ښځې ته بنگړى ورپه لاس كول

**سوال**: دبنگړوپه لاس كول په خپله ډير مشكل وى كه تجربه كاره ښځه نه وى چې بنگړى ورپه لاس كړى آيا بنگړى خرخونكې سړې كومې ښځې ته بنگړى ورپه لاس كولى شى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: پردى سړى ته لاس وركول يا د كوم اندام دمس كولو قدرت وركول دښځې لپاره بلاضرورته شديد حرام دى اوبنگړى په لاس كول په ضرورت كښې داخل ندى. والله سبحانه وتعالى اعلم. ۶ جمادى الاولى ۱۳۸۹

## دښځی رایه ورکول او په انتخاباتو کښې شرکت

**سوال** : ښځې درائی ورکولو لپاره تلل او د پارلمان په انتخاباتو کښې برخه اخستل جائز دی که ناجایز ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دښځولپاره رایه ورکول او په انتخاباتو کښې برخه اخستل جائز ندی، دښځو لپاره کومی عهدی اوظیفه ته وړاندې کیدل گناه ده.

البته کله چی انتخابات په اسلامی اوغیر اسلامی نظریی بناوی یا یو کاندید صالح او په مقابل کښې یی فاسق وی او دښځو د رائی په نه استعمالولو کښې ددین لپاره خطر وی نو بیایی استعمالول ضروری دی.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: المرأة تقضي في غير حد وقود وان اثم المولى لها الخبر البخاری لن يفلح قوم ولوا امرهم امرأة (ردالمحتار ص٣٥٦ ج٣) والله سبحانه وتعالى اعلم. ٢٠ ذی الحجه سنه ٩٠ هـ

## له زنا څخه حاملې شوې ښځی سره صحبت جائز دې

**سوال** : دبکردښځی له زنا څخه حمل دې آیا پداسې حالت کښې بکر ته له هغی سره کوروالې جائز دې ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هو ! جائز دې او دا اولاد به دبکر بلل کیږی او ولد الزنا ورته ویل جائز ندی.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله : (قوله وله وطؤها بلا استبراء) ای عندهما وقال محمد رحمه الله تعالى لا احب له ان يطأها مالم يستبرءها هداية (وبعد سطر) بقي لو ظهر حمل يكون من الزوج لان الفراش له فلا يقال انه يكون ساقيا زرع غيره لكن هذا مالم تلده لاقل من ستة اشهر من وقت العقد (رد المحتار ص ٢٩٢ والله سبحانه وتعالى اعلم. ٢٩ ربيع الاول سنه ٩١ هـ

## دښځو لپاره دمکتب او کالج تعلیم جائز ندی

**سوال** : ښځوته د مکتب او کالج او پوهنتون دنیوی تعلیم ورکول جائز دی او که نه؟ پداسې حال کښې چی عموماً په کالجونو او پوهنتونونو کښې هلکان او نجونې گډ وډ وی او دپردې هم څه انتظام نه وی او که چیرته په کوم ځای کښې دهلکانو او نجونو بیل بیل انتظام وی او دهغوی ترمنځ اختلاط نه وی بیا یی گنجائش شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ښځی ته په موجوده کالجونو او پوهنتونو نو کښې په تعلیم ورکولو کښې ډیر مفاسد دی اگر که د هلکانو او نجونو ترمنځ اختلاط هم نه وی.

**اول** : د ښځی لپاره بغیر له ضرورت نه دباندی وتل او د پردو سړو دمائل کیدلو سبب جوړیدل

**دویم**: بی کاره او خراب ماحول ته تلل.
**دریم**: دمختلف مزاج قسم ښځو سره دمسلسل اختلاط کولو په وجه ډیری خرابی پیدا کیدل.
**څلورم**: دکالج اوپوهنتون په غیر شرعی محفلونو کښې شریك کیدل.
**پنځم**: له بی دینه ښځونه په تعلیم حاصلولو کښې دایمان او اخلاقو تباهی.
**شپږم**: دبی دینه ښځوپه مخ کښې بی حجابه راتلل ، شریعت له فاسقی ښځی نه هم دپردې حکم کړی دی.
**اووم**: بلاحجابه دسړونه دتعلیم حاصلولو گناه.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله: ولاينبغي للمراة الصالحة ان تنظر اليها المراة الفاجرة لانها تصفها عند الرجال فلا تضع جلبابها ولا خمارها كما في السراج اهـ (ردالمختار ص۲۳۸ ج۵)

**اتم**: دکافرو اوبی دینو قومونو دعادت او رواج دنقل کولو شوق.
**نهم**: ددې تعلیم په وجه دمال او جاه محبت زیاتیدل اودهغې له وجی نه ددنیا اوآخرت تباهی.
**لسم**: دخاوند دخدمت او د اولاد دتربیت نه او د کور د نگرانئ او صفایی وغیره فطری اوبنیادی ذمه واریونه غفلت کول.
**یولسم**: په دفترونو کښې وظیفه غوره کول چی ددین اودنیا دواړو دتباهی باعث دی.
**دولسم**: په سړیو باندی دمعاش ذرائع تنگول.
**دیارلسم**: په خاوند باندې حاکمه گرځیدل.

په مخلوط تعلیم کښې دپورته ذکر شویو مفاسدونه علاوه دهلکانو او نجونو ترمنځ داختلاط اوبی تکلفئ له وجی دوستی او عشق بازی ، بدکاری او اغواء، په شان مفاسد پیدا کیږی، لهذا داوسنئ زمانی په تعلیمی ادارو کښې ښځوته تعلیم ورکول جائز ندی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۶ جمادی الاخره سنه ۱۴۹۲هـ

## ښځی ته د ډاکټری (طب) دتعلیم د ورکولو حکم

**سوال**: آیا نجونو ته طبی تعلیم ورکول جائز دی؟ پداسی حال کښې چی په میډیکل کالجونو (دطب پوهنځیو) کښې په مخلوطه طریقه تعلیم رائج ده، کچیرته په کوم ځای کښې شاذ او نادر دتعلیم علیحده انتظام هم وی لیکن استاذان بیاهم نارینه وی همدارنگه دطب دتعلیم په دوران کښې دمړیو ځیرل دستجربی لپاره هم کیږی او که چیرته دطب تعلیم دښځو لپاره ناجائز وی نو په اسلامی معاشره کښې به د ښځو دعلاج څه صورت وی خصوصاً کله چی دښځو دداسې ځای دعلاج او معالجی اومعاینې ضرورت پیښ شی چه هغه له نارینه ډاکټر څخه نشی کولی دمثال په طور دماشوم پیدا کیدل او نورې ښځینه ناروغئ، د نرس په شان معمولی تعلیم هم په مخلوطه

طريقه سره کيږي، نوپه داسي حال کښې څه طريقه اختيارول پکار دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دښځې لپاره په اوسنی عصر کښې په ميډيکل کالجونو کښې تعليم حاصلول جائز ندی برابره خبره ده که دتعليم طريقه مخلوطه وی او که غير مخلوطه، ځکه په دواړو صورتونو کښې ښوونکی نارينه وی دښځو لپاره دطبی تعليم صحيح صورت دادې چې دسړيو څخه بيل يی انتظام وشی اوښوونکی ي هم ښځينه وی.

همدارنګه دمړو څيرل هم حرام دی، دمشق کولو لپاره دانسانی جسمونه پرځای دحيواناتو د جسمونه څخه کاراخستل پکار دی.

په اسلامی ملکونو کښې دمسلمانو ښځينه ډاکټرانو شمير دومره زيات دې چې دنجونو دعليحده طبی کالجونو او شفاخانو انتظام په آسانئ سره کيدې شی. والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۱ صفر سنه ۱۴۰۰ھ

## ښځی ته ليک اوخط ورزده کول

**سوال** : آيا دښځې لپاره خط اوکتابت زده کول او نور نجونو ته ښودل جائز دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دضرورت موافق ليکل اوښودل يی جائز دی، البته که دعلاماتو او قرائنو څخه د کومې ښځی دطبيعت نه شرخرګنديږی او دفتنی انديښنه وی نو جائز ندی.

اخرج الامام البخاری رحمه الله تعالی عن عائشه بنت طلحة قالت قلت لعائشه رضی الله تعالی عنها وانا فی حجرها وكان الناس ياتونها من كل مصر فكان الشيوخ ينتابون لمكانی منها وكان الشباب يتاخونی فيهدون الی ويكتبون الی من الامصار فاقول لعائشه رضی الله عنها يا خالة هذا كتاب فلان اوهديته فتقول لی عائشه رضی الله عنها ای بنية فاجيبی واثيبی فان لم يكن عندك ثواب اعطيتك فقالت تعطيني (الادب المفرد ص۵۴۰ ج۲)

واخرج الامام ابوداود رحمه الله تعالی عن الشفاء بنت عبدالله رضی الله تعالی عنهما قالت دخل علی النبی صلی الله عليه وسلم وانا عند حفصة رضی الله عنها فقال لی الا تعلمين هذه رقية النملة كما علمتيها الكتابة.

قال الملاء علی القاری رحمه الله تعالی فی شرح هذا الحديث : قال الخطاب فيه دليل علی ان تعلم النساء الكتابة غير مكروه قلت يحتمل ان يكون جائزا للسلف دون الخلف لفساد النسوان فی هذا الزمان ثم رايت قال بعضهم خصت به حفصة رضی الله عنها لان نساءه صلی الله عليه وسلم خصصن باشياء قال تعالی ينساء النبی لستن كاحد من النساء وخبر لا تعلمن الكتابة يحمل علی عامة النساء خوف الافتتان عليهن (المرقاة ص۳۶۳ ج۸)

وقال العلامة السهارنفوری رحمه الله تعالی : فيه دليل علی جواز تعلم النساء الكتابة واما حديث لا تعلموهن الكتابة فمحمول علی من يخشی فی تعليمها الفساد (بذل المجهود ص۸ ج۶) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۵ جمادی الاولی سنه ۱۴۰۰ھ

## له هیجړا (مخنث) ځخه پرده کول

**سوال** : په حدیث کښې دهیجړا ګانو ځخه دپردې کولو حکم شته، عرض دادې چې هغوی دجماع کولو قابل ندی نو له هغوی ځخه دپردې کولو حکم ولې ورکړل شوې دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دپردې سبب دجماع کولو قدرت ندې په حدیث شریف کښې دی چه د استلذاذ په غرض کتل یاخبرې آوریدل یامس بالید کول دستر ګو او غوږونو او لاس زنا ده او دا صفت په هیجړا ګانو کښې هم موجود دې او ډیر هیجړاګان داسې هم وی چې په هغوئ کښې قدرت دجماع موجود وی. والله سبحانه وتعالی اعلم غره جمادی الثانیه سنه ۹۳ھ

## له خسر ځخه دپردې کولو حکم

**سوال** : له خسر ځخه پرده کول فرض دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : نه ! البته که چیرته دفتنې خطروی نو احتیاط ضروری دې پداسې حال کښې له خسر سره خلوت او سفر جائز ندې، په بعضې علاقوکښې خسر ته دلاس ورکولو رواج دې چې دا بالکل غلط رواج دې او واجب الاصلاح دې که چیرته په شهوت سره دکوم یوه کومه عضو دبل له کوم اندام سره بغیر له حائل نه ولګی نو ښځه په خپل خاوند باندې دهمیش لپاره حرامه ګرځی، لهذا ډیر احتیاط ضروری دې.

قال العلامه ابن عابدین رحمه الله تعالی تحت قوله (والصهرة الشابة) والمسالة مفروضة هنا فی امها والعله تفيدان الحكم كذلك فى بنتها ونحوهم كما لايخفى (ردالمحتار ص۲۳۶ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۷ ربیع الاول سنه ۸۸ھ

## له زوم ځخه دپردې کولو حکم

**سوال** : له زوم ځخه پرده کول دخواښې لپاره ځنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په خواښې باندې له زوم ځخه پرده کول فرض نه دی، البته دفتنې دخوف له وجې نه احتیاط ضروری دې، خلوت اوسفر کول ورسره جائز ندی په بعضې علاقو کښې له خواښې سره مصافحه کول رواج دې چې انتهایی خطرناك عمل دې، پداسې حال کښې که چیرته کوم یوه ته شهوت راغې نو په زوم باندې دهغه ښځه دهمیش لپاره حرامیږی.

قال العلامه الحصكفى رحمه الله تعالى : والخلوة بالمحرم مباحة الا الاخت رضاعا والصهرة الشابة (رد المحتار ص۲۳۶ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۳ ذی القعده سنه ۹۴ھ

# د پردې دفرض کیدلو عمر

**سوال:** په نجلۍ باندې په څومره عمرکښې پرده فرض کیږی ؟ او هلك چې دڅومره عمرشی نو ښځوته له ورتګ څخه دی منع کړې شی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دحجاب له احکامو څخه مقصد سړی اوښځی دبدنظر او بدو خیالاتو څخه محفوظ کول دی نو دماشومانو چې په کوم عمر کښې دګناه دمبتلا کیدلو احتمال وی، نو هغوی له هماغه عمر څخه مکلف په حجاب باندی ګرځی اود پردې په سلسله کښې دداسې ماشومانو لپاره هغه حکم دې کوم چی دبالغو سړیو او ښځو لپاره وی لکه څرنګه چی په دې باره کښې دالله تعالی ارشاد دې چې ((اوالطفل الذين لم يظهروا على عورات النسآء)) یعنی کله چی په ماشوم کښې شهوت پیدا اشی نو له هغه څخه پرده کول فرض دی.

قال الامام الخازن رحمه الله تعالى: لم يبلغوا حد الشهوة والقدرة على الجماع (روح المعانى ص١٣١ ج٥)

وقال العلامه الالوسى رحمه الله تعالى: الذين لم يبلغوا حد الشهوة والقدرة على الجماع. روح المعانى ص١٣١ ج٥)

دشهوت درجې ته درسیدلو سره قدرت على الجماع هم موجودوی لکه څنګه چی داظاهره ده دعلامه آلوسی دکلام څخه. ومصرح فيما سيجيئ من نصوص الفقهاء رحمهم الله تعالى.

بالفرض که ددواړو په عمر کښې څه معمولی فرق وی نو دحجاب دحکم مدار په شهوت باندی دې په قدرت على الجماع باندی ندې، داحقیقت عقلاً اونقلاً له هر لحاظ څخه له بدهیاتو او مسلماتو نه دې چی دهغه دوه وجې دی:

**اول:** د زړه له شهوت نه دنظر او فکر مستقله ګناه کبیره ده بلکه که دبلاشهوت نظر یا تفکر نه دشهوت پیدا کیدو احتمال وی هغه هم حرام دی.

**دویم:** دمشتهی هلك نظر د آینده راتلونکې لپاره دزنا او نورو بدکاریو دمبتلاکیدلو ذریعه ده وذريعة الحرام حرام.

حضور صلى الله عليه وسلم لس کاله عمر حد دشهوت مقرر کړې دې.

عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده رضى الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم مروا اولادكم بالصلوة وهم ابناء سبع سنين واضربوهم عليها وهم ابناء عشر سنين وفرقوا بينهم فى المضاجع رواه ابوداود (مشكوة ص٥٨ ج١)

په لس کاله کښی یی دتفریق بين المضاجع حکم کړې دې ددې حکم علت احتمال دشهوت دې او په دغه عمر کښې یی په لمونځ نه کولو دضرب حکم ورکړې چی دا د لیل ددی خبرې دې چې ددې عمر لرونکی ماشومان په حکم دبالغینو کښې دی.

قال العلامه علی القاری رحمه الله تعالی: لانهم بلغوا اوقاربوا البلوغ (مرقاة ص۱۱۵ ج۲) وقال الطیبی رحمه الله تعالی لان بلوغ العشر مظنة الشهوة (مرقاة ص۱۱۶ ج۲)

دحدیث مذکور مطابق فقهاء کرامو رحمهم الله هم لس کاله عمر لرونکې هلك مراهق اومشتهی ګرځولی دي.

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: ولو مراهقا یجامع مثله وقدره شیخ الاسلام بعشر سنین.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله ولو مراهقا) هو الدانی من البلوغ نهر (قوله یجامع مثله) تفسیر للمراهق ذکره فی الجامع وقیل هو الذی تتحرك آلته ویشتهی النساء کذا فی الفتح ولا یخفی انه لا تنافی بین القولین نهر. (ردالمحتار ص۵۳۸ ج۳)

**سوال**: په درمختار کښې یې له اشباه نه نقل کړی دی: یدخل علی النساء الی خمسة عشر سنة حسب.

**جواب**: دحدیثو او فقهی دپورتنی تصریحاتو په نظر کښې نیولو سره ددې مطلب دادې که چیرته باوجود دپنځلس کالو شهوت ظاهر نشی بیاهم په دغه عمر کښې پرده کول فرض دی.

د نجلۍ په باره کښې دعائشی صدیقی رضی الله عنها دحدیث او نورو دلائلو او تجربوله مخې دفقهاؤ حضراتو دافیصله ده چې هغه دنهوکلونو په عمر کښې مشتهاة ګرځی، لهذا دنهو کلونو په نجلۍ باندې پرده کول فرض دی، د عائشې صدیقې دحدیث او نورو فقهاء کرامو دنصوصو مطابق نجلۍ په نهو کلونو کښې بالغه کیدلې شی نو په دغه عمر کښې مشتهاة اومراهقه خو په طریقه اولی سره کیدې شی. له دی کبله فقهاء کرام دنهو کلونو نجلۍ بالاتفاق مشتهاة ګرځولی ده.

قال العلامه الحصکفی رحمه الله تعالی: وقدر بتسع وبه یفتی وبنت احدی عشرة مشتهاة اتفاقا زیلعی.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: بل فی محرمات المنح وبنت تسع فصاعدا مشتهاة اتفاقا سائحانی (ردالمحتار ص۶۴۰ ج۲)

دپورته ذکر شویو روایات د احادیثو او دفقهاو له اقوالو نه داخبره متحققه شوه چې دنهو کلونو نجلۍ او دلسو کلونو هلك دحجاب داحکامو مکلف دی که چیرته هغوئ خپله کوتاهی وکړی نو په اولیاؤ باندی فرض دی چې په هغوئ باندی دا احکام عملی کړي. دنشو ونما او چاپیریال په نظرکښې نیولوسره دهلك او نجلۍ دپردې په عمر کښې څه کمې او زیاتې کیدلې شی والله سبحانه وتعالی اعلم. ۴رمضان سنه ۱۳۹۶هـ

## ښځوته بغیر له پردې نه وعظ کول جائز ندی

**سوال**: یومولوی صاحب په روژی کښی له اته بجو څخه تر یوولسو بجو پورې په یوه چار

دیوالی کښې چې هلته دچاتلل را تلل نشته بغیر له پردې ښځوته وعظ کوی چې پدې کښې دګلی خوانانې اوسپین سری ښځې په کافی تعداد کښې شرکت کوی، څوکسانو له دې څخه منع کوله نو مولوی صاحب په جواب کښې ورته وویل چې دا ښځې هسی هم مونږ ته دتعویذ اونورو معاملاتو لپاره راځی نو ددین دخبرو دبیانولو لپاره که هغوئ راشی نه په دې کښې څه حرج دی؟ کچیری زه له پردې څخه ورته خبره کوم نه هیڅ ښځه هم آوریدلوته نه راځی، آیا دشریعت له مخې دمولوی صاحب دا عمل جائز دې ؟او د داسی مولوی صاحب امامت جائز دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : داسې دلیل نیول ښکاره باطل دی او دا کار حرام دې، په مولوي صاحب باندی ددې شیطانی حیلو پریښودل اود دې ناکاره عمل څخه توبه کول فرض دی، که توبه نه کوی نو دداسې فاسق سړی امام جوړول جائز ندی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۷ذی الحجة سنـــ ۱۴۹۶هـــ

## له اوښی (دخور له میړه) څخه پرده کول فرض دی

**سوال** : زیدوایی چه له بکر څخه دهغه په سکه ښینه باندی پرده فرض ده بکروائی چې تر څوپوری زما ښځه ژوندئ وی نو زما دخپلی ښینی سره نکاح خرامه ده اوله کومی ښځی سره چې نکاح کول حرام وی له هغې څخه پرده هم نه وی، مهربانی وکړئ شرعی مسئله راته ولیکئ او مونږ ممنون وګرځوی ؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د خور له میړه څخه پرده کول فرض دی، کومې ښځی چې دهمیش لپاره حرامې وی په هغو باندی پرده کول نشته، ښینه دهمیشه لپاره حرامه نده بلکه دهغې حرمت دعارض له وجې نه دې، کچیرته دبکرښځه مړه شی یا بکر هغی ته طلاق ورکړی نو دعدت له تیریدلو وروسته دهغه له دې ښینی سره نکاح جائزده، داسې عارضی حرمت خوله هری واده شوی ښځی سره دې، څوپوری چې دهغې خاوند ژوندی وی دانښځه ددنیا هیڅ سړی ته حلاله نه ده په ټولوباندی حرامه ده که چیرته دعارضی حرمت له وجی دپردې حکم ساقط شی نو په واده شوې ښځه باندې به له هیچا څخه پرده فرض نشی ، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۱صفر سنـــ ۱۴۹۹ هـــ

## له پردئ (غیر محرمې) ښځی سره خبری کول

**سوال** : دنن سبا ښځې خو پرده هسی هم نکوی له هغوئ سره کله کله دلاچارئ له وجې کار پیښیږی انسان یواځی بالکل نشی اوسیدلې له هغوی سره کله کله دخبرو کولو نوبت هم راځی داسی هم کیږی چې بعضې ښځې مثلا لکه ښینه وغیره ټوکې اومزاح هم کوی، پداسې صورت کښې که کومه ښځه خبرې وکړی یا ټوکه و کړی، نو جواب به ورکول کیږی اوکه نه؟بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: غير محرمو ښځوسره په قدر دضرورت خبري کول جائز دی بلاضروته جائز ندی، دخندلویا ټوکوکولو یا دهغې دجواب ورکولو هیڅ ګنجائش نشته دا سخته ګناه ده بغیر له ضرورت نه کتل هم ندی جائز، حتی الامکان دنظر حفاظت هم ضروری دې، پداسې چاپیر یال کښې که چیرته دخبرو ضرورت پیښ شی نو هغوئ ته دشرعی پردې کولو ترغیب ورکول او دقرآن او حدیث احکام ورته بیانول په کار دی.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وفى الشرنبلالية معزيا للجوهر ولايكلم الاجنبية الاعجوز اعطست اوسلمت فيشمتها ويرد السلام عليها والالا وبه بان ان لفظه لا فى نقل القهستانى ويكلمها بما لايحتاج اليه زائدة فتنبه

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله زائدة) ببعده قوله فى القنية رامزا ويجوز الكلام المباح مع امراة اجنبية اه وفى المجتبى رامزا وفى الخوض فى ما لايعنيه انما ذلك فى كلام فيه اثم اه فالظاهر انه قول اخر اومحمول على العجوز تأمل وتقدم فى شروط الصلوة ان صوت المراة عورة على الراجح ومر الكلام فيه فراجعه (رد المحتار صـ۲۳۶ جـ۵)

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى فى شروط الصلوة: والحرة ولوخنثى جميع بدنها حتى شعرها النازل فى الاصح خلا الاوجه والكفين فظهر الكف عورة على المذهب والقدمين على المعتمد وصوتها على الراجح وذراعيه على المرجوح.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وصوتها) معطوف على المستثنى يعنى انه ليس بعورة ح (قوله على الراجح) عبارة البحر عن الحلية انه الاشبه وفى النهر وهو الذى ينبغى اعتماده ومقابله ما فى النوازل نغمة المراة عورة وتعلمها القران من المراة احب قال عليه الصلوة والسلام التسبيح للرجال والتصفيق للنساء فلايحسن ان يسمعها الرجل اه وفى الكافى ولاتلبى جهرا لان صوتها عورة ومشى عليه فى المحيط فى باب الاذان بحر قال فى الفتح وعلى هذا لوقيل اذا جهرت بالقراءة فى الصلوة لاعلام الامام بسهوه الى التصفيق اه فاقره البرهان الحلبى فى شرح المنية الكبير وكذا فى الامداد ثم نقل عن خط العلامة المقدسى ذكر الامام ابوالعباس القرطبى فى كتابة فى السماع ولايظن من لافطنة عنده انا اذا قلنا صوت المراة عورة انا نريد بذلك كلامها لان ذلك ليس بصحيح فانا نجيز الكلام مع النساء للاجانب ومحاورتهن عند الحاجة الى ذلك ولانجيز لهن رفع اصواتهن ولاتمطيطها ولاتليينها وتقطيعها لما فى ذلك من استمالة الرجال اليهن وتحريك الشهوات منهن ومن هذا لم يجز ان تؤذن المراة اه قلت ويشير الى هذا تعبير النوازل بالنغمة (رد المحتار صـ۲۷۲ جـ۱) والله سبحانه

وتعالی اعلم.

۱۷ ذی الحجة سنــ۹۹ھــ

## غیر محرم سړی ته سلام کول

**سوال** : دښځې لپاره غیرمحرم سړی ته سلام کول یادهغه دسلام جواب ورکول جائز دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : اجنبی سړی او ښځی ته یوپربل سلام اچول یادسلام جواب ورکول جائز ندی که څوك سلام وکړی نو بل دې په زړه کښې جواب ورکړی نه په خوله، البته که دکوم ضرورت له وجی دخبروکولو نوبت راشی نو دسلام کولو او دسلام دجواب ورکولو گنجائش شته.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وفي الشرنبلالية معزيا للجوهرة ولا يكلم الاجنبية الا عجوزا عطست اوسلمت فيشمتها ويرد السلام عليها والا لا انتهى.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : (قوله والا لا) اى والا تكن عجوز ابل شابة لا يشمتها ولا يرد السلام بلسانه قال في الخانية وكذا الرجل مع المراءة اذا التقيا يسلم الرجل اولا واذا سلمت المراة الاجنبية على رجل ان كانت عجوزا رد الرجل عليها السلام بلسانه بصوت تسمع وان كانت شابة رد عليها في نفسه وكذا الرجل اذا سلم على امراة اجنبية فالجواب فيه على الكعس اهـ وفي الذخيرة واذا عطس فشمتته المراة فان عجوزا رد عليها والا رد في نفسه اهـ كذا لو عطست هي كما في الخلاصة (رد المحتار ص۲۳٦ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۰ ذی الحجة سنه ۹۹ هــ

## د هوائی جهاز ((طیارې)) له ښځینه عملې سره دخبروکولو حکم

**سوال** : په طیاره کښې دخوراك او څښاك وغیره لپاره د طیارو له ښځینه کارکوونکو سره خبرې کول جائز دی او که نا جائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په طیاره کښې ډوډۍ او چای وغیره په خپل مقرر وخت دعملې له طرفه رسول کیږی، دطلب کولو لپاره ضرورت نه پیښیږی سره له دې که بیاهم ضرورت وی له ښځینه عملې سره په قدر دضرورت خبری کول جائز دی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۵ذوالحجه سنــ ۱۴۹۹ هــ

## دعلاج په غرض دښځی شرمگاه ته کتل

**سوال** : دنارینه ډاکتر لپاره دعلاج په غرض دښځی په شرمگاه کښی لاس دننه کول یاکتل جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د داسې ضرورت په موقع حتى الامكان له مسلمانې ډاكټرې سره رابطه كول لازم دي كه چيرته په دغه وقت كښې ښځينه ډاكټره پيدا نشي او ضرورت هم شديد وي نو نارينه ډاكټر ته هم جائز دي . والله سبحانه وتعالى اعلم ۲۰ ذالحجه ۹۹هـ

## له غير محرم سړي نه تجويد زده كول

**سوال** : ښځې په عام طور په ماشوم والي كښې دچا ماهر سړي نه قرآن نه زده كوي لدې كبله په قرآن ويلو كښې كافي غلطي كوي آيا دبالغ كيدونه يا دواده كيدونه وروسته د پردې په اهتمام كولو سره دغير محرم نه تجويد زده كولې شي؟ همداراز كه خپله په قدر دضرورت سره دتصحيح د الفاظو قرآن لولي ليكن ماشومانو ته دتعليم وركولو لپاره زيات مشق ته ضرورت وي كچرته تجويد زده كړي او په تجويد سره يي بل ته ښوونه كوي نو د آينده نسل فائده به وي آيا د دې مقصد لپاره له غير محرم نه تجويد زده كول اوقرآن لوستل او مشق كول جائز دي اوكه ناجائز ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په دې كښې لاندې مفاسد دي :

**اول** : داستاذ اوشاګرد لفظ په لفظ بلكه حرف په حرف تر ډيره وخته يو تربله تكرارول او يو بل ته خاص مراجعه كول.

**دويم** : ديوبل آواز تر ډيره وخته آوريدل .

**دريم** : په تجويد سره قرائت كولو كښې كشش او جاذبيت .

**څلورم** : له دواړو جانبو څخه دشخصيت متعين كيدل .

**پنځم** : دمذكوره محركاتو روزانه تر ډيره وخته مسلسل قائمول. لهذا دا طريقه جائزه نده بالخصوص چې ددې ضرورت پوره كولو لپاره لاندې صورتونه موجود وي .

**اول** : له محرمو سړو څخه لوستل.

**دويم** : وړې نجونه دې زده كړي او نورو ښځوته دې ورزده كړي .

قال العلامة الملا علي القاري رحمه الله تعالى: ورفع الصوت بها الشهادة الارض والحجر والمدر والشجر له الا المراة فان صوتها عورة فيجب صونها.

وقال العلامة حسين بن محمد سعيد المكي الحنفي رحمه الله تعالى (قوله فان صوتها عورة) هذا ضعيف قال في الدر المختار عند قول المتن ولا تلبي جهرا بل تسمع نفسها دفعا للفتنة وما قيل ان صوتها عورة ضعيف (ارشاد الساري ص۶۳) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۰ ذى القعدة سنه ۴۰۰هـ

## د اوښې ((دښځې د وروړ)) له ښځې سره دخبرو كولو حكم

**سوال** : زيد وائي چې كه بكر چيرته له لرې ځاى څخه، دخپل اوښې كورته ورشي اتفاقاً هغه خپل

کار ته یا مزدوری ته تللی وی نو دبکر د اوښی ښځه له بکرسره نه بوښتنه کولی شی، نه په مهمان خانه کښې دناستی ورته ویلی شی، نه دچای او خوراك لپاره ورسره خبرې کولې شی. که خاوندیې موجود وی، هم داسی نشی کولی خو بکر وایی که چیرته همداسې وی نوبیا خو هیڅوك هم دچاکور ته نشی ورتلې، له داسی کولو سره خود صله رحمی دقطع کیدلو خطره ده چی هغه یوشدید جرم دی، دلته زمونږ په برصغیر کښې خو ما حول هم دومره خراب ندې، دلته خو له قریبی رشته دارانو سره دخیر خیریت دپوښتنی او دخوراك اوڅښاك دورکولو څه حرج نه بلل کیږی، لهذا مهربانی و کړئ له شرعی مسئلی څخه موخبر کړئ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دکوم محرم په موجودگی کښی د اوښی له ښځی سره دخبرو ضرورت نه وی، لهذا جائز ندی البته که محرم موجود نه وی نو دپردې له شا یی په مهمانخانه کښې کینولې شی او خوراك او څښاك هم ورته له پردې اخوا ورکولې شی، دپردې باید پوره اهتمام وکړی اوپه قدر دضرورت دې په خبرو اکتفاء وکړی، په لهجه کښې دې تکلف اوسختی پیداکړی، که دهغه دبیا بیا راتګ اندیښنه وی نو د پرې شاته یی هم کینول ندی جائز.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله اوبحائل) قال فی القنیة سکن رجل فی بیت من دار وامراة فی بیت اخر منها ولکل واحد غلق علی حدة لکن باب الدار واحد لایکره مالم یجمعهما بیت اهـ ورمزله ثلثة رموز ثم رمزالی کتاب اخر هی خلوة فلاتحل ثم رمز ولو طلقها بائنا ولیس الابیت واحد یجعل بینهما سترة لانه لولا السترة تقع الخلوة بینه وبین الاجنبیة ولیس معها محرم فهذا یدل علی صحة ماقالوه اهـ لان البیتین من دار واحد کالسترة بل اولی وماذکره من الاکتفاء بالسترة مشروط بما اذا لم یکن الزوج فاسقا اذلو کان فاسقا یحال بینهما بامراة ثقة تقدر علی الحیلولة بینهما کماذکره فی فصل الاحداد وقد بحث صاحب البحر هناك بمثل ماقاله فی القنیة فقال یمکن ان یقال فی الاجنبیة کذلك وان لم تکن معتدته الا یوجد نقل بخلافه (رد المحتار صـ۲۳۵ جـ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۱ ذی القعده سنـ۱۴۰۰ـهـ

## دښځې له شرمګاه څخه مچو (بوسه) اخستل

**سوال** : دمحبت دغلبی او جوش له وجی دخپلی ښځی شرمګاه ښکلول جائز دی اوکه: جائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : لاس لګول جائز دی ښکلول (مچی کول) ندی جائز.

قال فی الهندیة: فی النوازل اذا ادخل الرجل ذکره فی فم امراته قد قیل یکره وقد قیل بخلافه کذا فی الذخیرة (عالمگیریة صـ۳۷۲ جـ۵)، اقول المبیح مجهول منکر وقوله مردود شرعا وعقلا والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۷ ذی الحجة سنـ۹۸ـهـ

## دښځې خاوند ديوبل شرمگاه ته دکتلوحکم

**سوال**: يوروايت له نظره تيرشوې دې، مشهوره ده چې دصحبت په وخت کښې دخپلې ښځې شرمگاه ته کتل انسان ړندوی اوروايت دادې: (وروى بقية بن مخلد وابن عدى عن ابن عباس رضى الله عنه مرفوعا اذا جامع احدكم زوجته اوجاريته فلاينظر الى فرجها فان ذالك يورث العمى قال ابن صلاح جيد الاسناد كذا فى الجامع الصغير) آيا دا روايت يا پدې مضمون باندې كوم بل صحيح سند سره روايت شته؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: فقهى بصيرة چې داسې روايات وينى ياد موضوع ياد انتهائى ضعف فتوى وركوى دكتابونه مراجعى ددى توثيق كوى قال الامام ابوالفرج ابن الجوزى فى باب النظر الى الفرج فيه عن ابن عمر وابى هريرة رضى الله عنه فاما حديث ابن عباس فانبانا اسماعيل بن السمرقندى انبانا اسمعيل بن مسعدة انبانا حمزة بن يوسف انبانا احمد عدى حدثنا ابن قتيبة حدثنا هشام بن خالد حدثنا بقية عن ابن جريج عن عطاء عن ابن عباس رضى الله عنهما قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا جامع احدكم زوجته اوجاريته فلاينظر الى فرجها فان ذلك يورث العمى.

قال ابوحاتم بن حبان: كان بقية يروى عن كذابين وثقاة ويدلس وكان له اصحاب يسقطون الضعفاء من حديثه ويسوونه فيشبه ان يكون سمع هذا من بعض الضعفاء عن ابن جريج ثم يدلس عنه وا الترف (التزق) به وهذا موضوع.

واما حديث ابى هريرة رضى الله عنه فانبانا محمد بن ناصر انبا نا المبارك بن عبدالجبار انبانا ابونصر عبدالباقى بن احمد الواعظ انبانا محمد بن جعفر بن علان انبانا ابو الفتح الازدى انبانا زكريا بن يحى المقدسى حدثنا ابراهيم بن محمد الفريابى حدثنا محمد بن عبدالرحمن التسترى عن مسعدة ابن كرام عن سعيد المقبرى عن ابى هريرة رضى الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذا جامع احدكم فلاينظر الى الفرج فانه يورث العمى ولايكثر الكلام فان يورث الخرس.

قال الازدى: ابراهيم بن محمد بن يوسف ساقط (كتاب الموضوعات ج ۲ صـ ۲۷۱) وقال الحافظ ابن عدى الجرجانى رحمه الله تعالى بعد نقل حديث يشبه ان تكون بين بقية وابن جريج بعض المجهولين او بعض الضعفاء لان بقية كثيرا ما يدخل بين نفسه وبين ابن جريج بعض الضعفاء او بعض المجهولين الا ان هشام بن خالد قال عن بقية حدثنى ابن جريج. (الكامل صـ ۷۵ جـ ۲)

وقال الامام البابرتی رحمه الله تعالی: روی عن ابی یوسف رحمه الله تعالی فی الامالی قال سالت ابا حنیفة رحمه الله تعالی عن الرجل یمس فرج امراته وتمس هی فرجه لیتحرك علیها هل تری بذلك باسا؟ قال لا، ارجوان یعظم الاجر (العنایة بهامش تکملة الفتح ص۱۰۳ ج۴)

پدی کښې که جواز دنظر صراحتا مذکور ندی مگر قیاسا ظاهر دی.

## د ښځې دتفریح لپاره ویستل

**سوال**: دښځو اونجونو لپاره سره دحجاب اغوستلو له خپل خاوندیا پلار یا بل کوم محرم سره عامو دتفریح ځایونو ته لك كلفتن ، هاكس بی ، هل پارك وغیره ته تلل شرعاً څنگه دی؟ پداسی حال کښې چې عام طور علماء کرام له شرعی ضرورت نه پرته دښځو وتل له خپلو کورونو څخه ناجائز بولی ځکه چې که څه هم ښځی خپله برقع اغوستی وی او دهغی په مخ باندی دپردو سرو نظرنه لگیږی لیکن خپله ددغو ښځو نظرونه په پردو سرو باندی پریوځی اوهغوی ته گوری آیا دتفریح لپاره تفریح گاهونو ته تلل په شرعی ضرورت کښې داخل دی؟ پداسی حال کښې چې علماء کرام په حج او عمره تللی ښځی مسجد حرام او مسجد نبوی ته دلمانځه لپاره له تللو څخه منع کوی اوپه خپلو قیامگاهونو کښې دلمونځ کولو تاکید ورباندی کوی، آیا دتفریح کولو اهمیت دهغو مسجدونو دلمونځ کولونه هم زیات دې.

نن سبا بعضې دیندار خلك له خپلی صوفیانه وضعې سره خپلې ښځې او پیغلې لوڼه له ځان سره عامو تفریح گاهونوته بیائی اوپه پارکونوکښې کښینی اوپه خوراکونو وغیره کښې مشغولیږی یعنی یوقسم ، پکنك ، لمانځی چی پدې سره دعامو خلکو په ذهن کښې ددې دجواز خیال پیداکیږی او داسې عامو تفریحی ځایونوته تلل ددین دغلط تصور پیش کولو سره مترادف معلومیږی، او دعوام الناس لپاره دا دداسې کارونو دحوصله افزائی سبب گرځی، لهذا ددې په باره کښې مفصله فتوی صادره کړئ مهربانی به مو وی. بینوتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په قرآن او حدیث کښې دپردې په باره کښې سخت تاکید راغلې او دښځو دبهر وتلوپه مفاسد کثیره باندی دنظر کولو له مخې ښځې ته دتفریح کولو لپاره له کوره بهر وتل جائز ندی که چیرته ووځی نو له هغې څخه علاوه دهغو اولیاء خاوند اونور هم سخت گناهگار دی په هغوئ تولو باندی له داسې فسق څخه توبه کول فرض دی.

داختصار په طور د دې څو دلائل او مفاسدو ملاحظه وکړئ:

**اول**: ښځې ته بلاضرورته سره دبرقع اغوستلو له کوره وتل حرام دی.

**دویم**: وقرن فی بیوتکن ولا تبرجن تبرج الجاهلیة الاولی ۳۳

**دريم** : واذا سألتموهن متاعاً فاسئلوهن من وراء حجاب ذالكم اطهر لقلوبكم وقلوبهن ٥٣،٣٣
له دې آيت نه معلومه شوه چې دسوال اوجواب دضرورت په وخت هم سره دبرقع بايد زنانه ونه وځي بلکه د حجاب له خوا دې ضرورت پوره کړي.

**عن ام سلمة رضى الله تعالى عنها انها كانت عند رسول الله صلى الله عليه وسلم وميمونة رضى الله تعالى عنها اذا اقبل ابن ام مكتوم رضى الله عنه فدخل عليه فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم احتجبا منه فقلت يارسول الله اليس هو اعمى لايبصرنا فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم افعميا وان انتما الستما تبصرانه. رواه احمد والترمذي وابوداود.**

**دريم** : دباندې په وتلو کښې يې په منکراتو او فواحشو لغړو ښځو او تصويرونو باندې په نظر پريوتو سره په زړه بد اثر پريوځي.

**څلورم** : دساز او سرود غږ يې په غوږونو پريوځي چې په زړه بد اثر کوي.

**پنځم** : دبې دينه خلکو قسم قسم آوازونه يې غوږونوته ورځي چې له هغې څخه زړه متاثر کيږي.

**شپږم** : ددې زمانې دغلبهٔ فساد په وجه له کوره دباندې هرطرفته دفسق اوفساد چاپيريال دې چې حتى فضاء هم ترينه متاثره کيږي. دانسان په زړه خو لازماً اثرکوي.

**اووم** : ښځه که پردې سره هم ووځي بياهم فساق او فجار دهغې طرفته په غورباندې ګوري او ذهغوئ ميلان ددې طرفته وي اوددې سبب دابنځه جوړه شوه چې پدې سره داهم ګناهګاره شوه لهذا قرآن اوحديث داشخاصو پرده هم ضروري ګرځولې ده چې دهغې دلائل په اول نمبر کښې په تفصيل سره تيرشول.

ذکر شوي مفاسد اګر که دسړو په وتلوسره هم پيدا کيږي مګر د سړيو او ښځو دوتلو په دوو وجوهو سره فرق دې:

**اول** : دسړي وتل ددينې او دنيوي ضرورتونو له وجې وي، لدې وجې الله تعالى دهغو حفاظت کوي او دښځې وتل دتفريح لپاره په ضرورت کښې ندې داخل.

**دويم** : دحفظ صحت لپاره هم دسړيو دباندې وتل ضروري دي دښځو وتل ددې لپاره ضروري ندي، له دې کبله چې الله تعالى مختلف قسم مخلوقات پيداکړي او دهغوی دصحت لپاره چې څه ضروري دي الله جل جلاله هغه په همدې چاپيريال کښې ورته پيداکړي دي او دهغه چاپيريال يې دهغه لپاره مناسب ګرځولې دې، بيا دمختلف قسم مخلوق په افرادو کښې هم تفاوت موجود وي.

دهر فرد طبيعت چې الله تعالى جوړکړې نو دهغه ماحول هم الله تعالى دهغه لپاره برابر کړې دې روزانه دهغې مشاهده او تجربه کيږي دکومو علماء او مشائخو لپاره چې الله تعالى دناستې لپاره د دلجمعې سره دکار کولو لپاره کوم ځای مقرر کړې دهغوي صحت په همدغه چاپيريال کښې برابر

وی که چیرته دباندې په سفر لاړشي نو ناروغ کیږی او دچا لپاره چی الله تعالی دباندې د وتلو اونورو ملکونو کښې دتبلیغ کولو لپاره اوددین دنشر او اشاعت او اصلاح لپاره کار مقدر کړی دهغوی صحت په پرله پسی سفر کښې برابر وی که چیرته په کور کښی وی نو صحت یی خرابیږی دښځو لپاره د «قرن فی بیوتکن» حکم دې لدې کبله الله تعالی هغوئ ته دکور دننه ما حول برابر کړې، کومه ښځه چی دصحت لپاره دکورنه دباندې د وتلو ضرورت محسوس کوی نودا ددې دلیل دې چی ډیرو گناهونو ددې فطرت تبدیل کړې دې، دا د دې دبی دینه کیدو علامه ده د دیندارو ښځو صحت په کور کښې دننه برابر وی، البته دصحت دلوازمونه ورزش دمسلماتونه دې او دکور دکار کولو په وجه د ښځو ورزش کیږی. د ورزش معیار دادې: اول دساه (نفس) تیزیدل، دویم خوله راتلل، دریم سترتیا محسوس کول.

که دښځې لپاره دومره کار په کور کښې نه وی نو میچن دې وگرځوی. ښځی خو د کورونو کارنکوی دهغې لپاره خادمه نیسی لدی کبله دصحت لپاره دباندې وتلو ضرورت محسوس کیږی.

قال الشیخ ابوسعید الخادمی رحمه الله تعالی: (ویمنع من الحمام) ای الزوج زوجته من الذهاب الی حمام السوق وهو المتبادر ظاهر الاطلاق مساواة الشابة وغیرها لیلا او نهارا عند فساد الزمان وامنه. (البریقة المحمودیة ص۱۱ ج۴)

وقال ایضا: لا یاذن لها بالخروج الی المجلس الذی یجتمع فیه الرجال والنساء فیه من المنکرات کالتصدیة ورفع الاصوات المختلفة واللعب من المتکلم بالقاء الکم وضرب الرجل علی المنبر والصعود والنزول عنه فکل من المذکور مکروه ولا یحضر ولا یاذن لها ولو فعل یتوب الی الله تعالی (ایضا ص۱۵)

وقال ایضا: ولا یدعها ان تخرج من الستر من البیت فانها عورة وخروجها اثم وعد فی الخلاصة من المواضع التی یضرب الزوج زوجته فیها الخروج من البیت وفی القنیة: یضرب ایضا (الی) او کشفت وجهها لغیر محرم (ایضا ص۱۵۶)

قال الشیخ حافظ الدین محمد بن محمد رحمه الله تعالی: ولا یاذن بالخروج الی المجلس الذی یجتمع فیه الرجال والنساء وفیه المنکرات الخ (البزازیة بهامش الهندیة ص۱۵۶ ج۴)

وقال ایضا: وفیما عداه من زیارة الاجانب وعیادتهم والولیمة لا وان یاذن وان اذن الزوج کانا عاصیین (ایضا ص۱۵۷)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: وحیث ابحنا لها الخروج فانما یباح بشرط عدم الزینة وتغیر الهیئة الی ما یکون داعیة لنظر الرجال والاستمالة (رد المحتار ص۶۶۵ ج۲) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲ جمادی الاولی سـ ۱۴۱۴ هـ

## دښځې يواځې كيناستل له ډريور ((موټروان)) سره

**سوال** : دجامعات اللبنات لپاره چې كوم بس ياموټر مقرر دې آيا دهغو ډريوران بغير دمحرم نه نجونې له خپلو كورونو را وستلې او بيرته بيولې شي ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : كه په موټر كښې دوه يا له دوونه زياتې نجونې وي نو ډريورته ئې وړل او را وړل جائز دي ديوى نجلۍ وړل اوراوړل جائز ندي، ځكه چې دلته خلوت بالاجنبيه لازميږى چې دسړى اوښځى دواړو لپاره حرام دې.

قال الامام القاضيخان رحمه الله تعالى : والخلوة الصحيحة ان يجتمعا فى مكان ليس هناك مانع يمنعه من الوطء حسا اوشرعا اوطبعا (الى قوله) ولو كان معهما جارية احدهما اوامراة له اخرى كان محمد رحمه الله تعالى يقول اولاجارية الرجل لاتمنع الخلوة لان له ان يجامعها بحضرة جارية او امراة له اخرى ثم رجع وقال جارية احدهما تمنع الخلوة وهو قول ابى حنيفة وابى يوسف رحمهما الله تعالى (خانية بهامش الهندية ص۳۹۶ ج۱) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۲ جمادى الثانية سـ ۱۴۱۷ هـ

## دښځې په كور كښې دلوڅ سرگرځيدلو حكم

**سوال** : دښځې په خپل كوركښې دخپلو محارمو په مخكښې لوڅ سرگرځيدل راگرځيدل جائزدى او كه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : داسې كول په ديندارو اوشريفو كورنيو كښې ډيرزيات معيوب بلل كيږى اوپه ښځوكښې دبې پردگۍ او آزادى ذريعه ده، علاوه لدې نه دخپلو محارمو ترمخ خپله سينه ظاهرول ډيره بى حيائى ده ، لهذا جائز ندى. والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۷ رجب سـ ۱۴۱۷ هـ

## دمخطوبې ليدل

**سوال** : نن سبا هلك دنجلۍ له ليدو بغير په نكاح كولو نه راضى كيږى او په ليدلويى اصرار كوى ترڅوچې په زندگى تيرولو كښې همكارى كونكې وگرځى ، نو نجلۍ ښه ځان سينگار كړې وى دمور اوپلار اوبعضى نورو اهل تعلق په موجود گى كښې يا په تنها كوټه كښې دهلك دليدلو لپاره انتظام كوى او دا دليل پيش كوى چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم خپلو بعضى صحابه كراموته دليدلو حكم كړې وو آيا دا استدلال او په دې طريقه ليدل كتل شرعا جائز دى اوكه نه ؟او كه صحيح نه وى نو د ښځو په ذريعه ليدل ښودل جائزدى اوكه نه ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : داطريقه بالكل نده جائزه دا انتهائى بى غيرتى او بى حيايى ده كه

هرڅوك د داسې صفا او واضح ليدلو مطالبه وكړي او دهغه دا بې ځايه غوښتنه پوره كړې شي نو دا خو نده معلومه چې ديوې يوې جينۍ دواده كولو لپاره به دڅومره هلكانو دليدلو نوبت ورسيږي د آس او غوا په شان كيفيت به جوړشي، هلك به راځي گوري به يې او خوښيږي به يې نه او ځې به دېې زندگى تيرولو صرف صورت سره تعلق نه وي بلكه ديني او اخلاقي تعليم اوتربيت گفت اوشنيد ناسته پاسته اودكور د كار وغيره امورو پكښې ډير دخل وي، صرف دصورت په ليدلو ددې ټولو كارونو په باره كښې صحيح رايه قائمول ډير مشكل دی. له حديث نه په دې بې حيا مروجه طريقه استدلال قائمول ناپوهي اوتحريف ددين دی.

په حديث كښې درؤيت ذكر دې نه د اراءة او دروئيت دحكم مطلب دادې چې كه هلك يې په پټه ليدل غواړي نو كولې شي په پټه ليدلو كښې هم داسې طريقه اختيارول پكاردي چه دچاوربانديء دبدنظر گمان ونه شي، په دې خبره باندې دا دلائل دي:

**اول**: په بعضي روايتونو كښې د «ان استطاع» تصريح موجوده ده.

**دويم**: خپله حضور صلى الله عليه وسلم مخطوبه دښځوپه ذريعه ليدلې ده په داسې حال كښې چې هغه مبارك دامت لپاره په منزله دپلار وو او دهيڅ قسم مفسدې قطعاً امكان نه وو.

**دريم**: ددوو صحابه كرامو حضرت جابر او حضرت محمد بن مسلمه رضي الله عنهما نه داعمل منقول دې چې هغوى به په پټه دليدلو كوښښ كولو او دصحابه كرامو عمل دحديث تشريح وي بيا خصوصاً دحضرت جابر رضي الله عنه عمل ځكه چې خپله همده ته حضور صلى الله عليه وسلم دليدلو امر كړې وو.

نجلۍ ته دخبر وركولو نه بغير دښځو په ذريعه سره ښودل جائز دي د نجلۍ دخبرولو په صورت كښې دښځوپه ذريعه سره دښودلو دالاندې قباحتونه موجود دي.

**اول**: كه چيرته نجلۍ ددیندار او حيادار قوم ځخه وي نو هغه به دشرم دوجې مرگ ته نزدې شي وبه شرميږي اوبالكل به رانشي اوكه را هم شي نه به څه وائي اونه به څه كولې شي په كونج كښې به ناسته وي نور امور خوپريږده دصورت صحيح اندازه لگول يې هم مشكل وي.

**دويم**: اوكه نجلۍ دبې دينه اوبې حياء خاندان ځخه وي نو په صورت او خبرو او كار وغيره هر څه كښې به تصنع كوي دحقيقت معلومول به يې ممكن نه وي.

كه چيرته زنانه ناځاپې ورشي نو نجلۍ به په خپل اصلي هيئت كښې وي داصلي صورت نه علاوه خبرې، رفتار او ټولو كارونو كښې به په خپل اصلي هيئت كښې په نظر راشي.

**دريم**: كه چيرته يې خوښه نه شي نو نجلۍ به احساس دكمترى و كړي اوذلت به محسوس كړي.

**څلورم**: دخپښې نه كولو په صورت كښې به ددواړو كورنيو تر منځ سخت منافرت پيدا شي بيابه ديوبل مخ كتل هم نه خوښووي

د آخری دوو صورتونو په نظر کښې نیولوسره داسې صورت اختیارول بهتر دی چی کور والوته هم معلومات ونه شی.

عن جابر بن عبدالله رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم اذا خطب احدکم المراة فان استطاع ان ینظر الی ما یدعوه الی نکاحها فلیفعل قال فخطبت جاریة فکنت اتخبا لها حتی رایت منها مادعانی الی نکاح فلیفعل قال فخطبت جاریع اتخبالها حتی رایت منها مادعانی الی نکاح وتزوجها فتزوجتها (ابوداود ص۲۹۱ ج۱)

عن سهل بن ابی حثمه قال رایت محمد بن مسلمة رضی الله تعالی عنه یطارد ثبیتة بنت الضحاك فوق اجار له ببصره طردا شدیدا فقلت اتفعل هذا وانت من اصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم فقال انی سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول اذا القی فی قلب امری خطبة امراة فلا باس ان ینظر الیها (شرح معانی الآثار ص۱۰ ج۲)

عن انس رضی الله عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم اراد ان یتزوج امراة فبعث بامراة لتنظر الیها فقال شمیها عوارضها وانظری الی عرقوبیها.

قال العلامة ظفر احمد العثمانی رحمه الله تعالی: قال العبد الضعیف وحجة الجمهور قول جابر رضی الله عنه (فخطبت جاریة فکنت اتخبا) والراوی اعرف بمعنی ماروا‌ه فدل علی انه لایجوز له ان یطلب من اولیائها ان یحضروها بین یدیه لما فی ذلك من الاستخفاف بهم ولا یجوز ارتکاف مثل ذلك لامر مباح ولاان ینظر الیها بحیث تطلع علی رویته لها من غیر اذنها لان المراة تستحی من ذلك ویثقل نظر الاجنبی الیها علی قلبها لما جبلها الله علی الغیرة وقد یفضی ذلك الی مفاسد عظیمة کما لایخلو وانما یجوز له ان یتخبا لها وینظر الیها خفیة ومثل هذا النظر یقتصر علی الوجه والکف والقدم لایعدوها الی مواضع اللحم ولا الی جمیع البدن (اعلاء السنن ص۲۸۰ ج۱۷) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۹ شوال سـ ۱۴۱۷ هـ.

## دښځوپه تبلیغی جماعت کښې وتل جائز ندی

**سوال**: دښځو په تبلیغی جماعت کښې له خپلو محارموسره درې ورځو ته یالسو ورځوته یا دکال لپاره له خپلې علاقې نه یا له خپل ملك نه نورو ملکونو ته وتل څنګه دی؟ پداسې حال کښې چی دموجوده دور حالات هم ستاسې حضراتو په مخ کښې دی که جائزوی بیا خو هیڅ حرج نشته اوکه ناجائز وی نوبیا چی څوك خپلې ښځې بیایی دهغوی په باره کښې څه حکم دې آیا هغوی ګنهګار دی اوکه نه؟ دمسئلې مکمل وضاحت مطلوب دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دښځو له خپلو کورونو نه دَباندې ایستل ډیره لویه فتنه ده لدې کبله فقهاء کرامو په هغوئ ډیره سخته پابندی لګولې ده، ددینی کارونو لپاره یې هم دښځو وتل

بالاتفاق حرام گرځولی دی.

قال العلامة الخوارزمی ناقلا عن فخر الاسلام رحمهما الله تعالی: والفتوی الیوم علی الکراهة فی الصلوات کلها لظهور الفساد ومتی کره حضور المسجد للصلوة لان یکره حضور مجالس العلم خصوصا عند هؤلاء الجهال الذین تحلوا بحلیة العلم اولی. (الکفایة مع فتح القدیر ص۳۱۸ ج۱)

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: ویکره حضورهن الجماعة ولو لجمعة وعید ووعظ مطلقا ولو عجوزا لیلا علی المذهب المفتی به لفساد الزمان واستثنی الکمال بحثا العجائز المتفانیة.

وقال الامام الطحطاوی رحمه الله تعالی: (قوله ولو لجمعة وعید ووعظ) قال فی مجموع النوازل یجوز للزوج ان یاذن لها بالخروج الی زیارة الابوین وعیادتهما وتعزیتهما او احدهما وزیارة المحارم فان کانت قابلة اوغاسلة وکان لها علی اخر حق او علیها حق تخرج بالاذن والحج علی هذا وفیما عدا ذلک من زیارة الاجانب وعیادتهم والولیمة لایاذن لها ولا تخرج ولو اذن لها وخرجت کانا عاصیین وتمنع من الحمام وان ارادت ان تخرج الی مجلس العلم بغیر رضی الزوج لیس لها ذلک فان وقعت لها نازلة ان سال الزوج من العالم واخبرها بذلک لایسعها الخروج، وان امتنع من السؤال یسعها الخروج من غیر رضی الزوج وان لم یقع لها نازلة وارادت ان تخرج لمجلس العلم لتلیم المسالة من مسائل الوضوء والصلوة ان کان الزوج یحفظ المسائل ویذکرها معها له ان یمنعها وان کان لایحفظها الاولی ان یاذن لها احیانا وان لم یاذن لها فلاشئ علیه ولایسعها الخروج مالم تقع نازلة اه (قوله ولولیلا بیان للاطلاق ایضا (قوله علی المذهب المفتی به) قد یقال هذه الفتوی التی اعتمد المتاخرون مخالفة لمذهب الامام وصاحبیه فانهم نقلوا ان الشابة تمنع مطلقا اتفاقا واما العجوز فلها حضور الجماعة عند الامام فی الظهر والعصر والجمعة فالافتاء بمنع العجائز فی الکل یخالف الکل وما فی الدر المنتقی یوافق ماهنا بحیث قال وفی الکافی وغیره اما فی زماننا فالمفتی به الکل فی الکل حتی فی الوعظ ونحوه (حاشیة الطحطاوی علی الدر ص۲۴۵ ج۱)

وقال الشمس العلماء العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالی: قال المصنف فی الکافی والفتوی الیوم علی الکراهة فی الصلوات کلها لظهور الفساد ومت کره حضور المسجد للصلوة فلان یکره حضور مجالس الوعظ خصوصا عند هؤلاء الجهال الذین تحلوا بحلیة العلماء اولی ذکره فخر الاسلام اه. (البحر الرائق ص ۳۵۸ ج۱)

وقال الحافظ العینی رحمه الله تعالی: (قال ویکره لهن حضور الجماعات ای یکره للنساء (یعنی الشواب منهن وهی جمع شابة وهذه اللفظة باطلاقها تتناول الجمع والاعیاد والکسوف والاستسقاء وعن الشافعی یباح لهن

الخروج (لما فيه) اى فى حضور الجماعة (من خوف الفتنة) عليهن من الفساد وخروجهن سبب للحرام وما يفضى الى الحرام فحرام وذكر فى كتاب الصلوة مكان الكراهة الاساءة والكراهة افحش.

قلت المراد من الكراهة التحريم ولا سيما فى هذا الزمان لفساد اهله.

(ولا بأس للعجوز ان تخرج فى الفجر والمغرب والعشاء) لحصول الامن وفى المغرب اختلاف الروايات وف المنظومة الحق المغرب بالعشاء كما ذكره المصنف والمبسوط لشمس الائمة وفى المختلف الحق العصر والمغرب بالظهر كما فى مبسوط شيخ الاسلام ويحتمل ان ذلك بناء على ان المغرب تنتشر فيه الفسقة ايضا كالعصر فى بعض البلاد قيل هذا كله فى زمانهم اما فى زماننا فيكره خروج النساء الى الجماعة لغلبة الفسق والفساد. فاذا كره خروجهن الى الجماعة فلان يكره حضورهن مجالس العلم خصوصا عند هؤلاء الجهال الذين تحلوا بحلية اهل العلم اولى (البناية ص٣٢٠ ج٢)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: واذا منع حضور الجماعة فمنعها عن حضور الوعظ والاستسقاء اولى وادخله العينى فى الجماعات وما قلناه اولى (منحة الخالق بهامش البحر ص٣٥٩ ج١)

وقال العلامة منلا مسكين رحمه الله تعالى: ومتى كره حضور المسجد للصلوة لان يكره حضورهن مجالس الوعظ خصوصا عند هؤلاء الجهال الذين تحلوا بحلية العلماء اولى ذكره فخر الاسلام.

وقال العلامة ابو السعود رحمه الله تعالى: (قوله ومتى كره حضور المسجد الخ) اى كراهة تحريمية دل على ذلك قوله فى النهر ولا يحضرن اى لا يحل لهن ان يحضرون لكن ذكر بعده عن كتاب الصلوة انه ذكر الاساءة التى هى ادون من الكراهة (فتح المعين ص٢١٥ ج١)

وقال العلامة ابوبكر بن على الحداد رحمه الله: والفتوى اليوم على الكراهة فى الصلوات كلها لظهور الفسق فى هذا الزمان ولا يباح لهن الخروج الى الجمعة عند ابى حنيفة رحمه الله تعالى كذا فى المحيط فجعلها كالظهر وفى المبسوط جعلها كالعيدين حتى انه يباح لهن الخروج اليها بالاجماع (الجوهرة ص٧٢ ج١)

وقال العلامة السهارنفورى رحمه الله تعالى: معزيا لشرح النقاية: والفتوى اليوم على الكراهة فى الصلوات كلها لظهور الفساد ومتى كره حضورهن فى المسجد للصلوة فلان يكره حضورهن فى مجالس الوعظ خصوصا عند هؤلاء الجهال الذين تحلوا بحلية العلماء اولى هكذا قال المشائخ رحمهم الله تعالى، ولو شاهدوا ما شاهدنا من حضورهن بين مجالس وعاظ زماننا متبرجات بزينتهن لانكروا كل الانكار رحم الله معاشر الابرار (بذل المجهود ص ٣١٩ ج ١)

## دذکرشویو نصوصو حاصل

دښځوله کورونو نه وتل ډیره لویه فتنه ده، له همدې کبله فقهاء کرام رحمهم الله تعالی مسجد ته دجُمعی دلمانځه او دجماعت دلمانځه او دعلم دطلب او وعظ اوریدو لپاره له کورونو څخه دښځووتل ناجائز گرځولی دی نو چی ددومره اهمو اوضروری عباداتو اوددین دضروریاتو په خاطر د لږ وخت لپاره ډیرو نزدې ځایونو ته وتل هم منع شول، نو دتبلیغ لپاره خو د ځوځوورځو بلکه دمیاشتو او چلو لپاره لرې لرې ځایونو ته تلل په طریقه اولی ناجائز کیدل پکاردی.

**فقهی بصیرت** : دفقاؤحضراتو له عباراتو مذکوره څخه ثابته شوه چی ددینی امورو لپاره دښځو د وتلو ممانعت په قرآن او حدیث کښی منصوص ندې بلکه فقهاء کرامو دخپلوزمانو دحالاتو او دفتنو اوفساد دخوریدلو په وجه دشریعت داصولو په نظر کښې نیولو سره دخپلو نظریاتو او رایو اظهار فرمایلې دې، لدې وجی نه دهغوئ حضراتو فیصله کوم نص قطعی اوحرف آخر ندې بلکه دزمانې دتغیر په بناء دترمیم امکان پکښې شته.

ددورحاضر دناپوهی غلبه اوله دین نه بی پرواهی دې اندازې ته رسیدلې ده چی دښځو د دینی ضروریاتو لپاره له وتلونه مطلقاً منع کول او دباندی وتل حرام گڼل، دهیڅ یو شرعی ضرورت لپاره د خروج اجازت نه ورکول، داقامت دین په ځای باندی هدم دین دې، له همدې کبله په مجموع النوازل کښې یې دمسائل شرعیو معلوماتو حاصلولو دضرورت لپاره دخروج اجازت ورکړې دې.

ومرنصه عن الطحاوی رحمه الله تعالی. لهذا دفقهی له نظره په دی مسئله کښې لاندې تفصیل ضروری معلومیږی.

## ددینی علم لپاره وتل

دشریعت په احکامو باندې عمل کولو کښې دتصلب او پختگی حاصلولو لپاره پداسې مدرسة البنات کښې زده کړه کول جائزدی چی دلاندی شرائطو اهتمام پکښې وی.

**اول** : ښوونکې صرف ښځینه وی، دنامحرم سړی څخه زده کړه کول جائز ندی دعدم جواز وجی په تفصیل سره راځی.

**دویم** : ښوونکې باید دژوند دورځنیو مسائلو او احکامو شرعیه په علم کښې ښه مهارت ولری.

**دریم** : په عمل کښې باثباته وی او په زده کونکیو کښې هم دعمل دثبات پیداکولو فکر لری دمعاشرې دبدعاتو او منکراتو او فواحشونه دځان ژغورنی او دنورو دژغورلو درد ورسره وی خصوصاً هغه منکرات چی عام طور په ټولنه کښې داخل شوی دی، لکه بی پردگی، تصویرونه، غیبت وغیره.

**څلورم**: دتعلیمی نصاب اوطریق تعلیم محور اومقصد صرف هغه امور وی کوم چی پورته ذکر شول، یعنی دزندګی دروزمره متعلق احکام شرعیه او دهغو علم اوپرهغو باندی عمل کولو کښې پوخوالی پیداکول، په بل عبارت باید وه وایو چې: د آخرت فکر پیداکول داصلاحی عالماتو او فاضلاتو جوړولو والا تعلیمی نصاب واجب الترك دې اودداسی القابو حاصلولو هوس واجب الترك دی.

**پنځم**: مدرسې ته ئی دمحرم راوستل او بیا دوباره بیرته بیول

په موجوده جامعات للبنات کښې داشرائط مذکوره مفقود دی

علاوه لدې نه په موجوده جامعاتو کښې دزده کړې کولو لاندی فسادات دی.

**اول**: ترمدرسو پورې روزانه تګ راتګ او دجامعې نه دخروج او دخول په وخت کښې او دتلو را تلو دلارې دمتعین کیدو په وجه ددوی تعاقب بدمعاش اوبداخلاقه خلق کوی، او کوم موټر چې ددوئ لپاره متعین شوې وی نو ډریور شرارت کوی، داخطرات ندی بلکه واقعات دی اوپه جامعه کښې دطالباتو مستقل اوسیدل تردې زیات خطرناك دی اګر که انتظامات څومره هم بهتر وی.

**دویم**: دکور دسمبالولو دصلاحیت ښخه بی برخی کیدل

**دریم**: دکور کارکول دخپل شان خلاف ګڼل

**څلورم**: دکوردکار لپاره خادمه ساتل چی هغه هم فاسقه وی ددین اوځان اوعزت اومال لپاره مهلکه ثابتیږی

**پنځم**: په کورونو کښې دفارغې ناستې له وجې نه دنفسانی او شیطانی خطراتونه علاوه دجسمانی ورزش دفقدان له وجی دقلب اوقالب دواړو صحت بربادیدل

**شپږم**: دجامعاتو نه پرفارغ شویو عالماتو اوفاضلاتوکښې دکبراو عجب مرض پیداکیدل

**اووم**: دقرآن اوحدیث نه براه راست دمسائلو دتخریج شوق لرل چی ددین دتباهی اوشیوع الحاد لپاره دملادتیرحثیت لری بلکه دفقهی دکتابونونه دغیر مفتی لپاره مسائل را ایستل جائز ندی

**اتم**: دغو عالماتو او فاضلاتوته دعلماؤ او فضلاؤ رشته نه پیداکیږی نو جهلاء اوفساق او فجار اوبی دین او ملحدین اومبتدعینو سره هم واده کوی چی پدی سره دعلم دین سخت توهین دې بلکه په حقیقت کښې ددین توهین دې

دپورتنیو حالاتوپه نظرکښې نیولو سره ددغو جامعاتو داصلاح طرفته خصوصی توجه کول دعلماؤ فرض دی، بهتره او بی ضرره طریقه داده چی نجونې په خپلو کورونو کښې وی اومقصد مذکور ته درسید لولپاره کوشش پرې وشی چی دهغې لپاره دلاندی څلوروامورواهتمام کافی دې

**اول**: تجوید القرآن الکریم

**دویم**: دبهشتی زیور دجنتی کالی تعلیم

**دریم** دکوم شیخ کامل دنصیحتونو لوستل

**څلورم** دکور دسنبالولو او دکور دکار کولو سلیقه پکښې پیداکول او په هغې عادت کول دپورته ذکرشویو کارونو په پابندی کښې به څه محنت خامخا برداشت کول وی مگر که چیرته فکر آخرت وی نو دومره محنت کول هیڅ هم ندی څکه چې ددنیا دحاصلولو لپاره ددې په نسبت په زرگونو درجو زیات محنت اوسختی برداشت کولی شی.

دنامحرمو سړیو درس ورکول په لاندې وجوهو سره ناجائزدی:

**اول** هره ورځ دنامحرم په صحبت او مجلس کښې کیناستل.

**دویم** تردیره وخته کیناستل.

**دریم** دعلمی اشکالاتو دحل کولو او دافهام اوتفهیم لپاره داستاذ او طالباتو ترمنځ بیابیا مراجعه کول

**څلورم** قرب مکانی دمجلس وعظ په نسبت زیات وی.

**پنځم** طالباتی د گوتو په شمار وی او داستاذ په نظر کښې مشخصې او معهودې وی په مجلس وعظ کښې عموماً داسی نه وی.

**شپږم** دمعتبرو ذریعو څخه دامعلومه شوې ده چې استاذ د حاضری اخستلو لپاره دهرې طالبې نوم اخلی اوهغه جواب ورکوی چې په داسې کولو سره دجانبینو ترمنځ خصوصی معرفت اوزیات تعلق پیداکیږی

## دوعظ دمجلسونو لپاره وتل

دکوم غیرمحرم عالم دوعظ مجلس ته په تللو کښې هغه مفاسد نه وی کوم چې دنامحرم استاذ ددرس په ورکولو کښې بیان شوی دی، سره لدې بیاهم ددې لپاره دا لاندې شرائط دی:

**اول** د واعظ په علم او تقوی اوطریقه اصلاح باندې دوخت دعلماو اعتمادوی.

**دویم** دبدعاتو او منکراتو او فواحشو کوم چې معاشره کښې داخل شوی دخان ساتلو زیات نه زیات زورورکوی.

**دریم** دده دوعظ دوجې نه دصحیح مسلمان دجوړیدلو او دنورو دصحیح مسلمان جوړلو فکر پیدا شی او دمعاشری نه منکرات ختم شی

**څلورم** دپردې مکمل انتظام وی، دوعظ دځای په دروازه کښې هم باید دنارینه ؤ اختلاط نه وی اوحتی الامکان باید ترینه پرهیز وشی.

**پنځم** ښځې باید چې په ښائسته لباس او ډول سنګار اوزیب اوزینت او خوشبوئی کښې رانشی

**شپږم** په هر ځل باید لباس بدل نکړی لږ ترلږه باید تر یوې میاشتی پورې په هره حاضری کښې

یی باید یوه جوړه لباس اغوستې وي.

**اووم**: دښځو دناستې ځای باید دسړیو او واعظ له مجلس څخه دومره لرې وي چې دلاسپیکر له آواز څخه بغیر دبل څه آواز هلته ونه رسیږي اوکه دامشکل وي نو څومره چې فاصله لرې وي نوښه خبره ده.

**اتم**: په هفته کښې دیوه وار څخه باید زیات نه وي، ددومره وقفې دمناسب والی په باره کښې ددین او دنیا ډیر شواهد موجود دي. دحضراتو فقهاء کرامو مطلق دحرمت دفیصلی نه دضرورت شرعیه په بناء دڅه گنجائش دتلاش کولو دکوښښ کولو باوجود دښځو تبلیغ ته دوتلو دجواز په باره کښې کوم گنجائش راونه وتلو. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۸ربیع الاول سنـــ۱۴۱۸هـــ

*****
*****

# دزینت اولباس احکام

## دسړیو لپاره منع شوې رنګ

**سوال**: دسړیو لپاره دکوم قسم رنګ نه جامې جوړل مکروه دي؟ بینوا توجروا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: په عصفرواوزعفرانو باندې رنګ شوې جامې دسړیو لپاره مکروه تحریمی دی که کوم رنګ بعینه دعصفرو یا زعفرانو په شان وي خود عصفر یا زعفران رنګ نه وي نودهغه استعمال جائز دې، دعصفراوزعفران له رنګ څخه بغیر نور ټول رنګونه جائز دی البته په احمر قانی کښې اختلاف دې دمختلفو اقوالو څخه یوقول داستحباب هم دې مګر ترجیح دکراهت تنزیهی قول ته ورکړل شوې، البته دسردپګړئ وغیره لپاره بالاتفاق بلاکراهت جائزدې.

قال فی شرح التنویر: وکره لبس المعصفر والمزعفر الاحمر والاصفر للرجال مفادہ انه لایکرہ للنساء ولاباس بسائر الوان وفی المجتبی والقهستانی وشرح النقایة لابی المکارم لاباس بلبس الثوب الاحمر ومفادہ ان الکراهة تنزیهیة لکن صرح فی التحفة بالحرمة فافادانها تحریمیة وهی المحمل عند الاطلاق قاله المصنف قلت وللشرنبلالی فیه رسالة نقل فیها ثمانیة اقوال منها انه مستحب.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله فافادانها تحریمیة هذا مسلم لولم یعارضه تصریح غیرہ بخلاف ففی جامع الفتاوی قال ابوحنیفة والشافعی ومالك رحمهم الله تعالی یجوز لبس المعصفر وقال جماعة من العلماء مکروہ بکراهة التنزیه وفی منتخب الفتاوی قال صاحب الروضة یجوز للرجال والنساء لبس الثوب الاحمر والاخضر بلاکراهة وفی الحاوی الزاهدی یکرہ للرجال لبس المعصفر والمزعفر والمورس

والمحمر ای الاحمر حریرا کان اوغیره اذا کان فی صبغه دم والا فلا ونقله عن عدة کتب وفی مجمع الفتاوی لبس الاحمر مکروه وعند البعض لایکره وقیل یکره اذا صبغ بالاحمر القانی لانه خلط بالنجس ولو صبغ بقشر الجوز عسلیا لایکره لبسه اجماعا اھ فهذه النقول مع ماذکره عن المجتبی والقهستانی وشرح ابی المکارم تعارض القول بکراهة التحریم ان لم یدع التوفیق بحمل التحریم علی المصبوغ بالنجس اونحوذلك ( قوله وللشرنبلالی فیه رسالة ) سماها (تحفة الاکمل والهمام المصدر لبیان جواز لبس الاحمر) وقدذکر فیها کثیرا من النقول منها ماقدمناه وقال لم نجد نصا قطعیا لاثبات الحرمة ووجدنا النهی عن لبسه لعلة قامت بالفاعل من التشبه بالنساء اوبالاعاجم او التکبر وبانتفاء العلة تزول الکراهة باخلاص النیة لاظهار نعمة الله تعالی وعروض الکراهة للصبغ بالنجس تزول بغسله ووجدنا نص الامام الاعظم رحمه الله تعالی علی الجواز ودلیلا قطعیا علی الاباحة نص الامام الاعظم رحمه الله تعالی علی الجواز ودلیلا قطعیا علی الاباحة وهو اطلاق الامر باخذ الزینة ووجدنا فی الصحیحین موجبة وبه تنتفی الحرمة والکراهة بل یثبت الاستحباب اقتداء بالنبی صلی الله علیه وسلم اھ ومن اراد الزیادة علی ذلك فعلیه بها. اقول ولکن جل الکتب علی الکراهة کالسراج والمحیط والاختیار والملتقی والذخیرة وغیرها وبه افتی العلامة قاسم وفی الحاوی الزاهدی ولایکره فی الراس اجماعا (رد المحتار ص۲۲۸ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۷ ربیع الاول سنه ۷۵ ھ

## دزعفرانی رنګ ازار بند حکم

**سوال**: دممنوعه رنګونو څخه مثلا دسره زعفرانی رنګ څخه ازار بند استعمالول جائز دی اوکه ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بغیر له کراهت نه جائز دی، البته که د زعفرانو او یاد عصفرو په رنګ، رنګ شوی وی نو جائز ندی، نور رنګونه اګر که دزعفرانو په شان وی جائز دی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

## دتور رنګ لباس حکم

**سوال**: آوریدل شوی دی چی دسړیو اوښځولپاره دتوررنګ لباس اغوستل ندی پکار ځکه چی درسول الله صلی الله علیه وسلم شریف توره وه نو تور لباس اغوستل دحضور صلی الله علیه وسلم په شان کښې بی ادبی ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داخیال صحیح ندي حضرت صلی الله علیه وسلم دمختلفو رنګونو لباس استعمال کړي دي سپین رنګ هغه ته ترټولو زیات خوښ وو، دپورتني خیال په بناء خوباید

هررنګ لباس ممنوع او خلاف ادب شی، له همدې کبله له ممنوع رنګونو څخه علاوه، دهر رنګ لباس جائز دي بلکه دحضور صلی الله علیه وسلم سره دمحبت او جذبه اتباع تقاضا خوداده چې حضور صلی الله علیه وسلم کوم شي خوښ کړي وی هغه غوره کړې شی، البته تور رنګ په لباس کښې چونکه شرعا اوعقلاً او طبعاً ناخوښ دې لدې وجی تور لباس ندی اغوستل پکار، خاص طور په اوسنی عصرکښې چی دا دشیعه ګانو شعار ګرځیدلی، نو لدې وجی نه لدی څخه احتراز لازم دې. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۷جمادی الاولی سنــ۱۴۸۹هــ

## دپتلون د اغوستلو حکم

**سوال**: په دور حاضرکښې پتلون اوشرټ اغوستل دومره رواج شوی دی چی دا اوس دکوم خاص قوم شعار ندې پاتې، همدارنګه په پخوانیو زمانو کښې دمسلمانانو اوغیرمسلمو په لباس کښې کومه امتیازی نښانه نه وه، داخبره ددې تقویت ورکوی چی (**من تشبه بقوم فهومنهم**) کښې چی کوم مشابهت ذکردې دلباس مشابهت پکښی ندې داخل،لدی وجی دپتلون اوشرټ اغوستل جائز معلومیږی جناب! تاسوموله خپل تحقیق څخه خبرکړئ مهربانی به مووی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نن سبا اګر که پتلون او کوټ وغیره دمسلمانانو عام رواج ګرځیدلي لیکن سره له دې بیاهم دا انګریزی لباس بلل کیږی بالفرض که تشبه بالکفار هم نه وی لیکن په تشبه بالفساق کښې خوئی څه شك نشته. لهذا له داسی لباس څخه ځان ساتل ضروری دی

داویل صحیح ندی چی په تیره زمانه کښی دمسلمانانو او غیرمسلمو په لباس کښې کوم امیتازنه وو موجود، همدارنګه که په کومه زمانه یاعلاقه کښې امتیازنه وی نو دتشبه مسئله هم نه پیداکیږی دامسئله هلته پیداکیږی چی هلته دغیرمسلمو کوم خاص لباس نه وی په احادیثو کښې دغیرمسلمو دلباس څخه صراحتاً ممانعت وارد شوې

داتفصیل دهغه لباس په باره کښې دې چه له هغه څخه دواجب الستر اعضاو جوړښت او حجم په نظر نه راځی که چیرته پتلون دومره تنګ اوچست وی چی دهغو اعضاو جوړښت او حجم په نظر راځی لکه چی نن سبا داسی پتلونونه په کثرت سره رواج دی نو دداسی پتلون اغوستل او خلقوته ښودل او ورته کتل ټول حرام دی لکه چی لغړ انسان ته کتل حرام دی.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ولا يضر التصاقه) اى بالالية مثلا وقوله وتشكله من عطف المسبب على السبب وعبارة شرح المنية اما لو كان غليظا لا يرى منه لون البشرة الا انه التصق بالعضو وتشكل بشكله فصار شكل العضو مرئيا فينبغى ان لا يمنع جواز الصلوة لحصول الستر اهـ قال ط وانظر هل يحرم النظر الى ذلك المتشكل مطلقا او حيث وجدت الشهوة اهـ قلت سنتكلم على ذلك فى كتاب الحظر والذى يظهر من

كلامهم هناك هو الاول (ردالمحتار ص۲۷۵ ج۱)

وقال ايضا: وعلى هذا لايحل النظر الى عورة غيره فوق ثوب ملتزق بها يصف حجمها فيحمل مامر على ما اذا لم يصف حجمها فليتامل (ردالمحتار ص۲۳۳ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۲ ربيع الثانى سنه ۹۸ هـ

## دسپینو زرو دتار لباس استعمالول

**سوال**: دزری دار لباس چی په هغه کښې دسپینو زرو تار لګیدلې وی د استعمالول او اغوستل څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دښځو لپاره مطلقا جائز دی ، دسړیو لپاره دوریښمو او سرو او سپینو دتارنه جوړشوې لباس وغیره په دې شرط جائز دی چی دهغه دپته یاګل پلن والې له څلورو ګوتو څخه زیات نه وی د اوږدوالی یی کوم خاص حد نشته داسی پته یاګل چی متعددوی نو دهغه په جواز کښې داشرط دې چې دهغو ترمنځ به له یوګل یاپتې څخه زیاته فاصله وی که فاصله کمه یابرابره وی چی کتونکی ته ټوله ټوټه وریښمی یازری په نظر ورځی نو جائز ندی.

اقال العلامة التمرتاشی رحمه الله: يحرم لبس الحرير ولو بحائل على المذهب اوفى الحرب على الرجل لا المراة الا قدر اربع اصابع مضمومة وكذا المنسوج بذهب يحل اذا كان هذا المقدر والالا.

وقال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: وظاهر المذهب عدم المتفرق ولوفى عمامة كما بسط فى القنية.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: تحت (قوله الا قدر اربع اصابع الخ) وهل المراد قدر الاربع اصابع طولا وعرضا بان لايزيد طول العلم وعرضه على ذلك او المراد عرضها فقط وان زاد طوله على طولها المتبادر من كلامهم الثانى ويفيده ايضا ماسياتى فى كلام الشارح عن الحاوى الزاهدى.

(قوله وظاهر المذهب عدم جمع المتفرق) اى الا اذا كان خط منه قزا وخط منه غيره بحيث يرى كله قزا فلا يجوز كما سيذكره عن الحاوى من نقوشه اربع اصابع وان زادت بالجمع مالم ير كله حريرا تامل. ردالمحتار ص۲۲۳ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲ محرم سنه ۹۵ هـ

## دمصنوعی ریښمو حکم

**سوال**: نن سبا مختلف قسم لباس رواج شوې دې چې دبعضې په باره کښې مشهوره ده چی دا وریښمی دې همدارنګه هغه دستمالونه چی عام طور داوګی اچولو لپاره استعمالیږی دهغو هم یو قسم وریښمی مشهور دې آیا د داسی رختونو په عرف کښې دوریښمی بللو او دهغه په اعتبار کولو سره دسړیو لپاره حرام بللې شی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : نن سبا عموماً مصنوعی وریښم استعمالیږی دهغې استعمال جائزدې اگر که په عرف کښې هغه ته وریښم وائی البته که دکوم لباس اصلی وریښم کیدل ثابت شی نو دسړیو لپاره یې استعمالول جائز ندی، والله تعالی اعلم۔ ۴۔ رجب سنـ۹۵ هـ

## دسړیو اوښځوپه لباس کښې له یو بل سره مشابهت کول

**سوال** : دزعفران یا عصیرخخه علاوه نور ټول رنگونه دسړیو لپاره جائزدی لیکن په بعضې علاقوکښې تور او سوررنگ دښځوشعار بلل کیږی او سپین لباس دسړیو شعار بلل کیږی آیا په دغو علاقو کښې دسړیو لپاره هغه رنگ لباس چې تر ښځو پوری مخصوص وی او دښځو لپاره هغه قسم لباس چه دهغی رنگ ترسړیو پوره خاص وی استعمالول جائزدی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** :سړیو اوښځوته دیوبل تشبه اختیارول جائزندی لهذا په دغو علاقو کښې ددی شعار رعایت ضروری دې او دیو اوبل شعار اختیارول جائز ندی، والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۷محرم سنـ۹۴ هـ

## پټکی بغیر له خولۍ نه په سرکول جائزدی

**سوال** : آیا دپټکی یا رومال نه لاندی خولی په سرکول سنت مؤکد دی اوکه غیر مؤکد او بغیر له خولۍ په پټکی کښې لمونځ کول مکروه دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که څه هم دجواز دبیان لپاره حضور صلی الله علیه وسلم دخولۍ نه بغیرهم پټکی استعمال کړې دې لیکن عام معمول دهغه مبارك دپټکی نه لاندی خولۍ استعمالول وو دسلف صالحینو او ددین دبزرگانو هم په همدی باندې عمل وو، لهذا له خولۍ نه بغیر پټکې تړل خلاف الاولی دی اومکروه ندی لمونځ کول ورسره بلا کراهیته جائز دی . والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۶ شوال سنـ ۱۳۹۷ هـ

## دواده په موقع باند دپټکی په سرکولو التزام

**سوال** : زمونږ په علاقه کښې دواده په موقع باندې دپټکی په سرکولو داسی التزام کیږی چې په نه پسرکوونکی باندی لعن طعن کولې شی او بغیر له پټکی واده کول له کونډی سره واده کولو پورې خاص دی آیاپه داسې حالاتوکښې د واده کولو په موقع پټکې تړل جائز دی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دمندوب کار دواجب په شان لازم گرځولوسره دهغه ترك کول واجب دی، لهذا دا التزام جائز ندی، والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۱محرم سنـ۱۴۰۱ هـ

## دښځې دخپل خاوندلپاره سورخی اوپوډر لگول

**سوال** : آیا ښخه دخپل میره دخوشحالولو لپاره په شونډو او مخ سرخی اوپوډر لگولی شی او

که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا کار دفهم دین اوعقل سلیم اوطبع مستقیم خلاف دې او دبې دینو خلکوشعار دې، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۷ شوال ۱۳۹۷

## دمحارمو په مخ کښې ډول اوسنګار کول

**سوال** : دښځې لپاره دخپلو محارمو لکه پلار ورونو وغیره په مخ کښې ډول اوسنګار کول اوله هغو سره کیناستل یا ورسره سفر کول جائز دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : فی نفسه جائز دی لیکن په موجوده زمانه کښې فسق غالب شوې دې دتلویزون او وی سی آر لعنت اخلاقی اقدار تر پښو لاندې کړی دی، بی حیایی او بد اخلاقی دې حدته رسیدلې ده چی پلار دخپلې لورسره او ورونو د خپلو خویندو سره دمخونو توره ولو واقعات شوی دی، لهذا دخپل خاوند نه ماسوا دبل محرم په مخ کښې هم ډول اوسنګار کول دخطرې نه خالی ندی اوله دې څخه ځان ساتل ضروری دی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۲ذوالحجه ۱۳۹۷ هـ

## دسړیو لپاره دنداسه استعمالول

**سوال** : دسړیولپاره فقط دغاښونودپاکوالی په خاطرنه په قصد د زینت سره دنداسه استعمالول څنګه ده؟ چی احتیاط هم وکړل شی چی دهغې سوروالې په شونډو ښکاره نشی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که په هغه احتیاط سره چی په سوال کښې ذکر شوې استعمال کړای شی نو جائز دی، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۵محرم۱۴۰۱

## دسړی لپاره دګوتمۍ داستعمال حکم

**سوال** : دسړی لپاره دکوم معدنی شی نه ګوتمۍ جوړول او استعمالول جائز دی اوکه نه او دکوم یونه ناجائز دی او دمقدارېې هم کوم تعین شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دسړی لپاره په دوه شرطونو ګوته (ګوتمۍ) په ګوته کول جائز دی

**اول** دسپینو زروبه وی.

**دویم** دپنځوماسو «۴،۸۶» ګرامه نه به کمه وی.

**قال العلامه التمرتاشی رحمه الله تعالی**: ولایتحلی الرجل بذهب وفضة الابخاتم ومنطقة وحلیة سیف منها ولایتختم بغیرها کحجر وذهب وحدید وصفر والعبرة بالحلقة لابالفص.

**وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی** : (قوله ولایتختم الابالفضة) هذه عبارة الامام محمد رحمه الله

تعالى في الجامع الصغير اى بخلاف المنطقة فلايكره فيها حلقة حديد ونحاس كما قدمه وهل حلية السيف كذلك يراجع قال الزيلعي رحمه الله تعالى وقد وردت آثار في جواز التختم بالفضة وكان للنبي صلى الله عليه وسلم خاتم فضة وكان في يده الكريمة حتى توفي صلى الله عليه وسلم ثم في يد ابي بكر رضي الله تعالى عنه الى ان توفي ثم في يد عمر رضي الله تعالى عنه الى ان توفي ثم في يد عثمان رضي الله عنه الى ان وقع من يده في البئر فانفق مالا عظيما في طلبه فلم يجده ووقع الخلاف فيما بينهم والتشويش من ذلك الوقت ال ان استشهد رضي الله تعالى عنه (قوله فيحرم بغيرها) لما روى الطحاوي باسناده الى عمران بن حصين وابي هريرة رضي الله عنهما قالا نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن خاتم الذهب وروى صاحب السنن باسناده الى عبدالله بن بريدة عن ابيه رضي الله تعالى عنه ان رجلا جاء الى النبي صلى الله عليه وسلم وعليه خاتم من شبه فقال له مالي اجد منك ريح الاصنام فطرحه ثم جاء وعليه خاتم من حديد فقال مالي اجد عليك حلية اهل النار فطرحه فقال يارسول الله اى شئ اتخذه قال اتخذه من ورق ولا تتمه مثقالا فعلم ان التختم بالذهب والحديد والصفر حرام فالحق اليشب بذلك لانه قد يتخذ منه الاصنام فاشبه الشبه الذى هو منصوص معلوم بالنص اتفاقي والشبه محركا النحاس الاصفر قاموس وفي الجوهرة والتختم بالحديد والصفر والنحاس والرصاص مكروه للرجال والنساء (ردالمحتار ص۲۲۹ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۹ محرم سنہ ۱۴۰۱ ھ۔

## دښځو لپاره دزيوراتو اوګوتو حکم

**سوال**: په بازار کښې چې کوم زيورات دښځو موندل کيږی هغه دمختلفو معدنی شيانو څخه جوړشوی وی آيا ښځې ته دهر قسم شی زيورات او ګوتی استعمالول جائز دی ؟ يا په ي کښې څه تفصيل شته ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دښځې لپاره علاوه له ګوتی نور هرقسم زيورات چې دهرشی څخه جوړشوی وی جائز دی او ګوتی دسرو او سپينو جايز دی که هر څومره مقداروی او دنورومعدنياتو څخه جوړشوی ګوتی ندی جائز

قال العلامه ابن عابدين رحمه الله تعالى تحت قوله فيحرم بغيرها وفي الجوهرة والتختم بالحديد والصفر والنحاس والرصاص مكروه للرجال والنساء (ردالمختار ص۲۲۹ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. « ددی نه رجوع کول په تتمه کښې ذکر شوی دی»

## دسرېولپاره دسپينواودسروزروبټنی استعمالول

**سوال**: يو عالم دسرېو لپاره دسپينو اوسروزرو دبټنو استعمال جائز بولی او دفتاوی رشيديه حواله ورکوی آيا دا خبره صحيح ده؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: جائز ندی - **قال الحصكفي رحمه الله تعالى: لا بأس بأزرار الديباج والذهب (ردالمحتار ج٥ ص٢٢٦)**

بعضې ددې عبارت نه دسروزرو دبټنو دجواز فهم کړې چی هغه صحيح ندې ځکه چی ازار غوټی ته ويلې شی بټن ته نشی ويلې غوټه دلباس تابع وی او بټن يی تابع نه وی لهذا دسرو يا دسپينو زرو د تار غوټه جائز ده او بټن بی ندی جائز . والله سبحانه وتعالى اعلم

محرم سنــ ۱۴۰۱ هــ

## ارائشگاه ته تلل اوځان سنگارول اوميک اپ کول

**سوال**: د نجونو دواده په وخت کښې يا عامو ورځوکښې بيوټی پارلر (ارائشگاه) ته تلل او ميك اپ کول جائز دی او که ناجائز؟ پداسې حال کښې چی په دغه ټول فعل کښې کوم ناجائز عمل موجودنه وی لکه وريخی جوړول يا ويښته پريکول؟ بينو اتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه جائز ندی په دې کښې لاندی فسادات موجود دی

**اول**: دکوم جائز کار لپاره بغير ضرورته وتلې دښځی له کوره داجائزندی او دافعل خپله ناجائز دی **دويم**: هلته بی دينه ښځو دصحبت اثر وی **دريم**: له بی دينه خلکو سره مشابهت **څلورم**: داصلی صورت دپټولو فريب. والله سبحانه وتعالى اعلم بالصواب

۲۴ربيع الاول سنــ ۱۴۱۷

## شرعی پرتوگ اغوستل جائز ندی

**سوال**: ډيرخلك دپتلون په شان تنگ پرتوگ اغوندی چی هغه ته شرعی پاجامه وائ آيا داسې پرتوگ واقعاً شرعی پاجامه ده؟ که چيرته وی نو دهغې حيثيت څه دی؟ سنت ، مستحب يا صرف جائزدې؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نن سبا چی کوم پرتوگ ته دشرعی پاجامی نوم ورکول کيږی هغه شرعی ندې بلکه شرې پاجامه ده چی په هغه کښې اعضاء خصوصا دعورت غليظه حجم بالکل واضح په نظر راځی اوبيا عموماً قميص هم لنډوی چی دلمانځه په وخت کښې اعضاء مخصوصه مستوره واضح طور سره خورند معلوميږی چه دهغې په وجه لمونځ مکروه تحريمی گرځی چی اعاده يی دوباره واجبه ده دلمانځه نه علاوه هم د ناستې او ولاړې په دوران کښې داعضاء

مخصوصه شکل لیدل کیږي چې دهغې کتل اوښودل دواړه حرام دي. لهذا دداسې پاجامې اغوستل جائز ندي.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: تحت قوله (وهي غير بادية) اقول مفاده ان رؤية الثوب بحيث يصف حجم العضو ممنوعة ولو كثيفا لا ترى البشرة منه قال في المغرب يقال مسست الحبلى فوجدت حجم الصبي في بطنها واحجم الثدي على نحر الجارية اذا نهز وحقيقة صار له حجم اي نتو وارتفاع ومنه قوله حتى يتبين حجم عظامها اهـ وعلى هذا لا يحل النظر الى عورة غيره فوق ثوب ملتزق بها يصف حجمها فيحمل ما مر على ما اذا لم يصف حجمها فليتامل (ردالمحتار ص۲۳۴ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۳ ذي القعده سنه ۱۴۱۷ هـ

## دناواده شوې ښځې لپاره بنګړي په لاس کول جائزدي

**سوال**: ښځه که غیرشادي شده وي نو دهغې لپاره بنګړي په لاس کول څنګه دي؟ په بعضې علاقوکښې دا دستوردې چې غیر شادي شده ښځې ته بنګړي نه ورپه لاس کوي وائي چې بیا ښځه واده شوې معلومیږي، پداسې حال کښې چې زمونږ مشران په خالي لاسونو په غوصه کیږي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بنګړي په لاس کول ښځې ته په هر حال کښې جائز دي، دځینې خلکو دهغه معیوب ګڼل او دا د واده شوې ښځې علامه ګڼل غلط دي، البته دغیرواده شوې ښځې لپاره ډیر زیب اوزینت کول دفتنې دخوف له وجې جائزندي.

عن ابي موسى الاشعري رضي الله تعالى عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال حرم لباس الحرير والذهب على ذكور امتي واحل لاناثهم (الترمذي ص۳۰۲ ج۱)

قال العلامه العثماني رحمه الله تعالى: وفيه ايضا يجوز للنساء لبس انواع الحلي كلها من الذهب والفضة والخاتم والحلقة والسوار والخلخال والطوق والعقد التعاويذ والقلائد وغيرها (اعلاء السنن ص۲۸۴ ج۱۷) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۳ شعبان سنه ۹۸ هـ

# دويښتانو احکام

## ږیره خریل او لنډول له نورو ګناهونو څخه بدترینه ګناه ده

**سوال**: زید دمحلې دمسجد امام دې ږیره قطع کوي که څوک ئې دږیرې په باره کې پوهوي نو

په خواب کښې وائی چې ډیره پریکول فسق دې او نن سبا نه نوی (۹۹) خلك سل په سلو کښې فاسق دی ډیره لږونکی هم په غیبت، دروغو وغیره گناهونو کښې مبتلاء دی، لهذا امام او مقتدیان ټول یورنگ فاسقان دی پس هیچاته هم پرما داعتراض کولو حق نشته، آیا د زید داخیال صحیح دی یانه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دزید رایه بالکل غلطه اوفریب دی که یوسړی پټه زنا کوی اوبل علانیة علی الاعلان سربازار دزنا مرتکب کیږی یا یوسړی په پټه غلاکوی اوبل برسر عام علی الاعلان لاری نیسی او خلك لوټ کوی او دحکومت بغاوت کوی نو ظاهره خبره ده چې ددواړو په گناهون کښې دځکمی او اسمان فرق دی لهذا هر سړی به دیوی درجی فاسق اوگناهگاروی لیکن دهغه دظاهر شریعت نه به مخالف نه وی او دگناه دمخفی والی له وجی نه به دډیره کمونکښې نه بدرجها کم وی ډیره کمونکښې علی الاعلان دشریعت مخالفت کوی اوپه دینا کښې دداسی شکل اوصورت سره گرځی چې له لری یی هرسړی وینی نو فاسق او دشریعت مخالف یی بولی ددی مثال داسی دی لکه څوك چې دحکومت دبغاوت جنډه اوچته کړی او سرعام په بازارکښې گرځی ددی شخص داسی ناقابل معافی جرم به حکومت هیڅ کله هم نظر انداز نکړی غرض داچی دزید ډیره کمول دنورو گناهونو سره برابر گڼل بدترین عذر دې زید دحکومت الهی اودشریعت مصطفوی علی صاحبها الصلوة والسلام دبغاوت جنډه پورته کړې ده او سرعام په بازارونو اوښارونو کښې گرځی او له لرې نه هر عام اوخاص ته ځان دشریعت باغی ظاهروی دگناه په اظهار او اخفاء کښې ډیر فرق دې نو ځکه فقهاء کرامو په رمضان کښې دعلانیه روژه خوړونکو خلکو ددین داهانت له وجی وینه تویول او قتلول جائز گڼلی دی.

دحضور صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارك دې چې دعلانیه اودښکاره گناه کوونکی نه سوا زما ټول امت لائق دعفوې دې ((کل امتی معافی الا المجاهرین)). (متفق علیه)

حضورصلی الله علیه وسلم ډیره کمول اوله گوتو څخه ټکونه ایستل او ساز اوسرود آوریدل له هغو بدو اعمالو څخه شمیر کړی چې دهغو له وجی دلوط علیه السلام قوم هلاك کړې شوې دې. ((درمنثور)).

علاوه له دې نه نورگناهونو وقتی وی مگرد ډیری کمول خلورویشت (۲۴) ساعته موجود وی دخوب اوویښې په حالت کښې حتی دلمانځه وغیره عبادتونو په حالت کښې هم دا گناه موجوده وی لدې وجی نه دډیری کمول دنورو ټولو گناهونو نه غټه گناه ده.

بیاد زید په هر سړی دغیبت اوکذب یا نورو گناهونو کښې دمبتلاء کیدلو گمان کول محض سوء ظن دې چې په خپل نفس باندې دنورو دقیاس کولو نه پیداشوې. په هر کیفیت دفاسق امامت مکروه تحریمی دې، دداسې شخص امام مقررکول ضروری دی چې ظاهر العدالة وی باطن

یی الله جل جلاله ته سپارل دی . والله سبحانه وتعالی اعلم ۷جمادی الاولی سنہ۳۷۳

## دږیری توهین کفردی

دامسئله په کتاب الایمان والعقائد جلداول کښې په تفصیل سره راغلې او زیات تفصیل یی په تتمه کښې دې

## دښځو ویښته غونډول په سرباندی

**سوال** نن سبا ښځی په مختلفو طریقو سره ویښته جوړوی بعضې ټول ویښته جمع کوی اوشاطرفته ئی غونډوئی اوبعضې یی ګومنځ کوی اوشاته ئ خوروی اوبعضې یی په خپل رخسار راپریږدی پدې کښې کوم صورت جائز اوکوم ناجائزدی؟ بینواتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دښځو ویښته جمع کول اوبیاپه سرباندی کینښودل ناجائزدی په حدیث کښې په دی پاندی وعید راغلې چی داسی زنانه به دجنت خوشبوئی هم ونه وینی لدې نه علاوه نورې طریقی جائزې دی خو پدی شرط چی دنامحرم سړی نظرپری نه لګیږی او دکفاروسره مشابهت نه وی دوېښتانو سخته پرده ده حتی چی د سپین سرو ښځو ویښته هم لیدل ندی جائز

**قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : صنفان من اهل النار لم ارهما قوم معهم سیاط کاذناب البقر یضربون بها الناس ونساء کاسیات عاریات ممیلات مائلات رؤسهن کاسنمة البخت المائلة لایدخلن الجنة ولایجدن ریحها وان ریحها لتوجد من مسیرة کذا و کذا رواه مسلم.**

د شاطرفته ویښتان تړل جائز دی بلکه په حالت دلمانځه کښې افضل دی ځکه چی پدیکښې دوېښتو په پرده کولو کښې آسانتیا وی . والله سبحانه وتعالی اعلم ۸شوال سنہ ۹۶ھ

## مصنوعی ویښته لګول

**سوال** بعضی ښځې له بازار څخه مصنوعی ویښتان اخلی اوله خپلو ویښتانو سره ئی یوځای کوی چی ویښتان ئی اوږده ښکاره شی آیا داکار جائز دې ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** که چیرته داویښته دانسان وی نو دهغو لګول ګناه کبیره ده اوپدې باندې په حدیث کښې لعنت وارد شوې دې او که دبل حیوان ویښتان وی نو جائز دی

**قال العلامه ابن عابدین رحمه الله تعالی: تحت (قوله وشعر الانسان) لایجوز الانتفاع به لحدیث لعن الله الواصلة والمستوصلة وانما یرخص فیما یتخذ من الوبر فیزید فی قرون النساء وذوائبهن هدایه (ردالمحتار صه۱۰۵ج۴)**

**والله سبحانه وتعالی اعلم.** ۱۴ربیع الاول سنہ۹۹ھ

## دښځې دمخ دويښتانو دصفا کولو حکم

**سوال**: دښځې لپاره دخپل مخ دويښتانو صفا کول جائز دی که نه؟ په حديث کښې په نامصه اوممتنعه باندې لعنت واردشوې. ددې نه څه مراد دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**  دښځې لپاره دخپل مخ ويښتان صفا کول جائز دی که چيرته يې ږيره يا بريت راشی نو دهغو لرې کول مستحب دی دنامصه او متنعه دلعنت مورد دادې چې دوريځو ويښتان وباسل شی او يوه نری ليکه پريښودل شی لکه چی دلالت کوی پدی باندی تعليل بتغير خلق الله که چيرته وريځې ډيرې پلنې وی نو دهغوبرابرول او عام حالت ته راوستل جائزدی غرض داچی تزئين مستحب دې او دعيب دلرې کولو استحباب نسبتاً زيات مؤکد دې او تلبيس او تغير دخلق الله ناجائز دې.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله والنامصة الخ) فى الاختيار ايضا وفى المغرب النمص نتف الشعر ومنه المنماص المنقاش اهـ ولعله محمول على ما اذا فعلته لتتزين للاجانب والا فلو كان فى وجهها شعر ينفر زوجها عنها بسببه ففى تحريم ازالته بعد لان الزينة للنساء مطلق للتحصين الا ان يحمل على ما لا ضرورة اليه لما فى نتفه بالمنماص من الايذاء وفى تبيين المحارم ازالة الشعر من الوجه حرام الا اذا نبت للمراءة لحية اوشوارب فلا تحرم ازالته بل تستحب اهـ وفى التتارخانية عن المضمرات ولا باس باخذ الحاجبين وشعر وجهه مالم يشبه المخنث ومثله فى المجتبى تأمل (رد المحتار ص۲۳۹ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۳ ربيع الاول سنـــ۱۴۰۲ھـ

## دغاړې دويښتانو دخرييلو حکم

**سوال**: دغاړې ويښتان خريىل جائز دی که ناجائز؟ په امداد الفتاوی ص ۳۱۳ ج ۴ کښې دی چی دغاړې دويښتانو خريىلوته فقهاء کرام مکروه ويلی دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**  په عالمگيری کښې دقفا دويښتانو خريىل مکروه نقل شوی دی.

((عن ابى حنيفه رحمه الله تعالى يكره ان يحلق قفاه الا عند الحجامة)) كذا فى الينابيع عالمگری ص۳۵۷ ج۵.

په امداد الفتاوی کښې غالبا ددې عبارت قفا په معنی دگردن اخيستی او حکم يې لګولې دې، حقيقت دادې چی قفا ويل کيږی موخر الراس ته او په مؤخر العنق کښې هم استعماليږی څټ دسر حصه ده او غاړه مستقله عضوه ده خپله په امداد الفتاوی ج اول ص۱۳ کښې دمسح گردن په بيان کښې ليکل شوی چی څټ دقفا د سرحصه ده او رقبه (غاړه) دهغه څخه خارجه ده، لهذا دڅټ خريىل چه قزع کښې دداخليدو په وجه مکروه دی ليکن دغاړې (حلق) دکراهيت کومه وجه ظاهره

نده، حضرت گنگوهی رحمه الله فرمائی چې غاړه بیله عضوه ده اوسر جدا، لهذا دغاړې وېښته خریيل صحیح دی او دسر جوړښت علیحده دغوړونو دنرمیو ترشا معلومیږي، او دهغه نه لاندې غاړه ده، فتاوی رشیدیه ص ۴۶۷ لدی څخه معلومیږي چی په عالمگیری کښې قفا په معنا دځټ ده، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۴صفحه سنه ۱۳۹۹هـ

## دږيرې د راپيدا کولو لپاره دماشين چاړه ((بليډ)) استعمالول

**سوال**: یوسړې د درویشتوکالو دې مگر دهغه تراوسه ږیره اوبریت ندی راغلی آیاهغه ددې احتمال په بناء چی شاید ږیره مې راشی د ماشین چاړه استعمالولې شی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ددې ضرورت لپاره دماشین چاړې استعمالول جائز دی، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۳رجب سنه ۱۳۹۹هـ

## دنامه نه دلاندی ځای دحلق ((خريیلو)) حدود

**سوال**: دنوم نه لاندی ویښته ترکوم ځای پوری صفا کول پکاردی ؟ آیا له نوم څخه ترځنگون پوری ؟ اوهمدارنگه د دبر یعنی د دواړه ورنونو ترمنځ چی کوم ژور ځای دی دهغه دوېښتانو صفا کول مشکل دی او دپریکیدو خطره وی آیا ددبردوېښتانو صفائی هم ضروری ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دعانې حد دمشانی نه لاندی چی کوم هډوکې دې ددې نه شروع کیږی چی په دې باندې دا لاندې دلائیل موجود دی.

**اول**: شرمگاه چی په کومه حصه کښې ده دهغې هډوکې دلته ختمیږی.

**دويم**: دیومخصوص نوعیت گڼو وېښتانو ابتداء له همدې ځای څخه وی.

**دريم**: دستر په بیان کښې چی ((الخط المار بالسرة المحيط بجوانب البدن)) نه ترعانې پورې دا یوه عضوه شمیرل کیږی، ددې نه معلومیږی چی دعانی او سرة (نوم) په مینځ کښې یوه عضوه فاصله موجوده ده اوله سره (نامه) نه بیاد کناتیو ترهډوکی پورې یو نوعیت دې لهذا دا عضو فاصل دکناتیوتر هډوکی پورې ده اوله هغه هډوکښې څخه بیا عانه شروع ده.

**څلورم**: دفقهی په کوم کتاب کښې له نظره تیر شوی چی دخط تحت السرة نه عانه ده اوس مو هغه جزئیه پیدا نشوه کړای ممکنه ده چی دستر په بیان کښې تحت الخط الماربالسره نه اشتباه شوې وی، په هر حال دکناتیو دهډوکښې په شروع کښې هم یوخط شته چه دعانه حد دې.

**پنځم**: دشامی د آینده عبارت الشعر القريب۔ الخ نه هم دا ثابتیږی چی د عانې ابتداء دنوم سره متصل نده نو دکناتیو دهډوکی نه واخله اعضاء ثلاثه او دهغو شاوخوا (گیرچاپیره) اودهغو محاذاة دورنونو هغه حصه چی دتلوث خطروی او ددبر وېښتان صفاکول واجب دی، ددبر دوېښتانو صفائی طحطاوی رحمه الله مستحب لیکلې ده مگر علامه ابن عابدین رحمه الله دهغې

حکم هم دعانې په شان بلکه دهغې نه هم زیات مؤکد لیکلې دہس.

قال الطحطاوی رحمه الله تعالیٰ: العانة هی الشعر الذی فوق الذکر وحوالیه وحوالی فرجها ویستحب ازالة شعر الدبر خوفا من ان یعلق شیٔ من النجاسة الخارجة فلا یتمکن من ازالته بالاستجمار (طحطاوی علی المراقی ص۲۸۰)

وقال ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ فی فصل فی الاحرام والعانة الشعر القریب من فرج الرجل والمرأة ومثلها شعر الدبر بل هو اولیٰ بالازالة لئلا یتعلق به شیٔ من الخارج عند الاستنجاء بالحجر (ردالمحتار ص۴۸۱ ج۲)

والله سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۲۴ محرم سنه ۱۴۰۱هـ

## دنوم نه د لاندې ویښتانو دصفائی لپاره دپوډر استعمال

**سوال**: دنوم دلاندې ویښتانو دصفائی مستحب طریقه کومه ده؟ په قیچی پریکول یا خرییل یا له بیخه ویستل او په اوسنۍ زمانه کښې چې کوم کریم یا پوډر استعمالیږی دهغې استعمال دشریعت له مخې څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دسړیو لپاره په چاړه وغیره خرییل او دښځو لپاره له بیخه ویستل مستحب دی، دکریم اوپوډر استعمال هم جائز دې.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ تحت (قوله ویستحب حلق عانة) قال فی الهندیة ویبتدء من تحت السر فلو عالج بالنورة یجوز کذا فی الغرائب وفی الاشباه والسنة فی عانة المرأة النتف (ردالمحتار ۲۶۱ ج۵)

## دسر دویښتانو دجائز او ناجائز صورتونو تفصیل

**سوال**: یو ځودوستانو یو انجمن (ټولنه) جوړکړې دې ددې انجمن لاندی څوتعلیمی ادارې چلیږی دمستحقو طلباء رعایت هم کیږی، دې ادارې دښومسلمانانو دپیدا کولو عزم کړې دې لکه څنګه چې ددې اداری داهتمام لاندی پر چیلدونکو مکتبونو اوکالجونو کښې دقرآن کریم ناظره ښودل دینی معلومات دقرآن کریم ترجمه دحدیثو دعاګانی او ریاض الصالحین او دعربی ژبې صرف او نحو هم ویل کیږی چې ددې لپاره ددینی مدرسو دعالمانو اومستندو پوهانو خدمات هم حاصل دی.

دویمه خبره داده چې دداسې سړی مقرر کول اوپه کارګمارل هم منع دی څوک چې ددین اسلامی دوضع قطع خلاف وی یا هغه دکومې ظاهری ګناه عادی وی یا لمونځ نه کوی وغیره وغیره په دې سلسله کښې انجمن (ټولنه) په خپلو قواعدو باندې په سختی سره پابندی کوی ترڅوپه ټول چاپیریال باندې دینی رنګ غالب شي

زدکونکوته هم دوعظ اوتقریر په ذریعه ترغیب ورکول کیږی چې دښتو پابند اووسیږی او په

شريعت كښې چې كوم كارونه منع دي له هغو څخه ځان وساتي
اوس دانجمن په انتظاميه او مدرسينو كښې اختلاف پيداشوې د اختلاف قصه داده چې انتظاميه وائي چې دنورو ملازمينو په شان استاذان هم بايد خپله وضع قطع په دين برابره كړي چې په هغو كښې دسنت مطابق ږيره دسر ويښتان اولباس ته دمظهرخارجي دوجې نه اوليت حاصل دې اختلافي نقطه داده چې بعضې مدرسين «دانتظاميې په قول» انګريزي ويښتان ساتي اوپر دې اصرار هم كوي، مشكل دادې چې داهغه مدرسين دي چې عالم اوفاضل دي لدې وجې نه انتظاميه پخپل موقف ورپيژندلو كښې مشكلات محسوسوي چې داخلك خپله ځانونه حاكمان بولي.
داحضرات فرمائي كه چيرته داخبره داسې وي نو مونږ په ديني مدرسو كښې په كلونو درسونه ويلي دي او زمونږ دويښتانو داحال وو نو زمونږ بزرګانو مشرانو مونږ ولې نه منع كولو ؟ لدې څخه معلوميږي چې دادومره ضروري خبره نده.
اوكله وائي چې زمونږ ويښتان انګريزي ندي بلكه مونږ په قيچي برابر كړي دي اوكله وائي چې پدې كارونو كښې اتباع ضروري نده ځكه چې دا عادتي سنت دي.
اوس دډيري بحث او مباحثې څخه وروسته داطې شوه چې ستاسو څخه فتوى وغواړو لهذا تاسو دمهرباني له مخې دلاندې سوالونو ځوابونه راكړئ كه تاسو دهريو ترتيب وارځواب راكړئ دابه ستاسې ډيره مهرباني وي.
**اول** : دانګريزي ويښتانو تعريف څه دې؟ داسې تعريف په سليسه اوردو كښې وكړئ چې هر خاص او عام ورباندې پوه شي چې دهر چا ويښتان اووينى يا اندازه كړې شي نو معلوم شي چې انګريزي دي يا اسلامي.
**دويم** : آيا انګريزي ويښتان ساتل ناجائزدي.
**دريم** : كه ناجائز وي نو كوم قسم ناجائز دي؟ ځكه دكومو مدرسينو ذكر چې مخكښې وشو هغوئ وائي نا جائز هم څوقسمه دي، انګريزي ويښتان مكروه دي چې معمولي خبره ده تاسو بيان كړئ چې حرام دي اوكه مكروه؟ آيا دمكروه ارتكاب كول جائز دي ؟
**څلورم** : كه مكروه هم وي دبيان شوي صورت په نظر كښې نيولو سره مدرسينو ته ددې شدت ندې پكار په داسې حال كښې چې هغوى عالمان او فاضلان دي او داخلك دزده كونكو او عملي لپاره نمونه دي.
**پنځم** : دا مدرسين داخبره هم كوي چې دسر خرييل مثله ده آيا دسر دويښتانو خريېلو ته مثله ويل جائز دي.
**شپږم** : دا مدرسين داهم وائي چې ځوك د ويښتان صفاكړي هغه احساس دكمتري كوي او دا پرمونږ خپله تيرشوي دي لهذا تاسو زده كونكوته دسر خريېلو ترغيب مه وركوئ ځكه چې هغوئ

احساس دکمتری کوی.

**اوم**: آیا دسرخریبلو سره احساس دکمتریٔ کومه معقوله خبره ده؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اول دوېښتانو ټول جائز او ناجائز صورتونه لیکلې شی او دهغې څخه وروسته دسوالونو جوابونه لیکلې شی:

جائز صورتونه دوېښتانو دساتلو لپار درې دی: **یو دا چې ځنی پرېښودل او دهغو درې قسمونه دی**: اول داچی ترغوږونو پورې وی، دیته په عربی کښې «وفره» ویل کیږی، دویم: دغوږونو او اوږو ترمنځ وی، دیته «لمه» ویل کیږی. دریم: تراوږوپورې وی، دیته «جمه» ویل کیږی.

**دویم**: حلق یعنی دټول سرخریبل.

**دریم**: دټول سر وېښتان برابر لنډول پدې ټولو کښې اولنې صورت غوره دې، بیا دویم صورت اوبیا د دریم صورت گنجائش شته.

په دی کښې دهیچا اختلاف نشته چی ځنی پرېښودل سنت دی، البته دحلق سنتیت کښې اختلاف دی: علامه طیبی رحمه الله دحضرت علی د دائمی عمل له وجی مسنون گڼلی، امام طحاوی هم ددې سنتیت نقل کړې دې، حافظ ابن حجر او ملاعلی قاری رحمهما الله په اباحت محمول کړې دې په هر حال ددې په جواز کښې هیڅ شبه نشته.

دماشومانو دتربیت په خاطر دهغوئ سرونه خریبل افضل بلکه دغلبۀ فساد له وجی ضروری دی

اخرج الامام ابوداود رحمه الله تعالی عن علی رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال من ترک موضع شعرة من جنابة لم یغسلها فعل کذا و کذا من النار، قال علی رضی الله عنه فمن ثم عادیت راسی فمن ثم عادیت راسی فمن ثم عادیت راسی وکان یجز شعره رضی الله تعالی عنه.

قال العلامة السهارنفوری رحمه الله تعالی وبهذا الحدیث استدل الطیبی علی سنیة حلق الراس لتقریره صلی الله علیه وسلم ولانه من الخفاء الراشدین الذین امرنا بمتابعة سنتهم ورد علیه القاری وابن حجر فقالا ان فعله رضی الله تعالی عنه اذا امرنا بمتابعة سنتهم ورد علیه القاری وابن حجر فقالا ان فعله رضی الله عنه اذا کان مخالفا لسنة علیه الصلوة والسلام وبقیة الخلفاء رضی الله عنه اذا کان مخالفا لسنة علیه الصلوة والسلام وبقیة الخلفاء یکون رخصة لا سنة (بذل المجهود ص ۱۵۲)

وعن عبدالله بن جعفر رضی الله عنهما ان النبی صلی الله علیه وسلم امهل ال جعفر ثلاثا ان یاتیهم ثم اتاهم فقال لاتبکوا علی اخی بعد الیوم ثم قال ادعوالی بنی اخی فجیئ بنا کانا افرخ ادعوالی الحلاق فامره فحلق رؤسنا.

قال الشیخ السهارنفوری رحمه الله تعالی: وفیه ان الکبیر من اقارب الاطفال یتولی امرهم وینظر فی

مصالحهم من حلق الراس وغيره (بذل المجهود ص۷۰ ج۶)

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وفي الروضة للزندويستي ان السنة في شعر الراس اما الفرق او الحلق وذكر الطحاوي رحمه الله تعالى ان الحلق سنة ونسب ذلك الى العلماء الثلاثة (ردالمحتار ص۴۰۷ ج۶)

وكذا في الهندية عن التتارخانية وزاد: يستحب حلق الراس في كل جمعة كذا في الغرائب (عالمگيرية ص۳۵۷ ج۵)

## دويښتانو ناجائز صورتونه

**قزع**: يعنى دسر د بعضې حصې ويښتان خرييل او بعضې پريښودل، يا بعضې زيات كمول او بعضې لږ، په حديث كښې له داسې ويښتانو نه صراحتاً ممانعت راغلې دې **كما سنذكر**.

**دويم**: داسې ويښتان ساتل چې دكفارو او فساقو شعار وى دا دتشبه بالكفار والفجار له وجې ممنوع دى، البته په دى كښې داتفصيل دى چې دهرې زمانې دكفارو او فساقو شعار ته اعتبار دې.

اخرج الامام ابوداود رحمه الله تعالى عن ابن عمر رضى الله عنهما قال نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن القزع والقزع ان يحلق راس الصبى فيترك بعض شعره.

وعنهما رضى الله تعالى عنهما ان النبى صلى الله عليه وسلم نهى عن القزع وهو ان يحلق راس الصبى ويترك له ذؤابة.

قلت وليس هذا مختصا بالصبى بل اذا فعله كبير يكره له ذلك فذكر الصبى باعتبار العادة الغالبة.

وعنهما رضى الله تعالى عنهما ان النبى صلى الله عليه وسلم راى صبيا قد حلق بعض راسه وترك بعضه فنهاهم عن ذلك فقال احلقوه كله او اتركوه كله.

قال النووى رحمه الله تعالى: مذهبنا كراهة مطلقا للرجل والمراة لاطلاق الحديث وهى كراهة تنزيه وكذلك كرهه مالك والحنفية رحمهم الله تعالى.

وعن انس بن مالك رضى الله تعالى عنه قال كانت لى ذؤابة فقالت لى امى لا اجزها كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يمدها ويأخذبها.

وقيل ان ذؤابة انما يجوز اتخاذها لغلام اذا كانت مع غيرها من الشعور التى فى الراس واما اذا حلق شعره وترك له ذوابة فهو القزع الذى نهى عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم.

وعن الحجاج بن حسان قال دخلنا على انس بن مالك رضى الله تعالى عنه فحدثتنى اختى المغيرة قالت وانت يومئذ غلام ولك قرنان او قصتان فمسح راسك وبرك عليك وقال احلقوا هذين او قصوهما فان هذا زى اليهود.

وهذا يدل على ان الرواية المتقدمة عن انس رضى الله عنه قال كانت لى ذؤابة لا يدل على جواز ذوابة مطلقا

بل الظاهر ان المنهی عنه غیر المرخص فیه فالرخصة انما هی اذا کان جمیع شعر الراس موجودة وکانت الذوابة طویلة من سائر الشعور واما اذا کان البعض محلوقا والذوابة باقیة فلا رخصة فیه (بذل المجهود ص۸۰ ج۶)

وقال الحافظ العسقلانی رحمه الله تعالی: قال النووی رحمه الله تعالی الاصح ان القزع ما فسر به نافع رحمه الله: قال النووی رحمه الله الاصح ان القزع ما فسر به نافع رحمه الله وهو حلق بعض راس الصبی مطلقا ومنهم من قال هو حلق مواضع متفرقة منه والصحیح الاول لانه تفسیر الراوی وهو غیر مخالف للظاهر فوجب العمل به، وقلت الا ان تخصیصه بالصبی لیس قیدا. قال النووی رحمه الله اجمعوا علی کراهیة اذا کان فی مواضع متفرقة الا للمداواة اونحوها وهی کراهة تنزیه ولا فرق بین الرجل والمراة وکرهه مالک فی الجاریة والغلام وقیل فی روایة لهم لا بأس به فی القصة والقفا للغلام والجاریة والغلام قال ومذهبنا کراهته مطلقا قلت حجته ظاهرة لانه تفسیر الراوی واختلف فی علة النهی فقیل لکونه یشوه الخلقة وقیل لانه زی الشیطان وقیل لانه زی الیهود وقد جاء هذا فی روایة لابی داود (وبعد سطر) ویمکن الجمع بان الذؤابة الجائزة اتخاذها ما یفرد من الشعر فیرسل ویجمع ما عداها بالضفر وغیره والتی تمنع ان یحلق الراس کله ویترک ما فی وسطه ویتخذ ذوابة وقد صرح الخطابی بان هذا مما یدخل فی معنی القزع والله اعلم (فتح الباری ص۳۰۸ ج۱۰)

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: وفی الذخیرة ولا بأس بان یحلق وسط راسه ویرسل شعره من غیر ان یفتله وان فتله فذلک مکروه لانه یصیر مشبها ببعض الکفرة والمجوس وفی دیارنا یرسلون الشعر من غیر فتل ولکن لا یحلقون وسط الراس بل یجزون الناصیة تتارخانیة قال ویکره القزع وهو ان یحلق البعض ویترک البعض قطعا مقدار ثلاث اصابع کذا فی الغرائب (رد المحتار ص۴۰۷ ج۲)

وکذا فی الهندیة وزاد: وعن ابی حنیفة رحمه الله یکره ان یحلق قفاه الا عند الحجامة کذا فی الینابیع (عالمگیریة ص۳۵۷ ج۵)

په ذخیره کښې په ذکر شوی صورت دجواز کښې علت دنهی په تشبه بالکفار کښې منحصر گڼل شوي دي چې داخیال له دوه وجوهو څخه صحیح ندی. **اول**: تغیر فی خلق الله او تشویه په هرصورت کښې موندلې شی چې دنهی لپاره کافی دی، دا علت دنهی دبنده په خیال کښې وو وروسته ددې تصریح په فتح الباری کښې هم ومندل شوه وقد مرنصه فالحمد لله علی موافقة الاکابر.

دویم دقزع لغوی معنی ټولو صورتونو ته شامله ده.

قال الحافظ رحمه الله: القزع بفتح القاف والزاء ثم المهملة جمع قزعة وهی القطعة من السحاب وسمی شعر

**الزاس اذا حلق بعضه وترك بعضه تشبیها بالسحاب المتفرق(فتح الباری ص۳۰۶ج۱)**

په وجوه مذکوره کښې امام نووی او حافظ بن حجر رحمهما الله اطلاق صحیح او واجب العمل گرځولې دې ومرنصهما عن الفتح، دبذل مجهود وجه دتطبیق کښې مذکوره صورت دجواز ددې وجی نه ندې صحیح چی پدې کښې علت دنهی تغیر خلق الله موجود دې، امام نووی په قزع کښې دکراهیت تنزیهی قول کړې دې په دې باره کښې درې امور دی:

**اول**: له ظاهردحدیث نه اوتعلیل دتغیر خلق الله نه کراهت تحریمی ثابتیږی.

**دویم**: دوام په کراهت تنزیهی سره بیا کراهت تحریمی گرځی.

**دریم**: دا صورت په هغه وخت کښې دې چی تشبه بالکفار نه وی کله چی له تغیر الخلق سره تشبه بالکفار هم یوځای شی نو کراهت تحریمی کیدل ظاهر دی.

## په مرتب ډول د سوالونو جوابونه

اول اودویم: په فیشن کښې ورځ په ورځ تبدیلیانې راځی مگر دانگریزی دور له ابتداء نه تر اوسه پورې داکار ددې فیشن دیوجزء لازم او قدر مشترك په طور راروان دې چی ویښتان دځینې ځای واړه او دځینی ځای غټ وی گویا دافیشن هلته پوره اومکمل کیدای شی چی په ویښتانو کښې یوشان والې نه وی، دیو رنگ والی فقدان لکه څنگه چی په کمولو سره وی په خرییلو سره هم وی، لکه چی دغوړونو شاوخوا خرییل معمول دی.

داصورت چی ویښتان دټول سریو برابرنه وی دحضور صلی الله علیه وسلم د ارشاداتو او دفقهاء کرامود نصوصو څخه په واضح طور ممنوع دی، برابره خبره ده که دکوم فاسق یا کافر قوم شعاروی اوکه نه وی، که دفساقو او فجارو شعار هم وی، نو ددې گناه خونوره هم سخته ده او دالله تعالی ارشاد دی چې ((وَلَا تَرْكَنُوْٓا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ)) او حضور صلی الله علیه وسلم فرمائلی دی ((**من تشبه بقوم فهومنهم**)) او همدا راز فرمائی ((**لاتتشبهوا باليهود والنصارى**)) او فرمائی ((**خالفوا اليهود والنصارى**)).

دریم: کله چی دیوشی گناه کیدل واضح شو بیا دا ویل چی دا دکمې درجې ناجائز دی او دا دلویې درجی ناجائز ی، نودا سخته خطرناکه گمراهی ده، دالله تعالی دنافرمانۍ نه دځان ساتلوپه ځای دا سپك گڼل او دگناه دجائز کولولپاره خپلې بهانې جوړول دعامو مسلمانانو شان هم ندې خدانخواسته که دا حالت دځانته دعالم ویلو والا شی نو ددې په باره کښې داسې ویلې شی چې

شعر: **چون کفر از کعبه برخیزد ازکجا آید مسلمانی**

دمکروه تحریمی او حرامو په مینځ کښې صرف دعقیدې په اعتبار سره فرق دې عملاً دواړه مساوی دی، دواړه گناه کبیره دی او د دواړو عذاب برابر دې.

څلورم: علماء چی دټول امت لاربښوونکې او مقتدا دی، نو ددوئ ډیره وړه نامناسبه خبره هم ډیره معیوبه ګڼل کیږی او لږ کوتاهی دلکونو او کروړونو انسانانو دګمراهئ سبب ګرځی اوخصوصاً چې مکروه تحریمی سپك شې وګڼل شی په دې کښی دکفر خطر دې.

**پنځم**: د سرویښتان خریبل جائز دی دحضرت علی رضی الله عنه سنت دائمه دی او دحضور صلی الله علیه وسلم ارشاد مبارك دې «**علیکم بسنتی وسنة الخلفاء الراشدین**»، لهذا دې ته مثله ویل ډیره خطرناکه ګمراهی ده.

**شپږم**: دکمتری احساس دتربیت دنه موجودوالی له وجی نه کیږی ظاهره خبره ده چی کله دتربیت ورکونکی حال داوی چی د حضرت علی اونورو نیکانو دشکل اوهیئت په ځای دفساقو او فجارو دشکل اوهیئت سره مینه لری، نو دهغې نه تربیت اخستونکی به هم دهمدوئ دلداده اودهغوئ په لار روان وی دهغوئ دصحیح تربیت ورکولو په وجه دصلحاؤ په هیئت باندې دفخرکولو جذبه پیداکیږی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ربیع الاول سنـــ ۱۴۱۴هـ

## دسړی لپاره کمځئ جوړول جائز ندی

**سوال**: که د سړی ویښتان ډیر لوئ او اوږده وی نو د هغو دساتنې اوحفاظت لپاره کمځئ جوړول جائز دی اوکه ناجائز؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: جائز ندی:

قال العلامة عالم بن العلاء الدهلوی رحمه الله تعالی: ویکره ان یصلی وهو عاقص شعره والعقص هو الاحکام والشد والمراد من المسالة عند بعض المشائخ ان یجمع شعره علی هامته ویشده بصمغ اوغیره لیتلبد وعند بعضهم ان یلف ذوائبه حول راسه کما تفعله النساء فی بعض الاوقات وعند بعضهم ان یلف ذوائبه حول راسه کما تفعله النساء فی بعض الاوقات وعند بعضهم ان یجمع الشعر کله من قبل القفا ویمسکه بخیط اوخرقة کیلا یصیب الارض ان یجمع الشعر کله من قبل القفا ویمسکه بخیط او خرقة کیلا یصیب الارض اذا سجد (التاتارخانیة ص۵۶۱ ج۱)

قال العلامة الملا علی القاری رحمه الله تعالی: وکره عقص شعره وهو ان یشد ضفیرته حول راسه کما یفعله النساء اویجمع شعره فیعقده فی مؤخر راسه وانما کره لما روی مسلم عن کریب مولی ابن عباس رضی الله عنه ان ابن عباس رای عبدالله بن الحارث یصلی وراسه معقوص من ورائه قال فجعل یحله فلما انصرف اقبل علی ابن عباس وقال مالك وراسی فقال سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول انما مثل هذا مثل الذی یصلی وهو مکتوف وفی شرح مسلم قال العلماء والحکمة فی النهی عنه ان الشعر یسجد معه ولهذا مثله بالذی

يصلى وهو مكتوف ولقول على رضى الله عنه قال رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول انما مثل هذا مثل الذى يصلى وهو مكتوف وفى شرح مسلم قال العلماء والحكمة فى النهى عنه ان الشعر يسجد معه ولهذا مثله بالذى يصلى وهو مكتوف ولقول على رضى الله عنه قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لاتعقص شعرك فى الصلوة فانه كفل الشيطان رواه عبد الرزاق وعن ابى رافع قال نهى النبى صلى الله عليه وسلم ان يصلى الرجل وراسه معقوص رواه احمد وابن ماجه وفى الباب احاديث فى الصحيحين وغيرهما (شرح النقاية صـ۲۱۵ ج۱)

قال العلامة الشيخ ابراهيم الحلبى رحمه الله: ويكره ايضا العقص اى عقص الشعر وهو ضفره وفتله واراده فى الجامع فى هذه الموضع ان يجعل شعره على هامته ويشده بصبغ او ان يلف ذوابتيه تثنية ذوابة بضم الذال المعجمة وبعدها همزة ممدودة ثم باء موحدة قال ف القاموس هى الناصية والمراد هنا خصلتا شعره حول راسه كما يفعله النساء فى بعض الاوقات او ان يجمع الشعر كله من قبل اى من جهة القفا ويمسكه اى يشده بخيط اوخرقة كيلا يصيب الارض اذا سجد وجميع ذلك مكروه اذا فعله قبل الصلوة وصلى يصيب الارض اذا سجد وجميع ذلك مكروه اذا فعله قبل الصلوة وصلى به على تلك الهيئة اما لو فعل شيئا من ذلك وهو فى الصلوة تفسد صلوته لانه عمل كثير بالجماع ووجه الكراهة ماروى الطبرانى عن الثورى عن مكحول بن راشد عن سعيد بن المقبر عن ابى رافع عن ام سلمة رضى الله تعالى عنها انه عليه السلام نهى ان يصلى الرجل وارسه معقوص وكذا رواه اسحق بن ارهويه قال انبانا المؤمل افيه ام سلمة قال بلاشك واخرج الستة عنه عليه الصلوة والسلام امرت ان اسجد على سبعة اعضاء وان لا اكف شعرا ولاثوبا وف العقص كف الشعر فيكون منهيا (غنية المستملى صـ۳۳٦) والله سبحانه وتعالى اعلم. ٦ذى القعدة سنـ۱۴۱٦هـ

******
*****

# حلا ل او حرام کسب

## دسرو زرو جوړول

**سوال**: سره زر جوړول دشريعت له مخې صحيح دي او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: پدې کښې دمال او وخت ضائع کيدل دی له دی وجی ناجائز دی البته که چيرته څوك پدې فن کښې پوره ماهروی اوسره زر جوړ کړی او دهغه په سروزرو کښې شك اوشبه نه وی نو بيا جائز دی په شرط ددې چی خلاف قانون نه وی.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله علم الحرف) يحتمل ان المراد به الكاف الذى هو اشارة الى الكيميا ولاشك فى حرمتها لما فيها من ضياع المال والاشتغال بما لايفيد (الى قوله) وحاصله انه اذا قلنا باثبات قلب الحقائق وهو الحق جاز العمل به وتعلمه لانه ليس بغش لان النحاس ينقلب ذهبا اوفضة حقيقة وان قلنا انه غير ثابت لايجوز لانه غش كما لايجوز لمن لايعلمه حقيقة لما فيه من اتلاف المال اوغش المسلمين والظاهر ان مذهبنا ثبوت انقلاب الحقائق بدليل ماذكره فى انقلاب عين النجاسة كانقلاب الخمر والدم مسك ونحو ذلك (رد المحتار ص ۳۲ ج ۱) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۶ ذی الحجة سنه ۸۵ هـ

## دجوالي ((پنډی یا مزدور)) دمقررنرخ نه زیات أجرت اخستل

**سوال**: نن سبا حکومت دستیشن دمزدورانو لپاره اجرت ټاکلې دې، دمثال په توګه دیو من وزن پورته کولو څلور انی أجرت ټاکل شوې دې، لیکن عموماً مزدور ددې نه ډیر زیات أجرت غواړی که نه نو سامان نه پورته کوی، لهذا مسافر دمجبورئ له کبله په أجرت معلوملو راضی کیږی، آیا کوم أجرت چی مجبوراً معلوم کړې شی ددینه کم ورکول جائزدی؟ او مزدور ته دمقرره أجرت نه زیات أُجرت اخستل جائز دی؟ بعضې وخت مزدور مزدوری نه معلوموی، وائی چی څومره ستا مرضی وی هغومره ورکړه، لیکن وروسته دحکومت دمقرره اندازې څخه زیات غواړی آیا پدې صورت کښې چی دحکومت دمقررکړې شوې اندازې څخه زیات وی او دمزدور د مطلوبه مقدارنه کم وی ورکول جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په مزدور باندې له حکومت سره په شوی معاهده باندی پابندی کول لازم دی او دهغې خلاف کول ګناه ده لیکن عموماً مزدورد هغه پابندی نه کوی لدې وجی نه مخکښې ورسره اجرت معلومول ضروری دی او معلوم کړې اجرت ورکول ضروری دی په مقرره أجرت باندی په مجبوره کولو کښې اختلاف دې کما حرره العلامة ابن عابدين رحمه الله فى بحث التسعير، لهذا مجبوره کول بهتر ندی بلکه جوازخلاف تقوی دی. والله سبحانه وتعالى اعلم

۸ رمضان سنه ۱۳۸۷ هـ

## دټیکسی ډریورته له میټرنه زیاتی پیسی اخستل

**سوال**: دټیکسی ډریور له سورلئ څخه دمیټر له حساب څخه په خلاف زیاته کرایه اخستل جائز دی اوکه ناجائز؟ پداسی حال کښې چی دمیټرپه خلاف کرایه اخستل قانوناجرم دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په ډریورباندی دحکومت سره په لوظ نامه باندی پابندی لازمی ده له هغی خلاف ورزی کول ګناه ده خوسره له دې که چیرته زیات أجرت معین کړای شی نو دا اجرت اخستل حلال دی. مګر میټر تیزول اوپه دوکه باندې زیات أجرت اخستل جائز ندی، دمیټر د

تیزولو په وجه که څومره زيات اجرت واخستل شی هغه حرام دې چې رسول یې بیرته خپل مالك ته فرض دی که دا ممکن نه وی نو په مسکینانو باندې یې صدقه کول فرض دی. والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۸شوال سنـ ۸۸ھـ

## دبانک اوبیمه کمپنۍ او انکم ټکس وغیره محکمو کښې وظیفه اجراء کول

**سوال**: په بانك اوبیمه کمپنۍ او دانکم ټکس په محکمه کښې چې هلته په سینما او موټرو او مکاناتو باندې دټکس دتشخیص اوتحصیل کارکیږی همدارنګه په کستم آبیاری کښې چې په هغې کښې دنشه یی توکو دواردولو ټکس اخستل کیږی په داسې ادارو کښی وظیفه اجرا کول څنګه دی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بانك اوبیمه ربیٰ (سود) دې او دټکسونو دتشخیص مروجه طریقه ظلم دې او دهغو مصارف هم صحیح نه دی، لهذا په دغو ادارو کښې وظیفه اجرا کول صحیح ندی.

قال الله تعالی: وتعاونوا علی البر والتقوی ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان.

وعن انس رضی الله تعالی عنه قال لعن رسول الله صلی الله علیه وسلم فی الخمر عشرة عاصرها ومعتصرها وشاربها وحاملها ومحمولة الیه وساقیها وبائعها واکل ثمنها والمشتری لها والمشتری له (ترمذی ص۲۰۶ ج۱) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۳ ذی القعده سنـ ۸۸ھـ

## په سینما کښې وظیفه اجراکول څنګه دی

**سوال**: په سینما کښې وظیفه اوملازمت کول څنګه دی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په سینما کښې وظیفه کول له دوو وجوهو حرام دی: اول تنخوا له حرام آمدن څخه ورکول کیږی، دویم که دده په ذمه کښې کوم ناجائز کارهم نه وی بیاهم تعاون علی الاثم خو دې چې هغه په نص قرآنی سره حرام دې (وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ) لهذا د هغه اجرت اخستل حرام دی، والله سبحانه وتعالی اعلم ۹ربیع الاول سنـ ۱۳۸۹ھـ

## دسینما اوبانک اونورو سودی ادارو په آبادی جوړولو کښې مزدوری کول

**سوال**: دسینما اوبانك اوبیمه کمپنۍ دعماراتوتعمیر کول څنګه دی ؟ اوددې تعمیر نه چې کوم أجرت حاصل شی هغه حلال دې او که حرام دې ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ددې په باره کښې کومه صریحه جزئیه لاس ته رانغله اونه داسی جزئیه لاس ته راغله چې په هغې باندې قیاس کول بلاشبه تام وی، له قواعدو څخه دا رجحان

معلومیږی چی که دعمارت نمونه داسې وی چی دهغې څخه دسینما یا بنك وغیره نه ماسواد بل څه کار لپاره په سهولت سره نشی استعمالیدیې نو دهغې أجرت اخستل ناجائز دی او که نه نو بیا جائز دی. دا لاندې دوه جزئیی ددې مشابه معلومیږی.

۱ـــ قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وجاز تعمير كنيسة وحمل خمر ذمي بنفسه اودابته باجر لاعصرها لقيام المعصية بعينه (ردالمختار ۲۵۳ج۵)

۲ـــ وقال العلامة السرخسي رحمه الله: واذا استاجر الذمي من المسلم بيتا ليبيع فيه الخمر لم يجز لانه معصية فلا ينعقد العقد عليه ولا اجر المسلم بيتا ليبيع فيه الخمر لم يجز لانه معصية فلا ينعقد العقد عليه ولا اجر له عندهما وعند ابي حنيفة رحمه الله تعالى يجوز والشافعي رحمه الله تعالى يجوز هذا العقد لان العقد يرد على منفعة البيت ولا يتعين عليه بيع الخمر فيه فله ان يبيع فيه شيئا اخر يجوز العقد لهذا ولكنا نقول تصريحهما بالمقصود لا يجوز اعتبار معنى اخر فيه وما صرحا به معصية (مبسوط ص۳۸ج۱۶)

مگر په اوله جزئیه باندې په دقیاس کولو سره دجواز په قول باندی داکلام دې چی کنیسه کافر استعمالوی اوسینما مسلمان اوپه دویمه جزئیه دقیاس کولو سره په قول دعدم جواز باندې استدلال هم ددې وجی نه تام ندی چی هلته خپل کور دمعصیت داستعمالولو لپاره ورکوی اوپه زیربحث مسئله کښې خپل څه دمعصیت په استعمالولو کښې نه ورکوی بلکه دمعصیت د استعمالولو د مکان دتعمیر کارکوی، نو لدې وجی نه رجحان دعدم جواز تائید کوی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۹ربیع الاول سنه ۱۳۸۹هـ

## دکوټ اوپتلون دجوړولو آمدن

**سوال:** دیوسړی آمدن صرف دپتلون جوړولو څخه دې آیا ددې سړی آمدن حلال دې ؟ اوکه آمدن له کوټ پتلون او شرټ اوشیروانی او قمیص وغیره دګنډلو څخه حاصل شوی وی، نو ددې څه حکم دې ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** پتلون که چیرته دومره تنګ وی چی داعضاء مستوره حجم په نظر راځی نو دهغه اغوستل او ګنډل حرام دی، لهذا لدې څخه آمدن هم حرام دې او که دومره تنګ نه وی بلکه آزاد وی نو دهغه د اغوستلو اوګنډلو ګنجائش شته مګر خلاف تقوی دې، په هرصورت کښې دحرامو تصدق واجب دی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۰ربیع الاول سنه ۸۹هـ

## دهغه مال اخستل چی حکومت ضبط کړې وی

**سوال:** له بهر ملکونو څخه چی تجاران کوم خلاف قانون اشیاء راغواړی بعضې وخت حکومت

هغه ضبط کړي اوبیایي لیلام کړي او په ارزانه قیمت باندې یې خرڅوي او لاس ته راغلې پیسې یې حکومتي خزانه کښې داخلوي، له حکومت څخه د داسې مال اخستل جائزدي او که ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: پدې باندې دحکومت قبضه ظلم دې،مالي جرمانه په هرحال ناجائزه ده که چیرته اخستونکي ته علم وي نو اخستل یې جائز ندي، **قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: لایحل مال امرء مسلم الابطیب نفس منه.**

**قلت: وکل مال محترم حکمه حکم مال مسلم، والله سبحانه وتعالی اعلم.** ۳ جمادی الثانیة سنه ۸۹هـ

## په کسب کښې افراط جائز ندې

**سوال**: یو سړې له سهارنه ترماښام پورې په کار کولو کښې مشغول دې آیا دا جائز دی او که ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دنیا په گټلو کښې دومره غرقیدل چې په حقوق الله اوحقوق العباد کښې خلل واقع شي په جسماني او دماغي صحت باندې بداثر وکړي جائز ندي.

قال الله تعالی: ﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تُلۡهِكُمۡ أَمۡوَٰلُكُمۡ وَلَآ أَوۡلَٰدُكُمۡ عَن ذِكۡرِ ٱللَّهِۚ وَمَن يَفۡعَلۡ ذَٰلِكَ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡخَٰسِرُونَ ۝٩﴾ والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۶ جمادی الاخره سنه ۹۱ هـ

## په جلسه کښې چنده کول

**سوال**: دمدرسې په سالانه جلسه کښې خلکو ته دچندې ورکولو ترغیب ورکول او چنده اخستل څنگه دي؟ په داسې حال کښې اکثر خلك دترغیب اوترهیب په جوش کښې راشي او چنده ورکړي؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که دعامو خلکو جلسه وي او صورت همداسې وي چې څوك هم په چنده نه ورکولو زړه قدري هم خپله بیعزتي نه محسوسوي او دبیان په طرز کښې هم تملق او ددین او اهل دین توهین نه وي، نو جائز دي اوکه نه نو ندي جائز، ددې تفصیل په رساله «الکلام البدیع في احکام التوزیع» کښې چې داحسن الفتاوی په اول جلد کښې تیره شوې ده موجود دې، والله سبحانه وتعالی أعلم ۲۸ جمادی الاخره سنه ۱۳۹۲هـ

## له نورو ملکونو څخه سره اوسپین زر راوړل

**سوال**: یو سړې حج ته روان دې بل سړې ورته وائي چې هلته دسروزرو قیمت کم دې لهذا تاسو

زما لپاره څلور ، پنځه تولې سره زر راوړئ زه به يې قيمت درکړم، آيا حاجي ته له هغه ځايه سره زر راوړل جائز دي ؟ آيا دهغه په حج خو کوم اثرنه غورځوي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : حج کيږي مگر دا کار کول جائز ندی، ځکه چې دا د ملك نقصان دي او قانون ماتول او دعزت خطره ده پکښې ، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۶شعبان سنـــ ۱۳۹۲هـ

## په شيدو کښې اوبه گډول

**سوال** : په شيدو کښې اوبه گډول اوبيا خرڅول څنگه دی؟ سره ددې چې اخستونکی ته هم خبر ورکړل شی که جائز وی نو آيا شيدې چې دالله تعالی يو نعمت دې په هغې کښې اوبه گډول گناه ده او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که اخستونکی ته د اوبو دگډولو علم وی نو خرڅول يې جائز دی که چيرته دوکه ورکول مقصود نه وی نو په شيدوکښې اوبه گډول کوم دعيب خبره نده، والله سبحانه وتعالی اعلم ۶ربيع الثانی سنـــ ۹۳هـ

## قاچاق (سمگلنگ) کول

**سوال** : قاچاق کول ، دقاچاق شوی مال خرڅول او اخستل او په هغې کښې مدد کول څنگه دی ؟خوك چه د دغه کارونو مرتکب وی دهغه له مال نه خوراك کول جائز دی اوکه نه ؟ بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قاچاق دحکومت دقانون خلاف ورزی ده دملك نقصان او دعزت خطره ده لدی وجی نه جائز ندې د داسې مال خريد اوفروخت اوپه دې کښې تعاون کول هم جواز نلری مگر دهغه منافع حرامې ندی لهذا ددغو کارونو دمرتکب په طعام خوړلو کښې گناه نشته والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۰جمادی الاولی سنـــ ۱۳۹۶هـ

## غير طبيب لره دعلاج کولو پيشه اختيارول

**سوال** : زه دتجربی په بنياد دخلکو علاج کوم نه ۲۳ کالو راپدې خوا زما دا ذريعه دمعاش ده، زه دلسو کسانو يواځينې کفيل يم او زما عمر ۴۸ کاله دی. پريشانی داده چې بعضې وختونه دستنی (انجکشن) لگولو وجی دمريض حالت گډوډشی. اسهال ورته شروع شی يابې هوشی وربانديې راشی، کله يوه دوه ورځ پس مريض ... شی، آيا ددې سزا به ماته راکول کيږي او زه دا کار پريږدم اوکه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دکوم ماهر فن څخه دتعليم حاصلولو نه بغير دعلاج کولو پيشه غوره کول جائز ندی همدارنگه پدې کښې دحکومت د قانون دخلاف ورزی گناه هم ده تاسو خپله دقانون مطابق امتحان ورکړئ دکمپوډری ياهوميوپيتهك سند حاصل کړئ له هغې وروسته

داپیشه اختیارکړئ.

قال العلامة الحصکفي رحمه الله: بل يمنع مفت ماجن يعلم الحيل الباطلة كتعليم الردة لتبين من زوجها اولتسقط عنها الزكاة وطبيب جاهل.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله: (قوله وطبيب جاهل) بأن يسقيهم دواء مهلكا واذا قوي عليهم لا يقدر على ازالة ضرورة زيلعي (رد المحتار ص۹۳ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲ رمضان سنه ۹۸ هـ

## له ناجائز محصول اخستو څخه دځان ژغورنې لپاره رشوت ورکول

**سوال**: له یوښار څخه بل ښارته په سامان وړلو باندې حکومت محصول اخلی له دې نه دځان ساتلولپاره داتدبیر غوره کولې شی چی دبس ډریور یا کنډیکټر ته څه پیسې ورکولې شی هغه دمعلومی اډې په ځای دسامان ښکته کولو چیرته بل ځای مال کوزوی، که په معلومه اډه کښې څوك دمحصول والا پوښتنه وکړی نو ډریور دبل کوم ځای یاښار نوم واخلی اوورته وائی چی موټر هلته ځی. کله خو هغه په خپله خبره کښې صادق هم وی چی موټر بل ښارته ځی اگر چه سامان په دې ښارکښې کوزوی اوکله موټر تر همدی ښاره پوری ځی کوم کښې چی سامان کوزوی ډریور دروغ اووائی اوسامان له محصول څخه خلاص کړی دپوښتنې ځای دادې چی صاحب مال ډریور یا کنډیکټرته کومی پیسی بطور رشوت ورکوی ددې ورکول اواخستل څنگه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: صحاب مال ته ورکول مطلقا جائزدی او ډریویاکنډیکټر ځکه ورکول جائزدی چی په لاره کښې علاوه له محصول څخه دمال حفاظت له غلو وغیره څخه هم دهغه په ذمه وی والله سبحانه وتعالی اعلم بالصواب. ۲۴ جمادی الاولی سنه ۱۴۰۰ هـ

## دطبیب دبې پرواهۍ نه دځان ژغورنې لپاره رشوت ورکول

**سوال**: بعضې وخت کوم مریض په شفاخانه کښې ترعلاج لاندې وی دمریض خپلوان د ډاکټر یاکمپیوټر دمراعات حاصلولو لپاره او مریض ته دښې توجه ورکولو لپاره کوم شې یا روپۍ ورکوی آیا دا جائز دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه! جائز ندی د ډاکټر دمراعات حاصلولو لپاره یا دبې اعتنایی نه دځان ساتلو لپاره د داسې رشوت ورکولو څخه د هغه عادت خرابیږی چی ددې له وجی ټول قوم دظلم ښکار گرځی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۴ جمادی الاولی سنه ۱۴۰۰ هـ

## درشوت جائز او ناجائز صورتونه

**سوال**: نن سبا هرطرفته درشوت بازارگرم دې ډیرې موقع داسې راځی چی شریف سړی هم په

رشوت ورکول مجبوریږی دجواز او عدم جواز دځایونو دنه معلوموالی له وجی سخته پریشانی وی او ډیرخله سخت نقصان برداشت کړې شی. لهذا داسې یوه جامعه ضابطه بیان کړئ چی مخې ته کیښودل شی او دهرې موقع حکم معلوم کړای شی ترڅود احکامو شرعیه پابندی وشی او له نافرمانی څخه یی ځان وساتل شی، بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : درشوت ورکولو او اخستلو مختلف صورتونه دی، دهریو حکم ځانته لیکلې شی:

**اول** : له حکومت څخه قضاء یا داسې بل منصب حاصلولو لپاره.

**دویم** : له حاکم څخه دکوم شی د فیصلې کولو لپاره.

**دریم** : دظلم سره د اعانت کولو لپاره.

په دغه درې وارو صورتونو کښې رشوت ورکول هم حرام دی او رشوت اخستل هم حرام دی حاکم نه که دحق ·منع کولوخطره وی نو دهغه دظلم ددفع کولو لپاره درشوت ورکول هم جائز ندی ځکه چی پدې سره دحاکم عادت خرابیږی چی په ټول قوم دظلم سبب ګرځی فهذا دخل فی قاعدة (ان الضرر الخاص یتحمل لدفع ضرر العام).

**څلورم** : له چا څخه چی د ضرر رسولو خطره وی هغه ته رشوت ورکول جواز لری اودهغه لپاره یی اخستل حرام دی.

**پنځم** : د دفع مضرت یا جلب منفعت د واسطی جوړیدونکی یعنی صرف سفارش کونکی لپاره رشوت ورکول جائز او اخستونکی لپاره ناجائز دی، البته که دمینځ واسطی جوړیدونکی په ذمه کوم کارحواله شی نو هغه ته ددې اجرت اخستل جائز دی، پدې شرط چی هغه خپله په همدې کار کولو باندې قادر وی دبل چا قدرت ته اعتبار نشته.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: وفی الفتح الرشوة اربعة اقسام منها ماهو حرام علی الاخذ والمعطی وهو الرشوة علی تقلید القضاء والامارة الثانی ارتشاء القاضی لیحکم وهو کذلک ولو القضاء بحق لانه واجب علیه الثالث اخذ المال لیسوی امره عند السلطان دفعا للضرر اوجلبا للنفع وهو حرام علی الاخذ فقط وحیلة حلها ان یستاجره یوما الی اللیل اویومین فتصیر منافعه مملوکة ثم یستعمله فی الذهاب الی السلطان للامر الفلانی وفی الاقضیة قسم الهدیة وجعل هذا من اقسامها فقال حلال من الجانبین کالاهداء للتودد وحرام منهما کالاهداء لیعینه علی الظلم وحرام علی الاخذ فقط وهو ان یهدی لیکف عنه الظلم والحیلة ان یستاجره الخ قال ای فی الاقضیة هذا اذا کان فیه شرط اما اذا کان بلاشرط لکن یعلم یقینا انه انما یهدی لیعینه عند السلطان فمشایخنا علی انه لاباس به ولو قضی حاجته بلاشرط ولاطمع فاهدی الیه بعد ذلک فهو حلال لاباس به ومانقل

عن ابن مسعود رضی الله عنه من كراهيته فورع الرابع مايدفع من دفع الخوف من المدفوع اليه على نفسه اوماله حلال للدافع حرام على الاخذلان دفع الضرر عن المسلم واجب ولا يجوز اخذ المال ليفعل الواجب اهما فى الفتح ملخصا (ردالمحتار ص۳۰۳ ج۳) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۳۰ جمادی الاولی سنه ۱۴۰۰ھ

## دمختلفو ټکسونو حکم

**سوال**: انکم ټکس، ویلتهـ ټیکس، گفټ ټیکس، سیل ټیکس، چولها ټیکس، چی دهر شادی شده جوړی څخه اخستل کیږی برابره خبره ده که هغه خوراك خپله پخوی او که تیاره پخه اخلی او خوری یی شادی ټیکس په هره نکاح باندې، دحیواناتو دساتلو ټیکس چی په هغې کښې دمیږی او وزی ټیکس د غوا اومیښی دټیکس نیم وی، پیدائشی ټیکس چی د هر ماشوم په پیدا کیدو سره اخستل کیږی، دچونگی محصول اودغه راز دنورو ټیکسونو شرعی حیثیت څه دې؟ همدارنگه په دغه محکمو کښې کارکول څنگه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داټول ټکسونه ناجائز دی اوپه دغو محکمو کښې وظیفه اجرا کول هم ناجائزدی حکومت ته که چیرته ضرورت وی نو دټیکس لگولو دا لاندې شرائط دی:

**اول**: دحکومت مصارف دې داسراف اوتبذیر څخه پاك کړې شی.

**دویم**: دپورته اواعلی طبّی مامورینوتنخوادې دافراط له درجې څخه داعتدال درجې ته راولی.

**دریم**: ټیکس دې دهر چا دحال مطابق ولگول شی یعنی دهغه آمدنی او مصارفوته دې نظر وکړل شی اوټیکس دې ورباندی مقرر کړې شی.

مروجه ټیکس دحافظ غونډارې دې، دانکم ټیکس نه ماسوا نور ټول ټیکسونه ظاهره خبره ده چی په هر امیراو غریب باندې لگول کیږی، په انکم ټیکس کښې اگر چی آمدن ملحوظ وی خو د هغه شخصی مصارف په نظرکښې نه نیول کیږی، همدارنگه دجائیداد ټکس له هرصاحب جائیداد څخه په هر حال لازما اخستل کیږی اگر چه دهغه ذریعه د آمدن هیڅ هم نه وی، همدارنگه دجائیداد ټیکس دتشخیص داطریقه صریح ظلم او حرامه ده.

همدارنگه دحکومت په مصارفو کښې هم د محرماتو زیاتوالې دې مثلا:

۱ - دحکومت الهیه اوداسلام دقانون نه نافذ کول او دهغه څخه عدم دفاع.

۲ - منکرات او فواحشو اوعریانی ته وده ورکول

۳ - بل لهو اولعب او مسرفانه طرز اوطریقه. والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۶ رجب سنه ۱۴۰۰ھ

## صراف ته په معروفه اندازه ګډون کول جائزدی

**سوال**: صراف دسپينو زرو دزيوراتو په جوړولو کښې ګچ او دسروزرو په زيوراتو جوړلو کښې تامبه استعمالوی ددې وجی نه چی بغيرلدې څخه زيورات نرم راځی خلك يی نه خوښوی، د خرڅولو په وخت ئی صراف خلکوته وائی چی پدې کښې ګچ او تانبه (مس) استعمال شوی، مګر قيمت به دسرواوسپينو اخلم خلك يی په خوشحالئ سره اخلی آيا داسې کول جائز دی ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو ! جائزدی ، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۹شعبان سنـــ ۱۴۰۰هــ

## دمودودی د تفسير تجارت جائز ندې

**سوال**: زيد کتاب فروش دې له بازار څخه مختلف کتابونه اخلی اوپه دوکان کښې يی ږدی دپوښتنی وړ خبره داده چی دمودودی صاحب دتفسير (تفهيم القرآن) تجارت جائز دې اوکه غير جائز ؟بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه ! جائز نه دی ، والله سبحانه وتعالی اعلم .

۶صفر سنـــ۱۴۰۱ هــ

## په دار الحرب کښې سود کول او دشرابو په کارخانه کښې ملازمت اجرا کول

**سوال**: په دار الحرب کښې په بانك انشورنس او دکافرانو په نورو اداروکښې اودشرابو په کارخانو کښې کار کول څنګه دی، آيا جائزدی اوکه ناجائز؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په بانك اونشورنس او نورو سودی اداروکښې وظيفه اجراء کول ناجائز دی ځکه چی سود دکفارو لپاره هم حرام دې پداسې ادارو کښې کارکول داعانت علی المعصية له وجی حرام دی، قال الله تعالی ﴿وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾ د اجرت د حراموالی دويمه وجه داده چه دا له حرام مال څخه دی.

که چيری کافر د شرابو کاروبار کوی نو په هغې کښې دمسلمان لپاره دکار کولو ګنجائش شته دې، ځکه دهغوی په نزد شراب حلال دی البته دشرابو خريد اوفروخت او چاته ورکول يی دمسلمان لپاره حلال ندی په نوروکارونو کښې هم ډيرې دينی خطرې دی، لهذا ځان ساتل ورڅخه بهتردی.

عن ابن عمر رضی الله عنهما قال قال رسول الله صلی الله عليه وسلم لعن الله الخمر وشاربها وساقيها وبائعها ومبتاعها وعاصرها ومعتصرها وحاملها والمحمولة اليه (سنن ابی داود ص۱۸۰ج۲)

قال العلامة الکاسانی رحمه الله: ومن استاجر حمالا يحمل له الخمر فله الاجر فی قول ابی حنيفة رحمه الله وعند ابی يوسف ومحمد رحمهما الله لا اجرله کذا ذکر فی الجامع الصغير انه يطيب له الاجر فی قول ابی حنيفة

وعندهما يكره لهما ان هذه اجارة على العصية لان حمل الخمر معصية لكونه اعانة على المعصية وقد قال الله عزوجل ولا تعاونوا على الاثم والعدوان ولهذا لعن الله تعالى عشرة منهم حاملها لمحمول اليه ولابي حنيفة رحمه الله ان نفس الحمل ليس بمعصية بدليل ان حملها للاراقة والتخليل مباح وكذا ليس بسبب للمعصية وهو الشرب لان ذلك يحصل بفعل فاعل كعصر العنب وقطفه والحديث محمول على الحمل بنية الشرب وبه نقول ان ذلك معصية ويكره اكل اجرته (بدائع الصنائع ص۱۹۰ ج۴) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۲ ربيع الثاني سنـــ ۱۴۰۳ هـ

## دکستم (گمرک) حکم

**سوال**: له خارجي ملکونو څخه چې کوم مال راځي په هغې حکومت محصول اخلي آيا دا جائز دی او که ناجائز؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دحکومت چارواکی دکستم خستلو وجه دا ښايي چې بهرنی تجارتي کمپنئ خپل مصنوعات عموما په ډير ارزان قيمت ورکوی، که حکومت کستم وانخلی نو ټول تجاربه له بهرنيو کمپنيو څخه مال اخلی پداسی شان به دخپل ملك مصنوعات څوك هم نه اخلی، نتيجه به داشی چې دخپل ملك کارخانې به مال جوړول بند کړی، نوملك ته به شديد نقصان ورسيږی دحکومت دچارواکو دپورتني وضاحت په رڼا کښې په لاندی شرائطو کستم اخستل جائزدی.

**اول**: دکستم په نه اخستوباندی دخپل ملك مصنوعاتو دضائع کيدلو اوپه معاشی اواقتصادی لحاظ سره په ترقی کښې نقصان يقيني وی.

**دويم**: دضرورت په وخت کښې بايد په قدر دضرورت واخستل شی.

**دريم**: حکومت دمصارف ضروريه په مصرفولو کښې په اسراف سره خرچ ونه کړی دغيرضروری مصارفو او خرافاتو خرچ کولو څخه احتراز وکړی. ۷ذی قعده سنـــ ۱۴۱۶ هـ

## د وکيل بالشراء زيات قميت اخستل

**سوال**: کمپنئ بعضی کاريگر ددې لپاره ساتی چې هغه له بازار څخه سامان واخلی او رابی وړی کاريگر ارزانه شې واخلی او په دکاندار جعلی بل جوړ کړی او له کمپنئ څخه زياتې پيسی واخلی آيا داجائز دی؟ همدارنگه د مکان جوړولو ټيکه دار اوسپنې او نورشيان په کم قيمت واخلی او دمکان مالك ته زياتې روپئ ظاهری کړی او ترينه يې واخلی آيا داسې کول جائزدی؟ که چرته ملازم يا ټيکه دار داحيله جوړه کړی چې يوشې دخپل خان لپاره واخلی او په کمپنئ يې په گرانه بيعه خرڅوی آيا ددی څه گنائش موجود دې او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : کاریگری او ټیکه دار وکیل بالتجارة دی هغوی ته دکمپنۍ یا مکان له مالك څخه له اصل قیمت نه زیاتې پیسی اخستل ناجائز او حرام دی، او مذکوره حیله باطله ده،ځکه چی وکیل امین وی نو دهغه دځان لپاره اخستل جائز ندی. والله سبحانه وتعالی اعلم
۲۸ شوال سنہ ۱۴۱۷ ھـ

## دوکیل له دکاندار څخه کمیشن اخستل

**سوال** : دکاندار دکمپنۍ نوکر ته وائی چی که ته دکمپنۍ سامان له مونږ څخه واخلې نو تاته به دومره فیصده کمیشن درکوو آیا ملازم ته داکمیشن جائز دې ؟ بینو ا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا دکمیشن په نوم دسامان په قیمت کښې رعایت دې چی دکمپنۍ حق دې لهذا ملازم ته دهغې استعمالول جائز ندی، بلکه کمپنۍ ته ورکول واجب دی، والله سبحانه وتعالی اعلم.
۲۸شوال سنہ ۱۴۱۷ھـ

*********
******

# دخوراک اوڅښاک حرام او حلال شیان او دهغو متعلقات

## درشوت خور هدیه یا دعوت قبلول

**سوال** : درشوت اخستونکی څخه هدیه اخستل یا دهغه دعوت قبلول څنگه دی؟بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که حرام مال جدا او ممتاز نه وی یعنی دخالص حرام یا دحلال او حرام مخلوط کیدو یقین نه وی او حلال مال زیات وی نو له هغه څخه هدیه او دهغه دعوت قبلول جائز دی او که حرام مال زیات وی یا دواړه برابروی یاحرام مال جدا او ممتاز وی نو بیایی قبلول جائز ندی.

قال فی الهندیة اهدی الی رجل شیئا او اضافه ان کان غالب ماله من حلال فلا بأس الا ان یعلم بأنه حرام فان کان الغالب هو الحرام فینبغی ان لایقبل الهدیة ولایاکل الطعام الا ان یخبره بأنه حلال ورثه اواستقرضه من رجل کذا فی الینابیع.

وایضا فیها اکل الربوا وکاسب الحرام اهدی الیه او اضافه وغالب ماله حرام لایقبل ولایاکل مالم یخبره ان ذلك المال اصله حلال ورثه او استقرضه وان کان غالب ماله حلال لابأس بقبول هدیته والاکل منه کذا

فى الملتقط (عالمگيريه كتاب الكهراية ج٤)

وفى الاشباه فى القاعدة الثانية من النوع الثانى: اذا اجتمع عند احد مال حرام وحلال فالعبرة للغالب مالم يتبين (الاشباه والنظائر ص١٣٧ ج١)

دمذكورمخلوط مال حكم په هغه صورت كښې دې چې خلط متيقن نه وى او كه دخلط يقين وى نو په هر حال حرام دې برابره خبره ده كه حلال غالب وى يا مغلوب، والتفصيل فى رساله ( **حلال وحرام سى مخلوط مال كاحكم**) والله سبحانه وتعالى اعلم. ١١ربيع الاول سنـ ١٣٧٤ هـ

## دحرام مال نه اخستل شوې طعام هم حرام دى

**سوال**: په حرامه طريقه مثلا بانك يا انشورنس كښې د نوكرى يا درشوت يا غصب نه دحاصل شوى مال په عوض كښې اخستل شوې طعام حلال دې كه حرام؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: كه مغصوب شې عين وى نو دهغې په عوض كښې داخستل شوى اشياء استعمال بالاتفاق حرام دى اوكه نقدوى نو دامام كرخى قول دادې چې كه داشتراء په وخت كښې يى مغصوبه پيسو ته اشاره كړې وى اوبيا يى اداء هم له هغو څخه كړى وى نو اخستل شوى اشياء حرام دى او كه په وخت داشتراء كښې يى مغصوبه پيسو ته اشاره نه وى كړى يايى اشاره كړى وى مگرثمن يى له هغو څخه نه وى اداء كړى بلكه نورې پيسى يى وركړې وى نوپداسى حالت كښې په اخستل شوى شيانو كښې كوم كراهت نشته، راجحه داده چې په هر حال دحرام مال نه حاصل شوى شيان حرام دى كه اشاره يى ورته كړى وى او كه نه او احتياط هم په همدى كښې دې.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله نقل ط عن الحموى عن صدر الاسلام: ان الصحيح لايحل له الاكل ولا الوطء لان فى السبب نوع خبث اهـ فليتامل (ردالمحتار ص١٦٥ ج٥)

د ركرخى قول دقرآن اوحديث اوقياس څخه مخالف ښكارى، بنده دهغه دصحيح محمل دتلاش كوشش وكړو او له بعضې نورو محقيقينو علماء څخه مى هم پوښتنه وكړه مگر داعقده حل نشوه والله سبحانه وتعالى اعلم. ٢٠ ربيع الاخر ١٣٧٤هـ

## د تير شوى سوال په شان يو بل سوال

**سوال**: يو سړى پرغصب شويو روپو څه شې واخستل آيا هغه شې ددې سړى لپاره جائزدې او كه نه؟ كه جائزنه وى نو اوس به څه كوى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داشې حرام دې دمغصوبو پيسو مقدار دې خپل مالك ته وركړى او كه هغه نه وى معلوم نو كوم مسكين ته دې وركړى نو داشې به دده لپاره حلال وگرځى اگر كه دهغه

قیمت د مغصوبه پیسو نه زیات وی، اوکه داشی یی په زیاتو روپو خرڅ کړنو گټه واجب الرد ده، حاصل داچی که زیادت دجنس مغصوب څخه وی نو حرام دي اوکه نه نو حلال دي عروض مغصوبه که دهغو له قیمت څخه په زیاتو پیسو خرڅ شی نو ربح د جنس مضمون کیدو له وجی حرامه ده.

**قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى تحت (قوله اذا كان متعينا بالاشارة) قال الزيلعي فان كان مما يتعين لا يحل له التناول منه قبل ضمان القيمة و بعده يحل الا فيما زاد على قدر القيمة وهو الربح فانه لا يطيب له و يتصدق به وفي القهستاني وله ان يؤديه الى المالك ويحل له التناول لزوال الخبث (ردالمحتار ص۱۲۰ ج۵)**

**قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وعند ابي يوسف رحمه الله تعالى لا يتصدق بشئ منه كما لو اختلف الجنس ذكره الزيلعي فليحفظ.**

**وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله كما لو اختلف الجنس) قال الزيلعي وهذا الاختلاف بينهم فيما اذا صار بالتقلب من جنس ما ضمن بان ضمن دراهم مثلا وصار في يده من بدل المضمون دراهم ولو طعام او عروض لا يجب عليه التصدق بالاجماع لان الربح انما يتبين عند اتحاد الجنس ومالم يصر بالتقلب من جنس ما ضمن لا يظهر الربح اھ (ردالمحتار ص۱۲۱ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.** ۲۴ ربیع الآخر سنہ ۷۶ھ

## دبازار دمیوې او غوښې اوشیدو حکم

**سوال**: دلاندی سوالونو ځوابونه راکړی ډیره مهربانی به مووی.

**اول**: کوم خلك چی د آمونو او امرودو او نورو میوو باغونه واخلی له هغوی څخه دتحقیق کولونه داثابته شوې ده چی دا معامله مخکې دمیوې د را زرغون کیدو څخه کیږی، لهذا دا دمعدوم شی بیعه شوه چی باطله ده او بیع باطلې څخه چی کوم حرمت او خباثت راشی هغه کله هم نه زائل کیږی ترڅو پورې چی ددې میوی اخستل او خرڅول کیږی دامیوه دټولو لپاره حرامه شوه. سربیره پردې په ونو کښې دمیوې پرېښودوشرط فاسد دې اگرچه دا شرط صراحتاً نه وی لیکن معروف ضرور دې پداسی صورت کښې چی په بازارکښې کومه میوه خرڅیږی دهغې بلا تحقیقه اخستل او استعمالول جائزدی او که ناجائز؟

**دویم**: بعضې اهل مشاهده ویلی دی چی دکراچۍ په مذبح کښې دذبح کولو په وخت ذبح کونکې بسم الله اکبر نه وائی همدارنگه بعضې اوقات دمردار حیوان غوښه بازارته راوړل کیږی او خرڅول کیږی پداسې حالاتو کښې له بازارڅخه را اخستل شوې غوښه خوړل جائز دی اوکه ناجائز؟

**دریم**: بعضې شیدی خرڅونکی دپاکی او ناپاکی اهتمام نه کوی دهغه مکان ته تلونکی دمشاهدې والا خلق وائی چی دغوجل او دهغه شاوخوا چی کومی میتیازې یا خوشایی وی هغه په ډیرو کمو اوبو وینځل کیږی چی دهغې په وجه نور هم نجاست خپریږی او دهغه ځاځکی لوښی ته

هم ور الوزی کله کله داسې هم کيږی چی د لوشلو په وخت کښې حيوان ميتيازی وکړی دهغو څاڅکی په شيدو کښې پريوځی دا شيدې بياپه بازار کښې خرڅيږی آيا ددې اخستل او استعمال جائز دې ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : تر ټولو دمخه اول دوه أصول ليکل کيږی : **الاصل الاول** : اليقين لايزول الا باليقين.

**الاصل الثاني** : اصل په اشياؤ کښې اباحت دې تر څو پورې چی دحرمت يقين نه وی، ددغو اصولو په رڼا کښې فقهاء کرامو په کثير الاستعمال کښې مثلا داوبو، غلې ، شيدو ، ميوو وغيره په استعمال کښې وسعت کړی دی.

نصوص الفقهاء رحمهم الله تعالی:

۱ــــ قال العلامة التمرتاشی رحمه الله تعالی: اذا وقعت نجاسة فی بئر دون القدر الكثير او مات فيها حيوان دموی وانتفخ اوتفسخ ينزح كل مائها بعد اخراجه.

وقال العلامة الحكفی رحمه الله تعالی تحته: قيد بالموت لانه لو اخرج حياً وليس بنجس العين ولا به حدث اوخبث لم ينزح شیء.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالی تحت (تحت قوله ليس بنجس العين) ای بخلاف الخنزير و كذا الكلب علی القول الاخر فانه ينجس البئر مطلقاً وبخلاف المحدث فانه يندب فيه نزح اربعين كما يذكره وبخلاف ما اذا كان علی الحيوان خبث ای نجاسة وعلم بها فانه ينجس مطلقا قال فی البحر وقيدنا بالعلم لانهم قالوا فی البقر ونحوه يخرج حيا لا يجب نزح شیء وان كان الظاهر اشتمال بولها علی افخاذها لكن يحتمل طهارتها بان سقطت عقب دخولها ماء كثيرا مع ان الاصل الطهارة اهو مثله فی الفتح (ردالمختار ص۱۳۱ج۱)

۲ــــ قال العلامة الحصكفی رحمه الله تعالی: العبرة للطاهر الخ) هذا ما عليه الاكثر فتح وهو قول محمد رحمه الله تعالی والفتوی عليه بزازية (ردالمحتار ص۲۳۳ج۱)

۳ــــ قال العلامة الحصكفی رحمه الله تعالی: مشی فی حمام ونحوه لاينجس مالم يعلم انه غسالة نجس.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالی: (قوله مشی فی حمام ونحوه) ای كما لو مشی علی الواح مشرعة بعد مشی من برجله قذر لايحكم بنجاسة رجله مالم يعلم انه وضع رجله علی موضعه للضرورة فتح (ردالمحتار ص۲۳۳ج۱)

۴ــــ قال العلامة الحصكفی رحمه الله تعالی: وغسل طرف ثوب اوبدن اصابت نجاسة محلا منه ونسی المحل مطهر له ان وقع الغسل بغير تحر هو المختار. (رد المختار ص ـــ ۲۱۸ جـــ ۱)

۵ — وقال ایضا: کما لو بال حمر حصها التغلیظ بولها اتفاقا علی نحو حنطة تدوسها فقسم اوغسل بعضه او ذهب بهبة او اکل او بیع کما مر حیث یطهر الباقی وکذا الذاهب لاحتمال وقوع النجس فی کل طرف کمسالة الثوب.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله لاحتمال الخ) ای انه یحتمل کل واحد من القسمین اعنی الباقی والذاهب او المغسول ان تکون النجاسة فیه فلم یحکم علی احدهما بعینه ببقاء النجاسة فیه وتحقیقه ان الطهارة کانت ثابتة یقینا لمحل معلوم وهو جمیع الثوب مثلا ثم ثبت ضدها وهو النجاسة یقینا لمحل مجهول فاذا غسل بعضه وقع الشك ببقاء ذلك المجهول وعدمه لتساوی احتمال البقاء وعدمه فوجب العمل بما کان ثابتا یقینا للمحل المعلوم لان الیقین فی محل معلوم لایزول بالشك بخلاف الیقین لمحل مجهول وتمام تحقیقه فی شرح منیة الکبیر. (ردالمحتار ص ۲۱۸ ج ۱)

۶ — قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله یعقل التسمیة الخ) زاد فی الهدایة ویضبط وهما قید لکل المعطوفات السابقة واللاحقة اذ الاشتراك اصل فی القیود کما تقرر قهستانی فالضمیر فیه للذابح المذکور فی قوله وشرط کون الذابح لاللصبی کما وهم واختلف فی معناه ففی العنایة قیل یعنی یعقل لفظ التسمیة وقیل یعقل ان حل الذبیحة بالتسمیة ویقدر علی الذبح ویضبط ای یعلم شرائط الذابح من فری الاوداج والحلقوم اه ونقل ابو السعود عن مناهی الشرنبلالیة ان الاول الذی ینبغی العمل به لان التسمیة شرط فیشترط حصوله لاتحصیله فلا یتوقف الحل علی علم الصبی ان الذبیحة انما تحل بالتسمیة اه وهکذا ظهر لی قبل ان اراه مسطورا ویؤیده ما فی الحقائق والبزازیة لو ترك التسمیة ذاکرا لها غیر عالم بشرطیتها فهو فی معنی الناسی اه (ردالمحتار ص ۱۸۹ ج ۵)

۷ — قال ایضا تحت (قوله لاتحل ذبیحة غیر کتابی) اقول وفی بلاد الدروز کثیر من النصاری فاذا جیء بالفریشة او الجبن من بلادهم لایحکم بعدم الحل مالم یعلم انها معمولة بانفحة ذبیحة درزی والاقلد تعمل بغیر الفحة وقد یذبح الذبیحة نصرانی تأمل وسیاتی عن المصنف اخر کتاب الصید ان العلم بکون الذابح اهلا للزکاة لیس بشرط (ردالمحتار ص ۱۸۹ ج ۵)

۸ — وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: فی الخلاصة من اللقطة قوم اصابوا بعیرا مذبوحا فی طریق البادیة ان لم یکن قریبا من الماء ووقع فی قلبه ان صاحبه فعل ذلك اباحة للناس لاباس بالاخذ والاکل لان الثابت بالدلالة کالثابت بالصریح انتهی فقد اباح اکلها بالشرط المذکور فعلم ان العلم بکون الذابح اهلا

للزكاة ليس بشرط قاله المصنف (ردالمحتار ص۳۰۷ ج۵)

دمذكوره نصوصو په رڼا كښې ځوابونه په لاندې ترتيب سره دي:

**اول**: په بازار كښې دخرڅيدونكې ميوې خوراك جائز دې په لاندې دلائلو سره.

۱- اگرچه بعضې باغونه په ناجائزه طريقه خرڅيږي ليكن ډيرباغونه داسې هم دي چې په جايزو طريقو سره خرڅيږي.

۲- بعضې خلك داسې وي چې دخپل باغ ميوه په خپله په بازار كښې خرڅوي.

۳- نن سبا اكثرې ميوې دلرې ځايونو څخه بازار ته راځي دكويټې اوپيښور ميوې په كراچۍ كښې خرڅيږي، لهذا كه چيرته په كوم ځاى كښې بيعه باطله دستوروي بياهم هلته ميوه اخستل جائز دي پدې بناء چې شايد دا ميوه له بل هغه ځاى څخه راوړل شوې وي چيرته چې بيع صحيح دستور وي، دحلت ددومره احتمالاتو باوجود دې ميوې ته ولې حرام وويل شي.

**دويم**: دقصاب دبسم الله نه ويلو به څنگه يقين وكړل شي شايد چې ورو او آهسته يې ويلې وي كه چيرته دكوم خاص قصاب په باره كښې په كومه خاصه موقع دبسم الله نه ويلو په څه قسم يقين راهم شي نو صرف همدغه ذبيحه به حرامه وي ددې قصاب نورې ذبيحې يا د نورو قصابانو په ذبيحو باندې دحرمت حكم څنگه جائز كيدې شي؟

**دريم**: همدا حكم دشيدو هم دې البته كه چاپه شيدوكښې نجاست وليدلو يائې دميتيازو څاڅكې پكښې وليدل نو بيا به دغه شيدې حرامې وي، والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۵ صفر سنه ۱۳۸۶هـ

## دخوراک په وخت كښې چپ اوسيدل

**سوال**: دخوراك دخوړلو په وخت كښې چپه خوله كيناستل بهتر دي اوكه خبرې كول بهتر دي؟ په شامي كښې چپ اوسيدلو ته مكروه ويل شوي دي، ستاسې تحقيق څه دې؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په شامي كښې علت دسكوت تشبه بالمجوس ښودل شوې دې مگر دزمانې او مكان دتغير له وجې احكام دتشبه بدليږي په دې زمانه كښې تشبه نشته لهذا كراهت به هم نه وي، البته بهتره داده چې جائزې تفريحي خبرې وشي، والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۶ جمادى الاولى سنه ۱۳۸۶هـ

## په ډوډۍ خوړونكو باندې دسلام نه اچولو حكمت

**سوال**: كله چې په وخت دخوراك كښې كلام بالمعروف منع نه دې نو سلام على الاكل ولې منع دې؟ بينو اتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ددې وجه دا معلومیږی چی کله په خوراك کونکو باندې سلام واچول شی نو دهغوئ په طبیعت کښې فوراً دجواب ورکولو داعیه پیداشی، کیدای شی چی په خوله کښې یی دنوړی (ګولې) له وجې هغه قادر نشی په سلام رد کولو باندی او سلام اچونکې هم فوراً دځواب ورکولو منتظر اوسیږی که چرته ځواب فورا ورنکړل شی نو دهغه په طبیعت کښې به یوقسم پریشانی او انقباض پیداشی په خلاف دخبرو چی سائل او متکلم نه فوراً دځواب منتظر وی اونه دمخاطب په طبیعت کښې فوراً دځواب ورکولو داعیه موجوده وی اونه په تاخیر دځواب په سائل یا متکلم کوم قسم انقباض را ځی، فاتفرقا والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۸ جمادی الاولی ۱۳۸۶ هـ

## په پان کښې چونه اوتمباکوخوړل

**سوال**: دپان خوړل څنګه دی پداسی حال کښې چی په هغې کښې دخاوری دجنس څخه چونه هم وی اونشه یی توکی «تمباکو» هم وی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دخاورې دخوړلو حرمت دضرر په وجه دې اوپه پان کښې په چونه خوړلو کښې هیڅ ضرر نشته بلکه مفیده ده، تمباکو مسکراو مفتر ندی، لدې وجی نه په دماغو کښې فتور هم نه راولی بلکه پدې کښې حدت دی لکه دمرچو زیاتو خوړلو کښې پریشانی وی لیکن نشه نه راولی، تمباکو خوړل په نسبت دڅکولو اخف دی په څکولو کښې دبدبویی قباحت زیات وی.

الحاصل: بغیر له تمباکو صرف له چونې سره په پان خوړلوکښې څه قباحت نشته په وخت دضرورت کښې دتمباکو هم اجازت شته بغیر ضرورته یی خوړل ندی په کار البته که چاته تمباکو یا چونه نقصان ورکوی نو هغه ته ندی جائز.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالیٰ: والتتن الذی حدث وکان حدوثه بدمشق فی سنة خمسة عشر بعد الالف یدعی شاربه انه لایسکر (الی ان قال) قلت فیفهم منه حکم النبات الذی شاع فی زماننا المسمی بالتتن فتنبه

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالیٰ تحت (قوله والتتن) وللعلامة الشیخ علی الاجهوری المالکی رسالة فی حله نقل فیها انه افتی بحله من یعتمد علیه من ائمة المذاهب الاربعة قلت والف فی حله ایضا سیدنا العارف عبدالغنی النابلسی رسالة سماها الصلح بین الاخوان فی اباحة شرب الدخان وتعرض له فی کثیر من تآلیفه الحسان واقام الطامة الکبری علی القائل بالحرمة اوبالکراهة فانهما حکمان شرعیان لابدلهما من دلیل ولادلیل علی ذلک فانه لم یثبت اسکاره ولا تفتیره ولا اضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة الاصل

فی الاشیاء لاباحة وان فرض اضرارہ للبعض لایلزم منه تحریمه علی کل احد فان العسل یضر اصحاب الصفراء الغالبة وربما امرضهم مع انه شفاء بالنص القطعی الخ)

(قوله فیفهم منه حکم النبات) وهو الاباحة علی المختار او التوقف وفیه اشارة الی عدم تسلیم اسکاره وتفقیرہ واضرارہ والا لم یصح ادخاله تحت القاعدة المذکورة ولذا امر بالتنبه (رد المحتار ص ۲۹٦ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۲ محرم سنه ۸۷ هـ

## له پیزار (بوټانو) سره خوراك كول

**سوال**: له بوټانو سره خوراك او څښاك كول څنګه دی؟ بينوا توجرو.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: اذا وضع الطعام فاخلعوا نعالکم فانه اروح لاقدامکم (مشکوة ص ۳٦۸ ج ۲) په حديث كښې «فانه اروح لاقدامكم» علت نه داسې معلوميږي چې د خلع نعال امر په شفقت مبنی دې چې د بوټانو په ويستلو كښې آرام اوسهولت دې سره له پيزاره هم خوراك جائز دې ليكن نن سبا سره دبوټانو په ميز او كرسئ خوراك كول دمتكبرينو شيوه او شعار جوړشوې، لهذا لدې څخه ځان ساتل ضروری دی.

دحضور صلى الله عليه وسلم ارشاد دې چې داسې په عاجزئ سره په ناسته خوراك كوه لكه څنګه چې غلام دخپل مالك مخی ته ناست وی، په ميز او چوكښې خوراك كول دتواضع شان ختموی ، والله سبحانه وتعالى اعلم

۲٦ ذی القعدة سنه ۱۳۸۷ هـ

## فقيرته پس خورده يا پاتې شوې ډوډی وركول

**سوال**: فقير ته جوټه يا دشپې پاتې شوې خوراك وركول جائز دی اوكه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: جوټه ياپاتی شوې خوراك وركول جائز خودی مګر دښه خوراك وركولو برابرثواب يې نه وركول كيږي.

قال الله تعالی: لن تنالوا البر حتی تنفقوا مما تحبون.

قال العلامة الالوسی رحمه الله تعالی: وفی المراد من قوله سبحانه ما تحبون اقوال. فقیل المال و کنی بذلك عنه لان جمیع الناس یحبونه وقیل نفائس الاموال و کرائمها وقیل ما یعم ذلك وغیرہ من سائر الاشیاء التی یحبها الانسان ویهواہ والانفاق علی هذا مجاز وعلی الاولین حقیقة (روح المعانی ص ۱۹٦ ج ۱)

وقال ایضا: واستشکلت هذہ الایة بان ظاهرها یستدل علی ان الفقیر الذی لم ینفق طول عمرہ مما یحبه لعدم

امکانه لایکون بارا او لاینالہ برالله تعالی الکامل باهل طاعته مع انه لیس کذلك واجیب بان الکلام خارج مخرج الحث علی الانفاق وهو مقید بامکان وانما اطلق علی سبیل المبالغة فی الترغیب وقیل الاولی ان یکون المرادلن تنالوا البر الکامل الواقع علی اشرف الوجوه حتی تنفقوا مما تحبون والفقیر الذی لم ینفق طول عمره لایبعد القول بانه لایکون بارا کاملا ولاینالہ برالله تعالی الکامل باهل طاعته (روح المعانی صـ ۱۹۶ جـ ۱) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۱ شوال سـ ۸۸ھـ

## په حرام شی بسم الله ویل

**سوال**: دحرام شی دخوړلو په وخت بسم الله ویل جائز دی او که ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دحرام شی دخوراك په وخت کښې په قصد داستخفاف بسم الله ویل بالاتفاق کفردې او بغیر له استخفاف نه په ویلو کښې یې اختلاف دې صحیح او راجح داده چې کفرنده او حرامه ده.

قال العلامة الالوسی رحمه الله تعالی: نعم التسمیة علی الحرام والمکروه مما لاینبغی بل هی حرام فی الحرام لا کفر علی الصحیح مکروهة فی المکروه وقیل مکروهة فیهما ان لم یقصد استخفافا وان قصده والعیاذ بالله تعالی کفر مطلقا (روح المعانی صـ ۶۳ جـ ۱) والله سبحانه وتعالی اعلم.

تفصیل په تتمه دکتاب الایمان والعقائد کښې دی.

## دسبیل اوبه په ولاړه څښل

**سوال**: په سړکونو باندی لګیدلی سبیلونو یا چه مسجد کښې داینبودل شوی کولر وغیره نه په ولاړه اوبه څښل څنګه دی؟ یوعالم وائی چې د داسی اوبو دڅښلوحکم په ولاړه باندی دې او دا باعث دثواب دې آیا دا صحیح دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا ګمان غلط او په جهالت باندی بناء دې په ولاړی له اوبو څخه په احادیثو کښې منع راغلی ده دسبیل وغیره نه چیرته هم استثناء نشته البته دحضورصلی الله علیه وسلم نه په ولاړه داوبو څښلو ثبوت هم شته محدثینو ددواړه قسمه احادیثو ذکر کړې او تطبیق یې دا کړې دې چې دنهی له احادیثو څخه کراهت تنزیهی مراد دې اودشرب قائما له احادیثو څخه بیان دجواز مراد دې دسبیل او کولر داوبوهم همداحکم دې البته که د ازدحام له وجی دناستی ځای نه وی یاختی وی چې دجامو دخرابیدلو خطر وی یا بل داسی کوم عذروی نو په ولاړه اوبه څښل بغیر له کراهته جائزدی والله سبحانه وتعالی اعلم. ۹ ربیع الاول سـ ۱۳۸۹ ھـ

## دغیرمسلمو لوښی استعمالول

**سوال**: دیوکالج په کوټو (اطاقونو) کښې مسلم اوغیر مسلم دواړه قسمه محصلین اوسیږی دخوراك اوڅښاك لوښی مشترك استعمالیږی آیا د مسلمانو شاگردانو لپاره پداسې صورت کښې داقسم لوښی استعمالول جائز دی؟ همدارنگه د اروپا په هوټلونو کښې دهغوی لوښی دخوراك وغیره لپاره استعمالول څنگه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که غالب گمان داوی چی غیر مسلم شاگردان په دغولوښو کښې نجس شې مثلاشراب اچوی نو داستعمال په وخت کښې دهغو وینځل ضروری دی او استعمال یی جائز دې اوکه نجس شې پکښې نه اچوی نو بغیر وینځلو یی هم داستعمال گنجائش شته د اروپا دهوټلونو هم همداحکم دې مگر دغیرمسلم شاگردانو سره دوستانه تعلق ساتل اوبغیر له ضرورت نه دهغوئ شیان استعمالول یا له هغوئ سره په یوه لوښی کښې خوراك کول دغیرت ایمانی خلاف دی او په دنیا او آخرت کښې دتباهی باعث گرځی، لهذا حتی المقدرو لدې څخه احتراز کول لازم دی والله سبحانه وتعالی اعلم.

## دمنکراتو په ځای کښې دعوت ته تلل

**سوال**: په هغو ودونو کښې چی ساز اوسرود وغیره منکرات پکښې وی په هغوکښې شرکت کول جائز دی او که نه؟ که ناجائز وی نو په کومه درجه کښې دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که له مخکې نه معلوم وی نو شرکت کول مکروه تحریمی دی اوکه دورتگ نه وروسته معلوم شی که دخوراك په مجلس کښې کوم منکروی نو په دې مجلس کښې شرکت مکروه تحریمی دې او که په دغه مجلس کښې نه وی نو که په بندولو یی قادر وی نو بند دې کړی او که قادر نه وی نو صبردې وکړی دا حکم دعامو خلکو لپاره دې دعالم، مقتدا او صالح شخص لپاره شرکت په هر حال مکروه تحریمی دې.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: دعی الی ولیمة وثمة لعب اوغناء قعد واکل لو المنکر فی المنزل فلو علی المائدة فلا ینبغی ان یقعد بل یخرج معروضا لقوله تعالی فلا تقعد بعد الذکری مع القوم الظالمین.

فان قدر علی المنع فعل والا یقدر صبر ان لم یکن ممن یقتدی به فان کان مقتدی ولم یقدر علی المنع خرج ولم یقعد لان فیه شین الدین والمحکی عن الامام کان قبل ان یصیر مقتدی به وان علم اولا باللعب لا یحضر اصلا سواء کان ممن یقتدی به اولا لان حق الدعوة انما یلزمه بعد الحضور لا قبله ابن کمال (رد المحتار ص۲۲۱ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۴ رجب سنه ۹۰ هـ

## دګانو او بجانو (ساز اوسرود) په هوټل کښې خوراک کول

**سوال**: نن سبا په بازار کښې تقریبا په ټولو هوټلونو کښې ساز او سرود عام دې یو سړې د سودا اخستلو لپاره یا دبل کوم ضرورت لپاره بازارته خی دخوراك ضرورت پیښیږی نو آیا پداسې هوټل کښې خوراك جائز دې ؟ که جائز وی نو آیاد هوټل مالك له داسې منکر څخه منع کول ضروری دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که له منکراتو څخه پاك هوټل نه پیداکیږی نو پداسې هوټل کښې دخوراك کولو ګنجایش شته دې.

بیا که دهوټل له مالك څخه دمنلو امیدوی نو دهغه لدې منکر څخه منع کول فرض دی او که دمنلو امید نه وی لیکن دفتنی اندیښنه هم نه وی نو منع کول یې مستحب دی او که د فتنې اندیښنه وی یاد انکار کولو او د دین اواهل دین د مذاق اومسخرې کولو اندیښنه وی نو منع کول یې جائز ندی. والله سبحانه وتعالی اعلم. غره شعبان سنه ۹۰ هـ

## پنیر مایه حلاله ده

**سوال**: آیا پنیر مایه حلاله ده اوکه نجسه اوحرامه ده ؟ برابره خبره ده که عربی اوښ وی یا دبل کوم ماکول اللحم حیوان وی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: پنیر مایه حلاله او پاکه ده برابره خبره ده که دهر ماکول اللحم مذبوح حیوان وی دهغه حلت دنص دورود دوجی نه خلاف القیاس دې اوکه نه نو دمعدی نه هر وتونکې شې دخوشیانو په حکم کښې وی او دخرشین په شان نجس وی.

اخبرنا ابوبکر بن فورك انبا عبدالله بن جعفر ثنا یونس بن حبیب ثنا ابوداود الطیالسی ثنا شریك عن جابر عن عکرمه عن ابن عباس رضی الله عنهما ان رسول الله صلی الله علیه وسلم لما فتح مکة رای جبنة فقال ماهذا فقالوا هذا طعام یصنع بارض العجم قال فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم ضعوا فیه السکین واذکروا اسم الله وکلوا.

اخبرنا ابونصر بن قتادة انبا ابوعمرو بن مطر وابو الحسن السراج قالا انبا محمد بن یحیی بن سلیمان المروزی ثنا عاصم بن علی ثنا شعبة عن ابی اسحاق قال سمعت قرظة یحدث عن کثیر بن شهاب قال سالت عمر بن الخطاب رضی الله عنه عن الجبن فقال ان الجبن من اللبن واللبا فکلوا واذکروا اسم الله علیه ولا یغرنکم اعداء الله.

اخبرنا ابوعبدالله الحافظ انبا علی بن عباس ثنا محمد بن بشار ثنا محمد ابن جعفر ثنا شعبة عن قتادة عن علی البارقی انه سئل ابن عمر رضی الله عنهما عن الجبن فقال کل ما صنع المسلمون واهل الکتاب (السنن الکبری

للبيهقي ص۶ ج۱۰)

قال الامام البيهقي رحمه الله تعالى: وهذا لان السخال تذبح فتؤخذ منها الانفحة التي بها يصلح الجبن فاذا كانت من ذبائح المجوس واهل الاوثان لم يحل وهكذا اذا ماتت السخلة فاخذت منها الانفحة لم تحل (السنن الكبرى للبيهقي ص۷ ج۱۰)

وقال العلامة ظفر احمد العثماني رحمه الله تعالى: اجمعت الامة على جواز اكل الجبن مالم يخالطه نجاسة بان يوضع فيه انفحة سخلة ذبحها من لايحل ذكاته فهذا ذكرناه من دلالة الاجماع هو المعتمد في اباحة وقد جمع البيهقي فيه احاديث كثيرة وروى عن عمر وابن مسعود وابن عمر رضى الله تعالى عنهم كلوا من الجبن ما صنعه المسلمون واهل الكتاب قال البيهقي رحمه الله وهذا التقييد لان الجبن يعمل بانفحة السخلة المذبوحة فاذا كانت من ذبائح المجوس لم يحل وعن ابن عمر رضى الله عنهما انه سئل عن السمن والجبن فقال سم وكل فقيل ان فيه ميتة فقال ان تعلمت ان فيه ميتة فلا تاكل قال البيهقي وكان بعض العلماء لايسئال منه تغليبا للطهارة روينا ذلك عن ابن عباس وابن عمر وغيرهما رضى الله عنهم وكان بعضهم يسال عنه احتياطا رويناه عن ابي مسعود الانصاري وعن الحسن البصري رحمهما الله تعالى قال كان اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم يسالون عن الجبن ولايسالون عن السمن اهـ من شرح المهذب (ص۶۹ ج۹) (اعلاء السنن ص۱۴۲ ج۱۷) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۷ ربيع الاول سنه ۹۳ هـ

## له غير مسلم ملكونو څخه راتلونكي پنير مايه

**سوال**: له خارجي ملكونو څخه چه كومه پنير مايه راځي آيا هغه حلاله ده اوكه حرامه ؟ بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب**: پنير مايه له غير انفحه څخه هم جوړيږي ، له همدې كبله ترڅو پورې چه دخارجي ملكونو دپنير مايي متعلق له انفحه څخه دجوړولو يقين نه وي نو حلاله ده ليكن بيا هم احتياط غوره دې ، اوكه چيرې له انفحه څخه د جوړيدلو يقين وي نو بيا حرامه ده .

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله لاتحل ذبيحة غير كتابي) اقول وفي بلاد الدروز كثير من النصارى فاذاجيء بالقريشة اوالجبن من بلادهم لايحكم بعدم الحل مالم يعلم انها معمولة بانفحة ذبيحة درزي والافقد تعمل بغير انفحة وقد يذبح الذبيحة نصراني تامل وسياتي عن المصنف اخر كتاب الصيد ان العلم بكون الذابح اهلا للذكوة ليس بشرط (رد المحتار ص۱۸۹ ج۵)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: لكن في الخلاصة من اللقطة قوم اصابوا بعيرا مذبوحا في طريق البادية ان لم يكن قريبا من الماء ووقع في القلب ان صاحبه فعل ذلك اباحة للناس لا بأس بالاخذ والاكل لان الثابت بالدلالة كالثابت بالصريح انتهى فقد اباح اكلها بشرط المذكور فعلم ان العلم بكون الذابح اهلا للذكوة ليس بشرط. (ردالمحتار ص ۳۰۷ ج ۵)

د ذکر شوو نصوصو څخه مطلق حلت معلومیږی مګر ددې زمانی داهل کتابو ذبیحه حلاله نده. دذبیحې تفصیل په تیروشو بحثونو کښې تیر شوې دی، والله اعلم بالصواب.

۱۷ ربیع الاول سنه ۱۳۹۳

## دصابون شیدی څښل

**سوال:** که په شیدوکښې صابون ولویږی دشیدوپه حلت خوکوم اثرنه کوی؟ برابره خبره ده که شیدې یخی وی یا ګرمی خواه صابون فوراً وه ویستل شی اوکه لږ وخت پکښې پاتی شې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په هر حال شیدې حلالې دی، البته که له صابون نه دنقصان ظن غالب وی نو حرامې دی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

## له حرام مال څخه دلګول شوې نلکې نه اوبه څښل

**سوال:** چا دشرابو او جواری په پیسو نلکه ولګوله چی لدې څخه اهل محله اوبه استعمال کړی آیا ددې اوبه څښل او استعمالول جائزدی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دداسې نلکې نه اوبه وړل ګناه ده لیکن استعمالول اوڅښل یی جائزدی، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ جمادی الاولی سنه ۱۳۹۳

## په ناپاکو اوبو چنګاوشوې سبزی حلاله ده

**سوال:** په ناپاکه اوبوباندې لمده شوې سبزی مثلا پالك دنیا وغیره خوړل جائزد ی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په ناپاکه اوبوباندې چنګاوشوې سبزی خوړل جائز دی مګر که ناپاکه اوبه په هغو لګیدلې وی او وچې شوې نه وی نو دا سبزی ناپاکه ده بنه صفا ستره دې ومینځل شی بیادې استعمال کړې شی.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى تحت (قوله لان لحمه لايتغير ،فيفرع) في ابي السعود الزروع المسقية

بالنجاسات لاتحرم ولاتكره عند اكثر الفقهاء رحمهم الله تعالى (ردالمحتار ص۲۱۰ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم

۲۰ جمادی الاخرة سنه ۹۳ هـ

## دناپاکو اوبوخښونکی حیوان شیدې حلالی دی

**سوال**: په یوه کوهی کښې پشوغورځیدلې وه اوپکې مړه شوې وه ددې کوهی اوبه ئی حیواناتو ته ورکړې وې اوبیایی له دغو حیواناتو څخه غوړی اوپنیر لاس ته راوړې وو ایا اوس دا غوړی اوپنیر پاك دې اوکه ناپاك ؟ که ناپاك وی نو څنګه به پاك کړې شی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: غوړی اوپنیر پاك دی، والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۲ محرم سنه ۱۳۹۵ هـ

## دکوربه په کورکښې وروسته له ډوډۍ خوړلونه تړدیره وخته کیناستل

**سوال**: زید وایی چی د ډوډۍ دخوړلو څخه وروسته دکوربه په کور کښې کیناستل اوپه خبرو کښې مشغولیدل جائزندی آیا داخبره صحیح ده ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ډوډۍ دخوړلو څخه وروسته دکوربه په کور کښې تړدیره وخته کیناستل جائز ندی ځکه پدې کښې کوربه ته تکلیف وی او هغه دغیرت له وجی بیرته دتللو نشی ویلی ، البته که دکوم کار دوجی ددیروکیناستلو ضرورت وې یا له کوربه سره داسی خصوصی تعلق وی چی دهغه دتکلیف باعث نه وی نو تړدیره په ناستې کښې کوم حرج نشته.

قال العلامة الالوسی رحمه الله تعالی تحت قوله تعالی فاذا طعمتم فانتشروا ولامستانسین لحدیث ان ذلکم کان یؤذی النبی فیستحیی منکم: ای فاذا اکلتم الطعام فتفرقوا ولاتلبثوا والفاء للتعقیب بلا مهملة للدلالة علی انه ینبغی ان یکون دخولهم بعد الاذان والدعوة علی وجه یعقبه الشروع فی الاکل بلا فصل والایة علی ماذهب الیه الجل من المفسرین خطاب لقوم کانوا یتحینون طعام النبی صلی الله علیه وسلم فیدخلون ویقعدون منتظرین لادراکه مخصوصة بهم وبامثالهم ممن یفعل مثل فعلهم فی المستقبل فالنهی مخصوص عمن دخل بغیر دعوة وجلس منتظرا للطعام من غیر حاجة فلاتفید النهی عن الدخول باذن لغیر طعام ولاعن الجلوس واللبث بعد الطعام لمهم اخر ولو اعتبر الخطاب عاما لکان الدخول واللبث المذکوران منهیان عنهما ولاقائل به (روح المعانی ص۶۵ ج۸)

۲۵ ربیع الاول سنه ۹۵ هـ

## دستیل (نیکل) په لوښی کښې خوراك اوڅښاك کول

**سوال**: نن سبا دستیلو دلوښو عام رواج دې یو مولوی صاحب وائی چی دا اوسپنه ده پدې کښې

خوراك اوڅښاك كول مكروه كيدل پكار دي دجناب تحقيق په دې باره كښې څه دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : داوسپنې اوستيل په لوښو كښې خوراك اوڅښاك كول بلاكراهته جائز دي، فقهاى كرامو د مسو او پيتلو په لوښي كښې خوراك ته مكروه ويلي دي او دهغې وجه يي دا ښودلې ده چې دهغو رنګ له خوراك سره يو ځاى كيږي چې دصحت لپاره مضر دې لدې وجې نه له قلعي كولو وروسته جائزدي دستيلو لوښي خودصحت لپاره مفيد دي نو پدې كښې دكراهت هيڅ وجه نشته.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويكره الاكل في نحاس اوصفر والافضل الخزف.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ثم قيد النحاس بالغير المطلي بالرصاص وهكذا قال بعض من كتب على هذا الكتاب اى قبل طليه بالقزدير والشب لانه يدخل الصداء في الطعام فيورث ضررا عظيما واما بعده فلا اه

وقال بعد اسطر: وفي الجوهرة واما الانية من غير الفضة والذهب فلا بأس بالاكل والشرب فيها والانتفاع بها كالحديد والصفر والنحاس والرصاص والخشب والطين اه فتنبه (رد المحتار ص ۲۱۸ ج ۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۸ ذى القعده سنـــ ۹۸ هـــ

## په ميز او كرسئ باندې خوراک كول

**سوال** : په ميز او كرسئ خوراك كول څنګه دي؟ دا خوپه عواموخواصو كښې رواج دې آيا داپه تشبه بالكفار يا تشبه بالفساق كښې د داخليدو په وجه ممنوع دى اوكه دعام رواج كيدلوله وجې په تشبه كښې داخل ندي اوله دې وجې جائز دي ؟ اوكه په تشبه كښې داخل وي نو په وخت ددعوت دنزدې قريبانو يا ديندار ه خلكو كښې څه طريقه اختيارول په كار دي ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : كه نيت دتشبه بالكفار و الفساق وي نو په ميز اوكرسيئ خوراك ناجائز دې اوكه دتشبه نيت نه وي بياهم په هرحال خلاف سنت دې، لهذا لدې څخه ځان ساتل پكاردي، البته كه چيرته ابتلاء وشي نود خوراك ګنجايش شته دی . والله سبحانه وتعالى اعلم.

غره ذى الحجة سنـــ ۱۳۹۸هـــ

## خاک شفا خوړل جائز ندی

**سوال** : حاجيان دمكې اومدينې منورې څخه دخاورې توټه راوړى اوتقسيم كوى يى بعضې ښځې هغه بابركته بولى دشفا حاصلولو په نيت يى خوري، شرعا ددې څه حكم دې ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دخاورې خوړل جائزندي البته په لږه اندازه چې دصحت لپاره مضره نه وي جائزدي، والله سبحانه وتعالى اعلم.

۳۰ ذى الحجة سنـــ ۱۳۹۸.

## دیتیم له مال سره له مشترک مال څخه میلمنوته خوراک ورکول

**سوال**: په یو کور کښې یتیم هم او سیږی ټول جائید اد مشترک دې په دی کور کښې میلمه ته ډوډئ ورکول او د میلمه هلته ډوډئ خوړل او مسکین ته خوراك ورکول جائزدی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له یتیم سره له مشترك مال څخه میلمنوته ډوډئ ورکول یا مسکین ته ورکول جائزندی او میلمه او مسکین ته دهغې خوړل حرام دی، دیتیمانو دمصارفو صحیح حساب کول فرض دی دمیلمستیا وغیره انتظام دې بالغ شریکان له خپل طرف څخه کوی، البته که بالغ شریکان له بل کوم طرف څخه آمدن لری او خپل آمدن په مشترك حساب کښې جمع کوی او ددوئ څانګړی آمدن دومره زیات وی چی له مشترك مال څخه دمهمان نوازی کولو په صورت کښې دیتیمانو دحق تلفی دنه کیدلو یقین وی نو بیاګنجائش شته.

قال الامام القرطبی رحمه الله تعالی: السادسة: قوله تعالی وان تخالطوهم فاخوانکم هذه المخالطة کخلط المثل بالمثل کالتمر بالتمر وقال ابو عبید: مخالطه الیتامی ان یکون لاحدهم المال ویشق علی کافله ان یفرد طعامه عنه ولا یجد بدا من خلطه بعیاله فیاخذ من مال الیتیم مایری انه کافیه بالتحری فیجعله مع نفقة اهله وهذا قد یقع فیه الزیادة والنقصان فجاءت هذه الایة الناسخة بالرخصة فیه (الجامع لاحکام القران صه۶۵ ج ۲) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۹ رمضان سنه ۹۹ هـ

## دشیعه خوراک خوړل

**سوال**: که دشیعه کورته یو سنی لاړشی نو دهغه دکور خوراك خوړل جواز لری او که نه؟ په غوښه او نوروشیانو کښې څه فرق شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: شیعه ګان زندیقان دی لهذا له هغوئ سره هیڅ قسم تعلق ندې جائز دهغوئ له کور څخه څه شې خوړل دایمانی غیرت خلاف او ناجائزدی، البته دشدید ضرورت په وخت کښې ګنجائش شته مګر دغوښې په باره کښې څه تفصیل دې لهذا له هغې څخه احتراز واجب دی

## دکافر دعوت قبلول

**سوال**: دکافر دعوت قبلول جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: کوم کافر چی زندیق نه وی یعنی ځانته مسلمان نه وائی دهغه دکور خوراك خوړل جائزدی په دې شرط چی دهغه آمدن داسلام یا دهغه دمذهب له مخه حلال وی او که نه نو ندی جائز، البته دهغه ذبیحه په هر حال حرامه او مرداره ده. والله سبحانه وتعالی اعلم

۵ذی الحجه سنه ۱۳۹۹ هـ

## دنائی دعوت قبلول

**سوال**: دنائی دعوت قبلول څنګه دی ؟ په داسې حال کښې چې هغه لمونځ کونکې او متقی هم وی ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نائی که چیرته دخلکو ږیره خریي یایي کموی او خلاف شرع ویښتان جوړوی نو دهغه ددعوت قبلولو لپاره دری شرطونه دی : (۱) : دحرام آمدن دحلال آمدن نه دلږوالی یقین وی . (۲) : ددعوت مال دخالص حراموته دنه کیدو یقین وی . (۳) : دحرام او حلال دمخلوط کیدو یقین نه وی په دغو دریو شیانو کښې داشتباه په صورت کښې دعوت خوړل جائز دی مګر ځان ساتل ترینه غوره دی، والله سبحانه وتعالی اعلم. غره ذی الحجه ۱۳۹۹ هـ

## له غاښونو څخه را ایستلې شوې ډوډۍ تیرول

**سوال**: د ډوډۍ دخوړلو په وخت کښې دډوډی څینې ذرې په غاښونو کښې ننښلی دا ذرات کله دژبې په څوکه او کله هم دخلال کولو سره راوزی نو هغو تیرول څنګه دی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دواړو صورتونو کښې تیرول جائزدی مګر دخلال کولو په صورت کښې تیرول دنظافت خلاف دی دخلال په وخت کښې دوینی دوتلو او له غذا سره دخلط کیدو احتمال وی لهذا بهتر یی نه تیرول دی .

عن ابی هریرة رضی الله عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم فی حدیث: من اکل فما تخلل فلیلفظ وما لاک بلسانه فلیبتلع من فعل فقد احسن ومن لا فلا حرج (مشکوة ص۳۲ ج۱) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۰ محرم سنه ۱۴۰۰ هـ)

## دوچې وزی (چیلۍ) شیدې

**سوال**: یوه وزه بغیر دملاقات دفحل او بغیر دولادت څخه شیدې ورکوی آیا دا شیدې حلالې دی اوکه حرامې ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب**: حلالې دی ، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۳ محرم سنه ۱۴۰۰

## په حرام سوزول شوی شی سره دپوخ شوی طعام خوراک

**سوال**: په هاسټل (لیلیه ) کښې دبرق په منقل (هیټر) باندې ناشته وغیره تیاریږی چې قانوناً منع ده همدارنګه په یخنی کښې وربانذی کمره (اطاق) ګرمولې شی په هاسټل کښې دیوځو دینداره شاګردانو نه علاوه سل په سلو کښې زده کونکی منقل استعمالوی آیا د منقل استعمالول جائز دی اوپه هغه پوخ شوې طعام خوړل جائزدی ؟ که مونږ دکوم ملګری کمرې ته ورشو او هغه په منقل باندې چای تیارکړی او رایی وړی نو دهغه څښل جائزدی اوکه نه؟ همداراز که دکمرې نور

ملگری په منقل باندې دکمرې په گرمولو باندی مصروی نو ماته څه کول پکاردی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : خلاف قانون هیټر «منقل» استعمالول حرام دی په هغه باندې پوخ شوې څیز اگرچه حرام ندې مگرله هغه څخه ځان ساتل لازم دی له نورو ملگرو سره دې هم هغه چای نه څښي او کمره هم گرم کول ورباندې ندی جائز که نور ملگری په منع کولو سره هم داکار پرې نږدی نو په تا کومه گناه نشته ، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۵ صفر سنه ۱۴۰۰هـ

## ملتانی خاوره خوړل

**سوال** : ځینی ښځی ملتانی خاوره پخوی یا یی خامه خوری آیا دا جائز دی اوکه نه له چانه چی معلومات شوې چی دا ولی خورئ نو وائی چی دحمل په دوران کښې دا ښه لگیږی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دخاورې حرمت په سبب دضرر سره دې که کوم مستند طبیب اووائی یاپه تجربه سره ثابته وی چی ددې په خاص مقدار کښې ضرر نشته نو دومره مقدار خوړل جائزدی له هغه څخه زیات ندی جائز، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۰ ربیع الاول سنه ۱۴۰۰هـ

## له وینې سره خلط شوې شیدې ماشوم ته ورکول حرام دی

**سوال** : دیوې ښځې له تیونو څخه له شیدو سره وینه هم راځی پداسې حال کښې چی دماشوم رضاعت لا اوس هم باقی پاتې دې آیا دې ښځی ته جائزدی چی ماشوم ته تې ورکړی ؟ ددې په باره کښې که کومه جزئیه دفقهی دکتابونو معلومه وی هغه هم ولیکئ ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ددې لپاره دصریحی جزئیی ضرورت نشته دوینی حرمت منصوصی دې لهذا چی په شیدو کښې دوینې رنگ راشی نو حرامې دی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۹ ربیع الاول سنه ۱۴۰۰هـ

## دفارمی چرگانو دخوراک اوغوښی حکم

**سوال** : پولټری فارم والا دمختلف قسم مردارو حیواناتو وینه او نورځینی اعضاء یوځای کوی او دچرگانو غذا ترینه تیاروی اوهغه ورته ورکوی دداسې قسم خوراک ورکول چرگانو ته او دهغه خوراک خرید او فروش جائز دې او که نه؟ او په همدې خوراک دغتې شویو چرگانو غوښه حلاله ده او که حرامه ؟ بینو ا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د داسې غذا خوراک، خرید اوفروش اوپه چرگانو خوړل جائزندی البته داسې چرگان حلال دی دغوښی دحرمت لپاره شرط دادې چی دنجسې غذا له وجی په غوښه کښې بدبویی پیداشی چی دهغې مفقود والی شاهد دې.

**قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله وكره لحم الجلالة التي تاكل العذرة) اى فقط حتى انتن لحمها**

قال فی شرح الوهبانیة وفی المنتقی الجلالة المکروهة التی اذا قربت وجدت منها رائحة فلا تؤکل ولا یشرب لبنها ولا یعمل علیها وتلك حالها ویکره بیعها وهبعها وتلك حالها وذکر البقالی ان عرقها نجس اهو قدمناه فی الذبائح (ردالمحتار ص۲۱٦ ج۵)

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: وتحبس الجلالة حتی یذهب نتن لحمها وقدر بثلاثة ایام لدجاجة واربعة لشاة وعشرة لابل وبقر علی الاظهر ولو اکلت النجاسة وغیرها بحیث لم ینتن لحمها حلت کما حل اکل جدی غذی بلبن خنزیر لان لحمه لایتغیر وما غذی به یصیر مستهلکا لا یبقی له اثر.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله (قوله حلت) وعن هذا قالوا لابأس باکل الدجاج لانه یخلط ولا یتغیر لحمه وروی انه علیه الصلوة والسلام کان یاکل الدجاج وماروی ان الدجاجة تحبس ثلاثة ایام ثم تذبح فذلك علی سبیل التنزه زیلعی (ردالمحتار ص۲۱۷ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۰ ذی القعده سنه ۱۴۰۰ هـ

## دماتې شوې پیالې څخه څښاك كول

**سوال**: دپیالې غاړه كه چیرته ماته شی نو له هغې څخه چای یا اوبه وغیره څښل څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دپیالې په مات شوی ځای خوله کیښودل څښاك كول مكروه دی دكراهیت وجوهات یی داده چې: **اول**: د اوبو د تویېدلو خطره ده. **دویم**: دخولې دزخمی كولو خطره ده. **دریم**: په دغه ځای كښې دخیری وغیره دجمع كیدو احتمال وی. د كوزې له څوكې څخه دڅښلو دكراهیت وجه هم داده اوبله وجه دكراهیت داده چې كیدای شی په څوكه كښې چینجې یا كومه حشره اوخزنده وی. **څلورم**: دا دسلیم طبعیت خلاف دی.

عن ابی سعید الخدری رضی الله عنه انه قال نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن الشرب من ثلمة القدح وان ینفخ فی الشراب. سنن ابی داود ص۸۳ ج۲

عن ابی هریرة رضی الله عنه انه کره ان یشرب الرجل من کسر القدح اویتوضأ منه (مصنف عبدالرزاق ص۴۲۸ ج۱۰) والله سبحانه وتعالی اعلم. غره محرم سنه ۱۴۱۳ هـ

## دمردارې په هډوكی كښې مغز حرام دې

**سوال**: د مردارې په هډوكو كښې چې كوم ماغزه وغیره وی دا پاك دی او كه ناپاك؟ كه نا پاك وی نو دنجاست وجه یی څه ده؟ هډوكی خود دواړو طرفونو نه بند وی پدې كښې خوحلول دنجاست ناممكن وی كه په حلال طعام كښې د مردارې هډوكې یامغز واچول شی نو دهغه خوړل حلال دی

که حرام ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دهډوکی دننه مغز هم دخوراك څخه پیدا کیږی لدې معلومه شوه چی دخوراك وغیره اثر دهډوکښې داخل ته هم رسیږی څنګه چی قدرت دهغه د رسولو انتظام کړې وی نو کله چی دخوراك داثرڅخه دهډوکی مغز پیدا کیږی نو دا به هم نجس وی، هډوکې پاك دي مګر د مردارې چی کوم شې حلال دې دهغو خوراك ناجائزدې که په هډوکی دپاسه وی یا دننه دڅه قسم رطوبت اثر وی نو په طعام کښې د داسې هډوکی داچولو څخه طعام حرام ګرځی.

۱۲رجب سنــ ۱۴۰۳

## دجیلی (یوقسم خوراکی مواد دی) تحقیق

**سوال** : په ډبل روټی باندې جیلی لګول اوبیا خوړل کیږی ځینی خلك دانا جائزبولی ځکه دا دحیواناتو دڅرمنی اوهډوکښې څخه جوړیږی ستاسې تحقیق پدې باره کښې څه دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : اول خو د جیلی جوړول دڅرمنې او هډوکی څخه ضروری نده چی داڅرمن دې دمردارې وی ځکه چی دحلالې ذبیحی څرمنې ډیرې دی.

دویم دا چې دجیلی په صنعت کښې دماهیت دتبدیل هم احتمال شته پدی صورت کښې دحرام ځناور دڅرمنی څخه جوړه جیلی هم حلاله ده زیات تجسس اوتحقیق کول اودخیالاتو او اوهامو په بناء احتراز کول په دین کښې دتعمق او غلو کولو له وجی منع ده او بغیر له شرعی دلیل نه دحرمت حکم لګول په دین کښې زیادت او تحریف دی . والله سبحانه وتعالی اعلم. ۶صفرسنــ ۱۴۰۵هــ

## دمچ په چاۍ کښی لویدل

**سوال** : چې په ګرم چاۍ کښې مچ پریوځی اوهغه ته پکې غوټه ورکړل شی آیا دهغې څښل جائز دی اوکه حرام دی ؟ دالبحر دلاندې جزئیی څخه حلت معلومیږی : **ومعنی امقلوہ اغمسوہ وجه الاستدلال به ان الطعام قد یکون حارا فیموت بالغمس فیه فلو کان یفسدہ لما امر النبی صلی الله علیه وسلم لیکون شفاء لنا اذا اکلناہ (البحر الرائق ص۸۸ج۱)**.جواب محقق ورکړی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : مچ دنورو حشرات الارض په شان حرام دې دخوراك یاڅښاك شیان که دومره ګرم وی چی دمچ اجزاء پکې حل کیږی یا په هغې کښی دده دعرق شاملیدو ظن غالب وی نو دحضراتو فقهاء کرامو دتصریحاتو موافق دهغې استعمال حرام دې دبحر جزئیه په هغه صورت محموله ده چی دمچ داجزاء یا دعرق داختلاط ظن غالب نه وی چونکه د حشرات الارض دحرمت اصل علت استخباث دیې او داپه لږ مقدار کښې پیدا کیږی په طعام یاشراب کثیر کښې که وی نو دا علت نه پیدا کیږی لهذا که لوی دیګ ته مچ ولویږی نو دهغه استعمال جائز دې.

قال الامام ابن الهمام رحمه الله تعالی: روی عن محمد رحمه الله تعالی اذا تفتت الضفدع فی الماء کرهت شربه لاللنجاسة بل لحرمة لحمه وقد صارت اجزاؤه فیه وهذا تصریح بأن کراهة شربه تحریمية وبه صرح فی التجنیس فقال یحرم شربه (فتح القدیر ص۵۸ ج۱)

وکذا قال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالی (البحر الرائق ص۸۹ ج۱)

وقال ایضا: واعلم ان کل مالا یفسد الماء لا یفسد غیر الماء وهو الاصح کذا فی المحیط والتحفة والاشبه بالفقه کذا فی البدائع لکن یحرم اکل هذه الحیوانات المذکورة ما عدا السمک الغیر الطافی لفساد الغذاء وخبثه متفسخا اوغیره وقد قدمناه عن التجنیس (البحر الرائق ص۹۰ ج۱) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۹ صفر سنه ۱۴۱۲ هـ

## چینجی خوړلې میوه یا غله خوړل

**سوال**: په کومه میوه کښې چې چنجې لګیدلې وی دهغی خوړل څنګه دی ؟ دنفع المفتی والسائل بغرض تصدیق استفتساء اواستبشار ستاسو په خدمت کښې دی.

الاستفسار: هل یحل اکل الدود التی تکون فی التفاح وغیره معه.

الاستبشار: نعم لتعسر الاحتراز منه واما اذا فرزت واکلت فحکمه حکم الذباب کذا فی مطالب المؤمنین (نفع المفتی والسائل ص۱۱۰) بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چنجې ایستل اودمیوې خوړل جائزدی. دنفع المفتی والسائل جواب صحیح ندی.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله: ولا بأس بدود الزنبور قبل ان ینفخ فیه الروح لان مالا روح له لایسمی میتة خانیة وغیرها قال ویؤخذ منه ان اکل الجبن اوالخل اوالثمار کالنبق بدودة لایجوز ان نفخ فیه الروح (رد المحتار ص۱۹۳ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۰ ذی القعدة سنه ۱۴۱۴ هـ

## دمسلمان مملوکه غوښه کافر ته په لاس ورتللو سره حرامه نګرځی

**سوال**: دلاندی سوالونو ځوابونه مطلوب دی:

**اول**: کافرمسلمان ته خبرورکړي چې داغوښه مې له مسلمان څخه اخستې ده یا مسلمان هدیه ورکړې ده آیا دهغه خبر معتبر ګرځول او غوښه یې حلاله بلل اوخوړل ئې جائزدی؟

**دوهم**: دمسلمان مملوکه غوښه څه وخت پداسې حالت کښې دکافر په قبضه کښې راغله چې له هغه سره څوک مسلمان نه وو نو په داسې حالت کښې پداسې طریقې سره داغوښه حرامه ګرځی ؟

ځینی خلك هغه حرامه بولی آیا مسئله همداسی ده ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دواړوصورتونو کښې غوښه حلاله ده اودهغی استعمال جائزدی

قال العلامة الحصكفي رحمه الله: ويقبل قول كافر ولو مجوسيا قال اشتريت اللحم من كتابي فيحل اوقال اشتريته من مجوسي فيحرم ولايرده بقول الواحد واصله ان خبر الكافر مقبول بالاجماع في المعاملات لافي الديانات وعليه يحمل قول الكنز ويقبل قول الكافر في الحل والحرمة يعني الحاصلين في ضمن المعاملات لامطلق الحل والحرمة كما توهمه الزيلعي.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله واصله) اى اصل ماذكر من ثبوت الحل والحرمة وهويشير الى سؤال وجوابه المذكورين في النهاية وغيرها حاصل السؤال ان هذه المسالة مناقضة لقوله الاتي وشرط العدالة في الديانات فان من الديانات الحل والحرمة كما اذا اخبربأن هذا حلال اوحرام وقد شرط فيها العدل والمراد به المسلم المرضي وهنا قوله شريته من كتابي الخ معناه انه حلال اوحرام وقد قبل فيه خبر الكافر ولو مجوسيا والجواب ان قوله شريته من المعاملات وثبوت الحل والحرمة فيه ضمني فلما قبل قوله في الشراء ثبت ما في ضمنه بخلاف ما يأتي وكم من شئ يثبت ضمنا لاقصدا كوقف المنقول وبيع الشرب وبه يتضح الجواب عن الكنز (ردالمحتار ص۲۲۰ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۸ جمادى الثانية سنہ ۱۴۱۵ھ

## دکافر په نیزد د غوښې د خوړلو دجواز حیله

**سوال**: کافر یو حیوان واخسیت اوپه کوم مسلمان باندې یی ذبح کړ د دغې غوښې لپاره مسلمانانو ته دعوت ورکول غواړی لیکن هغه ته داخبره انتهائی مشکله معلومیږی چی داغوښه دذبحې له وخته بیاد خوراك تروخته پورې دکوم مسلمان په نگرانئ کښې وی، اوس پوښتنه داده چی داسې تدبیر شته چی لدې مشکل څخه نجات حاصل شی او مسلمانانو ته ددې غوښی خوراك حلال شی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ددې تدبیر دادې چی کافر دې خپل حیوان کوم مسلمان ته قیمتا یاهدیتا ورکړی هغه دې مالك و گرځوی بیادې مسلمان هغه ذبح کړی اودهغې غوښه دې قیمتا یا هدیتا کافرته ورکړی، پدې صورت کښې دمسلمان نگرانی ضروری نده اومسلمانانو ته دهغې خوراك جائزدې، کافرته دومره ویل کافی دی چی ما دا له مسلمان څخه اخستی ده یامسلمان ماته هدیه راکړې ده. والله سبحانه وتعالی اعلم ۲ رجب ۱۴۱۵ هـ

## له حرام مال څخه مسکین ته خوراک ورکول جائز ندی

**سوال** : یوسړې په بانك کښې مامور دې دهغه بالغ اولاد که مسکین وی نو آیا هغوئ ته دپلار دحرام آمدن څخه خوراك، پوښاك جائزدې ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : حرام مال واجب التصدق دې چی په هغې کښې تملیك دمسکین ضروری دې لدې وجی نه له حرام آمدن څخه مسکین ته هم خوراك کول جائز ندی، البته که هغه مسکین دهغه مالك وګرځول شی نو دهغه لپاره جائزدی مګر دمسکین دتملیك نه پس هم دغنی لپاره ندې جائز څوپورې یی چی غنی مالك نه وی ګرځولی.

په سوال کښې په مذکوره صورت کښې داتدبیر اختیارولې شی چی پلار خپل کوم بالغ اولاد دنغدو مالك وګرځوی او هغه بیاد کور ټولو مصارفو باندی خرچ کوی پداسې طریقې سره به ټوله کورنۍ له حرامو خوړلو څخه بچ شی.

فی الباب الخامس عشر من کراهیة الهندیة : والسبیل فی المعاصی ردها وذلك ههنا برد الماخوذ ان تمکن من رده بان عرف صاحبه وبالتصدق به ان لم یعرفه لیصل الیه نفع ماله ان کان لا یصل الیه عین ماله.

(عالمگیریه ص ۳۴۹ ج ۵)

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: علیه دیون ومظالم جهل اربابها وایس من علیه ذلك من معرفتهم فعلیه التصدق بقدرها من ماله وان استغرقت جمیع ماله (ردالمحتار ص ۳۳۳ ج ۳)

وقال ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله تملیکا) فلا یکفی فیها الاطعام الا بطریق التملیك ولو اطعمه عنده ناویا الزکاة لا تکفی. (ردالمحتار ص ۶۲ ج ۲)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: وطاب لسیده وان لم یکن مصرفا للصدقة ما ادی الیه من الصدقات فعجز لتبدل الملك واصله حدیث بریرة رضی الله عنها هی لك صدقة ولنا هدیة کما فی وارث شخص فقیر مات عن صدقة اخذها وارثه الغنی وکما فی ابن السبیل اخذها ثم وصل الی ماله وهی فی یده ای الزکاة وکفقیر استغنی وهی فی یده فانها تطیب له بخلاف فقیر اباح لغنی اوهاشمی عین زکاة اخذها لا یحل لان الملك لم یتبدل.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی تحت (قوله لان الملك لم یتبدل) لان المباح له یتناوله علی ملك المبیح ونظیره المشتری شراء فاسدا اذا اباح لغیره لا یطیب له ولو ملکه یطیب هدایة (ردالمحتار ص ۸۲ ج ۵)

والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۴ ربیع الاول سنه ۱۴۱۷ هـ

*******

# د سلام احکام

## په کافر دسلام اچول یااخستل

**سوال**: په کافر باندې سلام اچول جائزدی اوکه ناجائز؟ او دکافر دسلام ورکولو جواب څنګه دې؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: کافرته تعظیما سلام کول کفردې که تعظیم مقصود نه وی محض دتحیه په طور وی نو ناجائزدی او که دکوم حاجت له وجی نه وی نو جائز دې مګر السلام علی من اتبع الهدی دې اووائی. دکافر دسلام جواب ورکول جائزدی لیکن په ځواب کښې صرف وعلیك ویل پکار دی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: ویسلم المسلم علی اهل الذمة لوله حاجة الیه والا کره هو الصحیح( الی ان قال) ولوسلم یهودی اونصرانی اومجوسی علی مسلم فلاباس بالرد ولکن لایزید علی قوله وعلیك کما فی الخانیة ولوسلم علی الذمی تبجیلا یکفر لان تبجیل الکافر کفر.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله: (قوله ویسلم المسلم علی اهل الذمة الخ) انظر هل یجوز ان یاتی بلفظ الجمع لوکان الذمی واحدا والظاهر انه یاتی بلفظ المفرد اخذا مما یاتی فی الرد تامل لکن فی الشرعة والظاهر انه یاتی بلفظ المفرد اخذا مما یاتی فی الرد تامل لکن فی الشرعیة اذا سلم علی اهل الذمة فلیقل السلام علی من اتبع الهدی و کذلك یکتب فی الکتب الیه اهوفی التتارخانیة قال محمد رحمه الله تعالی اذا کتبت الی یهودی اونصرانی فی حاجة فاکتب السلام علی من اتبع الهدی اه (قوله لوله حاجة الیه) ای الذمی المفهوم من المقام قال فی التتارخانیة لانه النهی عن السلام لتوقیره ولاتوقیر اذاکان السلام لحاجة. (رد المحتار صـ ۲۶۴ جـ ۵)

وقال ایضا: (قوله فلاباس بالرد) المتبادر منه ان الاولی عدمه لکن فی التتارخانیة واذاسلم اهل الذمة ینبغی ان یرد علیهم الجواب وبه نأخذ(ردالمحتار ص۲۵۶ج۵)والله سبحانه وتعالی اعلم. (۱۹ شعبان سنـ۸۸ـهـ)

## بدعتی اوفاسق ته سلام اچول

**سوال**: په بدعتی او فاسق باندی سلام اچول شرعاً څنګه دی؟ اودهغه دسلام ځواب ورکول څنګه دی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په بدعتی او په علانیه فسق کښې په مبتلاء شخص سلام اچوال جائزندی ډیره دیوموتی نه کمول او ښنګری په پایڅو کښې پټول، تی وی کتل تصویرونه جوړول اوساتل، دښځو دشریعت موافق پرده نه کول، حرام خوړل، په بانك انشورنس وغیره سودی ادارو

کښې کار کول، غیبت کول، دا ټول علانیه بغاوتونه دي څوك چې ددې ارتکاب کوي او څو پورې چې له دغو څخه په علانیه توبه ونه کړي په دغو خلکو سلام اچول جائزندي.

البته که دکوم فاسق سره تعارف او پیژندګلووی نو په هغه سلام کول جائزدی لدې وجې چې په سلام نه کولو باندې دکبر ګمان کیږي او پدې سره له دین او دیندارو خلکو څخه نفرت پیداکیږي ځواب ورکول په هرحال ضروري دي.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويكره السلام على الفاسق لومعلنا والالا.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تحت (قوله لومعلنا) وفي فصول العلامي لايسلم على الشيخ المازح الكذاب واللاغي من يسب الناس اوينظر وجوه الاجنبيات ولا على الفاسق المعلن ولاعلى من يغني اويطير الحمام مالم تعرف توبته (ردالمحتار ص۲٦٤ ج۵)

وقال ايضا: وينبغي وجوب الرد على الفاسق لان كراهة السلام عليه للزجر فلاتنافي الوجوب عليه تأمل (ردالمحتار ص۴۱۵ ج۱) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۸ ربيع الاول سنه ۸۹هـ

## دسلام دکراهیت مواقع (ځایونه)

**سوال:** کوم کوم ځایونه داسې دي چې په هغې کښې سلام اچول مکروه دي؟ که دکراهیت په ځایونو کښې څوك سلام واچوي نو ځواب ورکول ضروري دي او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** دسلام دکراهیت مواقع (ځایونه) دا لاندې دي:

**اول:** کوم سړي چې دځواب ورکولو څخه عاجزوي هغه ته سلام کول خواه حقیقتاً عاجزوي لکه خوراك کوي یا شرعاً عاجزوي لکه په لمونځ یا اذان یا اقامت یا ذکر یا تلاوت یا دعلوم دینیه په تعلیم او تعلم کښې مشغول وي.

**دویم:** قاضي ته په مجلس دقضاء کښې دخصمینو سلام کول.

**دریم:** نامحرمه خوانه ښځه باندې سلام اچول

**څلورم:** په لوڅ شخص باندې سلام اچول

**پنځم:** په قضاء حاجت بول یا پاخانه باندې مشغول شخص باندې سلام اچول

**شپږم:** په شطرنج تاش وغیره باندې په مشغول شخص باندې

**اوم:** له ښځې سره په مشغول شخص باندې. په دغو ټولو صورتونو کښې راجح قول دادی چې که څوك سلام وکړي نو ځواب دسلام واجب ندي

قال العلامة الحصكفي رحمه الله: وفي النهر عن صدر الدين الغزي:

سلامك مكروه على من تسمع ومن بعد ما ابدی یس ويشرع
مصل وتال ذاکر ومحدث خطيب ومن يصغى اليهم ويسمع
مكرر فقه جالس لقضائه ومن بحثوا فى الفقه دعهم لينفعوا
مؤذن ايضا مقيم مدرس كذا الاجنبيات الفتيات امنع
ولعاب شطرنج وشبه بخلقهم و من هو مع اهله يتمتع
ودع كافرا ايضا ومكشوف عورة و من هو فى حال التغوط اشنع
ودع اكلا الا اذا كنت جائعا و تعلم منه انه ليس يمنع

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى تحت (قوله وصرح فى الضياء) قلت لكن فى البحر عن الزيلعي مايخالفه فانه قال يكره السلام على المصلى والقارى والجالس للقضاء او البحث فى الفقه او التخلى ولو سلم عليهم لايجب عليهم الرد لانه فى غير محله اه ومفاده ان كل محل لايشرع فيه السلام لايجب الرد وفى شرح الشرعة صرح الفقهاء بعدم وجوب الرد فى بعض المواضع القاضى اذا سلم عليه الخصمان والاستاذ الفقيه اذا سلم عليه تلميذه او غيره او ان الدرس وسلام السائل والمشغل بقراءة القران والدعاء حال شغلهم والجالسين فى المسجد لتسبيح او قراءة اوذكر حال التذكير اه وفى البزازية لايجب الرد على الامام والمؤذن والخطيب عند الثانى وهو الصحيح اه (رد المحتار ص ۲۱۳ ج ۱) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۸ ربیع الاول سنہ ۸۹ ھ

## دخط دسلام ځواب ورکول

**سوال**: دخط دسلام ځواب ورکول واجب دی او که نه؟ که واجب وی نو بالفور واجب دی یا عند جواب الکتاب؟ که دخط دځواب ورکولو اراده نه وی یا خط قابل دځواب نه وی نو بیا څه حکم دي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: زباني يا په ذريعه دخط ځواب ورکول واجب دی بهتر دادی چې فوراً په ژبه سره ځواب ورکړې شی ځکه ممکنه ده دخط ځواب ورکولو فرصت پیدا نشی نو واجب به فوت شی او ګناه ګار به شی.

که دخط دځواب ورکولو اراده نه وی یا خط قابل دځواب نه وی نو فوراً ځواب په ژبه ورکول واجب دی.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويجب رد جواب كتاب التحية كرد السلام.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ويجب رد جواب كتاب التحية) لان الكتاب من الغائب بمنزلة الخطاب من الحاضر مجتبى والناس عنه غافلون ط اقول المتبادر من هذا ان المراد رد سلام الكتاب لا رد الكتاب لكن فى الجامع الصغير للسيوطى رد جواب الكتاب حق كرد السلام قال شارحه المناوى اى اذا كتب لك رجل بالسلام فى كتاب ووصل اليك وجب عليك الرد باللفظ او بالمراسلة وبه صرح جمع شافعية وهو مذهب ابن عباس رضى الله تعالى عنهما (رد المحتار ص۲۶۶ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۰ ربیع الاول سنه ۹۸ هـ.

## دراديو دسلام ځواب ورکول واجب ندی

**سوال**: په راديو دتقرير کولو يا دقرآن ددرس ورکولو يا دخبرونو څخه مخ کښې السلام عليکم ويل کيږی ايا په آوريدونکو باندې دهغه ځواب ورکول واجب دی اوکه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بغير له ضرورته خبرونه آوريدل جائزندی لدې وجی په راديو دسلام آوريدو او دځواب ورکولو سوال نه پيدا کيږی، که چيرته دضرورت واقعی له وجی خبرونه آوريدل وی او په راديو سلام واوريدل شی نو دهغه ځواب ورکول جائزندی، ددی لپاره چی دا سلام دسنت خلاف اوبی موقع ده.

د وعظ اوتقرير اودبل کوم کار دعام اشاعت او اعلان نه مخکښې سلام دحضور صلی الله عليه وسلم اوصحابه کرامو اوتابعينو اوسلف صالحينو څخه ثابت ندې، له حضور صلی الله عليه وسلم څخه اوله صحابه کرامو څخه خطبات ماثوره شته دی مګر له هغوئ څخه مخکښې سلام چيرته هم منقول ندې.

عن هلال بن يساف قال كنا مع سالم بن عبيد فعطس رجل من القوم فقال السلام عليكم فقال له سالم وعليك وعلى امك فكان الرجل وجد فى نفسه فقال اما انى لم اقل الا ما قال النبى صلى الله عليه وسلم اذا عطس رجل عند النبى صلى الله عليه وسلم فقال السلام عليكم فقال النبى صلى الله عليه وسلم عليك وعلى امك الحديث رواه الترمذى وابوداود. (مشكوة صـ۴۵۶) فعدل صلى الله عليه وسلم عن الجواب المسنون واختار الطريق الغريب تنبيها على ان العطاس ليس محلا للسلام.

بعضې اکابرينو دراديو دسلام دځواب دنه وجوب دا وجه بيان کړې ده چی مجيب په سلام اچونکی باندې دسلام د ور آوريدو قادر ندې مګر پدې دا اشکال دې چی دوجوب دجواب لپاره قدرت على الاسماع شرط ندې کما قال فى جواب سلام الكتاب والاصم، بلکه په بعضې صورتونو کښې فقهاء کرامو د قدرت اسماع باوجود جواب بدون اسماع ليکلې دې. کما فى جواب سلام

الاجنبیه الشابه ، والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۷ جمادی الثانیه سنه ۱۳۹۸ھ

## په سلام کښې په «برکاته» باندې زیادت کول مکروه دي

**سوال**: یو مولوی صاحب فرمایی چې په سلام او ځواب د سلام کښې د «وبرکاته» نه بعد مغفرته وغیره زیاتول مکروه دي حالانکه ما په مشکوة شریف کښې د زیادت په فضیلت کښې حدیث لوستې دې، لهذا په دې باره کښې تحقیق ولیکئ، ډیره مهربانی به مو وی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې باره کښې روایات مختلف دي له بعضو نه جواز معلومیږي اوله بعضو څخه کراهت معلومیږي په لاندې وجوهو سره کراهیت ته ترجیح معلومیږي. **اول**: فقهاء کرام او عام مفسرین د کراهیت قائل دي. **دویم**: په وخت د تعارض کښې اصولاً کراهیت ته ترجیح وی. **دریم**: د ممانعت روایت سنداً هم قوی دې. **څلورم**: د مقلد لپاره قول د فقهاؤ دلیل دې.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولا يزيد الراد على وبركاته.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: قال في التتارخانية والافضل للمسلم ان يقول السلام عليكم ورحمة الله وبركاته والمجيب كذلك يرد ولا ينبغي ان يزاد على البركات شيء اه (رد المحتار ص۲۶۶ ج۵)

قال الحافظ العسقلاني رحمه الله تعالى: (قوله فزادوه ورحمة الله) فيه مشروعية الزيادة في الرد على الابتداء وهو مستحب بالاتفاق لوقوع التحية في ذلك في قوله تعالى (فحيوا باحسن منها او ردوها) فلو زاد المبتدء ورحمة الله استحب ان يزاد وبركاته ولو زاد وبركاته فهل تشرع الزيادة في الرد وكذا لو زاد المبتدء على وبركاته هل يشرع له ذلك اخرج مالك في الموطا عن ابن عباس رضي الله تعالى عنهما قال انتهى السلام الى البركة واخرج البيهقي في الشعب من طريق عبدالله بن بابيه قال جاء رجل الى ابن عمر رضي الله عنهما فقال السلام عليكم ورحمة الله وبركاته ومغفرته فقال حسبك الى وبركاته انتهى الى وبركاته ومن طريق زهرة بن معبد قال قال عمر رضي الله عنه انتهى السلام الى وبركاته ورجاله ثقات وجاء عن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما الجواز فاخرج مالك ايضا في الموطا عنه انه زاد في الجواب والغاديات والرائحات واخرج البخاري في الادب المفرد من طريق عمرو بن شعيب عن سالم مولى ابن عمر قال كان ابن عمر رضي الله عنهما يزيد اذا رد السلام فاتيته مرة فقلت السلام عليكم فقال السلام عليكم ورحمة الله ثم اتيته فزدت وبركاته فرد وزادني وطيب صلوته ومن طريق زيد بن ثابت انه كتب الى معاوية رضي الله عنهما السلام عليكم يا امير المؤمنين ورحمة الله وبركاته ومغفرته وطيب صلوته نقل ابن دقيق العيد عن ابي الوليد ابن رشد انه يؤخذ من قوله تعالى (فحيوا باحسن منها) الجواز في الزيادة على

البرکة اذا انتهی الیه المبتدی واخرج ابوداود والترمذی والنسائی بسند قوی عن عمران بن حصین رضی الله تعالی عنه قال جاء رجل الی النبی صلی الله علیه وسلم فقال السلام علیکم فرد علیه وقال عشر ثم جاء اخر فقال السلام علیکم ورحمة الله فرد علیه وقال عشرون ثم جاء اخر فزاد وبرکاته فرد وقال ثلاثون واخرج البخاری فی الادب المفرد من حدیث ابی هریرة رضی الله عنه وصححه ابن حبان وقال ثلاثون حسنة وکذا فیما قبلها صرح بالمعدود وعند ابی نعیم فی عمل یوم ولیلة من حدیث علی رضی الله عنه انه هو الذی وقع له مع النبی صلی الله علیه وسلم ذلك واخرج الطبرانی من حدیث سهل بن حنیف بسند ضعیف رفعه من قال السلام علیکم کتب له عشر حسنات ومن زاد ورحمة الله کتبت له عشرون حسنة ومن زاد وبرکاته کتبت له ثلاثون حسنة واخرج ابوداود من حدیث سهل بن معاذ بن انس الجهنی عن ابیه بسند ضعیف نحو حدیث عمران وزاد فی اخره ثم جاء اخر فزاد ومغفرته فقال اربعون وقال هکذا تکون الفضائل واخرج ابن السنی فی کتابه بسند واه من حدیث انس رضی الله تعالی عنه قال کان یمر فیقول السلام علیك یارسول الله فیقول له وعلیك السلام ورحمة الله وبرکاته ومغفرته ورضوانه واخرج البیهقی فی الشعب بسند ضعیف ایضا من حدیث زید بن ارقم کنا اذا سلم علینا النبی صلی الله علیه وسلم قلنا وعلیك السلام ورحمة الله وبرکاته ومغفرته وهذه الاحادیث الضعیفة اذا انضمت قوی ما اجتمعت علیه من مشروعیة الزیادة علی وبرکاته. (فتح الباری صـــ ۵ جـــ ۱)

قال العبد الضعیف: فانی راجعت الموطأ فوجدت فیه خلاف ما نقل عنه الحافظ رحمه الله تعالی ونصه عن یحی بن سعید ان رجلا سلم علی عبدالله ابن عمر رضی الله عنه فقال السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته والغادیات والرائحات فقال له عبدالله بن عمر وعلیك الفا کانه کره ذلك (موطا صه ۲۵)

قال العلامة محمود الالوسی رحمه الله تعالی: (فحیوا باحسن منها) ای بتحیة احسن من التحیة التی حییتم بها بان تقولوا وعلیکم السلام ورحمة الله تعالی ان اقتصر المسلم علی الاول وبان تزید وا وبرکاته ان جمعها المسلم وهی النهایة فقد اخرج البیهقی عن عروة بن الزبیر رضی الله عنهما ان رجلا سلم علیه فقال السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته فقال عروة ما ترك لنا فضلا ان السلام قد انتهی الی وبرکاته وفی معناه ما اخرجه الامام احمد والطبرانی عن سلمان الفارسی رضی الله تعالی عنه مرفوعا وذلك لانتظام تلك التحیة لجمیع فنون المطالب التی هی السلامة عن المضار ونیل المنافع ودوامها ونماؤها وقیل یزید المحی اذا جمع المحی الثلاثة له فقد اخرج البخاری فی الادب المفرد عن سالم مولی عبدالله بن عمر قال کن ابن عمر رضی الله تعالی عنهما اذا

سلم عليه فردزادفاتيته قلت السلام عليكم فقال السلام عليكم ورحمة الله وبركاته فقال السلام عليكم ورحمة الله وبركاته وطيب صلوته ولايتعين ماذكر للزيادة فقدورد خبررواه ابوداود والبيهقى عن معاذرضى الله عنه زيادة ومغفرته فما فى الدر من ان المراد لايزيد على وبركاته غير مجمع عليه. (روح المعاني صـ ۹۹ جـ۵)

قال الامام الرازى رحمه الله تعالى: (المسالة الرابعة) منتهى الامر فى السلام ان يقال السلام عليكم ورحمة الله وبركاته بدليل ان هذا القدر هو الوارد فى التشهد واعلم انه تعالى قال (فحيوا باحسن منها اوردوها فقال العلماء والاحسن هو ان المسلم اذا قال السلام عليك زيد فى جوابه الرحمة وان ذكر السلام والرحمة فى الابتداء زيد فى جوابه البركة وان ذكر الثلاثة فى الابتداء اعادها فى الجواب روى ان رجلا قال للرسول صلى الله عليه وسلم السلام عليك يا رسول الله فقال عليه الصلوة والسلام وعليك السلام ورحمة الله وبركاته واخر قال السلام عليك ورحمة الله فقال وعليك السلام ورحمة الله وبركاته فجاء ثالث فقال السلام عليك ورحمة الله وبركاته فقال عليه الصلوة والسلام وعليك السلام ورحمة الله وبركاته فقال الرجل نقصتنى فاين قول الله فحيوا باحسن منها فقال صلى الله عليه وسلم انك ما تركت لى فضلا فرددت عليك ماذكرت (تفسير كبير صـ۲۱۲ جـ۱۰)

قال الحافظ ابن كثير رحمه الله تعالى بعد نقل الحديث المذكور بطريق متعددة: وفى هذا الحديث دلالة على انه لازيادة فى السلام على هذه الصفة السلام عليكم ورحمة الله وبركاته اذلوشرع اكثر من ذلك لزيادة رسول الله صلى الله عليه وسلم (تفسير ابن كثير صـ۵۰۳ جـ۱)

قال العلامة ابوالسعود رحمه الله تعالى: (فحيوا باحسن منها) اى بتحية احسن منها بأن تقولوا وعليكم السلام ورحمة الله ان اقتصر المسلم على الاول وبأن تزيدوا وبركاته ان جمعهما المسلم وهى النهاية لانتظامها لجميع فنون المطالب التى هى السلامة عن المضار ونيل المنافع ودوامها ونماؤها (تفسير ابى السعود صـ۲۶۰ جـ۱)

والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۷ جمادى الثانية سنـ ۹۸ هـ

## دبيابيا تلوراتلو دسلام تكرار

**سوال**: حضور صلى الله عليه وسلم فرمايي: اذالقى احدكم اخاه فيسلم عليه فان حالت بينهما شجرة اوجدار اوحجر ثم لقيه فيسلم عليه رواه ابوداود (مشكوة صـ۳۹۹ جـ ۲) لدې څخه معلوميږي چې څومره مرتبې هم ديوال يا بل څه حائل وى بياهم دمخامخ كيدو په صورت كښې سلام كول په كاردى آيا دا صحيح ده ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داحكم په احياناً مخ ته راتلو صورت باندې محمول دى په كوم

ځای کښې چې بیابیا دا صورت پیښیږی مثلا څوك دمخدوم کمرې ته باربار ځی راځی نو هلته په تکرار دسلام اوجواب کښې حرج ظاهردې، لهذا دا صورت له حدیث څخه مستثنی دی، والله سبحانه وتعالی اعلم. غره ذی القعده سنـ ۱۴۱۶ھـ

## په وخت دسلام کښې په تندی باندی لاس کیښودل

**سوال**: دسلام کولو په وخت کښې په تندی باندی لاس کیښودل څه حکم لری؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داد هندوانو شعار دې او دسجدې قائمقام دې لدې وجی حرام دې. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۸ذی الحجة سنـ ۱۳۸۶

## دلاس په اشاره سره سلام کول

**سوال**: دلاس په اشاره کولو سره سلام کول جائزدی اوکه نه اودهغه ځواب ورکول واجب دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که له کومې وجې دغږ رسولومشکل وی نو په لاس سره سلام کول جائز دی اوځواب یې واجب دې او که آواز رسیږی نوصرف اشاره کافی نده بلکه په ژبه باندی سلام اوځواب ورکول سره دلاس د اشاری جائزدی څکه چې دا دمصافحی قائم مقام دی، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۸ذی الحجه سنـ ۱۳۸۶ھـ

## د تیر شوی سوال په شان یو بل سوال

**سوال**: دلفظ دسلام نه بغیر صرف په لاس سره په اشاره کولو سلام کول اوځواب ورکول جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بغیر له عذرنه دلاس په اشاره سره سلام کول جائزندی او دهغه ځواب ورکول هم واجب ندی اوبلاعذره له سلام سره دلاس اشاره یوځای کول جائزدی څکه چې دا دمصافحې قائمقام دی او دعذر دوجی صرف په لاس سره اشاره کول هم جائزدی البته که ممکن وی نوله هغه سره تلفظ هم کول په کاردی.

حدثنا قتیبة نا ابن لهیعة عن عمروبن شعیب عن ابیه عن جده ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال لیس منا من تشبه بغیرنا لا تشبهوا بالیهود ولا بالنصاری فان تسلیم الیهود الاشارة بالاصابع وتسلیم النصاری الاشارة بالاکف هذا حدیث اسناده ضعیف وروی ابن المبارك هذا الحدیث عن ابن لهیعة فلم یرفعه (سنن الترمذی ص۹۹ج۲)

قال الملاعلی القاری رحمه الله تعالی: رواه الترمذی وقال اسناده ضعیف ولعل وجهه انه من عمروبن

شعيب عن ابيه عن جده وقد تقدم الخلاف فيه وان المعتمد ان سنده حسن لاسيما وقد اسنده السيوطي في الجامع الصغير الى ابن عمر، فارتفع النزاع وزوال الاشكال.

وقال الامام النووي رحمه الله تعالى: روينا عن اسماء بنت زيد ان رسول الله صلى الله عليه وسلم مرفي المسجد يوما وعصبة من النساء قعود فالوى بيده بالتسليم.

قال الترمذي: هذا حديث حسن وهو محمول على انه صلى الله عليه وسلم جميع بين اللفظ والاشارة ويدل على هذا ان اباداود روى هذا الحديث وقال في روايته فسلم علينا قلت على تقدير عدم تلفظه عليه السلام بالسلام لامحذور فيه لانه ماشرع السلام على من مر على جماعة من النسوان (الى ان قال) وقد يحمل على انه لبيان الجواز بالنسبة الى النساء ران نهى التشبه محمول على الكراهة لاعلى التحريم والله اعلم.

(مرقاة المفاتيح صـ۴۳۱ جـ۸)

وقال الحافظ العيني رحمه الله تعالى: ولوكان السلام على اصم فينبغي الاشارة مع التلفظ ليحصل الافهام والا فلايستحق جوابا وكذا اذا سلم عليه الاصم واراد الرد عليه فيتلفظ باللسان ويشير بالجواب ولوسلم على الاخرس فاشار الاخرس باليد سقطعنه الفرض وكذا لوسلم عليه اخرس بالاشارة استحق الجواب (عمدة القاري ص۲۳۰ ج۲۲)

قال في الهندية ويكره السلام بالسبابة كذا في الغياثية (عالمگيرية ص۳۲۶ ج۵)

وفي الشرعة ولايشير المسلم بالاصبع فانه من داب اليهود ولابالكف فانه من عادة النصارى (المتانة في مرمة الخزانة ص۴۸) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۷ جمادى الثانية سنـ ۱۴۱۷ هـ

*********
********

# رواج شوی رسمونه

## دنعتيه اشعاروحکم

**سوال**: په شريعت مطهره کښې دنعتيه اشعارو دسرورعالم صلى الله عليه وسلم په مدح کښې دويلو څه حکم دې؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دلوی محسن صلى الله عليه وسلم په مدح کښې نعتيه اشعار لوستل او دهغوئ صلى الله عليه وسلم دمعجزاتو او کمالاتو په اشعارو کښې بيانول جائز دی بلکه

موجب دا جر او ثواب او خیر او برکت دی او متعددو صحابه کرامو څخه ثابت دی. البته دا ضروری دی چې داسې معجزات او مضامین بیان کړې شي چې د صحیحو روایاتو څخه ثابت وي. د دروغو قصه بیانول جائز ندي

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وحمل ما وقع من بعض الصحابة على انشاد الشعر المباح الذي فيه الحكم والمواعظ فان لفظ الغناء كما يطلق على المعروف يطلق على غيره كما في الحديث من لم يتغن بالقرآن فليس منا.

وقال ايضا معزيا للبحر: ان التغني المحرم ما كان في اللفظ ما لا يحل كصفة الذكور والمرأة المعينة الحية (الى قوله) الا اذا اراد انشاده للاستشهاد به او ليعلم فصاحته وبلاغته وكان فيه وصف امرأة ليست كذلك او الزهريات المتضمنة وصف الرياحين والازهار والمياه فلا وجه لمنعه على هذا (رد المحتار ص ۲۲۲ ج ۵)

اقول لما جاز انشاد الشعر والتغني به لاجل وصف الزهريات فما ظنك بالتغني بالشعر لاجل بيان معجزات رسول الله صلى الله عليه وسلم ما لم يكن على الملاهي والقيود المخترعة لاهل البدع والاهواء. والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۷ محرم سنه ۷۳ هـ

## د اختر د کارت حکم

**سوال** د دوستانو او احبابو په منځ کښې د اختر په موقع د «عید کارد» په التزامي یا غیر التزامي طور سره یو بل ته لیږل جائز دي او که غیر جائز دي؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** د مصارفو پنځه درجې دي **اول** ضرورت **دویم** حاجت **دریم** اسائش **خلورم** ارائش او زیبائش **پنځم** نمائش

**ضرورت** هغه دې چې د ژندگی دلواز مو څخه وي د هغو د نشتوالي له وجې ضرر لاحق کیږي لکه په قدر د کفایت طعام او لباس وغیره

**حاجت** چې د هغه د نه موجود والي له وجې ضرر نه وي مگر گذاره مشکله و لکه د قدر کفایت نه زیات شیان چې په حاجاتو کښې په کار راځي

**اسائش** له حاجت څخه اضافه شیان لکه د آرام او راحت شیان

**ارائش او زیبائش** صرف د زیب او زینت شیان

**نمائش** هغه چې مقصد ور څخه فخر او ځان ښودنه وي په ضرورت خرچ کول فرض دي او په حاجت او اسائش او ارامش او زیبائش باندې خرچ کول جائز دي په شرط د دې چې اسراف نه وي، اسراف دا دې چې بلا ضرورته د آمدن نه زیات خرچ وشي

د نمائش لپاره خرچ کول حرام دي، زیبائش او نمائش د زړه د افعالو څخه دي په دوارو کښې فرق صرف په نیت سره وي لهذا بلا وجه په چا د نمائش حکم لګول صحیح ندي د اختر کارت څخه که

او دبل چا زړه فخر او نمود مقصود وی نوبلاشبه ناجائزدې او که له هغه څخه صرف زینت او خوشحالول مقصود وی نو دا په ارائش اوزیبائش کښې داخل دې چی بلاشبه جائزدې بلکه القاء السرور فی قلب المؤمن دلاندی باعث دثواب دې، ددې ډیر مثالونه دی : مثلا ګلدسته یا منظره خوبصورت پیډ اوښائسته ګلدار کاغذ، ښائسته ګلداره لفافه ددې په شان دزینت شیان بالاتفاق جائزدی په علماء اوصلحاو کښې هم رواج دې نو د اختر کارت دناجائزوالی هیڅ وجه نشته. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۶شوال سنه ۱۳۸۶هـ

## د عیدی ((داختردپیسواوتحفو ورکولو)) لین دین

**سوال** : آیا د اختر په ورځوکښې داختر په خوشحالیۍ کښې دعیدی په نوم پیسی ورکول اواخستل جائزدی اوکه ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دعیدی لین دین دلاندی فساداتوله وجی ناجائز دې.

**اول** : فخراونمود . **دویم** : عموماً دمبادلې نیت پکښې وی . **دریم** : دورکونکی نیت که دعوض اخستلوهم نه وی بیاهم چی دچا ماشومانوته عیدی ورکوی نو هغه داپه ځان بوج محسوس کوی او ددې عوض ورکول ضروری ګڼی. **څلورم** : دمعاوضې دناجائزرسم تائید اوترویج . **پنځم** : دلیدونکو او آوریدونکو لپاره دناجائز رسم د مرتکب کیدلو بدګمانی او دتهمت مظنه ګرځیدل . **شپږم** : دماشومانو په زړونوکښې دمال محبت پیداکیږی، ددې وجی نه خپلو ماشومانو ته هیڅ کله هم پیسې مه ورکوئ، ماشومانو ته دپیسو ورکولو اودهغوئ ددنیا او آخرت دتباه کولو په ځای هغه صدقه او خیرات اوددین په کارونو کښې زیات نه زیات دخرچ کولو ترغیب ورکول لازم دی، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۵جمادی الثانیة سنه۱۳۹۷ھ

## په مختلفو مواقعوکښې دتحائفولین دین

**سوال** : په دې زمانه کښې په مختلفو مواقعوکښې دهدیو اوتحفو دلین دین سلسله عامه شوې ده ، مثلا : **اول** : څوک چې حج یا عمرې ته ځی نو اقارب اودوستان هغه ته تحفې او هدیې ورکوی، بیاهغه سړې په واپسئ کښې هغوئ ته تحفې او هدیې راوړی اونه ورکول عار اوشرم ګڼی.

**دویم** : دچاپه کور کښې چی ماشوم وشی نوهغه دعوتونه کوی اوڅوک چی ورځی هغه تحفې او ډالئ ورکوی، دغه شان دماشوم دلیدلوپه وخت هم . **دریم** : که څوک نوې مکان یا کور جوړوی نو خلك ورځی اوتحفې وروړی اوخالی لاس تلل عار اوشرم بولی . **څلورم** : د واده او غوښتنی په وخت کښې خلك تحفې ورکوی . **پنځم** : دمریض دپوښتنی په وخت له ځان سره تحفې وروړی. **شپږم** : د اختر په وخت دعیدی لین دین وی.

په دغه ټولو صورتونو کښې دخلکو څه ورکول او بیادهغه قبلول او دقبول کولونه بعدپه بله موقع کښې تحفه ورکونکی ته تحفه ورکول ددې ټولو صورتونو شرعی حیثیت څه دې؟ په دې کښې چې کوم قباحتونه دی دهغو په تفصیل سره لیکل مطلوب دی ترڅوپه خلکو کښې دهغې زیات نه زیات اشاعت وشی اوهغوئ صراط مستقیم طرفته راوستل شی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په خپل مینځ کښې دتحفې ورکولو لین دین اوپه مشکلو حالاتو کښې دیوبل مددکول د خپل منځی محبت اوالفت پیداکولو یوه موثره ذریعه اودشریعت یومؤکد حکم دې دحضورصلی الله علیه وسلم ارشاد مبارك دې ((تهادوا تحابوا)) (موطا امام مالك)

مگر شریعت دهدیی اوتحفی اود خپل منځی تعاون اوتناصر الفاظ دخاص خاص حقیقتونو لپاره وضع کړی دی، ددغو حقائقو د پیداکیدو په صورت کښې به ددغو الفاظو استعمال دشریعت مطابق وی او دا عمل به سبب داجر اوثواب وی مگر کوم ځای چې دا حقیقت تر لرې لرې په نظر نه راځی نو هلته اصطلاحات شرعیه استعمالول داحکامو داسلام سره ټوکې کول اواهانت دې ، آیا رشوت ته د «چای پانی» نوم ندې ورکول شوی؟ سود اوجواری ته په متعدد صورتونو کښې دنفع اوانعام په نوم جواز ندې ورکړشوی.

دمعاشرې نه باخبراشخاص ښه پوهیږی چې کوم صورتونه په سوال کښې ذکردی په هغوکښې دهدیی اوتحفی او خپل منځی تعاون اوتناصر وغیره اصطلاحاتو سره دغه ناروا معامله کیږی.

ددغو اصطلاحاتو احترام په هر مسلمان باندې واجب دې په دې ټولو صورتونو کښې دهدیې او تحفی اوعیدی وغیره په نوم ورکول اواخستل دواړه ناجائزدی او تقریبا دا ټول صورتونه په لاندې قباحتونو مشتمل دی.

**اول:** دا پیسې اوسامان جبرا اخستلې شی پداسی طریقې سره چې نه صرف ورکونکې ملامته کولی شی بلکه د خپلولی څخه بهر کولی شی اوجبرا له چاڅخه څه اخستل حرام دی.

**دویم:** داخستونکی نیت کښې ریاء اوسمعت وی او د شهرت اوسمعت دنیت له وجی جائز فعل هم ناجائزگرځی.

**دریم:** دا پیسې او اسباب قرض دی چې دهغوپه موقع سره واپس کول ضروری گڼل کیږی اوبلا ضرورته دقرض لین دین کول ناجائزدی لدې وجی نه چې هدیه خو دلیل دمحبت اوباعث دزیادت دمحبت ده مگر ددې برعکس قرض قاطع دمحبت دې، ددې نوم لدې وجی (قرض) ایښودل شوې چې دا مقراض دې نومقراض محبت ته دمحبت دهدیی نوم ورکول او دا جائز کول بلکه مندوب اومستحب کول دالله اودرسول الله صلی الله علیه وسلم له احکامو څخه ښکاره بغاوت اودشرعی اصطلاحاتو ښکاره تحریف دی.

**څلورم:** دقرض متعلق داحکم دې چې کله هم استطاعت وی باید اداء کړې شی مگر دا اشیاء

داستطاعت باوجود دمعهودو مواقع نه مخكې نه وركول كيږي اوبلاعذره قرض ځنډول ظلم دې بيا كه يو دوه ورځېپوروسته مقروض دا قرض اداء كول وغواړي نو قرض خواه يې نه قبلوي بلكه په معهودو مواقعو كښې يې قبلوي داهم يوه مستقله ګناه ده څه معلومه ده چې تر هغې موقع پورې به ژوند باقي وي اوكه نه اوقرض به اداء كړې شي اوكه نه خدا نخواسته كه دقرض ادا كولو نه مخكښې مرګ راشي نو څه به جوړشي؟ دمعروض دوفات په صورت كښې دوارثانو ادا كول يقيني ندي اودقرض خو د وفات په صورت كښې دهغه په ټولو وارثانو قرض تقسم كول اوهر يوته خپله حصه رسول ضروري دي حالانكه ددې اهتمام نه كيږي بلكه دعرف مطابق په معهودو مواقعواكښې كوم يووارث ته وركړل شي اوهغه يې خپل حق وګڼي اواستعمالوي يې او دنورو وارثانو دحق خيال هم پكښې نه كوي.

**پنځم**: ډير قرض غوښتونكي دقرض د اخستونكو نه مخكې مړه شي او دا قرض وارثانو ته منتقل شي بيا څووارثان هم مړه شي نوپه صورت دمناسخه كښې تقسيم درتقسيم اونقل درنقل شي اودومره خورشي چې ټول اهل حقوق او دهريوه دحق مقدار معلومول ناممكن وګرځي بياكه مقروض قرض اداكول هم وغواړي نو هغه ته دحقوق العباد نه دسبكدوشي هيڅ صورت ممكن نه وي د ډيرو خلكو دحقوقوبوج واخلي اوله دنيا څخه رخصت شي.

**شپږم**: په دغورسمونو باندې دفرضواوواجبوپه شان اصرار اوالتزام كولې شي حالانكه دداسې قسم التزام له وجې امرمباح يا مندوب هم واجب الترك شي.

عن ابي حرة الرقاشي عن عمه رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم الالا تظلموا الا لايحل مال امرى الابطيب نفس منه رواه البيهقي في شعب الايمان والدارقطني في المجتبى (مشكوة ص٢٥٥)

عن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من لبس ثوب شهرة في الدنيا البسه الله ثوب مذلة يوم القيامة رواه احمد وابوداود وابن ماجه (مشكوة ص٣٧٥)، وعنه رضي الله عنهما يرفعه قال من لبث ثوب شهرة البسه الله اياه يوم القيامة ثم الهب فيه النار ذكره رزين في جامعه.

وعن ابي ذر رضي الله تعالى عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال من لبث ثوب شهرة اعرض الله عنه حتى يضعه متى وضعه (الترغيب والترهيب ص٢٢ ج٣)

محمد بن جحش رضي الله تعالى عنه كنا جلوسا عند رسول الله صلى الله عليه وسلم فرفع راسه الى السماء ثم وضع راحته على جبهته ثم قال سبحان الله ما اذا انزل من التشديد فسكتنا وفزعنا فلما كان من الغد سالته يارسول الله ما هذا التشديد الذى نزل فقال والذى نفسي بيده لوان رجلا قتل في سبيل الله ثم احيى قتل ثم

احیی ثم قتل وعلیه دین مادخل الجنة (جمع الفوائد)

وفی الحدیث مطل الغنی ظلم.

نقل العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی عن الخیریة سئل فیما یرسله الشخص الی غیره فی الاعراس ونحوها هل یکون حکمه حکم القرض فیلزمه الوفاء به ام لا؟ اجاب ان کان العرف بانهم یدفعونه علی وجه البدل یلزم الوفاء به (الی ان قال) نعم فی بعض القری یعدونه قرضا فی کل ولیمة یحضرون الخطیب یکتب لهم ما یهدی فاذا جعل المهدی ولیمة یراجع المهدی الدفتر فیهدی الاول الی الثانی مثل ما اهدی الیه (ردالمحتار ص۱۳ ج۵)

قال الفقیه لاباس ان یستدین الرجل اذا کان له حاجة لابد منها ویرید قضاءها (بستان العارفین) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۱ جمادی الاولی سنہ ۱۴۱۶ھ

## دښادی په پروګرامونو کښې په دیوالونو باندې بلفونه او څراغان ځوړندول

**سوال** : دښادی اوخوشحالئ په موقع یومکان باندې دبرق واړه واړه رنګین ګروپونه ځوړندول او ښائسته کول شرعا جائزدی اوکه ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دزینت په قصد سره څراغان کول جائزدی په نیت دفخر او غرور ناجائزدی. والله سبحانه وتعالی اعلم. «ددی تفصیل په عید کاردعنوان کښې تیرشوی دی».

۱۵ذی قعده سنہ ۱۳۸۷ھ

## د تیر شوی سوال په شان یو بل سوال

**سوال** : دبعضې دینی جلسو یا ښادیو په اجتماع کښې واړه واړه بلفونه په ډیر تعدا کښې د زینت لپاره لګول کیږی اورنګینې جنډې هم لګول کیږی آیادا اصراف ندې؟ او د تعدد دبلفونو په وجه له دیوالیانو سره مشابهت نه راځی؟ اګرکه قصد دمشابهت یی نه وی. آیا دعلامه شامی دقاعدې کلیی «المراد بالتشبه ماقصد به التشبه» نه داعمل خارج دتشبه څخه نه بلل کیږی ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د مشاهبت د قصد د نشتوالی له وجی له دیوالی سره دمشابهت علت صحیح ندې اواسراف هغه ته وائی چی د آمدن څخه زیات خرچ وکړل شی اوکه د آمدن دننه خرچ وکړل شی نو دا اسراف ندې. په ما کولاتو اومشروباتو اوملبوساتو اومکان اوسورلئ و غیره کښې دضرورت نه زائد مصارفو ته ولی اسراف نه ویل کیږی؟ اسراف تر بلفونو اوجنډوپورې دخاص کولو لپاره څه وجه ده ؟ په حقیقت کښې په اسائش اوارائش باندی خرچ کول فی نفسه مباح دی بلکه په څینی صورتو نو کښې مستحسن دی

قال الله تعالى: قل من حرم زينة الله التي اخرج لعباده والطيبات من الرزق قل هي للذين امنوا في الحيوة الدنيا خالصة يوم القيامة.

حضرت عثما ن رضى الله تعالى عنه مسجد نبوى په سنگ مرمروسره مزين کړو په هغه باندې کوم صحابى اعتراض ونه کړو ددې وجى نه دعثمان رضى الله عنه دا جواز دتزين په اجماع دصحابه کرامو سره ثابت شو، البته ارائش او ښائسته کول دوقف له مال څخه جائز ندى دچاچى شوق وى هغه دې دخپل ذاتى مال څخه وکړى، يادې دچنده ورکونکو څخه اجازه وغواړى په کوم ځاى کښې چى د داسې قسمه ښائست عام دستور وى او چنده ورکونکوته هم علم وى هلته صراحتاً اجازه غوښتل ضرورى ندى د اذن دلالت هم کافى دى. ۴ــ صفرسنــ ۱۴۰۵هــ

## له مرض څخه دجوړيدو په صورت کښې په غاړه کښې اميل اچول

**سوال**: دمريض په جوړيدو دوستان اوعزيزان دهغه په غاړو کښې دګلونو اميل اچوى آيا داجائز دى اوکه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داظهار سرور او شکرنعمت لپاره داسې کول جائزدى مگر په هغې کښې غلوکول ناجائز دى، دغه رنګه دا قسم شيان عموما اول په صحيح نيت سره په انفرادى طور سره شروع کيږى ليکن ورو ورو باقاعده رسم اختيارکړى اودهغې التزام کيږى چى په هغې کښې ډير قباحتونه او ناجائز کارونه شروع شى دهغو دسد باب لپاره له داسى کارونو څخه ځان ساتل په کار دى، دنعمت دشکر حقيقت دادې چى معاصى اوګناهونو څخه توبه وباسى اودمنعم حقيقى طرفته توجه وکړل شى ، والله سبحانه وتعالى اعلم. ۴ربيع الاول سنــ۱۳۸۸ هــ

## دامام په غاړه کښې اميل اچول

**سوال**: زمونږ امام دماخوستن له لمانځه څخه ورروسته دحديثو درس ورکوى په داسې موقع که کله کله مقتدى دامام صاحب په غاړه کښې دګلونو اميل واچوى آيا پدې کښې خو څه حرج نشته؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا کار فى نفسه جائز دې مگر داسې شيان عموما ورروسته بدعت يا د رسم صورت غوره کړى اوپه هغې کښې زياته غلوکيږى.لهذا لدې څخه ځان ساتل په کاردى.

## دختم قرآن لپاره دعوت کول

**سوال**: دماشومانو دقرآن مجيد ختمولوپه موقع دعوت کول ياخواږه تقسيمول جائز دى که ناجائز؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هو! جائز دی حضرت عمر فاروق رضی الله عنه دسورة بقره تعلیم په دولس کالوکښې مکمل کړ اوددې په خوشحالی کښې یې اوښ ذبح کړو . البته دفخر اوخان ښودنې یا له خپل حیثیت څخه زیات قرض اخستل او خرچ کول جائزندی همدارنګه له التزام څخه هم ځان ساتل په کاردی.

عن مرداس بن محمد ابی بلال الاشعری قال حدثنا مالك عن نافع عن ابن عمر رضی الله تعالی عنهما قال تعلم عمر رضی الله تعالی عنه البقرة فی اثنتی عشر ةسنة فلما ختمها نحر جزورا (الجامع لاحکام القران ص۴۰ ج۱)

## دماشومانو سالګره لمانځل

**سوال** : دماشومانو کال لمانځل او په دې موقع دقرآن خوانی اهتمام کول له شریعت څخه ثابت دی اوکه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دسالګرې لمانځل یوقبیح رسم دې ددې ترک واجب دې اصل سالګره داده چی پداسې ځایونو کښې دخپلې زندګی احتساب وکړل شی اودخپلو عملونو په باره کښې فکر وکړل شی چی جنت طرفته روان دی او که دجهنم طرفته ؟ والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۴رجب سنـــ ۱۳۹۱هـ

## دحاجی دعوت کول

**سوال** : زید حج وکړو او راغلې دې، اوس زید د اظهار مسرت لپاره خپلوخپلوانوته دعوت وکړی یانور خپلوان زیدته دعوت وکړی نوشرعا داجائزدی اوکه ناجائز؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هو ! جائزدی مګر دهغه داسې التزام نه کول معیوب ګڼل یا یوپربل قرض ګڼل بیا جائزندی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۸ محرم سنـــ۱۳۹۲هـ

## د ختنې ((سنتی)) دعوت

**سوال** : د ماشوم د سنت کولو په موقع باندې خلکو ته دعوت ورکول شرعًا جائز دی اوکه نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د سنمتی ددعوت په شریعت کښې هیڅ ثبوت نشته او نه دهغې نصاً چرته ذکر شته اونه دا (الدعوة فی السرور) د ضابطې د مشروعت لاندې داخل دی. لهذا دا دعوت جائزندې بیا داسنت ګڼل دبدعت شنیعه کیدو اضافه ده، د تبدیع (بدعت) لپاره عدم ثبوت کافی دې او په دې خوپه قرون مشهود لها بالخیر کښې انکار موجود دې

حدثنا عبدالله حدثنی ابی حدثنا محمد بن سلمة الحرانی عن ابن اسحق یعنی محمدا عن عبیدالله اوعبدالله بن

طلحه بن لريز عن الحسن قال دعى عثمان ابن ابى العاص رضى الله تعالى عنه الى ختان فابى ان يجيب فقيل له فقال انا كنا لا نأتى الختان على عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم ولا ندعى له (مسند احمد ص ۲۱۷ ج ۴)

رواية الادب المفرد: حدثنا زكريا بن يحيى قال حدثنا ابو اسامة عن عمرو بن حمزة قال اخبرنى سالم قال ختنى ابن عمر رضى الله عنهما انا ونعيما فذبح علينا كبشا فلقد رايتنا وانا لنجذل به على الصبيان ان ذبح علينا كبشا.

ددې روايت د سند دتحقيق لپاره حاجت نشته د سند دصحت د تسليمولو سره سره هم په لاندې وجوه سره استدلال صحيح ندې.

**اول**: داصرف يوه جزئى واقعه ده چى دصحابه كرام رضى الله عنهم دتعامل خلاف ده.

**دويم**: د دعوت دمشروعيت له ذكر شوې ضابطې څخه خلاف دې.

**دريم**: دحديث اوفقهى امامانو هغه ندې اختياركړې، ددغو وجوه ثلاثه مذكوره په بناء سره دا جزئيه واجب التاويل ده، حقيقت دادې چى دجاهليت په ايامو كښې په عربو كښې د نجونو ولادت ډير بدګڼل كيدو: ﴿ وَإِذَا بُشِّرَ أَحَدُهُم بِٱلْأُنثَىٰ ظَلَّ وَجْهُهُۥ مُسْوَدًّا وَهُوَ كَظِيمٌ ﴿٥٨﴾ يَتَوَٰرَىٰ مِنَ ٱلْقَوْمِ مِن سُوٓءِ مَا بُشِّرَ بِهِۦٓ ۚ أَيُمْسِكُهُۥ عَلَىٰ هُونٍ أَمْ يَدُسُّهُۥ فِى ٱلتُّرَابِ ۗ أَلَا سَآءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿٥٩﴾ ﴾

ددې برعكس دهلكانو په ولادت به ډير زيات خوشحاليدل اوفخر به يى كولو:

﴿ عُتُلٍّۭ بَعْدَ ذَٰلِكَ زَنِيمٍ ﴿١٣﴾ أَن كَانَ ذَا مَالٍ وَبَنِينَ ﴿١٤﴾ ﴾

له دې وجى نه دهلك په ولادت به يى دهغه دتشهير اواظهار سرور اوفخر اومباهاة په غرض ددې كار اظهار اواعلان كولو او د دې لپاره چى نجلى نده پيدا شوې بلكه هلك پيداشوې دې نو د سنتى دعوت به يى كولو او دا په هغوئ كښې عام دستور وو.

په شريعت كښې ددې دعوت صراحتاً نهى نده وارده شوې، حضورصلى الله عليه وسلم اوصحابه كرامورضى الله عنهم دغه دعوت دشرعى ضابطې خلاف كيدلو اود عقل خلاف كيدلو له وجې ددې ترك هم دممانعت لپاره كافى وګڼلو اوداسې بديهى البطلان كار څخه يى صراحتاً دنهى ضرورت محسوس نكړو. له دى وجى نه دصحابه كرامورضى الله عنهم له دومره لوئ جم غفير څخه ديو فرد نه هم د نص صريح د نشتوالى او دممانعت د شائع كيدلو د نشتوالى له وجې دعربو د عام دستور مطابق عمل كول بعيد ندى.

**اقوال الفقهاء رحمهم الله تعالى**: دفقهى په كتابونو كښې ددعوت ختان ذكر پيداكيږى مګر ائمه احناف رحمهم الله نه يى هيڅ ثبوت نشى موندل كيدى

قال الامام الخرقى رحمه الله تعالى: ودعوة الختان لا يعرفها المتقدمون، ولا على من دعى اليها ان يجيب، وانما

وردت السنة فی اجابة من دعی الی ولیمة تزویج.

وقال الامام ابن قدامة رحمه الله تعالی: یعنی بالمتقدمین: اصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم الذین یقتدی بهم، وذلك لما روی ان عثمان بن ابی العاص رضی الله تعالی عنه دعی الی ختان، فابی ان یجیب فقیل له فقال: انا کنا لا ناتی الختان علی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم ولا ندعی الیه. رواه الامام احمد رحمه الله تعالی باسناده، اذا ثبت هذا فحکم الدعوة للختان وسائر الدعوات غیر الولیمة: انها مستحبة. لما فیها من اطعام الطعام، والاجابة الیها مستحبة غیر واجبة، وهذا قول مالك والشافعی، وابی حنیفة، واصحاب رحمهم الله تعالی.

وقال: فاما امر الاجابة الی غیره (طعام الولیمة) فمحمول علی الاستحباب، بدلیل انه لم یخص به دعوة ذات سبب دون غیرها واجابة کل داع مستحبة لهذا الخبر ولان فیه جبر قلب الداعی و تطییب قلبه وقد دعی احمد رحمه الله تعالی الی ختان فاجاب واکل، فاما الدعوة فی حق فاعلها فلیست لها فضیلة تختص بها لعدم ورود الشرع بها ولکن هی بمنزلة الدعوة لغیر سبب حادث فاذا قصد فاعلها شکر نعمة الله علیه واطعام اخوانه وبذل طعامه فله اجر ذلك انشاء الله تعالی. (المغنی ص ۲۸۶ ج ۷)

عبارت مذکوره نص دي پدې خبرو چی قرون مشهود لها بالخیر کښې ددعوت ختان دبدعت هیڅ وجود نه وو، البته ددغه عبارت نه دا لاندې امور محل دبحث دی:

**اول** ائمه حنفیه رحمهم الله طرفته داستحباب نسبت. اول جواب: په نقل مذهب کښې دغیر اصحاب مذهب قول معتبر ندې لان صاحب البیت ادری مافی البیت.

دویم جواب: سائر الدعوات نه هغه دعوت مراد دې چی دکوم داعی شرعی یا عقلی له وجی وی، دعوت ختان یی په هغو کښې داخل بللی نو ذکر کړی یی دې حالانکه دهغه عدم دخول واضح دې دا احتمال دنورو ائمه ثلاثه طرفته په نسبت کولو کښې هم موجود دې دلته احتمال بعید هم معتبر بلکه واجب القبول دې لمابینا.

**دویم** ددعوت بلاسبب اثبات: اول جواب: په دې ذکر شوو مثالونو کښې یعنی جبر قلب داعی، تطیب القلب، شکر نعمت اطعام اخوان، اوبذل الطعام بلاسبب گرځول صحیح ندی

دویم جواب: که دعوت بلاسبب تسلیم هم کړل شی نو دهغې جواز به تردې پورې مقید وی چی څوك داسبب ونه گنی چی نه شرعاً سبب وی اونه عقلاً. دعوت ختان ته بلاسبب ویل صحیح ندی. سبب خوموجود دې مگر داسبب مخترع دې نه شرعی دې اونه عقلی دې بلکه شریعت ددې په سبب دعوت گرځولو باندې رد کړی دې، عوامو دجاهلیت د زمانې مطابق غیر سبب، سبب گرځولې دې وهذا ظاهر

دابن عمر رضی الله تعالی عنه دفعل اوداقوال فقهاء کرامو دا تاویل قرین قیاس ندې چې لدې څخه دعوت عند اندمال زخم مراد دې چې دحصول صحت په موقع باندی اظهار شکر اوسرور دې.
حاصل داچې ددې رسم شنیع اوقبیح بطلان فی نفسه هم ظاهردې اوددې وجی نه هم چې ددې بنیاد دجاهلیت مغضوب علیهم دغه رنګه مبغوض عمل باندې دې چې په هغې باندې الله تعالی په قران کریم کښې څوځایه سخت نکیر کړې دې، دومره لوی جرم ته سنت ویلو په شان بدعت باندې چې څومره رد وشی او دهغه څومره اوتشنیع اوتقبیح بیان شی هغه بیا هم کم دې، والله هو العاصم من البدع فی الدین وهو الهادی لسبیل الرشاد. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۰ ربیع الاول سنہ ۱۳۹۲ ھ

## دحسن قرائت مقابله

**سوال**: دحسن قرائت مقابله څه حکم لری؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که په خلکو کښې د قران د تجوید شوق پیداکول مقصود وی نو جائزه ده مګر په موجوده محافل حسن قرائت کښې دا لاندې مفاسد موندل کیږی.

**اول**: دسړیو اوښځو بی حجابانه اختلاط.

**دویم**: دتصویرونو لعنت.

**دریم**: خلاف شریعت دعوتونه.

پداسې حالاتو کښې احتراز کول لازم دی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ ربیع الاخر سنہ ۱۳۹۴ ھ

## په سیاسی او لسانی فساداتوکښې دقنوت نازله حکم

**سوال**: نن سبا سیاسی اولسانی فسادات ډیرکیږی اودغیر مسلم قوتونو دسازشونو په نتیجه کښې مذهبی فسادات هم کیږی چی په هغو کښې بی ګناه مسلمانان شهیدان کیږی آیا پداسې حالاتو کښې قنوت نازله لوستل په کار دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په مسلمانانو باندې دراتلونکو مصائبو اوبلیاتو په وخت کښې قنوت نازله لوستل جائزدی مګر په دنیا او آخرت کښې دالله تعالی دعذاب نه دنجات أصل نسخه چی هغه الله تعالی پخپله ځای په ځای په قرآن کریم کښې باربار اعلان کړی ده هغه داده چی دالله تعالی دنافرمانی نه توبه او استغفار وکړې شی اوهرقسم منکرات ترک کړې شی دګناه د پرېښودلو نه بغیر که کلونه قنوت نازله ولوستل شی دالله تعالی دعذاب نه نجات هر ګزنشی حاصلیدې.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله الالنازلة) قال فی الصحاح النازلة الشدیدة من شدائد الدهر ولاشك ان الطاعون من اشد النوازل اشباه (قوله فیقنت الامام فی الجهریة) یوافقه ما فی البحر و

البحر نہلالیۃ عن شرح النقایۃ عن الغایۃ وان نزل بالمسلمین نازلۃ قنت الامام فی صلوۃ الجہر وھو قول الثوری واحمد اھ وکذا ما فی شرح الشیخ اسماعیل عن البنایۃ اذا وقعت نازلۃ قنت الامام فی الصلوۃ الجہریۃ لکن فی الاشباہ عن الغایۃ قنت فی صلوۃ الفجر ویؤیدہ ما فی شرح المنیۃ حیث قال بعد کلام فتکون شرعیتہ ای شرعیۃ القنوت فی النوازل مستمرۃ وھو محمد قنوت من قنت من الصحابۃ بعد وفاتہ علیہ الصلوۃ والسلام وھو مذہبنا وعلیہ الجمہور قال الحافظ ابوجعفر الطحاوی رحمہ اللہ تعالی انما لایقنت عندنا فی صلوۃ الفجر من غیر بلیۃ فان وقعت فتنۃ اوبلیۃ فلا بأس بہ فعلہ رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم (رد المحتار ص ۳۵۱ ج ۱) واللہ سبحانہ وتعالی اعلم.

۲۸ ربیع الاول سنہ ۹۷ھ

## دواده په موقع دنګریزو رواج

**سوال**: زمونږ په ځای کښې یو پخوانې رسم راروان دې چی دښادی په موقع باندې ناوی ته ګلونه اغوستل کیږی او نکریزی ورته لګول کیږی ورسره نوری نجونې هم نکریزی لګوی آیا دښځو لپاره دګلونو اچول اونکریزی لګول سنت دی ؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دښځولپاره نکریزی لګول مستحب دی مګر نن سبا چی دنکریزو کوم رسم دې چی دنورو ښځوهم یوه لویه مجمع وی دا د ډیرومفاسدو مجموعه ده لهذا لدې څخه احتراز کول لازم دی، ځانته ښځې نکریزی لګولې شی دګلونو داغوستوکوم ثبوت نشته مګر د ښادی په موقع زیب اوزینت اختیارول جائزبلکه مستحسن دی، لدې وجی نه پدې کښې څه حرج نشته، البته زیب اوزینت سره دکوم غیرمحرم مخی ته تلل سخته ګناه ده او حرام دی . واللہ سبحانه وتعالی اعلم بالصواب.

۳ / شعبان ، سنه : ۹۸ هـ

## دمکان (کور) په بنیاد (تاداو) کښې د وزې وینه اچول

**سوال**: نن سبا چی څوك مکان جوړوی نو دهغه په بنیادونو کښې وزه ذبحه کړی اووینه یی په بنیادونو کښې واچوی اوغوښه یی په دوستانو اوفقیرانو باندې تقسم کړی آیا په شریعت کښې ددې کوم ثبوت شته اوکه نه؟ که نه وی نوپه دې کښې کوم حرج شته اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داعمل ناجائزدې دا دهنداونو اوبت پرستانو عقیده اوشعار دې په اسلام کښې ددې هیڅ ګنجائش نشته . والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۰ ربیع الاول سنه ۱۳۹۹ هـ

## دثواب هبه کول او دهغې قبلول

**سوال**: دقرآن خوانی په رسم کښې که ټول خلق دثواب دېښلو په طریقه نه پوهیږی نو که دهغې مقدار معلوم کړی او دیو شخص ملك ګرځول اودهغه قبلول څنګه دی ؟ پدی کښې دترتیب

اومقدار معلومولو خوبی هم شته؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا ایجاب اوقبول خلاف شرع اوعبث دې بلکه دداسې اجتماعی قرآن خوانی څه ثبوت هم نشته او دا بدعت دی د ایصال ثواب لپاره صرف نیت کافی دې چی هر شخص یی کولې شی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ربیع الاول سنـ۱۳۹۹ هـ

## دحاجی دتندی نه بوسه (مچو) اخستل

**سوال**: څوك چی حج وکړی اوبیرته راشی نو دتبرك حاصلولو لپاره یا دحاجی داعزاز په خاطر دهغه تندې ښکلول جائز دی اوکه ناجائز؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که درسم دجوړیدواو دفتنې خطره نه وی نو جائزدی. والله سبحانه وتعالی اعلم ۹رجب سنـ ۱۳۹۹هـ

## دعیادت په موقع خوراك څښاك کول

**سوال**: دلته زمونږ په علاقه کښې دمریض دپوښتنې په کولو کښې دا رواج دې چی دمریض پوښتنې ته راتلونکو خلکوته چای وغیره ورکولې شی. څینی علماء فرمائی چی دا دستور غلط اوقابل اصلاح دې. که تاسو خپله رایه ظاهره کړئ. ډیره مهربانی به مومونږ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دعیادت په موقع ډیر وخت کیناستل هسی هم خلاف دسنت عمل دې. بیا چی دمریض په کورنۍ باندې دمریض دعلاج مصارف او دکار دوختونو حرج او دمریض دتیمار داری محنت هم وی نو پداسی حالاتو کښې له هغوئ څخه چای وغیره حاصلول اودهغوئ په محنت اومصارفو کښې اضافه کول عقلا اوشرعاً سخت قبیح او انتهائی دبی شرمئ خبره ده، همدارنګه ډیر خله دمریض کورنۍ درواج نه مجبوره شی او دغیرت له وجی خوراك څښاك ورکوی اوپه هغې راضی نه وی چنانچه نادار فقیر اومسکین هم درواج دمجبورئ له وجی دڅه ناڅه په ورکولو مجبوروی چی پداسې صورت کښې د ((لایحل مال امرءمسلم الابطیب نفس منه)) له وجی دا خوراك څښاك حرام دې که څوك صاحب دثروت په خوشحالۍ سره خوراك څښاك ورکړی اګر چی فی نفسه جائزدې لیکن دفقیرانو لپاره وبال جان دې. والله سبحان وتعالیٰ اعلم.

۲۴شوال سنـ ۱۴۱۰هـ

## د دیوالی شیرنی خوړل

**سوال**: دهندوانو د دیوالی دخوشحالۍ شیرنی خوړل څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دهندوانو ددیوالی میټایانی خوړل دشمسی کال دابتداء دشیرنی خوړلو نه اهون معلومیږی څکه چی دګرسمس دکال ابتداء دیهودواونصاراو دغلطی نظریی یعنی

دعیسی علیه السلام دقتل تائید اوترویج کیږی او ددیوالی بنیاد په کومه غلطه نظریه ندې بناء دقمری کال دکوم خاص مقام ته درسیدو په موقع دا رسم اداء کیږی، لدې وجی نه ددې دخوراك گنجائش معلومیږی داحکم دابتلاء اوضرورت په صورت کښې دې په عامو حالاتو کښې له کفارو سره داسې تعلقات ساتل دیوبل دغم اوښادی په موقع کښې دشرکت زمینه برابروی چی ددین لپاره سخت مضر کیدونه علاوه دغیرت ایمانی نه هم خلاف دی ، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۶ذی قعده سنه ۱۴۱۶ هـ

## دمروجه قرآن خوانی حکم

**سوال** : نن سبا چی دقرآن خوانی کوم رواج عام شوې دې مثلا نوې کور واخستل شی نو قرآن خوانی پکښې کوی، چې د دوکان افتتاح وی نو قرآن خوانی پکښې کیږی، دچا څلویښتی وی نو قرآن خوانی پکښې کیږی، یادریمه وی نو قران خوانی پکښې کیږی چی مړی ته یی ثواب ورسیږی ځینی وخت خوپه اخبار کښې هم ددې اعلان کیږی اوخلك دلرې لرې نه صرف د قرآن خوانی لپاره ځی او راځی نو تاسو وفرمایی چی قرآن خوانی څنگه عمل دې ددې څه ثبوت دقرآن اوحدیث نه شته اوکه نه ؟ یا دا کار بی اصله اوبدعت دې؟ آیا پدی کښې زمونږ دخاندان یا دوستانو اوعزیزانو څخه شرکت وکړی اوکه نه؟ که مونږ پکښې په خپله شرکت وکړو آیا نو دگناه مرتکب کیږو خونه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ۱ـــ قال الامام محمد بن اسماعیل البخاری رحمه الله تعالی: حدثنا قتیبة ثنا جریر عن منصور عن مجاهد قال دخلت انا وعروة بن الزبیر رضی الله تعالی عنهما المسجد فاذا عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما جالس الی حجرة عائشه رضی الله تعالی عنها واذا الناس یصلون فی المسجد صلوة الضحی قال فسالناه عن صلاتهم فقال بدعة الخ. (صحیح البخاری ص۲۳۸ ج۱)

۲ـــ وقال الامام ابوالحسین مسلم بن الحجاج بن مسلم القشیری رحمه الله تعالی: حدثنا اسحق بن ابراهیم اخبرنا جریر عن منصور عن مجاهد قال: دخلت انا وعروة بن الزبیر رضی الله تعالی عنهما جالس الی حجرة عائشه رضی الله تعالی عنها والناس یصلون الضحی فی المسجد فسالناه عن صلوتهم فقال بدعة الخ (صحیح مسلم ص۴۰۹ ج۱)

۳ـــ قال الشیخ محی الدین ابوزکریا یحیی بن شرف النواوی رحمه الله تعالی (قوله انهم سالوا ابن عمر رضی الله تعالی عنهما عن صلوة الذین کانوا یصلون الضحی فی المسجد والاجتماع لها هو البدعة، لا ان اصل صلوة الضحی بدعة وقد سبقت المسالة فی کتاب الصلوة (شرح النووی علی صحیح مسلم صفحه مندرجه بالا)

۴ـــ وقال الامام محمد بن محمد بن شهاب المعروف بابن البزاز الکردری الحنفی رحمه الله تعالی: وقد صح عن

ابن مسعود رضی الله تعالى عنهما انه سمع قوما اجتمعوا فى مسجد يهللون ويصلون عليه عليه الصلوة والسلام جهر افراح اليهم فقال ما عهدنا ذلك على عهده عليه السلام وما اراكم الا مبتدعين فما زال يذكر ذلك حتى اخرجهم عن المسجد. (بزازية بهامش الهندية ص۳۷۸ ج۶)

۵ــ وقال فى موضع اخر: ويكره اتخاذ الطعام فى اليوم الاول والثالث وبعد الاسبوع والاعياد ونقل الطعام الى القبر فى المواسم واتخاذ الدعوة بقراءة القران وجمع الصلحاء والقراء للختم او لقراءة سورة الانعام او الاخلاص فالحاصل ان اتخاذ الطعام عند قراءة القران لاجل الاكل يكره (بزازية بهامش الهندية ص۸۱ ج۴)

۶ــ وقال الفقيه المخدوم محمد جعفر بن العلامة عبد الكريم البوبكانى السندى رحمه الله تعالى: فى الصيرفية قراءة القران لاجل المهمات والناس مكروه (وبعد صفحة) يكره للقوم ان يقرا القران جملة لتضمنها ترك الاستماع والانصات المامور بهما (فك) لاباس به فى التتارخانية من المحيط من المشائخ من قال: ان ختم القران بالجماعة جهر اويسمى بالفارسية (بسپاره خواندن) مكروه (الى قوله) فى عين المعلم ولا يختم القران فى المجالس يكره لانه يقرا طمعا فى الدنيا وكذلك فى الاسواق وكذلك على راس القبر قيل: ولو قرا ولا يسال والناس اعطوه من غير سوال قال يكره ايضا لانه اذا لم يقصد السؤال لم لا يجلس فى بيته ويقرا القران (المتانة فى المرمة عن الخزانة ص۱۳۲,۵۳۳,۱۳۳)

۷ــ وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (تتمة) اشار بقوله فرادى الى ما ذكره بعد فى متنه من قوله ويكره الاجتماع على احياء ليلة من هذه الليالى فى المساجد وتمامه فى شرحه. وصرح بكراهة ذلك فى الحاوى القدسى قال: وما روى من الصلوات فى هذه الاوقات يصلى فرادى غير التراويح.

قال فى البحر: ومن هنا يعلم كراهة الاجتماع على صلوة الرغائب التى تفعل فى رجب فى اول جمعة منه وانها بدعة. وما يحتاله اهل الروم من نذرها لتخرج عن النفل والكراهة باطل اه.

قلت: وصرح بذلك فى البزازية كما سيذكره الشارح اخر الباب. وقد بسط الكلام عليه شارحا المنية. وصرحا بان ما روى فيها باطل موضع. وبسطا الكلام فيها خصوصا فى الحلية. وللعلامة نور الدين المقدسى فيها تصنيف حسن سماه (ردع الراغب عن صلاة الرغائب) احاط فيها بغالب كلام المتقدمين والمتاخرين من علماء المذاهب الاربعة (رد المحتار ص۲۶ ج۲)

۸ــ وقال فى موضع اخر: وقال ايضا: ويكره اتخاذ الضيافة من الطعام من اهل الميت لانه شرع فى السرور

لانی الشرور، وهی بدعة مستقبحة، وروی الامام احمد وابن ماجه بإسناد صحیح عن جریر بن عبدالله رضی الله عنهما قال کنا نعد الاجتماع الی اهل المیت وصنعهم الطعام من النیاحة ) اه وفی البزازیة : ویکره اتخاذ الطعام فی الیوم الاول والثالث وبعد الاسبوع ونقل الطعام الی القبر فی الموسم، واتخاذ الطعام فی الیوم الاول والثالث وبعد الاسبوع ونقل الطعام الی القبر فی المواسم، واتخاذ الدعوة لقراءة القران وجمع الصلحاء والقراء للختم اولقراءة سورة الانعام او الاخلاص.

والحاصل ان اتخاذ الطعام عند قراءة القران لاجل الاکل یکره. وفیها من کتاب الاستحسان : وان اتخذ طعاما للفقراء کان حسنا اه واطال فی ذلک فی المعراج وقال: وهذه الافعال کلها للسمعة والریاء فیحترز عنها لانهم لایریدون بها وجه الله تعالی (رد المحتار ص۲۴۰ ج۲).

۹ـــ وقال فی موضع اخر: وقد اطنب فی رده صاحب تبیین المحارم مستند الی النقل الصریحة فمن جملة کلامه قال تاج الشریعة فی شرح الهدایة: ان القران بالاجرة لایستحق الثواب لا للمیت ولا للقاری، وقال العینی فی شرح الهدایة: ویمنع القاری للدنیا، ولاخذ والمعطی اثمان.

فالحاصل ان ماشرع فی زماننا من قراءة الاجزاء بالاجرة لایجوز لان فیه الامر بالقراءة واعطاء الثواب للامر والقراءة لاجل المال فاذا لم یکن للقاری ثواب لعدم النیة الصحیحة فاین یصل الثواب الی المستاجر ولولا الاجرة ماقرا احد فی هذا الزمان بل جعلوا القران العظیم مکسبا ووسیلة الی جمع الدنیا. انا لله وانا الیه راجعون (وبعد اسطر) کما صرح به فی التتارخانیة حیث قال: لامعنی لهذه الوصیة ولصلة القاری بقراءته. لان هذا بمنزلة الاجرة، والاجارة فی ذلک باطلة وهی بدعة ولم یفعلها احد من الخلفاء الخ (رد المحتار ص۵۶ ج۶)

۱۰ ـــ وقال ایضا: ونقل العلامة الخلوتی فی حاشیة المنتهی الحنبلی عن شیخ الاسلام تقی الدین ما نصه، ولایصح الاستئجار علی القراءة واهداؤها الی المیت لانه لم ینقل عن احد من الائمة الاذن فی ذلک وقد قال العلماء: ان القاری اذا قرا لاجل المال فلا ثواب له فای شیء یهدیه الی المیت وانما یصل الی المیت العمل الصالح والاستئجار علی مجرد التلاوة لم یقل به احد من الائمة (وبعد اسطر) وحینئذ فقد ظهر لک بطلان ما اکب علیه اهل العصر من الوصیة بالختمات والتهالیل مع قطع النظر عما یحصل فیها من المنکرات التی لاینکرها الامن طمست بصیرته. وقد جمعت فیها رسالة سمیتها شفاء العلیل وبل الغلیل فی حکم الوصیة بالختمات والتهالیل (رد المحتار ص۵۶ ج۶)

له دغورو ایاتو څخه ثابته شوه چی مروجه قرآن خوانی بدعت اوناجائزه ده په قرآن اوحدیث

اوقرون مشهود لها بالخير كښې ددې هيڅ ثبوت نشته، په دې كښې شركت كول جائزندى علاوه پردې په مروجه قرآن خوانى كښې بې شميره خرابيانې دى چې څوييې په لاندې ډول دى :

**اول** : په اعلان اوجبر اوزبردستى سره په دې كښې خلك جمع كولې شى دشريعت په اصطلاح كښې دې ته تداعى ويل كيږى چې په نفلى عبادتونو كښې ممنوع ده لكه چې دحضرت عبدالله بن عمر رضى الله عنهما په مخكښې څوكسانو چه جومات كښې صلاة الضحى په جمع كولو كله چې له هغه نه پوښتنه وشوه ددې په باره كښې نو هغه دا عمل بدعت وګانه حالانكه صلوة الضحى انفرادا لوستل ثابت دى. همداشان حضرت عبدالله بن مسعود رضى الله عنه ديوه قوم په باره كښې واوريدل چې په اجتماعى حالت كښې په جهر سره تهليل او درود شريف وائى نو هغه دغه خلكو ته بدعتيان وويل اوله جومات څخه يې بهر كړل حالانكه انفرادا تسبيح اوتهليل اودرود شريف لوستل باعث داجر اوثواب دى.

**دويم** : د راغوښتلو نه پس كه څوك دې قرآن خوانى ته حاضر نشى نو په هغه قسم قسم ملامتياګانى ويل كيږى حالانكه دمستحب كار په پريښودلو ملامت كول جائزندى.

**دريم** : دنه حاضر يدونكى څخه بغض اونفرت او كدورت په زړه كښې پيداكيږى.

**څلورم** : قرآن خوانى كونكى د ډيرو خلكو په جمع كيدلو فخر كوى

**پنځم** : مروجه قرآن خوانى دومره ضرورَ بلل كيږى چې كه څوك قرآن خوانى ونكړى ياپه هغه كښې كم خلك حاضروى نو هغه د تنقيد هدف ګرځوى.

**شپږم** : دټول قرآن ختم ضرورى بولى پداسى حال كښې چې دبركت اوايصال ثواب لپاره كوم خاص مقدار معين ندې بلكه دتلاوت قرآن نه سوا ذكر او اذكار، تسبيحات اونوافل او صدقات وغيره په نورو طريقو سره هم همدا مقصد حاصليږى.

**اووم** : كه لوستونكى لږ راټول شوى وى نو ټول قرآن ختمول په خپل ځان بوج ګنى او دزهرو دګوټ د ګټلو په شان يې په يوه طريقه سره ترستونى دتير ولو كوښښ كوى پداسې حال كښې چې په حديث كښې ارشاد دې چې ((اقرؤا القران ما ائتلفت عليه قلوبكم فاذا اختلفتم فقوموا عنه)) صحيح البخارى ص۷۵۷ ج ۲ يعنى ترهغه وخته قرآن لولئ چې ترخومو زړه غواړى.

**اتم** : پداسې صورت كښې دتجويد دقواعدو، دحروفو اوصفاتو دصحيح ادا كولو دغنّى، اخفاء، اظهار، او ادغام او مدونو وغيره دلحاظ ساتلو نه بغير د الفاظو او حروفو دقطع كولو سره، دځان خلاصولو كوښښ كيږى.

**نهم** : په مروجه قرآن خوانى كښې هغه خلك هم حاضريږى چې قرآن يې نوى زده، هغوئ كومه سپاره را واخلى اوپه هره كرښه ګوته تيروى اوبسم الله وايى يا صرف ګوته وربانډى تيروى اوبيا سپاره كيږدى «چې ديته دګوتې اوبسم الله ختم وايى» چې ددې په شريعت كښې هيڅ ثبوت نشته

اوپه دې کښې دقرآن کریم توهین دې.

**لسم**: په ختم کښې ترآخره پورې ناسته ضروری بلل کیږی لهذا څوك چی خپله سپاره ختمه کړی دشدید ضرورت باوجود دپاڅیدو جرأت نشی کولې څکه چی دا ډیر عیب گڼل کیږی.

**یولسم**: بعضې خلکوته دسجده تلاوت علم نه وی هغه دسجدو آیاتونه ولولی یا یی واوری دسجده تلاوت دنه کولو په وجه دثواب پرځای دترك واجب مرتکب وگرځی اودگناه پیټې په خپل سرواخلی.

**دولسم**: په بعضې ځایونو کښې دقرآن خوانی والا خلك دټولو خلکو پرځای څوارلس سجدې کوی چی پدې سره دخلکوذمه نه فارغیږی اوخلاف شرع سجده کونکې گناهگاریږی.

**دیارلسم**: په مروجه قرآن خوانی کښې ددعوت یا شیرنی بندوبست هم کیږی چی د ((المعروف کالمشروط)) دقاعدې مطابق دا دقرآن لوستونکو اجرت دې اوپه أجرت سره قرآن لوستونکې او أجرت ورکونکې دواړه گناهگاردی نو په دې کښې به دثواب څه توقع وی، کله چی لوستونکی ته خپله ثواب نه ورکول کیږی نو مړی ته به یی ایصال ثواب څنگه وشی؟

**څوارلسم**: دعوت یاشیرنی دومره لازم گرځول شوی ده چی په انتظام نه کونکی باندې طعن او بد اورد ویل کیږی.

**پنځلسم**: دمروجه قرآن خوانی لپاره دخاصو ورځو مثلا دریمه یا څلویښتمه وغیره تعین کیږی او په غیر معین عبادت کښې تعین کول دخپل طرفنه ناجائزبلکه بدعت دې.

**شپاړسم**: حضرت جریر بن عبدالله رضی الله عنه فرمائی: **((کنا نعد الاجتماع الی اهل المیت وصنعهم الطعام من النیاحة))** یعنی مونږ خو د مړی کورته ورجمع کیدل اودهغوی طعام تیارول (نوحه) بلل اونوحه خوحرامه ده.

**اوولسم**: په قرآن خوانی کښې دشرکت کونکی اوبلونکی نیت دنمائش او ښودنې وی اوظاهره ده چی دریا کاری له وجی دانسان لوئ عمل هم ضائع کیږی، په حدیث کښې راغلی چی ریا کاری نیك عمل داسې تباه کوی لکه چی اورخس سوزوی اودالله جل جلاله په نزد داسی عمل مردود وی کوم عمل چی دالله لپاره کیدل اوبرکت اوثواب رسول ترینه مقصود وو، د ریا کارئ له وجی دې عمل ته اور ونګیـ.ه ثواب خو څه کوې چی ورنکړل شو بلکه سرچپه دریاکاری عذاب یی اضافه په سرباندی راغې.

دا ټولې خرابیانې دشریعت اوسنت دطریقونه دمخ اړولو نتیجه ده ددې برعکس که دشریعت طریقه اختیار کړل شوې وای نوراحت به وو او دومره مشقت اوتکلیف به نه وو برداشت شوې، که اخلاص للمیت وای نو دهغه په وجه به لوستونکو ته هم نفع وه اومړی ته هم او د ریا اوځان ښودنې

دګناه پيټې به هم نه وو په سرشوې.

## دايصال ثواب صحيح طريقه

د ايصال ثواب صحيح طريقه داده چې لساني اوجسماني عبادات چې هر سړې يې په کور کښې بطورنيك عمل کوی دځپل ځان لپار مثلانفل لمونځ کوی نفل روژې نيسي، تسبيحات وائي تلاوت کوی نفل حج ياعمره کوی اوطواف کوی، په دې کښې دې دانيت وکړی چې ددې ثواب دې زما فلاني عزيز يا دوست ته ورسيږی هغه به ورسيږی بس دا ايصال ثواب دې، اوهغه ثواب چې تاته رسيده هغه به تاته هم رسيږی اودچانيت دې چې کړې و هغوی ته به هم پوره ثواب رسيږی دمالي صدقې اوخيرات کولو ترټولو غوره طريقه داده چې دځپل وس مطابق نقدې پيسې په کار دخير کښې ولګول شي يامسکين ته ورکړل شي.

داطريقه ځکه غوره ده چې له دې ځخه مسکين هرحاجت پوره کولی شی که نن دهغه ځه ضرورت نه وی دسبا دضرورت لپاره يې کيښودلې شی بل دا چې دا صورت د ريا او ځان ښودنې نه پاك دې په حديث کښې دپټې صدقې ورکونکی په حقله دافضيلت وارد دې چې داسړې به په ورځ دقيامت دالله جل جلاله درحمت دسوری نه لاندی وی پداسې حال کښې چې بل سورې به نه وی او خلك به خپلو خولو کښې دهيبت له وجې ډوب وی. دفضيلت په لحاظ سره په دويمه درجه کښې داصورت دې چې دمسکين دحاجت مطابق هغه ته صدقه ورکولې شی يعنی دهغه حاجت وکتل شي اوهغه پوره کړل شي او دمکان اودکان دبرکت لپاره هم مالك داپورتنې صورت اختيارولې شي. والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۴ ربيع الاول سنہ ۱۴۱۷هـ

ددې مروجه قرآن خوانی بيان په کتاب الاجاره کښې تير شوې دې.

# متفرقات الحظر والاباحة

## په يوه بستره باندې د دوه کسانو څملاستل

**سوال**: په يوه بستره باندې ددوه کسانو څملاستل جائز دی اوکه نه؟ او اوړد پوزې يا درئ او لوئ چپرکټ په حکم دفراش واحد کښې دې او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دلسو کالو يا ترلسو کالو زيات عمروالا دوه کسان برابره خبره ده که دواړه سړی وی يا دواړه ښځې وی يا يو سړې اوبله ښځه وی په يوفرش ويده کيدل جائزندی، برابره خبره ده که يو يی يوطرفته وی اوبل يی بل طرفته وی خوچی ددوئ په مينځ کښې څه پرده وغيره حائل نه وی او که حائل وی نو يو ځای څملاستل مکروه تنزيهی دی، البته هلك له خپل پلار سره او نجلۍ له خپلې مورسره ويده کيدای شی، اوږده درئ اولوی چپرکټ دفراش واحد په حکم کښې ندې البته دومره نزدې ويده کيدل چی کتونکښې ته دفراش واحدويده کيدوپه شان معلوم شی جائزندی.

قال العلامة الحصكفی رحمه الله: ولايجوز للرجل مضاجعة الرجل وان كان كل واحد منهما فی جانب من الفراش قال عليه الصلوة والسلام لايفضی الرجل الی الرجل فی ثوب واحد ولاتفضی المراة الی المراة فی الثوب الواحد واخته وامه وابيه فی المضجع لقوله عليه السلام وفرقوا بينهم فی المضاجع وهم ابناء عشر وفی النتف اذا بلغوا ستا كذا فی المجتبی وفيه الغلام اذا بلغ حد الشهوة كالفحل.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالی: (قوله مضاجعة الرجل) ای فی ثوب واحد لاحاجز بينهما وهو المفهوم من الحديث الاتی وبه فسر الاتقانی المكامعة علی خلاف مامر عن الهداية وهل المراد ان يلتفا فی ثوب واحد اويكون احدهما فی ثوب دون الاخر والظاهر الاول يؤيده ما نقله عن مجمع البحار ای متجردين وان كان بينهما حائل فيكره تنزيها اه تامل (قوله بين اخيه واخته الخ) قال فی الشرعة ويفرق بين الصبيان فی المضاجع اذا بلغوا عشر سنين (الی قوله) فان ذلك داعية الی الفتنة ولو بعد حين اهو فی البزازية اذا بلغ الصبی عشر الاينام مع امه واخته وامراة الابامراته اوجاريته اهـ فالمراد التفريق بينهما عند النوم خوفا من الوقوع فی المحذور (الی قوله) بخلاف ما اذا كان نائما وحده اومع ابيه وحده اوالبنت مع امها وحدها. (رد المحتار ص ۲۳۳ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۴ صفر سنه ۸۶هـ

## دمقروض له مال نه په پته دخپل حق اخستل

دامسئله په تیر شوی جلد «باب القرض والدین» کښې دقرض اخستلو دتدبیر ترعنوان لاندې تیره شوې ده.

## دحج د فلم کتل حرام دی

**سوال**: نن سبا دکراچی، حیدرآباد اوسکهرپه سینما گانو کښې دحج فلم کتلې شی دلیدونکو وینا ده چی په دې کښې څه غیر شرعی فعل، مزامیر، رقص، عریانی، تصویرونه اوسندرې وغیره بالکل نشته، صرف دحجاج کرامو دجدې په بندرگاه کښې دکوزیدو څخه بیا دسپریدلونه ترحج دبیت الله اوزیارت دمدینې طیبې «زادها الله شرفاً وتعظیماً» کارگذاری ښودل کیږی، یعنی طواف، سعی، صفا اومروه، استلام دحجر اسود، رمی الجمار، د وقوف عرفه مناظر او نورو عباداتو کولو تصاویر ښودل کیږی، یومولانا صاحب او یو قاری صاحب له هغې سره سره دحج متعلق بیان کوی او تلاوت هم ورسره کوی، د پوښتنې وړ خبره داده چې دحج مناسك چی شعائر داسلام دی دهغو فلم جوړول اوپه سینما باندې یې کتل اوښودل څنگه دی؟ دجواز یا عدم جواز چی کوم حکم شرعی دې دهغې اسباب اوعلل هم بیان کړی مهربانی به مووی، او که څوك دافلم په نیت دثواب گوری دهغه څه حکم دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: فقهاء کرامو تصریح کړیده چی (تعریف) یعنی نقل دوقوف عرفه بدعت دې حالانکه هلته نور منکرات نشی کیدې اوپه فلم کښې خو ډیر منکرات دی، لهذا دا به په طریقه اولی سره ناجائز وی، ددې وجوهات په لاندې ډول دی:

**اول**: فلم آله د لهو اولعب کیدل ظاهره خبره ده او آلات دلهو اولعب په مقاصد دینیه وکښې استعمالول ددین سخت اهانت او استخفاف دې: قال الله تعالی: ﴿اتَّخَذُوا دِينَهُمْ لَهْوًا وَلَعِبًا وَغَرَّتْهُمُ الْحَيَاةُ الدُّنْيَا﴾

**دویم**: اکثر افعال دحج تعبدی غیرمدرك بالقیاس دی او هغه مخالفین داسلام هم گوری دا افعال چی وینی نو په اسلام پورې به مسخرې کوی اوفلم اخستونکې ددې سبب وگرځیده.

**دریم**: په دې کښې دتصویرونو استعمال اوله هغې نه خوندا خستل چی ددې په بدوالی کښې یی دچاهم کلام نشته اگرکه دعابدینو تصوریرونه هم وی.

دحضرت ابراهیم واسماعیل علیهما السلام کوم تمثالونه چی په بیت الله کښې ایښودل شوی وو حضورصلی الله علیه وسلم چی کومه معامله له هغوسره وکړه هغه هم معلومه ده.

**څلورم**: له دې څخه به اهل هوی د هغه رسم په جواز باندې استدلال وکړی چی یو څه موده

مخکښې ایجاد شوې دې چې په یوه خاصه علاقه کښې خلق جمع کیږی او دحج نقل کوی، ممکنه ده چې له دغه رسم نه هم اول دحج دترغیب اوتشویق نیت وو مگر اوس هغه خاص حج کول بلل کیږی چې دهغو په مفاسدو دټولو اتفاق دې داهل هوی په مخ کښې به د دواړو رسمونو ترمنځ کوم فرق بیان کړې شی؟

**پنځم**: همدارنګه فقهاء کرامو دچوکیدار دبیدارساتلو لپاره رفع الصوت بالتهلیل معصیت بللې دې حالانکه دطاعت اومباح ترمنځ دومره بُعد نشته څومره چې دطاعت اومعصیت ترمنځ دی.

**شپږم**: دمعصیت یعنی فلم دحج دترغیب ذریعه جوړیدلو کښې ترټولولوئ شناعت دادې چې په دې کښې دصالحینو اهانت وی په حقیقت کښې دا داسلام اهانت دې چې دهغې تحمل طبعا اوشرعا په هیڅ طریقې سره ممکن ندې.

کله چې په دې عمل کښې اباحت له سره نشته نو دثواب عقیده ساتل خویی تقریبا کفردې، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۶ ربیع الثانی، سنه : ۱۳۸۶

## د ((محمد)) نوم بدلول

**سوال**: دخالد ښځه حامله وه دهغې حمل یی هلك تصورکړې وو اومحمد نوم یی وریاندې ایښی وو دالله په فضل اوکرم هلك پیداشو اوس که دمحمد په ځای ((محمد احمد)) یا ((محمد عبدالرحمن)) یا بل نوم کیښودل شی څه حرج خوبه نه وی ؟ ګناه خوبه نه کیږی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دماشوم دپیدا کیدونه پس بل نو م ایښودل یا له (محمد) سره بل څه یوځای کول اګر که شرعاً جائز دی مګر بهتر ندی د داسې محبوب نوم بدلول باعث دحرمان دی، دمسلمان طبیعت کله داسې برداشت کولی شی؟ والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۲ذی الحجة سنــ ۱۳۸هـ

## عبدالرسول یا غلام غوث نو م کیښودل

**سوال**: د داسې نومونو کیښودلو څه حکم دې لکه غلام غوث، غلام احمد، غلام مصطفی، عبدالرسول، عبدالنبی، عبدالعلی وغیره ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په غلام غوث او غلام احمد نوم کیښودلو کښې هیڅ حرج نشته، عبدالرسول وغیره نو م کیښودلو کښې دعبد په اضافت کیدو غیر الله طرفته د شرك د وهم کیدو له وجې ناجائز دی، البته داسې سړی ته مشرك نشی ویل کیدې خکه چې دعبدنه خادم اوتابعدار هم مراد کیدای شی.

قال الملا علی القاری رحمه الله تعالی: ولا یجوز نحو عبد الحارث ولا عبد النبی ولا عبرة بما شاع فیما بین الناس

(المرقاة ص۱۰۶ ج۹)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ولا يسميه حكيما ولا ابا الحكم ولا اباعيسى ولا عبدفلان (الى ان قال) اقول ويؤخذ من قوله ولا عبدفلان منع التسمية بعبد النبي ونقل المناوى عن الدميرى انه قيل بالجواز يقصد التشريف بالنسبة والاكثر على المنع حشية اعتقاد حقيقة العبودية كما لا يجوز عبدالدار اه (رد المحتار ص۲۶۸ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۷ جمادى الاولى سنہ ۸۹ھ

## نوم بدلول يا متعدد نومونه كيښودل

**سوال**: آيا نوم بدليدلې شي اوکه نه؟ له دې وجی چی مخکنې نوم دمعنا له لحاظه ښه نه وی يا بی معناوی يابل نوم خوښ کرې شی او آيا يو شخص دځان لپاره له يوه نه زيات نومونه كيښودلې شي؟ . بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بدنوم په ښه نوم بدلول ضروری دی، بلاضرورته نوم بدلول يا متعدد نومونه كيښودل پروانلری.

قال العلامع ابن عابدين رحمه الله تعالى تحت بحث ما تجوز التسمية به من الاسماء وما لا تجوز: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يغير الاسم القبيح الى الحسن جاءه رجل يسمى اصرم فسماه زرعة (رد المحتار ص۲۶۸ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۹ صفر سنہ ۹۲ھ

## غير قريشي ته قريشي ويل خنگه دی

**سوال**: غيرقريشی خپل ځان ته قريشی وائی داخنگه دی؟ زمونږ دکورنی متعلق شيخ ياقصاب ياقصائی مشهوره اومعروفه ده، ځينو هلكانو بی ای «څوارلسمه پورې كالج» ويلې دې هغوئ اوس خپل ځان ته قريشی وايی آياداسی كول جواز لری؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دغير قريشی خانته قريشی ويل يا د يوخاندان سره تعلق لرونكې بل خاندان طرف ته ځان منصوب كول حرام دی اوسخته گناه ده اوپه دې سخت وعيد راغلې دې

عن سعيد بن ابى وقاص وابى بكرة رضى الله تعالى عنهما قالا قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من ادعى الى غير ابيه وهو يعلم فالجنة عليه حرام متفق عليه.

عن ابى هريرة رضى الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لاترغبوا عن اباءكم فمن رغب عن ابيه فقد كفر متفق عليه (مشكوة ص۲۸۶ ج۲) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۵ شعبان سنہ ۹۱ھ

## عبدالرحمن یا عبدالرحیم نوم کیښودل

**سوال**: دعبدالرحمن یا عبدالرحیم په شان نومونونه چی مضاف حذف شی صرف رحمن یارحیم وویل شی لکه عام دستور دا جوړشی آیا دا جائزدی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: چونکه پداسې اسماؤ کښې مضاف محذوف معنوی کیږی لدې وجې نه جائز خو دی لیکن له کراهیت څخه خالی ندی، بالخصوص په هغو نومونو کښې چی له ذات دباری تعالی سره مختص وی، لکه غفار رحمن وغیره، پدې کښې حذف دمضاف زیات قبیح دې، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۷ ذالحجه سنہ ۱۳۹۴ھ

## پتنګ ((کاغذپران)) الوزول روا ندی

**سوال**: آیا پتنګ الوزول روا دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: پتنګ الوزول جائزندی پدې کښې دا لاندې مفاسد دی:

**اول**: په کوترو پسې منډی وهونکی باندی نبی کریم صلی الله علیه وسلم لعنت ویلې دې.

عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم رای رجلا یتبع حمامة فقال شیطان یتبع شیطانة (ابوداود ص۱۹۳ ج۲)

په کوتر بازی کښې دانهماك له وجی په امور دینیه اودنیوی کښې دغفلت مفسده وی اودا په پتنګ بازی کښې هم موندل کیږی لهذا دا وعید هغوی ته هم شامل دې.

**دویم**: دجومات دجمعې دلمانځه بلکه له خپل لمانځه څخه غافل کیږی دشرابواو جواری دحرمت وجه الله تعالی همدابیان کړې ده ((ویصدکم عن ذکر الله وعن الصلوة))

**دریم**: دپتنګ بازی لپاره اکثر دکورونو په چتونو باندې خلك ودریږی بیا هغه الوزوی نو دګیر چاپیره کورونو بې پردګی کیږی.

**څلورم**: ځینی وخت څوك پتنګ الوزوی اوپه شاروان وی اولاندی راپریوزی لکه چی په اخبارونو کښې ددې واقعات شائع کیږی پدې کښې خپل ځان په هلاکت کښې اچوی، نبی کریم صلی الله علیه وسلم په داسی چت باندې له ویده کیدو څخه منع کړې ده چی دهغه ګیرچاپیره دیوال نه وی.

**پنځم**: بی ځایه مال مصرفول تبذیر اوحرام دی، قرآن کریم کښې داسې خلك دشیطان ورونه بلل شوی دی، په پتنګ بازی کښې یوتربله په معصیت اوفخر کولوکښې مسابقه کول چی یوحرام کاردې چی دکفر خطره پکښې ده. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۱ می سنہ ۱۳۸۷ھ

## دمرض دتعدیت (له یوځخه بل ته د نقل کیدلو) تحقیق

**سوال**: که په کومه علاقه یاښارکښې کومه وباء خپره شی له هغه ځای څخه بل ښاریا محلې طرفته منتقل کیدل جائزدی اوکه نه؟ همدارنګه که په حیواناتو کښې کومه وباء راشی نو له هغو څخه نور حیوانات جدا کول څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له ځینی احادیثو څخه دعدوی نفی کیږی اوله ځینوڅخه یې ثبوت کیږی دتطبیق صورت یې دادې چې دنفی په احادیثو کښې هغه عدوی مراد ده چې دهغې قائل اهل جاهلیت وو او اوس هم دهغې عقیده لرونکی موجود وی، «یعنی دا عقیده ساتل چې دځینی مرضونو دا خاصیت طبعی دې اولازمی دې چې هیڅ کله تخلف پکښې نشی راتلې» ددې عقیدې نفی د «لاعدوی ولاطیرة» له نص نه علاوه په مشاهدې سره هم کیږی مثلا په کوم ځای کښې طاعون خپورشی نو دمړیو تعداد له ژوندیو اومحفوظو خلقو څخه ډیرکم کوی که چیرته تعدیه ضروری وی نو ددې په عکس پکاروه بلکه هیڅوك هم باید ژوندې نوې پاتې شوې.

اوپه کومو احادیثو کښې چې دپرهیز حکم دې هغه په درجه دسبب کښې دی مګرددې سبب حیثیت داسباب ظاهره څخه کم دې لهذا پرهیز ضروری ندې د «فرمن المجذوم فرارك من الاسد» حکم دضعیف الاعتقاد دخلکو لپاره دې هغوئ ته که د الله په مشیت مرض ولګیږی نو هغوئ به د «لاعدوی ولاطیرة» په شان احادیثو څخه انکار وکړی، چې په هغه کښې ددوی دسلب ایمان خطره ده مګرفرار من الوباء چونکه په حدیث کښې صراحتاً منع راغلې لهذا یوښار پریښودل اوبل ښارته تلل ناجائزدی، البته له یوی محلې څخه بلې محلې ته یادیوکورنه بل کورته تلل جائزدی.

همدارنګه حیوانات په درجه دسبب کښې جداکول جائزدی، دلزوم اعتقاد جائزندې، والله سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۲۶ / ربیع الاول، سنه : ۸۷ هـ.

## دمعاش دطلب لپاره دمور اوپلار له اجازی پرته تلل

**سوال**: دوالدینو او ښځې له اجازې څخه پرته دمعاش دحاصلولو لپاره بل ښارته سفر کول او تلل څنګه دی پداسی حال کښې چې په دغه ښارکښې کارنه پیدا کیږی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که دسفر له وجی دمور اوپلار یا ښځې یا اولاد دضائع کیدو خطر وی یعنی هغوئ خپله غنیان نه وی یا دهغوئ حفاظت کونکې څوك نه وی نو په دې صورت کښې به سفر نه کوی او که په خپل ښار کښې دکار څه انتظام نه کیږی نو هغوی ته دنفقی او حفاظت معقول انتظام کول په کار دی او بیا دې سفر کولی شی، البته که سفر دومره خطرناك وی چې دهلاکت غالب ګمان پکښې وی نو بیا په هر صورت دوالدینو له اجازې نه بغیر سفر کول جائزندی.

قال العلامة الحصکفي رحمه الله تعالى: وله الخروج لطلب العلم الشرعي بلا اذن والديه لو ملتحيا وتمامه في الدرر.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی (قوله وله الخروج الخ) ای ان لم یخف علی والدیه الضیعة بان کان موسرین ولم تکن نفقتهما علیه فی الخانیة ولو اراد الخروج الی الحج و کرها ذلك قالوا ان استغنی الاب عن خدمته فلا باس والا فلا یسعه الخروج فان احتاجا الی النفقة ولایقدر ان یخلف لهما نفقة کاملة او امکنه الا ان الغالب علی الطریق الخوف فلا یخرج ولو الغالب السلامة یخرج وفی بعض الروایات لایخرج الی الجهاد الا باذنهما ولو اذن احدهما فقط لا ینبغی له الخروج لان مراعاة حقهما فرض عین والجهاد فرض کفایة (الی ان قال) فلو فی سفر تجارة او حج لاباس به بلا اذن الابوین ان استغنیا عن خدمته ولو خرج المتعلم وضیع عیالا لا یراعی حق العیال اهـ (رد المحتار ص۲٦۱ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۷ جمادی الثانیة سنہ ۸۷ھ

## دوالدینو داستغناء په صورت کښې بلااجازت سفرکول جائزدی

**سوال**: دیوه سړ مور ډیره ضعیفه ده دهغې خدمت په ښه طریقه سره کیږی، دهغې زوئ ته څه ضرورت نشته، زوئ یې د یو یا دوه کالو لپاره په سفر تلل غواړی، مور اجازه ورکوی مگر له علامو څخه معلومیږی چی هغی ته به د زوئ په جدائی کافی صدمه رسیږی، پداسی صورت کښې سفر کولو باندې خوبه زوئ نه گناهگاریږی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که دکوم دینی یا دنیوی حاجت لپاره سفرکوی نو جایز دی بلکه داستغناء والدین په صورت کښې دهغوئ له اجازی نه پرته هم سفر کول جائزدی پدې شرط چی لاره خطری نه وی داستغناء مطلب دادې چی هغوی د زوی جسمانی خدمت یامالی تعاون ته محتاج نه وی، طبعی صدمه خو په هرحال وی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله: وله الخروج لطلب العلم الشرعی بلا اذن والدیه.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله وله الخروج) ای ان لم یخف علی والدیه الضیعة بان کانا موسرین ولم تکن نفقتهما علیه فی الخانیة ولو اراد الخروج الی الحج و کرها ذلك قالوا ان استغنی الاب عن خدمته فلا باس والا فلا یسعه الخروج و کرها ذلك قالوا ان استغنی الاب عن خدمته فلا باس والا فلا یسعه الخروج فان احتاجا الی النفقة ولا یقدر ان یخلف الهما نفقة کاملة او امکنه الا ان الغالب علی الطریق الخوف فلا یخرج ولو الغالب السلامة یخرج (الی ان قال) ولو اذن الابوان لا یلتفت الی غیرهما هذا فی سفر الجهاد فلو فی سفر تجارة او حج لاباس به بلا اذن الابوین ان استغنیا عن خدمته اذ لیس فیه ابطال حقهما الا اذا کان الطریق مخوفا کالبحر فلا یخرج بلا اذنهما وان استغنیا عن خدمته (رد المحتار ص۲٦۱ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۹ شعبان سنہ ۸۸ھ

## بغير دمور اوپلار له اجازته بل ځای تدريس کول

**سوال**: يو سړې بغير دمور اوپلار له اجازې څخه بل ځای تدريس کوی د والدينو اصرار دې چې هغه ځای دې تدريس پريږدی بل نزدې ځای دې تدريس وکړی آيا دې شخص ته دشريعت له نظره پداسی حالت کښې په دغه ځای کښې تدريس کول جائزدی ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اوسنې دور دقحط الرجال دور دې په مدارسو اواسلامی جامعاتو کښې دعلم اوعمل په اعتبارسره ماحول دومره خراب شوې دې چې په هرکال په سلګونو فاضلان له هرې جامعی څخه فارغيږی ليکن له هغوئ څخه دګوتو په شمير يوځو افراد دعلم اوعمل په اعتبار باصلاحيته وی، راسخ فی العلم اومحققين علماء يو يو له دنيا څخه رخصتيږی، دهغو اکابرو دمنصب دسنبالولو اوتر يوه حده پورې دهغوی دجانشينی ادا کولو او ساتلو اميد که کيږی نو له دغو محدودو باصلاحيته ځوانانو څخه کيږی.

بل طرفته دوالدينو اوقريبانو له دين څخه انتهائی درجه لرې والې او ددنيا په محبت کښې دمبتلا کيدو له وجی حالات داسې دی چې په هيڅ قيمت دعلم نه برخمن اولاد ته په کومه بهتره دينی اداره کښې په اطمينان سره دکارکولو لپاره په خوښه اجازه نه ورکوی هغوئ صرف خپل سهولت او آسانتيا او تعيش په نظر کښې نيسی، چنانچه که يوهلك د دنيا ګټلولپاره امريکا يا اروپا ته ځی نوهيڅ اشکال يی نه وی.

ځينی خو بيخی ددين کارته هم نه پريږدی بلکه ددنيا په ګټلو باندې يی مشغولوی اوځينی يی په نزدې ځای کښې په تدريس مجبوروی ددې نتيجه داشی چې مدرس نژی اوسږی نو دکور مشاغلو اوپريشانيو له وجی په دلجمعی سره کارنه شی کولې بلکه ډيرځله دماحول د نه پيداکيدو له وجی ورو وروله تدريس څخه لاس په سرشی اوزړه ئی له تدريس څخه پورته شی او ددين له هر خدمت څخه لاس وه مينځی، خالص دينا دار جوړشی بلکه ځينی وخت دبدچاپيريال د اثر له وجې له دين اوعلماء دين څخه متنفرشی او په قسم قسم فسق اوفجور کښې مبتلاء شی دغه شان بيا هغه په ځای ددې چې ددين لپاره قابل قدر خدمتونه وکړی، ددين او علماء دين دبدناميدو ذريعه وګرځی اوډيرو دين دوستو اودعلم شوق لرونکو لپاره خندجوړشی

بناء پردې که چيرته داځو معدود ځوانان هم دبې دينه مور اوپلار دتعيش لپاره قربانی کړې شی نو ددين اوعلم دين نوم اونشان به له دنيا څخه پورته شی او ددين د يوې مسئلی ښودلو به هم ځوك پاتې نشی

له دې وجی نه کومو والدينو چې دخپل اولاد دعالم جوړيدو سعادت حاصل کړې وی هغوئ دې دهغه دديني خدمتونو دممانعت شقاوت په سرنه اخلی بلکه هغه ته دې په خوشحالی سره ددين دخدمت اجازه ورکړی بلکه له هغه سره دې تعاون وکړی او دائمی سعادت دې خپله مقدره حصه

وګرځوی، دتدریس اودینی خدمت کولو لپاره دي په خای انتخاب کولوکښې هغه ته پوره اختیارورکړی هغه دخپل طبیعت او صلاحیت په نظر کښې نیولوسره دښه خای انتخاب کولې شی هغه ډیرښه پوهیږی چی چیرته ډیر خدمت کولې شی او دهغه دعلمی اوعملی ترقی مواقع چیرته ډیری دی.

خلاصه داچی په اوسنی دور کښې چیرته هم په تدریس کولوکښې دوالدینو رضاضروری نده بلکه که مور اوپلار دخدمت محتاج نه وی اومدرس ددوئ په تمنا پوره کولو کښې خپل دینی نقصان وینی اوپه لرې اوسیدو سره متعدی اوغیرمتعدی دینی خدمتونه په ښه طریقه سره سرته رسولې شی نو په دغه کار کښې دمور اوپلار اطاعت ندې جائز.

دتجارت دسفر لپاره دوالدینو اجازت ضروری ندې حالانکه دامحض دنیوی او د ذاتی نوعیت نفع ده په علم دین کښې چی دټول امت دنیوی او اخروی کامیابی په دې پورې موقوفه ده ددې لپاره سفر کول څنګه دوالدینو په اجازت پورې موقوف شی.

البته په لاندې صورتونو کښې دوالدینو له اجازته بغیر سفر کول یالرې اوسیدل جائزندی.

**اول**: چې والدین دجسمانی خدمت محتاج وی اودهغو څوك دخدمت کولونه وی.

**دویم**: سفر داسې له خطره ډك وی چی هلته دهلاکیدو ظن غالب وی.

**دریم**: هلك امرد یعنی بی ګیرې وی او دهغه په فتنه کښې دمبتلاء کیدو خطروی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۸محرم ۱۳۹۵هـ

## سرتور سر اوبربنډې یالوڅې پښې ګرځیدل

**سوال**: سرتور سریا لوڅې پښې اوسیدل جائزدی او که ناجائزدی؟ که ناجائزوی نو دعدم جواز لپاره یې څه دلیل دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: خولۍ یاپټکې په سر کول اوپیزارپښوکول سنت دی دخلاف سنت په وضع قطع کښې دبدوالی اوقبح هیڅ شك نشته حضور صلی الله علیه وسلم د دواړه شیانو په استعمال مواظبت کړې دې همدارنګه سرتور سرګرځیدل نن سبا د فساقو اوفجارو شعار ګرځیدلې دې لهذا په دې کښې زیات قباحت دې همدارنګه لباس دالله تعالی نعمت دې چی زینت هم دې او دګرمی اویخنی دتکالیفو څخه حفاظت هم دې اودنعمت ترك کول کفران نعمت دی. والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۵جمادی الثانیة ۱۳۸۷هـ

## دغیر عالم لپاره دقرآن اوسنت درس ورکول جائزندی

**سوال**: نن سباچی عام طور دجماتونو امامان باقاعده سند یافته نه وی اواردو ترجمه ګوری اوپه

خپلو جماتونو کښې درس قرآن او حديث ورکوي آيا هغوی ته درس ورکول جائزدی ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ځوپوري يي چې ديوه مستند عالم څخه باقاعده علم نه وي حاصل کړی نو هغه ته درس قرآن يا درس حديث ورکول جائزندی . والله سبحانه وتعالى اعلم.

غره رجب سنه ۱۳۸۷هـ

## په غسل خانه کښې متيازی کول

**سوال** : په غسل خانه کښې متيازې کول څنګه دی ؟ چې فرش هم سمتی (پوخ) وی او په متيازو باندې اوبه اوبهول شی ؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : جائز دی مګر احتراز غوره دې ځکه چې ددې څخه د وسواس پيدا کيدو خطره ده. قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لا يبولن احدكم في مستحمه ثم يغتسل او يتوضأ فيه فان عامة الوسواس منه والله سبحانه وتعالى اعلم.

۵رجب سنه ۸۷هـ

## ديوشی لپاره ډول غړول اونغاره وهل جائزدی

**سوال** : ديوشی داعلان کولو لپاره ډول غړول اونغاره وهل جائزدی اوکه نه ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دکوم نيك او جائز کار لپاره داسې قسم اعلان کول جايزدی لکه چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم دنکاح داعلان لپاره تمبل (دريا) وهلوته اجازه ورکړې ده . قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى (قوله ويندب اعلانه) اى اظهاره والضمير راجع الى النكاح يعنى العقد لحديث الترمذي اعلنوا هذا النكاح واجعلوه في المساجد واضربوا عليه بالدفوف فتح (رد المحتار ص ۲۶۱ ج ۲) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۴رجب سنه ۸۷هـ

## ځوان سړی ته دسپينو ويښتانو ايستل جائزدی

**سوال** : دځوان سړی چې دنژلی له وجی دوه يا څلور ويښتان سپين شوی وی آيا دهغو ويستل جائز دی اوکه ناجائز؟ بينوا توجروا :

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دعيب لرې کولولپاره سپين ويښته لرې کول جائزدی اوله وخته مخکښې دويښتو سپينيدل عيب دې لهذا جائز دی .

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولا بأس بنتف الشيب.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ولا بأس بنتف الشيب) قيده في البزازية بان لا يكون على وجه التزين (رد المحتار ص ۲۶۱ ج ۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۷رجب سنه ۸۷هـ

## له سود خورسره خپلپي اودوستي کول

**سوال**: دبانك يا بيمې مامور په کور کښې ښځه ورکول يا له هغوئ څخه ښځه کول اوجهيز وغيره قبلول جائزدي اوکه غير جائز؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه! جائزندی، والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۲شعبان سنه ۱۳۸۷

## بلاربه غوا د ذبحې لپاره خرڅول

**سوال**: بلاربه غوا د ذبحې کولو لپاره په قصاب باندې خرڅول جائزدي اوکه ناجائز؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دبلاربې غوا وغيره ذبح کول جائزدی، لهذا په قصاب يې خرڅول هم جائز دی څه حرج پکښې نشته، البته که قريب الولادت وی نو ذبح کول يې بعضې علماؤ مکروه ګڼلی دی.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وليس في ذبح الامر اضاعة الولد لعدم التيقن بموته.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وليس في ذبح الام الخ) جواب عما يقال انه لولم يحل بذبح امه لما حل ذبحها حاملا لاتلاف الحيوان وتقرير الجواب ظاهر لكن في الكفاية ان تقاربت الولادة تكره ذبحها (رد المحتار ص۱۳ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۹ شوال سنه ۸۷هـ.

## ممتحن ته دنالائق شاګرد کامیابول جائزندی

**سوال**: که کوم ممتحن يوهلك رعايتاً کامياب کړی له هغه وروسته هغه هلك ته يوه نوکری هم پيدا شی آيا دغه هلك ته خو ددې نوکرۍ پيسې ناجائزې نشوې؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که د نوکرۍ دکار کولو پوره صلاحيت لری نو ملازمت يې جائزدې دغه په آمدن باندی دممتحن دفعل کوم اثر نه پريوځی، البته ممتحن دمحکمې له طرفه امين وو او دې پابندؤ چی لائق شاګردان کامياب کړی اوهغه نا اهل کامياب کړو نو ده په امانت کښې خيانت وکړو چی په دې به دې ګناه ګاروی اوپه ده باندې توبه اواستغفار لازم دی.

قال الله تعالى: ان الله يأمركم ان تؤدوا الامانات الى اهلها واذا حكمتم بين الناس ان تحكموا بالعدل الاية (۸/۴) والله سبحانه وتعالى اعلم. غره ذی القعده سنه ۸۷هـ

## دضررى حيواناتو وژل

**سوال**: دسپی اوپيشو، مچ، جولاګی (عنکبوت) ميږی وغيره تکليف ورکونکی حشراتو

اوحيواناتو قتل جائز دي او كه نه ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : حيوانات اوحشرات كه شروع په ضررسره وكړي نو دهغوي په قتل كښې هيڅ حرج نشته اوكه نه نو خلاف الاولى دى. مار او لړم چونكه خلقتاً ضررى دى لهذا دهغو وژل جائزبلكه باعث دثواب دى د دواړونكى سپى اوپيشوهم همداحكم دې دضررى حيواناتو اوحشراتو د وژلولپاره داسې طريقه اختيارول پكاردى چى زربى سا (نفس) وخيژى په اور باندې سوځول يى منع دى.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وجاز قتل مايضر منها كلب عقور وهرة تضر ويذبحها اى الهرة ذبحا ولا يضربها لانه لايفيد ولا يحرقها وفى المبتغى يكره احراق جراد وقمل وعقرب ولا بأس باحراق حطب فيها النمل.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ويذبحها) الظاهر ان الكلب مثلها تأمل (قوله يكره احراق جراد) اى تحريما ومثل القمل البرغوث ومثل العقرب الحية (ردالمحتار ص۲۷۹ ج۵)

وفى الهندية: قتل الزنبور والحشرات هل يباح فى الشرع ابتداء من غير ايذاء وهل يثاب على قتلهم قال لايثاب على ذلك وان لم يوجد منه الايذاء فالاولى ان لايتعرض بقتل شئ منه كذا فى جواهر الفتاوى، عالمگيرة ص۳۶۱ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲ رجب سنه ۹۲هـ

## دچرمښكى ((كربوړى)) وژل ثواب دې

**سوال** : په ځنګلونو كښې دچرمښكى (كربوړى) په شان حيوان پيداكيږى اوپه كورونوكښې چرمښكى (كربوړى) په كثرت سره پيداكيږى آيا ددې دواړو وژل جائزدى ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د دواړو وژل باعث داجر اوثواب دى، په حديث كښې د (وزغ) لفظ راغلې دې چى دواړوته شامل دې.

حضورصلى الله عليه وسلم دهغه وژل داسى بيان كړى دى چى هغې دنمرود اورته پوكې وركاوه چى تيزشى اوابراهيم عليه السلام ته يى په ضرر رسولو كښې تعاون كاوه.

عن ام شريك رضى الله تعالى عنها ان رسول صلى الله عليه وسلم امر بقتل الوزغ وقال وكان ينفخ على ابراهيم عليه السلام (بخارى ص۴۷۳ ج۱)

عن ابى هريرة رضى الله تعالى عنه عن النبى صلى الله عليه وسلم من قتل وزغا فى اول ضربة كتبت له مائة حسنة وفى الثانية دون ذلك وفى الثالثة دون ذلك (مسلم ص۲۳۶ ج۲)

عن ابى هريرة رضى الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من قتل وزغة بالضربة الاولى كان له كذا وكذا حسنة فان قتلها فى الضربة الثانية كان له كذا وكذا حسنة فان قتلها فى الضربة الثالثة كان له كذا وكذا

مسلة وفي الباب عن ابن مسعود وعائشه وام شريك وحديث ابي هريرة حديث حسن صحيح (الترمذي ص ۲۶۳ ج ۱)

قال الامام القرطبي رحمه الله تعالى: وقال كعب وقتادة والزهري ولم تبق يومئذ دابة الا اطفأت عنه النار الا الوزغ فانها كانت تنفخ عليه و كذلك امر رسول الله صلى الله عليه وسلم بقتلها وسماها فويسقة (الجامع الاحكام القران ص ۳۰۳ ج ۱۱)

## د نوکری دحاصلولو لپاره خپل ستر اوعورت ښکاره کول

**سوال**: حکومت په ائرفورس کښې دمذهبی تعليم په سلسله کښې يوه نوې شعبه پرانستې ده چی په هغه کښې علماء د وارنټ افيسر (ريليجس ټيچر) په عهده مقرر کيږی، سرکاری قانون دادې چی دمقرر کيدو په وخت کښې طبی معاينه کول ضروری وی چی په هغې کښې ستر خلاصول (عورت لوڅول) ضروری دی آيا په مذکوره صورت کښې عورت بربنډول او د اعضاء مخصوصه معاينه کول جائزدی او که نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا داسې ضرورت ندې چی دهغې لپاره دچا په مخ کښې عورت ښکاره کول جائز شی د تعجب اوافسوس مقام د چی څوك دمذهبی تعليم دورکولو لپاره بيول کيږی اوبيايی دمذهب په خلاف کولو مجبوروی کوم خلك چی د منصب داخستلو لپاره دداسې گناه کبيره اودحرامو ارتکاب ته تيار وی هغه که دمذهب څه تعليم ورکوی هم ظاهر ده چی د داسې خلکونه دفائدې رسولو په ځائ مذهب ته نقصان رسيږی.

بهر حال بغير دشديد ضرورت نه چاته هم دعورت ښودل اوورته کتل سخته گناه اوحرام دی اوپه سوال کښې ذکرشوی صورت په ضرورت کښې داخل ندی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

غره محرم ۱۳۸۸ هـ

## دغوا مصنوعی بچې

**سوال**: که دغوا بچې مړشی اوله بل څه نه د بچی شکل جوړشی اودشيدو درا لوشلو لپاره هغه غواته کيښودل کيږی آيا دا جائزدی اوکه ناجائز؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که دبچی سترگی اوچهره بالکل ظاهرنه وی بلکه همداسې يوشکل جوړشوې وی نو جائزدی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۷ محرم سنه ۱۳۸۸ هـ

## په خرڅای کښې دټولو حق دی

**سوال**: زمونږ په علاقه کښې ټول غر علاقه وار تقسيم شوی دې دیوه کلی خلك خپل حيوانات دبل کلی څرځای ته نشی بيولې که څوك يې بوزی له هغه څخه معاوضه غوښتل کيږی آيا

دامعاوضه اخستل جائزدی او که نه؟ که معاوضه وانخلی نو ټول خلك خپل مالونه يوه څرځاى ته بيايي پداسي صورت كښي هغه خلكوته نقصان وى دچاچې داحصه څرځاى رسيدلې ده، كه ديو كلي خلك په خپل څرځاى كښې بل څوك نه پريږدى نو د علاقي حاكم يې جبراً ورليږى پداسي حالاتو كښې څه كول پكاردى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دغرونو داسې تقسيم چې ديوقوم مال به دبل قوم څرځاى ته نه ورځي دا جائزندى، معاوضه اخستل هم سخت ظلم دې په ټولو غرڅزه علاقو كښې په وښو كښې ټول مسلمانان برابرشريك دى، ارض مباحه خوپريږده په ارض مملوكه كښې له خپله زرغون شوى وښو څخه منع كول جائزندى كه دځمكې مالك ځمكې ته د داخليدو اجازه نه وركوى نو هغه دې پخپله وابنه ورته وريبى اوغوښتونكى ته دې وركړى.

**قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وبيع ثوب من ثوبين والمراعى اى الكلا واجارتها اما بطلان بيعها فلعدم الملك لحديث الناس شركاء فى ثلاث فى الماء والكلا والنار واما بطلان اجارتها فلانها على استهلاك عين ابن كمال وهذا اذا نبت بنفسه وان انبته بسقى وتربية ملكه وجاز بيعه عينى وقيل لا.**

**وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى تحت (قوله لحديث الناس شركاء فى ثلاث) ومعنى الشركة فى النار الاصطلاء بها وتجفيف الثياب لااخذ الجمر الاباذن صاحبه وفى الماء الشرب وسقى الدواب والاستقاء من الابار والحياض والانهار المملوكة وفى الكلا الاحتشاش ولو فى ارض مملوكة غيران الصاحب الارض المنع من دخوله ولغيره ان يقول ان لى فى ارضك حقا فاما ان توصلنى اليه او تحسه اوتسقى وتدفعه لى وصار كثوب رجل وقع فى دار رجل اما ان ياذن للمالك فى دخوله لياخذه واما ان يخرج اليه فتح ملخصا (رد المحتار صـ١١٠ جـ٤) والله سبحانه وتعالى اعلم.**

۱۷ صفر سنـ۸۸ـه

## په خنزير پورته كولو كښې له كافر سره تعاون كول

**سوال**: زيد دښكارلپاره تللى ؤو هلته له ده څخه مخكښې يو انګريز يوخنزير ښكار كړې وؤ، انګريز زيد ته وويل چې داپورته كړه اوزمونږ په موټر كښې يې كيږده، زيد انكار وكړ، كافر ورته وويل كه چيرته ستاسو كوم شې مردارشى هغه خو حرام شى بيايې هم تاسو په لاس كښې اخلئ او دباندې يې غورځوى، زيد خو خنزير ورسره وانخست ليكن له ده سره كوم معقول جواب نه وه چې انګريز ته يې وركړې وې اوس پوښتنه داده چې آيا پداسى كومه موقع كښې دخنزير په پورته كولو كښې تعاون كول جائز دى او كه نه؟ آيا له خنزير سره لاس لګول لاس ناپاك كوى اوكه نه ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دی کښې دمسلمان تذلیل دې له همدې کبله جائز ندی ، د انګریز استدلال باطل دې ځکه چی دمردار حیوان له کوره ویستل دحرام اونجس اومتعفن شی دبهر کولو لپاره کیږی پدې کښې دکافر په وړاندی دمسلمان تذلیل ندې بلکه دا ماموریه او اطاعت دې . که دخنزیر ویښتان یا دنیونکی لاس لوند وی نو ناپاک ګرځی او داسې که نه وی نو نه ګرځی، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۴ربیع الاول سنــ ۱۳۸۸ هــ

## په اخبار کښې دسړیو اوښځو تصویرونه کتل

**سوال**: داخبار دمطالعې په وخت کښې دسړیو اوښځو تصویرونه کتل څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که دضرورت له وجی اخبار کتل وی نو حتی الامکان دې تصویرونو ته نه ګوری اوتصویرونه په قلم ورانول په کار دی، نن سبا اخبار کتل یو ذهنی تعیش جوړشوې دې چی خلق ورنه دضروت تعبیر کوی چی دا دایمان دسختی کمزورئ علامه ده . والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۷ربیع الثانی سنــ ۱۳۸۸هــ

## دتبلیغ په نیت دمعصیت ارتکاب ندې جائز

**سوال**: که دکوم فاسق سره دهغه په فسق کښې دشریکیدوپه وجه دهغه داصلاح امیدوی نو آیا داسی کول جائز دی ؟ لکه د اهل بدعت دبدعت په مجلس کښې له هغوی سره شریکیدل ؟ بینواتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د اصلاح اوتبلیغ په نیت دمعصیت ارتکاب هرګزجائزندې کله چی دارشاد اوتبلیغ نه مقصد دالله جل جلاله رضاوی نو ددې مقصد دتحصیل لپاره دهغه له معصیت نه څه مطلب؟ که کوم سړې له کومې فاحشی ښځې سره دهغې د اصلاح په نیت بدکاری کوی نو آیا کوم احمق به دیته جائز ووایی ؟ والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۱شعبان سنــ۱۳۸۸هــ

**تنبیه**: ددې مسئلی مفصل اومدلل تحقیق په (**تبلیغ کی شرعی حیثت اورحدود**) رساله کښې دې چی مطالعه یې ډیره ضروری ده.

## دکوم مصلحت په خاطر ګناه ته جائزویل الحاد دې

**سوال**: په یوکار کښې دحکم شرعی کول او نه کول موجود دی، مګر زید وایی چی دمصلحت په خاطر حکم شرعی پریښودل په کار دی آیا دزید دانظریه صحیح ده ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دمصلحت په بناء حکم شرعی پریښودل الحاد اوبې دینی ده داسی ویلو والا فاسق دې اوددې آیت قرآنی ﴿أَفَرَءَيْتَ مَنِ اتَّخَذَ إِلَٰهَهُۥ هَوَىٰهُ وَأَضَلَّهُ ٱللَّهُ عَلَىٰ عِلْمٍ وَخَتَمَ عَلَىٰ سَمْعِهِۦ

وَقَلْبِهِ وَجَعَلَ عَلَىٰ بَصَرِهِ غِشَاوَةً ﴾ مصداق دي اوله داسې باطلې اوالحادي نظريې څخه توبه او استغفار لازم دي.

دشريعت فيصله داده چې په مسائلو باندې د مصلحتونو مصالحه واچول شي نوځومره چه مصالحه زياتې پرې واچول شي نو په هماغه اندازه سالن مزيدار اوخوندور راځي.

ددې مفصل اومدلل تحقيق په رساله د «سياست اسلاميه» کښې دې دې ، والله سبحانه وتعالى اعلم. غره ، ربيع الاخر ، سنه : ۹۶ .

## دعالم تصوير اخستل زيات شنيع دي

**سوال** : په دې زمانه کښې که دتصوير داخستلو دجواز استنباط شوې وي نو په دلائلوسره يې واضح کړئ او که نه وي نو ددې وضاحت وکړئ چې پدې کښې دعالم يامفتي يا عامي سړي څه فرق شته اوکه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : تصوير اخستل په اجماع دامت سره حرام دي . دعوامو په مقابل کښې دکوم عالم يامفتي تصوير اخستل دځووجوهو نه زيات شنيع اوقبيح دي .

**اول** : په اهل علمواواهل فهم اومقربينوباندې ګرفت ډير زيات سخت وي .

**دويم** : دعلماؤ دمعصيت کولوپه وجه عوام په معاصيوباندې زړور کيږي .

**دريم** : دعلماؤ د مداهنت له وجې عوام دا ګناه جائزه بولي .

**تنبيه** : دمعتبروذرائعو څخه دا خبره معلومه شوې ده چې بغير له اجازته دچاتصوير اخستل قانونا منع دی له دې وجې نه که دچا تصوزير په غفلت کښې چا اخستې وي په هغه فرض دی چې داسې مجرم ته دقانوني سزا اختار ورکړي او دتصويرپه ضائع کولو يې مجبورکړي که چيرته يې هغه ضائع نکړي نو قانوني چلن ورسره فرض دې خصوصا په علماؤباندې دا فريضه زياته مؤکده ده پدې کښې تساهل کول حرام دی الله تعالى دې مونږ ټولو ته شرعي حفاظت نصيب کړي . والله سبحانه وتعالى اعلم. غره جمادى الثانيه سنـــ۱۳۸۸هـــ

## د آسونو دځغلولوپه مقابله کښې جانبينوته عوض (انعام) ورکول

**سوال** : دخرو او آسونو دځغلولو په مقابله کښې ګټونکوته عوض (انعام) ورکول اوپه هغې اجرت اخستل جائز دی که ناجائز؟ بينوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په منډه اوځغلولوکښې که دپيسو ورکړه که له جانبينو څخه شرط وی نو دا فعل حرام دې او د حرام فعل لپاره عوض ورکول اوپه هغې اجرت اخستل هم حرام دی . والله سبحانه وتعالى اعلم. غره رمضان.سنـــ ۱۳۸۸

## د غوږاوپوزې سورى كول

**سوال**: اكثره ښځې كه هغه له هر مذهب سره تعلق لرى غوږ اوپوزه سورى كوى آيا شرعا غوږ اوپوزه سورى كول جائزدى؟ او دا په تغير الخلق كښې نه راځى ؟ په حديث كښې په خال كېښودونكې اوڅوك چى خال لګوى په هغې ښځې لعنت راغلې دې چى دهغې علت تغير الخلق دې په غوږ اوپوزه كښې په سورى كولو سره په طريقه اولى تغير الخلق راځى ځكه چى دلته هم په غوښه كښې سورې كيږى پداسې حال كښې چى په خال وهلو سره صرف په پوستكښې كښې سورې وى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په غوږونو كښې دغوږوالى اچول دحضورصلى الله عليه وسلم په زمانه كښې رواج وو او اوس هم په عربو كښې رواج دى پر دې باندى د پوزې قياس كول هم جائز دى چى سورئ كړې شى كه چيرته دا په تغير الخلق كښې داخل واى نو حضورصلى الله عليه وسلم به ضرور ورباندى رد كړې واى.

قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: ويكره للولى الباس الخلخال السوار للصبى ولا بأس بثقب اذن البنت والطفل استحسانا ملتقطقلت وهل يجوز الخزام فى الانف لم اره.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله للصبى) اى الذكر لانه من زينة النساء (قوله والطفل) ظاهره ان المراد به الذكر مع ان ثقب الاذن لتعليق القرط وهو من زينة النساء فلا يحل للذكور والذى فى عامة الكتب وقدمناه عن التتارخانية لا بأس بثقب اذن الطفل من البنات وزاد فى حاوى القدسى ولا يجوز ثقب اذان البنين فالصواب اسقاط الواو (قوله لم اره) قلت ان كان مما يتزين النساء به كما هو فى بعض البلاد فهو فيها كثقب القرط اهو قدنص الشافعية على جوازه مدنى. (ردالمحتار صـــ ۲۷۰ جـــ۵)

وفى الهندية: ولا بأس بثقب اذان النسوان كذا فى الظهيرية ولا بأس بثقب اذان الاطفال من البنات لانهم كانوا يفعلون ذلك فى زمان رسول الله صلى الله عليه وسلم من غير انكار كذا فى الكبرى (عالمگيرية صـ۳۵۷ جـ۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۴ صفر ســـ۸۹ هــ

## دغيبت د جائز او ناجائز صورتونو تفصيل

**سوال**: غيبت څه ته وائى او آيا دا ګناه كبيره ده اوكه صغيره ده ؟ دبعضې علماؤ وينا ده چى دعلانيه فسق اوفجور كونكى غيبت جائز دې آيا دا خبره صحيح ده ؟ دغيبت جائز او ناجائز صورتونه بيان كړئ مهربانى به مو وى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دچا پسى شا دهغهٔ يوه داسې دعيب واقعه بيانول كه هغه ته

معلومه شی نو ورباندې خفه کیږی دا غیبت دې اوغیبت گناه کبیره ده چی پدې باندې د قرآن اوحدیث شدید ترین وعیدونه راغلی دی.

**دغیبت ناجائزصورتونه** :

**اول** : غیبت حلال گڼل اوکول یی مثلا که غیبت کونکې دغیبت کولو څخه منع کړې شی نوپه جواب کښې وایی چی داغیبت ندې ځکه چی زه رشتیاوایم دا کفردې ځکه چی دغه انسان قطعی حرام حلال گڼی.

**دویم** : دنوم ذکرکولو نه بغیر دچاغیبت کول چی هغه مخاطب ته معلوم اومتعین وی دا دنفاق او ریا مجموعه ده.

**دریم** : دکوم معلوم شخص غیبت کول دا گناه کبیره ده.

**دغیبت جائزصورتونه** :

**اول** : دظلم د دفع کولولپاره دقادر علی دفع الظلم په مخ کښې غیبت کول.

**دویم** : دمنکر دتغیر په نیت دقادر علی دفع المنکر په مخ کښې غیبت کول.

**دریم** : دحکم شرعی دمعلومولولپاره دمفتی په مخ کښې غیبت کول لیکن نوم مبهم پریښودل بهتر دی.

**څلورم** : دچا د شرنه دځان ساتلولپاره دهغه غیبت کول مثلاپه شاهدانو او راویانو باندی جرح کول

**پنځم** : دښکاره گناه کونکو غیبت کول البته صرف دهغې گناه یادول جائزدی کومه چی یی ښکاره کوی دپټوگناهونو ذکر یی جائزندې.

**شپږم** : دتعارف په غرض دچاعیب بیانول مثلا اعور اواعمش وغیره دا پدې شرط جائزدی چې ددې څخه بغیر تعارف ممکن نه وی یا متعذر وی.

عن ابی هریرة رضی الله تعالی عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال اتدرون ما الغیبة قالوا الله ورسوله اعلم قال ذکرك اخاك بما یکره قیل افرایت ان کان فی اخی ما اقول قال ان کان فیه ما تقول فقد اغتبته وان لم یکن فیه ما تقول فقد بهته رواه مسلم (مشکوة ص ۴۱۲)

وقال العلامة الالوسی رحمه الله تعالی تحت الایة ایحب احدکم ان یاکل لحم اخیه : والایة دالة علی حرمة الغیبة، وقد نقل القرطبی وغیره الاجماع علی انها من الکبائر وعن الغزالی وصاحب العدة انهما صرحا بانها من الصغائر وهو عجیب منهما لکثرة مایدل علی انها من الکبائر، وقصاری ما قیل فی وجه القول بانها صغیرة انه لولم تکن کذلك یلزم فسق الناس کلهم الا القلیل النادر منهم وهذا حرج عظیم وتعقب بان فشو المعصیة وارتکاب جمیع الناس لها فضلا عن الاکثر لا یوجب ان تکون صغیرة، وهذا الذی دل علیه الکلام من ارتکاب

اکثر الناس لها لم یکن قبل، علی ان الاصرار علیها قریب منها فی کثرة الفشو فی الناس وهو کبیرة بالاجماع ویلزم علیه الحرج العظیم وان لم یکن فی عظم الحرج السابق مع ان هذا الدلیل لایقاوم تلک الدلائل الکثیرة. (روح المعانی ص۱۵۹ ج۲۶)

وعن عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم وایاکم والکذب فان الکذب یهدی الی الفجور وان الفجور یهدی الی النار وما یزال الرجل یکذب ویتحری الکذب حتی یکتب عندالله کذابا متفق علیه (مشکوة ص۴۱۲)

وقال العلامة الالوسی رحمه الله تعالی: وقد تجب الغیبة لغرض صحیح شرعی لایتوصل الیه الا بها وتنحصر فی ستة اسباب الاول التظلم فلمن ظلم ان یشکو لمن یظن له قدرة علی ازالة ظلمه او تخفیفه. الثانی الاستعانة علی تغییر المنکر بذکره لمن یظن قدرته علی ازالته. الثالث الاستفتاء فیجوز للمستفتی ان یقول للمفتی، ظلمنی فلان بکذا فهل یجوز له او ما طریق تحصیل حقی او نحو ذلک، والافضل ان یبهمه. الرابع تحذیر المسلمین من الشر کجرح الشهود والرواة والمصنفین، والمتصدین لافتاء او اقراء مع عدم اهلیة فتجوز اجماعا بل تجب (الی ان قال) والخامس ان یتجاهر بفسقه کالمکاسین وشربة الخمر ظاهرا فیجوز ذکرهم بما تجاهروا فیه دون غیره الا ان یکون له سبب اخر مما مر (روح المعانی ص۱۶۱ ج۲۶)

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: فتباح غیبة مجهول ومتظاهر بقبیح ولمصاهرة ولسوء اعتقاد تحذیرا منه ولشکوی ظلامته للحاکم شرح وهبانیة.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی تحت (قوله فتباح غیبة مجهول) وفی تنبیه الغافلین للفقیه ابی اللیث الغیبة علی اربعة اوجه وفی وجه هی کفر بان قیل له لا تغتب فیقول لیس هذا غیبة لانی صادق فیه فقد استحل ما حرم بالادلة القطعیة وهو کفر وفی وجه هی نفاق بان یغتاب من لایسمیه عند من یعرفه فهو مغتاب ویری من نفسه انه متورع فهذا هو النفاق وفی وجه هی معصیة وهو ان یغتاب معینا ویعلم انها معصیة فعلیه التوبة وفی وجه هی مباح وهو ان یغتاب معلنا بفسقه او صاحب بدعة وان اغتاب الفاسق لیحذره الناس یثاب علیه لانه من النهی عن المنکر اهـ اقول والاباحة لاتنافی الوجوب فی بعض المواضع الاتیة (قوله ومتظاهر بقبیح) وهو الذی لایستتر عنه ولا یؤثر عنده اذا قیل عنه انه یفعل کذا اهـ ابن الشحنة قال فی تبیین المحارم فیجوز ذکره بما یجاهر به لاغیره قال صلی الله علیه وسلم من القی جلباب الحیاء عن وجهه فلا غیبة له واما اذا

كان مستترا فلا تجوز غيبته اهـ قلت وما اشتهر بين العوام من انه لاغيبة لتارك الصلوة ان اريد به ذكره فيما كان متجاهرا فهو صحيح والا فلا (رد المحتار ص ۲۶۲ ج ۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۱ صفر سنه ۸۹هـ

## په تصوير لرونكى سايكل سوريدل

**سوال**: كوم سايكل چې په كرايه وركول كيږي په وخت دضرورت كښې په هغه باندې سورلى كيږي دهغه په ډنډوباندې دښځو تصويرونه لږيدلى وي آيا په هغو سايكلونو باندې سپرلى كول جائزدى اوكه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: پداسې سايكل سپريدل جائزندى كه بغير له تصويره سايكل نه پيداكيږي اوسخت ضرورت وى نو گنجائش شته مگر تصوير دې په څه شى باندې پټ كړى كه داهم نه كيږي نو له تصوير څخه حتى المقدور اغماض واجب دې. والله سبحانه وتعالى اعلم

۱۵ ربيع الاول سنه ۱۳۸۹هـ

## دخاندانى منصوبه بندى «اولاد بندولو» جائزصورتونه

**سوال**: د خاندانى منصوبه بندى څوطريقه دى:

**اول**: دښځې بچه دان ويستل كيږي.

**دويم**: دسړى اپريشن كيږي چې له هغې وروسته د اولاد دپيداكيدو قابل نه وى.

**دريم**: د دواگانو استعمالول.

**څلورم**: په وخت دجماع كښې دپلاستيكى پوكانۍ استعمالول.

اوس دپوښتنى خاى دادې چې پدې كښې كوم صورتونه جائزاوكوم ناجائزدى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: منصوبه بندى درزق دكموالى له وجې په هرصورت كښې حرامه ده البته كه دانظريه نه وى بلكه دښځې دصحت يا د ماشومانو دپرورش په خاطر وى نو دپلاستك خلطه يا دوا استعمالول جائز دى دبچه دانى لرې كول يا دسړى آپريشن كول چې دهميشه لپاره بيكاره شى جائزندىددې تفصيل په رساله د «ضابطه توليد واسقاط حمل» كښې دى.

۳ جمادى الثانيه سنه ۱۳۸۹ هـ

## له فاسق زوئ سره تعلق قطع كول

**سوال**: زما زوئ بالكل ښكاره په فسق اوفجور كښې مبتلادې اوپه دې باندې فخر هم كوى ماته هم كنځل اوبدې ردې وايى حتى چې زما له هغه څخه دسرخطره ده. ماله هغه سره تعلق قطع كړې دې، څه خپلوان تينگاركوى چې هغه معاف كړه پدې باره كښې دشريعت څه حكم دې؟ آيا دا هلك معاف كول اوتعلق ورسره ساتل جائز دى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دلته دوه مسئلې جدا جدا دي: يو معاف کول يعنې په دنيا يا اخرت کښې انتقام نه اخستل دا ډير لوړ مقام دې، او دالله جل جلاله دقرب لويه ذريعه ده، شريعت دهغې فضائل په تفصيل سره بيان کړی دی.

دويم داچې له زوئ سره تعلق ساتل، ددې فيصله دهلك د آينده حالاتو تر اطمينان پورې موقوفه ده که اطمينان وی چې هغه به خپل حالات درست اوسم کړی نو تعلقات ورسره ساتل پکاردی اوکه اطمينان نه وی نو تعلق ساتل هم ندی پکار، والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۲رجب سنــ۱۳۸۹هــ

## دبخمل په مصلی لمونځ کول جائزدی

**سوال**: دبخمل په جانماز لمونځ کول جائزدی اوکه نه؟ دا خوبه د وريښمو په حکم کښې نه وی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: کوم جای نماز چې خالص د وريښمووی نو په هغه په لمونځ کولو کښې اختلاف دې دجواز قول راجح دې، نن سبا چې کوم قسم جای نماز په بازار کښې موندل کيږي دا دخالصو وريښمونه وی لدې وجې نه پدې باندې بالاتفاق لمونځ کول جائزدی.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ويحل توسده وافتراشه والنوم عليه وقالا والشافعي ومالك رحمهم الله تعالى حرام وهو الصحيح كما في المواهب قلت فليحفظ هذا لكنه خلاف المشهور.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله لكنه خلاف المشهور) قال في الشرنبلالية قلت هذا التصحيح خلاف ما عليه المتون المعتبرة المشهورة والشروح (ردالمحتار ص۲۲۶ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۸رجب سنــ۸۹هــ

## جعلی سند جوړول اوبيا د هغې په سبب وظيفه اجراکول

**سوال**: يو سړی ته وظيفه اونوکری پيدا کيږی مگر شرط دادې چې دپنځم صنف سند ولری او دغه سند له هغه سره نشته مگرجعلی جوړيږی، پداسې صورت کښې کومه گناه شته اوکه نه؟ همدارنگه لده سره په دې کار کښې په اعانت کونکو گناه شته اوکه نه؟ همدارنگه د ولډنگ وغيره کارونو دمهارت جعلی سند حاصلول او نوکری ورباندی حاصلول جائزدی اوکه نه؟ اوپدې حاصليدونکې تنخوا حلاله ده اوکه حرامه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا دروغ اودوکه ده لهذا جائزندی په دی اعانت کونکې هم گناهگار دی البته کوم کار چې دده په ذمه دې که چيرته دې هغه په حسن او خوبی سره دسرته رسولو صلاحيت لری نو تنخوا ورته حلاله ده. والله سبحانه وتعالى اعلم ۲۵ذی الحجه سنــ۱۳۹۰هــ

## ددوا په بل کښې دمقرر ډاکټر دتشخیص رعایت

**سوال** : دحکومت له طرفه ځینی مامورینوته طبی سهولت مهیاً وی دتشخیص لپاره دهرې محکمې خپل ډاکټر مقررروی چی دهغه تشخیص ضروری وی اوس یو سړې له بل ډاکټر څخه تشخیص کوی او دمتعلقه ډاکټرته راشی او اخلاقاً هغه ورته دغه بل منظور کړی ، نوآ ددې شخص لپاره دا جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : متعلقه ډاکټر که دهغه بل ډاکټر له تشخیص څخه مطمئن وی نو بل منظورول جائزدی اوکه نه وی نوجائز ندی. د اخلاقو په بناء دبل منظورول ندی جائز . والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۳ جمادی الاولی سنــ۱۳۹۲هــ

## تار دمول او هغه ته غوتې اچول

**سوال** : دچیچك لپاره په تارسورة الرحمن لوستل کیږی یابل کوم آیت ویل کیږی او هغه درباندې دمیږی اوغوتې وراچول کیږی او دماشومانو په غاړه کښې اچول کیږی آیا داجائز دی اوکه نه؟ چونکه په حدیث کښې له دې څخه منع راغلې نو اوس شرعاً څه حکم دې ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هو ! جائزدی دجاهلیت په دور کښې داسې شیان مؤثر بالذات ګڼل کیدل لدې وجی ترینه ممانعت راغلی دې، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۳۵ذی الحجه سنــ۱۳۹۰هــ

## په راډیو باندې تلاوت اوتفسیر

**سوال** : په راډیو باندې دقرآن کریم تلاوت اوتفسیر کول او دهغه آوریدل جائزدی اوکه نه؟ اوپه دغه وخت کښې استماع (غوږ نیول) اوانصات (چپ کیدل) ضروری دی اوکه نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : خالص تلاوت له دوه وجوهونه جائز ندی .

**اول** : عموماً تلاوت کونکې اجرت اخلی اوتلاوت محضه باندې اجرت اخستل حرام دی.

**دویم** : پداسې مجلس کښې ساز اوسرود هم وی چی دا دقرآن توهین دې لهذا دهغه آوریدل هم جائز ندی، تفسر بیانول او اجرت ورباندی اخستل جائز دی . والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۵ ذی الحجه سنــ ۱۳۹۰ هــ

## په ټی وی (ټلویزون) باندې اسلامی نشریات آوریدل هم حرام دی

**سوال** : په ټلویزون باندې دکوم عالم تقریرآوریدل یا کرکټ لیدل جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : ټلویزون لیدل په لاندې وجوسره حرام دی:

**اول** : دلته عموما د اصل په ځای فلم راځی چی د تصویر کیدوله وجی حرام دې اوپه کوم مجلس کښې چی تصویر وی هلته تلل حرام دی په حدیث کښې په تصویر والاو لعنت شوې دې

چیرت چې تصویر وي هلته درحمت ملائك نه راځي.

**دویم**: نطاق (اناؤنسر) ښځه وي اوډښځې عکس کتل حرام دي برابر خبره ده که تصویر وي یابراه راست عکس وي د دواړو حکم یو دې.

**دریم**: له نطاق ښځه علاوه په تلویزون ډیرې ښځې راځي چې هغه سرې وینې اوپه تلویزون راتلونکې سرې ښځې وینې غیرمحرمې ښځې اوسړي ته بلاضروت شدیده یوبل ته کتل حرام دي.

**څلورم**: په لوبو او نوروفحش اوبې حیا مشتمل نشریات پکې کیږي چې دهغو لیدل او آوریدل دواړه حرام دي.

**پنځم**: په موسیقې او نورو فحش اوبې حیا مشتمل نشریات پکې کیږي چې دهغو لیدل او آوریدل دواړه حرام دي.

**شپږم**: دتلویزون دمذکوره مفاسدو له وجې په ټولنه کښې بې حیایي، فحاشي، بدمعاشي زنا او دهر قسم بدعملي طوفان قائمیږي حتی چې دسکه ورور او خور ترمنځ او دپلار او لور ترمنځ دبدکارې متعلق هم مونږ ته استفتاگانې راغلي دي.

**اووم**: دټولو سائنسدانانو په دې خبره اتفاق دې چې تلویزون لیدل بلکه هغه ته نږدې کیناستل هم دصحت لپاره سخت مضردي، دیوې نجلۍ ددماغ رگ پرې شوې وودماغ پروفیسر ورته ویلي وو چې دا د تلویزون د لیدو نتیجه ده، دیوې نجلۍ نظرکمزورې شوې وو دسترگوپروفیسرورته ویلي وو چې دا دتلویزون د لیدوله وجې ده که آینده احتیاط ونکړې نو ړنده به شي.

**اتم**: اکثر مضامین داسې وي چې نه ددین څه فائده وي پکې او نه د دنیا او هر هغه څه ممنوع دي چې په هغه کښې څه نفع نه وي.

**نهم**: دتلویزون په شان دلهولعب اوبې دینې اوفحاشې اودمنکراتو په مرکز کښې دیني پروگرامونه ښودل کیږي اوبیا هغوته داشاعت اسلام نوم ورکول کیږي دا ددین سخته بې حرمتي اومسلمانانو ته ناقابل برداشت توهین دې.

**لسم**: که څوك هر څومره اهتمام وکړي چې صرف جائزشیان به وریاندې گورم بیا هم ځان ساتل ناممکن دي.

**یولسم**: که بطور فرض محال دا فرض کړې شي چې دکوم حرام کار د ارتکاب نه بغیر جائز کارونه لیدل ممکن دي بیاهم په دې کښې دافساد دې چې دشروع کولو نه بعد ددې شوق نشه دومره زیاته شي چې خبره ترحرامو شیانو کتلوپورې ورسیږي اوهر هغه کار چې دحراموذریعه گرځي حرام دې اگر چه فی نفسه هغه مباح هم وي.

**دولسم**: کوم دینداره سړي چې دمحرماتو نه ځان ساتي او دتلویزون دلیدلو کوښښ وکړي نو عوام خلك مطلقا دهغې په اباحت باندې استدلال کوي دتلویزون دتباه کاریو تفصیل په رساله

((تي وي کازهر تي وي سي مهلك تر)) کښې دي. والله سبحانه وتعالى اعلم. ۹ محرم سنه ۹۹هـ

## انگريزي ژبه لوستل

**سوال**: انگريزي ژبه لوستل جائزدي اوکه نه؟ که ناجائزوي نو وجه يې څه ده؟ نن سبا عام اوخاص خلك دې طرفته مائل په نظر راځي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: انگريزي ويل جايزدي مگر دسکول اوکالج ماحول اوچاپريال دبې دينۍ دې کوم شې چې بې ديني طرفته داعي وي له هغه څخه احتراز لازم دی. والله سبحانه وتعالى اعلم.

۵ جمادى الاخره سنه ۱۳۹۱هـ

## دمصنوعي مجسمې دلوبودسامان حکم

**سوال**: ماشومانو ته دلوبوسامان ورکول څنگه دي؟ خصوصًا هغه چې مصنوعي مجسمه وي لکه انسان، آس، وزه وغيره؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ماشومانوته دلوبوسامان ورکول جائزدي مگر د روح لرونکو شيانو مجسمې لکه انسان، آس، وزه وغيره ورکول ندي جائز.

دتصوير دحرمت دلائل او احکامو تفصيل په رساله (النذير العريان عن عذاب صورة الحيوان) کښې دي، والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۰ جمادى الاخره سنه ۱۴۹۱هـ

## له ښاروالي (بلديه) څخه د مردارو حيواناتو ټيکه نيول

**سوال**: زيد دښاروالي له کميټې څخه مردار حيوانات دکال په لس زره روپۍ ټيکه نيولې، مثلا که په ښارکښې کوم حيوان مړشي نوزيد به هغه وړي دهغه څرمن اوهډوکښې به پکار راولي چربي (وازده) به يې ويلې کوي او دصابون په کارخانه دارو به يې خرڅوي، آيا د زيد دافعل شرعاً صحيح دی؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: نه! جائزندي والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۷ شوال سنه ۱۳۹۱هـ

## د اضطرار په حالت کښې دبل چا مال خوړل

**سوال**: يوفقير چې له هغه سره دخوراك او څښاك هيڅ هم نه وي په سوال کولو يې هم گزاره نه کيږي پداسې حالت کښې هغه ته څه کول په کار دي؟ که چيرته هغه په حالت داضطرار کښې له کوم غني سره په ډوډۍ نه ورکولو جنگ وکړي اوپه دغه حالت کښې مړشي نو دهغه مرگ به څنگه وي؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دغير مال دهغه دطيب خاطرنه بغير اخستل حرام دي، ((قال رسول

الله صلى الله عليه وسلم لا يحل مال امرء مسلم الا بطيب نفس منه))
په حالت د اضطرار کښې هم دخان دژغورلولپاره بې اجازته دچا دمال خوړلو په نسبت بقدر ضرورت مرداره خوړل اهون دی. البته که د مرداری غوښه هم نه پیداکیږی نو دخان ساتنې لپاره دضرورت په اندازه دغير مال بلا اجازته خوړلې شی.
قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى في جنايات الحج: او هو مضطر الى اكله (الى قوله) ويقدم الميتة على الصيد والصيد على مال الغير ولحم الانسان الخ (ردالمحتار ص۲۱۴ ج۲)
بیا تعجب په دی خبره دې چې یوشخص دمال په گټلو قدرت نه لری او جنگ کولو ته تیاریږی که دا شخص په دې جنگ کښې مړشی نو په حرام مرگ مری، والله سبحانه وتعالى اعلم.
۱۸ ربیع الثانی سنه ۱۳۹۱هـ

## دضرورت په وجه سپی ساتل

**سوال**: په حدیث کښې راغلی دی چې هغه کورته ملائك نه داخليږی چې په هغه کښې سپی یا تصویروی آیامطلقا سپی ساتل جائزندی که دضرورت په وخت کښې گنجائش شته؟ بینوا توجروا.
**الجواب باسم ملهم الصواب**: دحفاظت یا ښکار لپاره سپی ساتل جائز دی په حدیث کښې ممانعت دبلاضرورته ساتلونه راغلې دې. والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۵ جمادی الاخره سنه ۱۳۹۱هـ

## دپاسپورت تصویر ویستل اوپه هغې اجرت اخستل هم حرام دی

**سوال**: دپاسپورت سایز تصویرونه ویستل اوپه هغې اجرت اخستل جائزدی او که ناجائز؟ بینوا توجروا.
**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا حرام دی دهغوپه حرمت باندې دنبی کریم صلی الله علیه وسلم ارشادات په کثرت سره منقول دی.
عن سعيد بن ابى الحسن قال كنت عند ابن عباس اذاتاه رجل فقال يا ابن عباس انى انسان انما معيشتى من صنعة يدى وانى اصنع هذه التصاوير فقال ابن عباس لا احدثك الا ما سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول سمعته يقول من صور صورة فان الله معذبه حتى ينفخ فيها الروح وليس بنافخ فيها ابدا الحديث (بخاری ص۲۹۶ ج۱) والله سبحانه وتعالى اعلم.
۷ جمادی الاخرة سنه ۹۲هـ

## ماشومانو ته دتصویرونو په ذریعه تعلیم ورکول

**سوال**: ماشومانو ته د تعلیم ورکولو لپاره دتصویر استعمال ترکومه حده صحیح دی؟ آیا په

دې مسئله کښې دام المؤمنین حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها دګوډیو او ذوالجناح کومه رنایی پریوځی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا حرام دی، دحضرت عائشه رضی الله تعالی عنها دلوبوپه سامان کښې تصویرونه، نه وو

قال فی حاشیة المشکوة معزیا الی اللمعات: والمراد ههنا ما تلعب به الصبیة من الخرق والرق ولم یکن لها صور مشخصة کالتصاویر المحرمة فلاحاجة الی ما قیل ان عدم انکاره صلی الله علیه وسلم لعبها بالصور وابقائها فی بیتها دال علی ان ذلک کان قبل التحریم وان اللعب الصغار مطنة للاستخفاف (حاشیة مشکوة ص ۲۸۲ ج۲) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ جمادی الثانیة سنه ۹۲ هـ

## دړیره لنډونکی سړی په جومات کښې بیان کول

**سوال**: آیا ږیره لنډونکې سړې په جومات کښې وعظ کولې شی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې کښې ددین اود وعظ د منصب توهین دې له همدې کبله ندی جائز. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۶ جمادی الاخره سنه ۱۳۹۲ هـ

## کافر ته دښائست ((ډیکوریشن)) سامان ورکول

**سوال**: دکافرانو په ودونو اوښادیووغیره کښې مسلمان خپل د ډیکوریشن سامان ورکولې شی اوکه نه؟ مثلا دیګ ، پلیټ ، ګلاسونه وغیره ورکول جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو ! جائز دی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: وجاز بیع عصیر عنب ممن یعلم انه یتخذ خمرا الاان المعصیة لاتقوم بعینه الخ (ردالمحتار ص ۲۵۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۴ رجب سنه ۹۲ هـ

## د خپل حق اخستلو لپاره دروغ ویل

**سوال**: زید دبکر په خمکه جبرا قبضه کړې ده او مقدمه یی روانه ده، اوس که بکر دخپل حق اخستلو لپاره دروغ اووائی نو آیا جائزبه وی اوکه نه؟ مثلا زید ته بکر دوه زره روپئ ورکړی دی اودې اووایی چی پنځه زره روپئ یی ورکړی دی آیا داسی کول شرعا جائزدی اوکه نه؟ پداسې حال کښې چی بغیرددروغو ویلو کارنه کیږی او بغیرله مقدمې فیصله هم نه کیږی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: صریح دروغ ویل جائزندی دضرورت په موقع تعریض کول جائزدی یعنی داسی خبره کول چی په ظاهر یی خلاف الواقع وی لیکن له هغې ځخه صحیح مطلب هم اخستل کیدای شی.

قال الحصكفي رحمه الله تعالى: الكذب مباح لاحياء حقه ودفع الظلم عن نفسه والمراد التعريض لان عين الكذب حرام (ردالمحتار ص ۲۴۴ ج ۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.
ذی القعده سنه ۹۲ هـ

## په تبلیغی اجتماع کښې په لوړ آواز سره دعا کول

**سوال**: دتبلیغی اجتماع په اختتام کښې همیشه په زوره په لوړ آواز دعا کیږی او آوریدونکی په لوړ آواز آمین وایی او په اکثرو ژړا غالبه شی اوددې ډیر اهتمام کیږی، اکثر خلك دا دعا دقرآن ددرس نه هم زیاته باعث دثواب گنی آیا د دعا دا طریقه دشریعت موافقه ده او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د دعاء لپاره اجتماع ثابته نده، البته اجتماع که دبل مقصد لپاره وی نو په هغې کښې اجتماعی دعا جائزه ده، له تبلیغی اجتماع څخه مقصود دعاء نده بلکه دخلکو دین طرفته متوجه کول اوددین تبلیغ مقصود وی، لهذا هلته په لوړ آوازسره اجتماعی دعاء کولو کښې څه حرج نشته. والله اعلم. ۸صفر سنه ۱۳۹۳ هـ

## دظلم نه دخلاصون لپاره دروغ ویل اورشوت ورکول

**سوال**: حکومت چی کوم ټیکس په عامو خلکو لگوی دهغې نه دځان خلاصولولپاره دروغ ویل اورشوت ورکول جائزدی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: حکومت په لاندې شرطونو سره ټیکس لگولې شی.

**اول**: چې دحکومت ضرورت وی. **دویم**: ټیکس په قدر دضرورت ولگول شی. **دریم**: مصرف صحیح وی. **څلورم**: تعین اوتشخیص صحیح وی. که له ذکر شوی شرطونو نه کوم یوشرط هم مفقود شی نوټیکس لگول ظلم دې له هغه څخه دځان خلاصولو کوشش جائزدې که درشوت ورکولو ضرورت پیښ شی نو دهغه هم گنجائش شته دې، صریح دروغ ویل جائز ندی، البته داسې خبره کولې شی چی په حقیقت کښې خلاف الواقع وی مگرکوم صحیح مطلب ترینه اخستل کیږی والله سبحانه وتعالی اعلم.

## په حرمت د ((لااله الاالله)) ویل

**سوال**: بحق یا په حرمت دلااله الاالله ویل او دعاء غوښتل صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! صحیح دی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۰ ذی القعده سنه ۱۳۹۳ هـ

## دموراوپلار دزیارت کولو لپاره پاسپورت جوړول

**سوال**: دمور اوپلار دزیارت لپاره پاسپورت جوړول چی په هغه کښې تصویر اخستلو ته

ضرورت پېښيږي آيا داسې پاسپورت جوړول جائزدي اوكه ناجائز؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دوخت علماء دا فتوی ورکوي، ماته ددې شرح صدرنشته عام خلق دې دعلماء وقت په فتوی عمل وکړي. والله سبحانه وتعالی اعلم
٥ رمضان سنه ١٣٩٤هـ

## دتوبې داعلان كولو وروسته دتعلق قطع كولو جواز نشته

**سوال**: يوې ښځې ديوسړي سره غلط تعلق ساتلو بيا د والدينو داجازې نه بغير يې له داسې چاسره واده وكړو چې كفو (سيال) هم نه وو چې پدې سره دهغې دتولې قبيلې بې عزتي وشوه، ددې په بناء له هغې سره ټولوخپلوخپلوانو تعلق قطع كړو، له ډيرې مودې وروسته هغه په خپل كار پښيمانه شوه او له خپلو ټولو خپلوانو څخه يې معافي وغوښته آيا اوس دمعافي له غوښتلو وروسته بياهم دهغې خپلوخپلوانو ته قطع تعلق جائزدې اوكه نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: كه ذكر شوې ښځې له هغې ګناه څخه توبه ايستلې وي اوټولو هغو خلكو ته چې ددې ګناه ورته علم وو هغوئ ته يې دخپلې توبې اعلان هم كړې وي او له خپلو ټولو قريبانو نه يې معافي هم غوښتې وي نو اوس ورسره تعلق قطع كول جائزندي. والله سبحانه وتعالی اعلم
٢٩ ذی الحجه سنه ١٣٩٤هـ

## مار، شادو، خرس، يګ وغيره ساتل

**سوال**: مار، شادو، يګ دغيره ساتل او دهغو خلكوته د تماشې (سيل) لپاره ښودل اودخلكو په هغو باندې پيسې وركول او دهغو روپو اخستل جائزدي او كه نه؟ په ظاهره خو اخستل او وركول منع معلوميږي ځكه چې اول خو د يو حيوان حبس دې چې ممنوع دې، دويم حيوان هم داسې حيوان چې دهغه حكم قتل دې، دريم دخلكو په لهو اولعب كښې مشغولول؟ بينوا توجروا؟

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داسې تماشې ښودل اوكتل ناجائزدي.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وفي البزازية استماع صوت الملاهي كضرب قصب ونحوه حرام لقوله عليه الصلوة والسلام استماع الملاهي معصية والجلوس عليها فسق والتلذذ بها كفر اى بالنعمة. (ردالمحتار ص٢٢٣ج٥)

وقال ايضا: وكره كل لهو لقوله عليه الصلوة والسلام كل لهو المسلم حرام الاثلاثة ملاعبته اهله وتأديبه لفرسه ومناضلته بقوسه.

قال ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وكره كل لهو) اى كل لعب وعبث فالثلاثة بمعنى واحد كما فى شرح التأويلات والاطلاق شامل لنفس الفعل واستماعه كالرقص والسخرية والتصفيق وضرب الاوتار من

الطنبور والبربط الخ (ردالمحتار ص۲۵۳ ج۵) والله سبحانه وتعالیٰ اعلم. ۴ محرم سنه ۹۵ هـ

## دمروجه کمیټی حکم

**سوال**: نن سبا په هره علاقه کښې دا رواج دې چې څو افراد یوځای شی یوه کمیټه جوړه کړی په هره میاشت کښې هر رکن دکمیټې یو معین مقدارپیسی جمع کوی بیا په جمع شوی پیسو قرعه اندازی کیږی، دکمیټې له ارکانو څخه چې دچانوم په قرعه کښې راووت هغه ته جمع شوې روپۍ ورکول کیږی، داسی هره میاشت کیږی، نو بت په نوبت هررکن دکمیټې ته له جمع شوی پیسو څخه دفائدی اخستلو موقع ورکول کیږی، دا د باهمی امداد یوشکل ګڼل کیږی، اوس پوښتنه داده چې شرعاً دا صورت جائزدی او که نه؟ بنده ته په دی کښې یوڅو شبهات دی.

**اول**: هر فرد په دې امید پدی کښې شریك کوی چې دده لږپیسی به ډیری روپۍ له ځان سره راوړی ګویاکه دیولوی مقدار پیسو بطورقرض لاسته راوړلولپاره لږپیسې له خپل جیب څخه وباسی د استقراض داشکل غلط دې ځکه چې ((کل قرض جر نفعا فهو ربا)) فرمایل شوی دی.

**دویم**: په موجوده صورت کښې په قرعه اندازی کښې قرض حاصلول که قمار ندې خومشابه دقمار ضرور دې.

**دریم**: کوم ممبر (رکن) که د پیسو حاصلولو وروسته خپله ماهانه چنده بنده کړی نو نزاع پیداکیږی ظاهره خبره ده چې داسې معاملات شرعا غلط وی.

**څلورم**: دا هم ممکنه نده بلکه امر واقعی دې چې څوك واقعا ضرورتمند وی په قرعه کښې یی دنوم نه راوتلو په وجه ترڅه وخته له قرض حاصلولو څخه محروم پاتې کیږی، دخپل احتیاج باوجود هره میاشت چنده ورکوی چې د ډیرومشکلاتو ښکارګرځی، لهذا دا امداد باهمی ندې بلکه په یو حاجتمند باندی ظلم دې.

**پنځم**: هررکن کمیټی ته هره میاشت چنده ورکوی چې دې په خپله هم ددې کمیټی جزء او رکن دې نو هرسړی خپل ځان ته قرض ورکونکې شو او دا یو مهمل امردی. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دکمیټی مروجه طریقه بلاشبه ناجائزه ده، البته دجواز دا صورت کیدای شی چې دلاندی شرطونو مکمله پابندی وکړی.

**اول**: دکمیټی په نوم جمع شوې روپۍ دټولو شرکت کونکو په رضا بغیر دقرعی نه یوه شخص ته دقرض په طور ورکړل شی یاپه ذریعه دقرعی سره ورکړل شی مګر دقرعی نتیجه لازمی ونه ګرځول شی بلکه دټولو شریکانو په رضا سره صرف د انتخاب دسهولت لپاره یوذریعه وګڼل شی.

**دویم**: هرشریك ته په هروخت کښې دجدا کیدو اختیار وی کوم جبر وربانندی نه وی بلکه بعد له بریا ځوځله د پیسو ورکولو کوم شریك بیاهم دجدا کیدو پوره اختیار ولری او دورکړو پیسو د

واپس کولو دمطالبې پوره حق ولري پدې باندی دهیڅ کوم شریك اعتراض نه وی.

**دریم**: دیوې میاشتی نیته لازمی ونه بلل شی هر شریك ته په هر وخت کښې دقرض پطور دورکړې شوو روپو دبیرته اخستو دمطالبی حق وی، ددغو شرطونو لاندې که معامله وشی نوپه سوال کښې چی کوم اشکالات دی هغه نه وربانده واردیږی اوتفصیل یې داسې دې.

**اول**: ددې اول اشکال دوه ځوابونه دی: ۱-: دلته جرنفع دمستقرض څخه نه دې بلکه دغیرنه دې ۲- کله چی هرشخص ته هر وخت دجدا کیدو اختیاروی نو دا نفع نه مشروط کیږی.

**دویم**: دشرط اول لاندی نه قمار دې او نه دقمارمشابهت.

**دریم**: دا صورت په هر قرض کښې وی چی قرض خواه ته دمطالبې حق وی. البته دیوې میاشتې تاجیل باطل دې او دابطلان په دریم شرط سره پورته کیږی.

**څلورم**: ددوم شرط لاندې هر شریك ته په هره مرحله اختیاروی او چی هغه کله هم وغواړی نو خپلې ورکړې پیسی بیرته اخستې شی نودا اشکال هم پاتې نه شو.

**پنځم**: قرض کمیتی ته نه ورکول کیږی بلکه دچاپه نوم چی قرعه وختله هغه ته ورکولو کیږی دکمیتی قبضه وکالةً ده.

## په لوبو کښې انهماک او په هغوکښې عزت ګڼل

**سوال**: آیا دمسلمانانو لپاره په دنیا کښې دکافرانو په مقابل کښې دخپل عزت قائم ساتلو لپاره په لوبوکښې حصه اخستل او دګټلو کوښښ کول او دعاء ورته کول د قرآن او حدیث څخه ثابت دی اوکه نه؟ او آیا پداسې طریقه واقعا عزت حاصلیږی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دمسلمانانو عزت او وقار او د دنیا او آخرت سرخروئی صرف په دې کښې ده چی هغوئ په صحیح معنو مسلمانان جوړشی او د اسلام په ټولو احکامو عمل وکړی اوپه کفارو باندی دخپل دباو او رعب اچولولپاره اودهغوی په مقابل کښې دخپل سرلوړ ساتلو لپاره دجهاد تیارې وکړی او داسې ورزش وکړی چی دهغه له وجې جسم مضبوط شی او دجهاد کولو قابل وکرځی، دالله تعالی ارشاد دی: ﴿وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ﴾ الایه.

دحضوراکرم صلی الله علیه وسلم او دصحابه کرامو رضی الله عنهم په دورکښې دجهاد دتربیت کولو په ذریعې سره په کفارو رعب اچول کیده لکه چی په مسجدنبوی کښې تیر اندازی دغشی ویشتلو مقابله کیدله ددغسې تربیت په وجه دحضرت سعد رضی الله عنه په شان قهرمان مهارت حاصل کړو چی کله به دکفارو مقابلې ته ووت نو مربی اعظم صلی الله علیه وسلم به ورته دفداء

ابی وامی (ارم یا سعد ، بابی وامی) نعره کوله او دده په غشی ویشتلو به یی فخر کولو.

ددې تربیت نتیجه وه چی ماشومان، ځوانان، بوډاګان، ټول د جهاد له جذبی څخه سرشارو و. ماشومان به دپښو دګوتو په سرونو ودریدل اوخپل قد به یی لوړ ښودلو ترڅوپه جهاد کښې د ګډون اجازه ورته ورکړل شی.

دځوانې ناوی دحقوقو ادا کولو نه پس چی یی دجهاد اعلان واوریدونو پرته دغسل دمکمل کولو نه به یی د میدان طرفته منډې وهلې او دشهادت جام به یی نوش کاوه، په پښو معذوربه هم دجهاد میدان ته تللو اوداسې دعاء به یی کوله : ((اللهم لاتردی الی اهلی)). دنوی کالو (۹۰) سپین ږیری به هم جهاد ته تلل اوپه لاره کښې به یی دمتوقعه انتقال په نظرکښې نیولو سره دا وصیت کاوه چی زما جنازه له ځان سره مخکې وړئ اودجهاد په میدان کښې به می دفن کوئ.

دغو قدس (پاك) صفته حضراتو کله هم په لوبو کولوسره دکفارو دمقابلې کولو اوپه هغوئ درعب غورځولوسوچ نه وو کړې او نه یی په دی فلسفه کښې داسلام سرلوړی بلله په حقیقت کښې دا داسلام ددښمنانو یو مکر او سازش دې چی مسلمان نوجوانان په لوبو، لهو لعب کښې مشغول وساتی ترڅوهغوئ دخپل دین له ټولو احکاماتو څخه غافل بلکه عاری وه وسیږی او له مونږ سره دوستانه تعلقات قائم کړی اوپه مکمل طور سره زمونږ په رنګ رنګ کړل شی او زمونږ په خلاف دجهاد دبیرغ دپورته کولو تصور یی هم له ذهن څخه ووځی.

**افسوس** : دنن مسلمان حکومتونو او مسلمانو ځوانانو خپل حیثیت هیرکړې او په څومره ژوره کنده کښې پریوتی دی او داسلام د دشمنانو دسازشونو په جال کښې دپریوتو په وجه د آخرت دفکرنه په لرې پریوتو سره د دنیا دمنافعو څخه یی هم لاسونه وینځلی دی. (**نسوالله فانساهم انفسهم**) الله تعالی اودهغه احکام یی شاته وغورځول، نو الله تعالی هم دوئ ددنیا او آخرت دنفع دشعور څخه بی برخی کړل لکه څنګه چی دلوبوپه مقابلو کښې دبی شمیره خلاف شرع کارونو ارتکاب کیږی دلمونځ او روژی په شان اهمو فرضونه غفلت بلکه دتنفرنه علاوه دقوم میلیونونه او اربونه روپئ سرمایه دلوبو په میدانونو جوړولو او د سیل کوونکو دناستی په انتظام کولو دغیرمسلمو لوبغاړو دخوشحال ساتلو او دیهود او هنودو سره دتعلقاتو جوړولو په شان لغویاتو اودغیرت ایمانی خلاف حیاسوزو حرکاتو باندې خرڅ کیږی فالی الله المشتکی.

بناپر دې دلوبو د مروجه مقابلو هیڅ جواز نشته، لهذا هغوئ ته هیڅ قسم دعا کول او غوښتل جائز ندی بلکه په هرشخص دخپل توان اوطاقت موافق دمسلمان ځوان نسل ددغه تباه کن او دحکومت ددې هلاك کونکی سازش نه دځان ساتل فرض دی . والله سبحانه وتعالی اعلم

۳۰ شوال ۱۳۹۵ هـ

## مختلف خبرونه آورول او آوريدل

**سوال** : په ملك كښې دننه يا دبهر چې كوم حالات دمختلفوذريعو په واسطه موصول كيږى دهغو آوريدل او يوبل ته بيانول جائزدى اوكه نه ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : نه ؛ دا جائزندى په دې كښې دا لاندى مفاسد دى.

**اول** : اكثر خبرونه عبث اولايعنى وى چې په هغو كښې نه ددين څه فائده وى نه ددنيا ، كوم سړې چې له لايعنى څخه نه بچ كيږى الله تعالى ته دهغه اسلام خوښ نه دې، حضور صلى الله عليه وسلم فرمايى «من حسن اسلام المرء تركه مالايعنيه»

**دويم** : اكثره خبرې غيرمحققې وى چې دهغو بيانول اوخپرول په دروغو كښې داخل دى، حضور صلى الله عليه وسلم فرمايى «كفى بالمرء كذبا ان يحدث بكل ماسمع»

**دريم** : په ډيرو خبرونو كښې افتراء او غيبت هم وى اوغيبت دزنا نه هم بدتر دې او افتراء دغيبت نه هم بدتره ده .

**څلورم** : د اسلام اومسلمانانو خلاف پروپاګند اوسازشونه كيږى له حالاتو ناخبره ساده مسلمانان په غير شعورى طورسره ترينه متاثركيږى او د اسلام د دښمنانوبيان كړې شوى خلاف الواقع نقائص دهغوئ په زړونو كښې له اسلام څخه نفرت اوكركه پيداكوى.

**پنځم** : دمختلفو طبقاتو او مختلفو علاقوترمنځ عصبيت اومنافرت پيداكيږى.

**شپږم** : دقسم قسم فتنوا اوفساداتو خبرونه آوريدل انتشار،خوف ، هراس او بزدلى پيداكوى قرآن كريم دهوائى خبرونو دخپرولو عادت دمنافقانو له قبيحو عادتونوڅخه شميرلې دې، لكه چه فرمايى : ﴿ وَإِذَا جَآءَهُمۡ أَمۡرٞ مِّنَ ٱلۡأَمۡنِ أَوِ ٱلۡخَوۡفِ أَذَاعُواْ بِهِۦۖ ﴾ بل ځاى كښې فرمائى : ﴿لَّئِن لَّمۡ يَنتَهِ ٱلۡمُنَٰفِقُونَ وَٱلَّذِينَ فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٞ وَٱلۡمُرۡجِفُونَ فِي ٱلۡمَدِينَةِ لَنُغۡرِيَنَّكَ بِهِمۡ ثُمَّ لَا يُجَاوِرُونَكَ فِيهَآ إِلَّا قَلِيلٗا ۝٦٠﴾ والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۵ذى القعده سنــ۹۵ھــ

## دځنځيرى ساعت په لاس كول

**سوال** : بعضې مفتيان حضرات فرمائى چې دځنځيرى ساعت په لاس كول جائزندى كه ډير ضرورت وى نو جائز دى مگر خلاف تقوى دى، ستاسو تحقيق څه دې ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دځنځير د استعمال دوه صورتونه دى :

**اول** : دهغه تړل بذات خود مقصود وى لكه دزينت لپاره يې خلك په لاس كوى.

**دويم** : بذات خود مقصود نه وى بلكه دبل څه دتړلولپاره استعمال شى. په اول صورت كښې استعمال جائزندې اوپه دويم صورت كښې بلاكراهيته جائزدې ، دساعت شاته چې كومه حصه نه

لاس سره لګیدلې وی هغه هم کوم معدنی شی وی مګرچونکه هغه خپله مقصود نه وی له دې وجې نه جائز دی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۲ ربیع الاول سنه ۱۳۹۹هـ

## په نائی باندې حجامت جوړول

**سوال**: نائی چی دخلکو ډیرې خریی یایی لنډوی او د شریعت خلاف ویښتان جوړوی په هغه ویښتان جوړول جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چاړه اوقیچی وغیره آلات دویښتانو جوړولوپه باره کښې یقینی طورسره معلوم نه چی له حلال مال څخه دی اوکه دحرام څخه یاله حرام اوحلال څخه مخلوط اخستل شوی نو اعتبار غالب لره دې، که حلال غالب وی نو دهغو آلاتو استعمال جائزدې اوکه نه نو ندې جائز. اوکه دغلبې علم نه وی نوجائزدې لیکن احتراز بهتر دې، دناستی دکرسئ وغیره هم همداحکم دې که د دکان قیمت خرید یا کرایه غالبه حلاله وی نودې دکان ته داخلیدل جائزدې اوکه نه وی نو ندی جائز. په مذکوره ټولو صورتونو کښې که دحلال اوحرام دمخلوط کیدو یقین وی نوغلبې ته اعتبارنشته که حلال غالب هم وی بیاهم جائزندی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ددې تفصیل دحرام او حلال مخلوط مال حکم په رساله کښې دې. ۲محرم سنه ۱۴۰۰هـ

## دسفارش حکم

**سوال**: سوال کول خوحرام دی که دچامسکین مسلمان سړی دنوکری غوښتلولپاره څوك دکوم صاحب منصب نه سفارش اوغوښتنه وکړی آیاداهم په ممنوع سوال کښې داخل دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته صاحب منصب باندې ستاسی دوجاهت اثر دومره غالب وی چی دهغه له وجی ستاسفارش رد کولې نشی اودا اندیښنه وی چی دخلاف شرع یاخلاف قانون دکارهم ارتکاب کوی که چیرته تاسوسفارش وکړئ نو ضروری یی قبلوی نوسفارش کول جائزندی اوکه ستا او دهغه ترمنځ داسې دوستی اوبی تکلفی وی که چیرته سفارش کول خلاف شرع یا خلاف قانون وی او یا دکوم مصلحت خلاف وی نو بلاتکلف دسفارش دقبول څخه انکار کولې شی او دهغه په انکار کولو تاسوته هم کومه پریشانی نه وی نوسفارش کول جائزبلکه باعث داجردی.

عن ابی موسی الاشعری رضی الله تعالی عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال اشفعوا ولتوجروا ویقضی الله علی لسان رسوله ماشاء متفق علیه (مشکوة ص۴۲۲) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۶ربیع الثانی سنه ۱۴۰۰هـ

## د پردی سړی نطفه د ښځې رحم ته داخلول

**سوال**: نن سبا یوه آله ایجاد شوې ده چی دهغی په ذریعه دښځی په رحم کښې د پردی سړی نطفه داخلوی چی له هغې څخه عموما زنانه حامله کیږی اوماشوم پیداکیږی، اوس پوښتنه داده

چې دا ماشوم حرامی دې اوکه نه؟ او داسې فعل ته زنا ویل کیږی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دافعل حرام دې لاستعمال جزء غیرالزوج مګر زنا نده لعدم صدق تعریفه علیه. ماشوم به ثابت النسب وی لان الولد للفراش. والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۰ رجب سنه ۱۴۰۰ هـ

## دټیسټ ټیوب بی بی حکم

**سوال**: دتولد او تناسل نوې طریقې (ټیسټ ټیوب بی بی) شرعاً څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دښځې په شرمګاه یارحم کښې کوم داسې مرض وی چې دجسمانی تکلیف او اذیت باعث وی نو دهغې علاج له ډاکترې څخه کول جائزدی د نارینه ډاکتر نه کول ناجائز دی البته که مرض مهلك وی یاناقابل برداشت وی اوښځینه ډاکتره نه پیداکیږی نو دسړی ډاکتر نه علاج جائز دې.

د ټیسټ ټیوب بی بی په طریقه کارکښې د داسې مرضی علاج نه کیږی چې دهغه له وجې په جسمانی تکلیف کښې مبتلاء وی دا دفع مضریت بدنیه دې بلکه جلب منفعت دې لهذا داعمل کول له زنانه ډاکترې څخه هم ندی جائز له نارینه ډاکتر څخه کول دانتهائی بی دینی نه علاوه داسی بی غیرتی اوشرم هم دې چې تصور یې له انسانیت نه په ډیر لری واټن کښې دې، الله تعالی ناراض کوی او کوم اولاد چې پیداکیږی هغه هم وبال جوړیږی.

**قال العلامۃ ابن عابدین رحمه الله تعالی: وقال فی الجوهرة: اذا کان المرض فی سائر بدنها غیر الفرج یجوز النظر الیه عند الدواء لانه موضع ضرورة وان کان فی موضع الفرج فینبغی ان یعلم امرءة تداویها فان لم توجد وخافوا علیها ان تهلك اویصیبها وجع لاتحتمله یستر منها کل شیء الاموضع الجرح اهـ فتامل والظاهر ان ینبغی هنا للوجوب (ردالمحتار ص۲۳۷ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.** ۲۴ صفر سنه ۱۴۱۰ هـ

## دنابالغو ماشومانو نه خدمت اخستل

**سوال**: دکلیو په جوماتونو کښې چې طالبان زندګی کوی په هغوئ کښې نابالغ ماشومان هم وی چې دهغوئ په ذمه ټول کاروی تردې چې په هغوئ کله کله ظلم اوزیاتې هم کیږی پداسی حالاتو کښې له نابالغ څخه بلا أجرته کاراخستل څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له والدین اواولیاءڅخه دلالةً دکار اخستلو اجازت وی، لهذا کار ترینه اخستل جائزدی بلکه دهغوئ دتربیت لپاره یوه اندازه کاراخستل ضروری دی، البته ددوو خبرو خیال ساتل ضروری دی: **اول**: په تعلیم کښې زیات حرج واقع نشی. **دویم**: له توان اوطاقت نه زیات کارترینه وانخستل شی. والله سبحانه وتعالی اعلم ۴ ربیع الاول سنه ۱۳۹۴

## خلاف قانون په کوم ملک کښې اوسیدل

**سوال**: بعضې خلك له حکومت څخه اجازه اخلی دعمرې لپاره مکې مکرمې ته ځی دعمرې نه چی فارغ شی بیرته نه راځی، دعمرې دفراغت نه وروسته دسعودی حکومت چاته دمستقل اوسیدو اجازه نه ورکوی اودپاکستان حکومت هم اجازه ددې لپاره ورکوی چی هغه عمرې ته ځی که دپاکستان حکومت ته دا معلومه شی چی بیرته نه راځی اوهلته دمستقل رهائش بندو بست کوی نو هغه ته هیڅ کله هم اجازه نه ورکوی بهر حال بعضې خلك په داسې غیرقانونی طریقې سره لاړشی اوهلته خفیه طریقې سره اوسیږی، اوس پوښتنه داده چی داخلك شرعی اوقانونی اعتبارسره مجرم ګڼل کیږی اوکه؟ بینوا توجروا . بعضی حضرات داوائی چی چونکه دحکومتونو دسفرقوانین دشریعت خلاف دی په شریعت کښې دیوځای په سفر کولوهم پابندی نشته خصوصًا بیا د بلد الحرام په سفر چی موجب دقرب الهی دې، لهذا که هغه دعمرې پاسپورت او ویزه اخستې وی او دتللونه وروسته هلته قیام وکړی نوشرعا مجرم ندی. دځینی نوروحضراتو دا وینا ده چی دملکی اوشهری نظام دبرقرار ساتلو لپاره دسفر قوانین خصوصا له اجازې نه بغیر دیوملك اوسیدونکې بل ملك ته دنه تللو قوانین خلاف دشریعت ندی بله دا چی اګرکه قانون شرعی ندې لیکن عمره کونکی ګویا دویزې دحاصلولو په وخت کښې له پاکستانی حکومت اوسعودی حکومت سره معاهده کړې ده چی دې به دعمرې کولوڅخه وروسته بیرته ځی اوهلته به قیام نه کوی لهذا پس له عمرې نه هلته په غلا اوسیدل ددې قانون خلاف ورزی سره سره د وعدې اومعاهدې خلاف ورزی هم ده، لهذا دې شرعا اوقانونا مجرم دې نو آیا دا صحیح دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا صورت شرعا اوقانونا هرقسم ناجائزدې. قانوناً خوظاهره خبره ده چی په پاسپورټ اوویزه کښې کوم تاریخ مقرردې له هغه تاریخ څخه زیات هلته حصاریدل جرم اوقانون ماتول دی، دشرعًاناجائز کیدو وجوهات په لاندی ډول دیر **اول**: پاسپورټ اوویزه حاصلول یوه معاهده ده اوعهد ماتول په شریعت کښې یوعظیم جرم دې . **دویم**: په مباحاتوکښې دحکومت اطاعت واجب دې. **دریم** ځان اومال په خطر کښې اچول جائزندی. والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۵ ربیع الاول سنه ۹۶هـ

## دویزې له مودې څخه زیات وخت تیرول جائزندی

**سوال**: زه سره دخپل اهل اوعیال نه په مکه مکرمه کښې داقامت کولو اراده لرم لیکن دتحقیق کولونه معلومه شوه چی د پاکستان حکومت صرف ددوو هفتو لپاره ویزه ورکوی څکه چی عمره کوونکی لپاره له دوو هفتو زیاته ویزه نه ورکول کیږی اوس دا خبره معلوموله دی چی ددوه هفتو دویزې دختمیدو وروسته په مکه مکرمه کښې بټ په غلا اوسیدل څنګه دی، کله کله پکی نیول

هم راشي چې فوراً دواپس کولوخطره ده اوکه کوم کار دسعودي حکومت له طرفه راکولې شي نو په اطمنان سره دقيام صورت هم پيداکيږي پداسي حال کښې زما لپاره دشريعت حکم څه دی ؟ بينو توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په امور مباحه ؤ کښې دقانون خلاف ورزی سخته گناه ده همدارنگه خپل نفس اوعزت په خطره کښې اچول جائزندی ، والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۷ ربيع الثاني سنـــ ۱۳۹۶هـــ

## دبجلۍ (برق) له ميټر نه بل چاته تارورکول

**سوال** : ځينی خلك پټ په غلا خپل همسايه (گاوانډي) ته دبرق لين ورکوی اوله هغه څخه پيسې اخلی پداسې حال کښې چې حکومت ددې اجازه نه ورکوی. داسی کول جائزدی اوکه نه ؟ حالانکه دحکومت څخه له اخستلو وروسته دا دسړی په ملك کښې راځی ؟ بينوتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دابيعه نده بلکه دبرق رسولو اجاره ده اوميټر هم په اجارې سره دې دمستاجر بل چاته دنه ورکولو په پابندی کښې که کومه فائده وی نو داسې پابندی لگول جائز دی ظاهراً دمحکمې په نظرکښې به په پابندی کښې يقيناً څه فائده ملحوظ وی، لهذا بل ته ورکول ناجائزدی . والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۵ شعبان سنـــ ۱۴۰۰هـــ

## له خپلې ځمکې څخه عامه لاربندول

**سوال** : دزيد ځمکې ته نژدې دبکر ځمکه ده چې په هغې کښې يوه عامه لاره وه چې په هغې باندې دعامو خلکو تگ راتگ وو ، بکر دخپلې ځمکې نه گيرچاپيره څلورواړه طرفته ديوال جوړ کړو او داعامه لاريې بنده کړه د مجبوری له وجې نه خلکو د زيد په ځمکه کښې لاره جوړه کړه زيد هم له دې څخه سترگی پټې کړې وې، څوکاله وروسته زيد په دغه خپله ځمکه کښې کورجوړ کړو او په خپله ځمکه کښې دغه لاره بندول غواړی ځکه چې ددغه لارې نه هغه ته ډير نقصان رسيږی دفصل له خرابی پرته دبی پردگی، دروازه هم خلاصيږی دخلکو دکاروبار سرته رسولو لپاره بله لارهم شته مگرهغه کافی اوږده ده اوس شرعی فيصله څه ده ؟ واضحه يې کړئ ډيره مهربانی به وی بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : زيدته دخپل ملك نه دلاری بندولو حق شته اگرکه هغه ته کوم نقصان هم نه وی پداسې حال کښې چې هغه ته دبی پردگی اودفصل دخرابی نقصان ورپيښيږی نو ددې فتنې سدباب په ده فرض دې، عواموته په کاردی چې بله لار اختيارکړی، شرکاء فی العين سره په وخت دمضرت کښې دخپل شريك په حصه کښې تصرف نشی کولې نو اجنبی خلك خو په طريقه اولی سره تصرف نشی کولی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: وکل من شرکاء الملک اجنبی فی الامتناع عن تصرف مضر فی مال صاحبه لعدم تضمنها الوکالة (ردالمحتار ص۳۳۲ ج۳)، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۷ ربیع الثانی سنه ۹۶هـ

## دخنزیر دویښتانو دبرش حکم

**سوال**: نن سبا د دروازو، کړکیو او دیوالونو درنگ کولو لپاره دخنزیر دویښتانو برش استعمالیږی، په دغه برش باندې رنگ شوی لرگی اودیوالونه پاک دی او که ناپاک؟ که ناپاک وی نو دوچیدو نه بعد که لوندلاس یا بل څه ورسره ولگیږی نو آیا هغه به مرداریږی؟ همدار راز ددغو دروازو اوکړکیو اودیوالونو به دپاکولو څه صورت وی؟ دجوماتونو درنگ کولو لپاره هم دغه برش استعمالیږی نو آیا دجومات لپاره دداسې نجس شی داستعمال اجازت شته؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مفتی به قول اوظاهری مذهب په قول کښې دخنزیر ویښتان ناپاک دی په کوم څه کښې چی واچول شی هغه هم ناپاک گرځی مگر د امام محمد په قول دخنزیر ویښتان پاک دی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: (وشعر المیتة) غیر الخنزیر علی المذهب (الی قوله) طاهر.

قال ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله علی المذهب) ای علی قول ابی یوسف رحمه الله تعالی الذی هو ظاهر الروایة ان شعره نجس وصححه فی البدائع ورجحه فی الاختیار فلو صلی ومعه منه اکثر من قدر الدرهم لاتجوز ولو وقع فی ماء قلیل نجسه وعند محمد رحمه الله تعالی لاینجسه افاده فی البحر وذکر فی الدرر انه عند محمد رحمه الله تعالی طاهر لضرورة استعماله للخرازین قال العلامة المقدسی وفی زماننا استغنوا عنه ای فلایجوز استعماله لزوال الضرورة الباعثة للحکم بالطهارة ح نوح افندی (ردالمحتار ص۱۳۸ ج۱)

وقال الرافعی رحمه الله تعالی: (قوله ای فلایجوز استعماله لزوال الضرورة الخ) سیاتی له عن رد ما قاله فی النهر فی بیان ثمرة الاختلاف فی خرء الحمام والعصفور هل هو طاهر او معفو عنه من انها تظهر فی ما لو وجدها فی ثوب وعنده ماهو خال عنه لاتجوز الصلوة علی العفو لانتفاء الضرورة وتجوز علی الطهارة قال: فیه نظر اذ مقتضاه عدم جواز التطهر بهذا الماء حیث وجد غیره اه ثم مقتضی ما قاله انه بزوال الضرورة الداعیة للطهارة لاتعود النجاسة وهو الظاهر اذا الضرورة هی علة لقول الشارع بالطهارة علی ما قال محمد رحمه الله تعالی وبعد قوله علیها الباعث حتی یوجد منه مایدل علی النجاسة ولذلک قال محمد رحمه الله تعالی بعدم فساد الماء وبصحة صلوة الحامل مع عدم وجود الضرورة حقیقة (التحریر المختار ص۲۵ ج۱)

له عبارت مذکوره څخه معلومیږی چی دامام محمد په نزد شعر الخنزیر بهر حال پاک دی که

دهغه داستعمال ضرورت وی او که نه وی چونکه مفتی به قول دنجاست دې، لهذا دهغوله استعمال څخه حتی الامکان احتراز واجب دې صرف د ضرورت په مواقعوکښې د امام محمد دقول په اخستلو کښې گنجائش معلومیږی. لرگی ته رنگ ورکول په ضرورت کښې داخل دی ځکه چی بغیرله رنگولولرگې زر خرابیږی اوکه د خنزیر دوېښتو نه بغیر بل برش استعمال شی نو هغه ډیر زر ماتیږی اوپه کار کولو کښې محنت اومشقت دوچنده کیږی، همدارنگه وېښته چی مات شی نو په لرگی پاته کیږی چی دهغه له وجی صفایی نه کیږی صفائی اوزینت اگر چه په ضرورت کښې داخل ندی مگر مخکښی دوه شیان دبرش زرماتیدل اومحنت اوخواری دوچنده کیدل بلاشکه په ضرورت کښې داخل دی، دځپلو گنډل فقهاء کرامو په ضرورت کښې داخل کړی دی، حالانکه دهغودگنډلولپاره په هغه وخت کښې هم نورې ذریعی موجودې وې مگر په هغې کښې مشقت او د خنزیر په ویښتو په گنډلوکښې سهولت وو، دې سهولت ته ضرورت ویل او د خنزیر دوېښتانو داستعمال یی اجازه ورکړې ده، نو ددې وجی نه د دروازو او کړکیو او د اوسپنې دجنگلو په رنگولو کښې دطهارت گنجائش شته.

البته ددیوال درنگ کولو هیڅ ضرورت نشته که تریوه حده ضرورت هم وی نو هغه په سپین والی سره هم پوره کیږی، لهذا دلته دامام محمدصاحب قول غوره کولوته ضرورت نشته داسې دیوال که ومینځل شی نوبیا له پاسه به پاك شی مگر دهغه دننه به بیاهم ناپاك وی دمینځلوفائده به داوی چی که دپاسه ورپاندی لوند لاس وغیره کیښنودل شی نونه مرداریږی.

دجوماتونو ددیوالونو په رنگولوکښې دخنزیر دوېښتانو له برش څخه احتراز لازم دې داسې دیوال که دپاسه وه وینځل هم شی مگر دهغه اندرونی نجاست دمسجد له احترام سره خلاف دې لهذا که جومات په داسې برش رنگول شوې وی نو هغه رنگ ترینه گرول پکاردی.

قال ابن الهمام رحمه الله تعالى: وقد قيل ايضاً ان الضرورة ليست ثابتة فى الخرزبة بل يمكن ان يقام بغيرة وقد كان ابن سيرين لايلبس خفاً خرز بشعر الخنزير فعلى هذا لايجوز بيعه ولا الانتفاع به وروى ابويوسف رحمه الله تعالى كراهة الانتفاع به لان ذلك العمل يتاتى بدونه كما ذكرنا الا ان يقال ذلك فرد تحمل مشقة فى خاصة نفسه فلايجوز ان يلزم العموم حرجا مثله (فتح القدير ص۲۰۲ ج۵) . قال ابن عابدين رحمه الله تعالى: وحاصله ان تأتى الخرز بغيره من شخص حمل نفسه مشقة فى ذلك لاتزول به ضرورة الاحتياج اليه من عامة الناس (رد المحتار ص۱۱۳ ج۴) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۸ جمادى الاخرة سنه ۹۶هـ

## په امتحان کښې نقل کول

**سوال:** نن سبا په امتحان گاه کښې شاگردان له یوبل څخه پوښتنې کوی اویوبل ته سوالونه

ورښيي يا نقل کوي اوپه کاغذونو کښې بې له خان سره ورې ترديې چې کتابونه هم له خان سره دامتحان خای ته وړي، حالانکه پدې تولو شيانو دحکومت له طرفه پابندي ده ، نو آيا دا شيان دشريعت له نګاه جائزدي اوکه نه؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په امتحان کښې له يوبل څخه پوښتنه کول ياليکلی کاغذونه له خان سره وړل ياکتاب وغيره وړل اودهغه کتل اودسوالونو ځوابونه ورکول دلاندې وجوهوپه بناء شرعاً ناجائزاوحرام دی:

**اول**: پدې کښې دقانون خلاف ورزی ده چې ناجائزکاردې **دويم**: ممتحن ته دوکه ورکول دی پداسې شان چې ممتحن دا فکروکړی چې دا ځواب زده کونکی له خپل يادداشت څخه ليکلې دی. **دريم**: داظاهرول دی چې دا ځواب ليکونکی دخپل قابليت له وجی ليکلې چې دا خبره يې دروغ ده **څلورم**: داسې امتحان کښې نالائق شخص خپل لياقت ظاهروی چې په مختلفو منصبونو کښې په کار مقررشي چې په ده کښې دهغه صلاحيت نه وی چې پدې سره دملك اوملت سخت نقصان دی والله سبحانه وتعالی اعلم ۵شعبان سنـــ۱۳۹۶هـــ

## په ګناه کښې دمور اوپلار اطاعت جائزندې

**سوال**: زما پلار ما د بعضو منکراتو په رد کولو نه منع کوي ليکن دځينې منکراتو په ردکولو ما منع کوی اوزما څخه ناراض کيږی، مثلا د انتخاباتو په زمانه کښې ما دعلماء حق له حمايت څخه منع کوی، آيا زه په دې دويم صورت کښې خاموش شم اوکه اظهار دحق وکړم؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دحق خبرې حمايت کول ضروری دی که چيرته له دې څخه والدين منع وکړی نو دهغوی اطاعت جائزندی، البته له هغوئ سره جګړه ندی کول په کار **وقال عليه الصلوة والسلام لاطاعة لمخلوق في معصية الخالق** والله سبحانه وتعالی اعلم ۷ / شعبان ، سنه : ۹۶ هـــ

## ډاکټری تعليم کول

**سوال**: د ډاکټری تعليم جائزدې اوکه ناجائز؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دمړو دلاشونو څيرول او دانسانی جسم بې عزتی ده نو ځکه ندی جائز اوکه دحيواناتو يا پلاستيکی جسمونو استعمال وشی نو ډاکټر ی ويل جائزدی، والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۰شعبان سنـــ۱۳۹۶هـــ

## پردی بې ږيرې (امرد) ماشومان په سفر له خان سره بيول

**سوال**: په دور حاضر کښې چې دلواطت مرض زيات شوی دې پردی امرد ماشومان له خان سره په سفر بيول خصوصا په امور غير ضروريه کښې خواه که دنيويه وی اويا دينيه جائزدی اوکه نه؟

بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د تهمت له ځایونو ځخه د تقوی په مقتضا پردی امرد هلکان له ځان سره په سفر بیولونه احتراز لازم دي، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۸رمضان سنہ ۱۳۹۶ھ

## دستنی دلگولو په ذریعه شیدی ویستل

**سوال**: دحیواناتو ساتونکو د میښنی نه دشیدو د را ایستلو یو نوې تدبیر ایجادکړې دې که کومه میښه شیدې نه ورکوی اگر که دوئ څلور ساعته ورته لاندی ناست وی لیکن هغه لغتی وهی اوس یوه آسانه طریقه دا ایجاد شوې ده چی له دواخانې څخه د دوا یوه وړه شیشه واخلی او له هغې څخه ستن ډکه کړی اومیښنی ته یی ورولگوی چی په هغی سره میښه خپلې ټولې شیدې دتیونو په ذریعه راپریږدی اوپه آسانی سره شیدې ترینه وه ویستل شی، نو آیا دا صورت جائزدې اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا طریقه بی له کومې شبهی جائزه ده، الله تعالی حیوانات دانسان دنفعې لپاره پیداکړی دی نو که هغوئ نه په انتفاع اخستلو کښې اگر که هغوئ ته څه تکلیف وی څه حرج نشته لدې وجی نه دغوښې دبهتری لپاره دحیوان خصی کول بالاتفاق جائزدی، حضور صلی الله علیه وسلم دخصی گډانو (مړانو) قربانی کړې ده دخصی کولوتکلیف دانجکشن له تکلیف څخه ډیر زیات دې. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۸شوال سنہ۱۳۹۶ھ

## دقبرونو د زیارت لپاره سفرکول

**سوال**: دبزرگانو دزیارت کولولپاره مستقل سفر کول مثلا له کراچۍ څخه داتاگنج بخش، تمهته اوسیهون شریف ته تلل د مراد دحصول لپاره آیا دا دقرآن او حدیث له نظره جائزدی اوکه نه؟ بینو ا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له غیر الله نه غوښتل په هر حال شرك دې خواه داولیاء الله مزار ته لاړشی او وې غواړی یا پخپل مقام کښې اوسیږی اوترینه غواړی یی، البته که مراد غوښتل مقصود نه وی بلکه صرف زیارت ته تلل وی نو په لاندې شرطونو تلل جائز دی:

**اول**: هلته هیڅ قسم بدعات اومنکرات نه وی. **دویم**: دلیدونکو او آوریدونکو په تلونکو باندې دشرك یامبتدع گمان نه وی. **دریم**: محقیقین او موحدین علماء دصاحب قبر په ولایت باندې قائل وی.

په دی دور دفساد کښې دا پورتنی شرطونه محال دی، لهذا احتراز کول لازم دی، والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۱ ذی القعده سنہ ۱۳۹۶ھ

## دقرعه اندازی حکم

**سوال**: قرعه اندازی جائزه ده اوکه ناجائزه ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په حقوقوکښې قرعه اندازی جائزه نده په تبرع محض کښې جائزه ده، مثلا تاسو چاته انعام ورکوئ او دقرعې په ذریعه چاته ترجیح ورکوئ یا په تقسیم کښې حصه مساوی وی محض د انتخاب په غرض قرعه وربانديې اچول جائزدی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۵ذی القعده سنه ۱۳۹۶هـ

## په رمضان کښې هوټل خلاص ساتل

**سوال**: که څوك مسلمان باوجود دمنع کولو نه درمضان په میاشت کښې هوټل خلاصوی نو شرعاً دهغه حکم څه دې ؟ او داسې شخص په کوم پروګرام کښې شریك کیدل په رمضان یا غیر رمضان کښې دهغه دعوت قبلول څنګه دی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که کوم سړې په رمضان کښې دافطار دتیاری لپاره دافطارنه مخکې یا دشپې هوټل خلاصوی نوکوم حرج نشته اوکه د ورځې لخوا هوټل خلاصوی او خلکوته ډوډئ ورکوی نو داسې شخص فاسق مجاهر دې او د سزا مستحق دې. په حکومت لازم دی چی داسې شخص ته په خلاص میدان کښې عبرتناکه سزا ورکړی اوعام مسلمانان له داسې سړی سره زجراً تعلق قطع کړی او دهغه په تقریباتو کښې شریك نشی، دبغض فی الله تقاضا همداده.

البته که هغه ددغه شنیع فعل څخه توبه اوباسی او آینده داحتیاط وعده وکړی نو تعلقات دې ورسره برحال کړې شی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۰ رمضان سنه ۱۳۹۶هـ

## د زنا د اثبات لپاره ډاکتری معاینه

**سوال**: که کومه ښځه جبرا په کوم سړی د زنا کولو الزام ولګوی نو محکمه دواړه د ډاکتری معاینې لپاره ډاکتر ته لیږی په دغه معاینه کښې ډاکتر دسړی اوښځې بیهوشې معاینه کوی خصوصاً شرمګاه په ښه شان سره کتل کیږی، آیا په شریعت کښې دامعاینه معتبره ده ؟ او ددې اجازه شته؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دزنا داثبات لپاره شرعاً دا طریقه معتبره نده لهذا په داسې طریقه دشرمګاه معاینه کول شرعاً حرام دی ډاکتر ته دشرمګاه دکتلو ګنجائش هغه وخت وی چی دمرګ یا دتکلیف مالایطاق دمبتلاء کیدو خطره وی.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: وقال فی الجوهرة اذا کان المرض فی سائر بدنها غیر الفرج یجوز النظر الیه عند الدواء لانه موضع ضرورة وان کان فی موضع الفرج فینبغی ان یعلم امرأة تداویها فان لم توجد

وعاقوا عليها ان تهلك او يصيبها وجع لا تحتمله يستروا منها كل شئ الا موضع العلة ثم يداويها الرجل ويغض بصره ما استطاع الا عن موضع الجرح اهـ فتامل. الظاهر ان ينبغي هنا للوجوب (رد المحتار ص۲۳۷ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۶ رجب سنه ۹۷ هـ

## ناجائزه وظیفه (ملازمت) پریښودل

**سوال**: زید په جهاز کښې چیف افسر دې دهغه له کارونوڅخه یو کار داهم دې چې دجهاز دعملې اومسافرولپاره شراب خریداری کړی او دضرورت په وخت کښې هغه ورته مهیاهم کړی، زید څوځله د انتظامی څخه دا غوښتنی چی ددې کار څخه یی خلاص کړی مگرانتظامیه اوکپتان د (عدم اداء کار) (چارج شیټ) دهمکی (زورنه) ورکوی، په کوښښ کولو سره په پاکستانی جهاز کښې وظیفه پیداکیږی مگر تنخوا کښې یی ډیر فرق دې، دلته پنځه نیم زره ده او هلته په پاکستانی جهاز کښې سپاړس سوه ده. آیا پداسې صورت کښې دزید لپاره دا وظیفه جائزه ده اوکه ترک کول یی په کاردی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د داسې وظیفی پریښودل فرض دی بالخصوص چی په پاکستانی جهاز کښې ملازمت هم پیداکیږی دحلالوپه لږ آمدن کښې دحراموتر ډیر آمدن نه برکت زیات وی. والله سبحانه وتعالى اعلم.

غره جمادی الاخره سنه ۱۳۹۸ هـ

## زده کونکو ته سزا ورکول

**سوال**: بالغ یا نابالغ شاگردانو ته په درس کښې دکوتاهی په وجه یا دبلې غلطی په وجه سزا ورکول جائزدی اوکه نه؟ همداراز آیا د سزا لپاره شرعا کوم خاص حد مقرر شته اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دضرورت په وخت کښې په قدردضرورت زده کونکوته سزا ورکول جائز دی دسزا کوم حد مقررنشته دطبائعواو قواوو په اختلاف حکم هم مختلف کیږی، البته اصولی طور سره دځو امورو پابندی ضروری ده:

**اول**: په مخ نه ویشتل. **دویم**: دومره نه وهل چی زخمی شی. **دریم**: دتحمل نه زیات نه وی. والله سبحانه وتعالى اعلم

۱۴ صفر سنه ۱۳۹۷ هـ

## دمیښې دبچی ذبح کول ظلم دې

**سوال**: زمونږ په ښارکښې رواج دې چې میښه نر بچې راوړی هغه فورا بغیر ددې نه چی مور اووینی ذبح کوی یی او که مؤنث وی نو هغه ژوندې پریږدی، آیا مذکر بچې فورا ذبح کول شرعاً

جائز دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا دهغه دمورسره ښکاره ظلم دې لهذا ذبح کول یې گناه ده او ذابح گناهگار دې. والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۷رجب سنه ۱۳۹۸ھ

## دمکان (کور) په بنیادونو کښې دوزې وینه اچول

**سوال**: نن سبا چې څوك مکان (کور) تعمیر کوی نو په بنیادونو کښې یې وزه ذبح کوی او دهغې وینه پکې اچوی اوغوښه یې په خپلو خپلوانو اوفقیرانو باندې تقسموی له شرعی لحاظه ددې کوم اصل شته اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په اسلام کښې ددې هیڅ گنجائش نشته. دا دهندوانو او بت پرستانو رواج دې، والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۰ربیع الاول سنه ۱۳۹۹ھ

## ملخان په گرمو اوبوکښې اچول

**سوال**: که ملخ په گرمو ابوکښې واچول شی لپاره دوژلو نو آیا دا فعل جائز دې اوکه نه؟ همداسی په مشکله سره مری، بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ژوندې حیوان په گرمو اوبو کښې اچول گناه ده بیاکه دا اوبه ډیرې گرمې وی او ملخ پکښې واچول شی اوتر ډیره پکښې پروت وی چې دهغه مرداری په غوښه کښې سرایت وکړی نو دا ملخ به حرام وگرځی چې دپاکولو یې هیڅ صورت نه وی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: وکذا ادجاجة ملقاة حالة غلی الماء للنتف قبل شقها فتح.

قال ابن عابدین رحمه الله تعالی: قال فی الفتح انها لا تطهر ابدا لکن علی قول ابی یوسف رحمه الله تعالی تطهر والعلة والله اعلم تشربها النجاسة بواسطة الغلیان وعلیه اشتهر ان اللحم السمیط بمصر نجس لکن العلة المذکورة لاتثبت مالم یمکث اللحم بعد الغلیان زمانا یقع فی مثله التشرب والدخول فی باطن اللحم الخ (رد المحتار ص۲۲۳ ج۱) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۲صفر سنه ۹۹ھ

## دلاسونو گوتی یوپه بل کښې اچول

**سوال**: دلاسونو گوتې یوپه بل کښې اچول جائزدی اوکه نه؟ یوصاحب ورته مکروه وائی آیا دا صحیح خبره ده؟ که واقعاً مکروه وی نو مکروه تحریمی دی اوکه مکروه تنزیهی؟ دجومات اوعام مجلس اودکوردننه اوپه یواځی والی کښې ددې ټولو حکم یودې اوکه بیل بیل؟ سره دحوالی یې ولیکئ اوزمونږ تشفی اوفرمائی؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دلمانځه په حالت کښې اوپه هغه حالاتو کښې چې دلمانځه په حکم

کښېږي وی مثلا دلمانځه طرفته تلل یا دلمانځه دانتظارپه حالت کښې کیناستل مکروه تحریمی دی اوپه عامو حالاتو کښې بلاحاجته مکروه تنزیهی دی، دګوتو دټکونو هم همدا حکم دی.

قال الحصكفي رحمه الله تعالى: وفرقعة الاصابع وتشبيكها ولو منتظر الصلاة اوماشيا اليها للنهي ولايكره خارجها لحاجة.

وقال ابن عابدين رحمه الله تعالى: المراد بخارجها ماليس من توابعها ،لان السعي اليها والجلوس في المسجد لاجلها في حكمها كما مر لحديث الصحيحين لايزال احدكم في صلوة مادامت الصلاة تحبسه واراد بالحاجة نحو راحة الاصابع فلولدون حاجة بل على سبيل العبث كره تنزيها والكراهة في الفرقعة خارجها منصوص عليها. واما التشبيك فقال في الحلية لم اقف لمشايخنا فيه على شئ والظاهر انه لولغير عبث بل لغرض صحيح ولو لاراحة الاصابع لايكره فقد صح عنه صلى الله عليه وسلم انه قال المؤمن للمؤمن كالبنيان يشد بعضه بعضا وشبك اصابعه فانه لافادة تمثيل المعنى وهو التعاضد والتناصر بهذه الصورة الحسية . ردالمحتار ص ۴۳۲ ج۱)

والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۶ ربيع الثاني.

## لاس په ډوډی (بغل) ایښودل

**سوال** : په بغل لاس کیښودل جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په لمانځه کښې مکروه تحریمی دی اوپه عامو حالاتوکښې مکروه تنزیهی دی.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: في مكروهات الصلوة: التخصر وضع اليد على الخاصرة للنهي ويكره خارجها تنزيها.

قال ابن عابدين رحمه الله تعالى: قال في البحر والذي يظهر ان الكراهة تحريمة في الصلاة للنهي المذكور ولان فيه ترك سنة الوضع كما في الهداية لكن العلة الثانية لاتقتضي كراهة التحريم نعم تقتضي كراهة وضع اليد على عضو اخر غير الخاصرة (ردالمحتار ص ۴۳۲ ج۱) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۶ ربيع الثاني سنه ۹۹هـ

## دحکومت لخوا دچا په ذاتی ملکیت کښې تصرف کول

**سوال** : آیا کوم مسلمان حکومت بلامعاوضه ورکولو دکوم مسلمان په شخصی ملکیت او جائیداد غیر منقوله کښې خصوصاً دزراعت ځمکه اخستل او مالك له هغې ځخه دتل لپاره محروم کول جواز لری اوکه نه؟ برابره خبره ده که دهغه جایداد اخستل دهر مطلب لپاره وی، زه په شرعی

عدالت کښې مقدمه چلول غواړم چې تیر شویو حکومتونو دخلکو قطعی ملکیت بلامعاوضه اخستې دې آیا دا په اسلامی شریعت کښې جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دچا لپاره هم دبل په ملکیت کښې هیڅ قسم تصرف کول دهغه له خوښې بغیر ندی جائز، ددې حرمت په قرآن او حدیث سره ثابت کیدونه علاوه له مسلماتو عقلیه وو څخه هم دی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۰ ربیع الثانی سنـ۱۳۹۹ هـ

## غیر الله ته شاهنشاه ویل جائزندی

**سوال**: حضور صلی الله علیه وسلم ته یاکوم بادشاه ته شهنشاه ویل جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: غیر الله ته شهنشاه ویل په حدیث کښې منع شوی دی، شهنشاه په اصل کښې دبادشاهانو بادشاه ته ویل کیږی او دا صفت صرف له الله جل جلاله سره خاص دې. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۵ ربیع الاول سنـ۱۳۹۹هـ

## دمرض د تداوی په غرض داغ لګول

**سوال**: دکوم مرض له وجی انسان یاحیوان داغل جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! جائز دی.

قال ابن عابدین رحمه الله تعالی: (تنبیه) لاباس بکی البهائم للعلامة وثقب اذن الطفل من البنات لانهم کانوا یفعلونه فی زمن رسول الله صلی الله علیه وسلم من غیر انکار ولاباس بکی الصبیان الداء اتفاقی. (ردالمحتار ص۲۴۹ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۵ جمادی الاولی سنـ۹۹هـ

## دجفراورمل علم حرام دې

**سوال**: دعلم جفر متعلق دشریعت څه حکم دې؟ ځینی خلك ددې دحکم په ذریعه دښادی وغیره استخاره هم کوی، ددې علم دنتیجې په صحح ګڼلو او یقین ورباندی کول په ایمان کوم اثر اچوی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د داسی کفریاتو زده کول اوښودل او د دې دعوه کونکی ته د یوې خبرې دپوښتنې لپاره ورتلل حرام دی او ددې نتیجه یقینی ګڼل کفر دې س.

هو عبارة عن العلم الاجمالی بلوح القضاء والقدر المحتوی علی کل ما کان وما یکون کلیا وجزئیا.

والجفر عبارة عن لوح القضاء الذی هو العقل الکل والجامعة لوح القدر الذی هو نفس الکل وقدادعی طائفة ان الامام علی بن ابی طالب رضی الله تعالی عنه وضع الحروف الثمانیة والعشرین علی طریقة البسط

الاعظم في جلد يستخرج منها بطرق مخصوصة وشرائط معينة الفاظ مخصوصة يستخرج منها ما في لوح القضاء والقدر (مفتاح السعادة ومصباح السيادة ص ۵۰۰ ج ۲)

وفي المنجد: علم الجفر ويسمى علم الحروف: علم يدعي اصحابه انهم يعرفون به الحوادث الى انقراض العالم (المنجد ص ۹۳) حكمه: حكم علم الرمل لانهما متحدان في الغرض فهو حرام مثله.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى في حكم الرمل: وقد علمت انه حرام قطعاً واصله لادريس عليه السلام اي فهو شريعة منسوخة وفي فتاوى ابن حجر ان تعلمه وتعليمه. حرام شديد التحريم لما فيه من ايهام العوام ان فاعله يشارك الله تعالى في غيبه (رد المحتار ص ۳۱ ج ۱) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۱۰ محرم سنہ ۱۴۰۰ھ

## دماخوستن له لمانځه څخه وروسته مجلس كول

**سوال**: دماخوستن له لمانځه وروسته دخبرو په باره کښې چې کوم حديث راغلې دې چې دهغه مضمون داسې دې درس اوتدريس ياميلمه يا اهليه نه علاوه باقي ټولې خبرې كول ممنوع دي كه له ممنوع څخه مراد لغو خبرې واخستل شي نو هغه خو هروخت حرامې دي اوكه مباح خبرې واخستل شي نو په دې کښې خو اكثر خلك مبتلاء دي ځكه چې دبعضې دنيوي كارونو مشورې پس له لمانځه څخه كيږي . نو دا منع كوم قسم ده ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دكراهيت علت دسهار دلمانځه دجمعې فوت كيدل يا په هغه کښې انشراح ياقيام الليل يا په هغې کښې انشراح دفوت كيدو خوف دې، ددغو كارونو دتفاوت درجات مطابق دعشاء نه پس په دنياوي امورو کښې دمشغول كيدو كراهيت هم متفاوت دې.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: قال في البرهان ويكره النوم قبلها والحديث بعدها لنهي النبي صلى الله عليه وسلم عنهما الاحديثا في خير لقوله صلى الله عليه وسلم لاسمر بعد الصلوة يعني العشاء الاخيرة الا لاحد رجلين مصل اومسافر وفي رواية اوعرس اهـ وقال الطحاوي انما كره النوم قبلها لمن خشي عليه فوت وقتها اوفوت الجماعة فيها واما من وكل نفسه الى من يوقظه فيباح له النوم اهـ وقال الزيلعي وانما كره الحديث بعدها لانه ربما يؤدي الى اللغو او الى تفويت الصبح او قيام الليل لمن له عادة به واذا كان لحاجة مهمة فلا بأس وكذا قراءة القران والذكر وحكايات الصالحين والفقه والحديث مع الضيف اهـ والمعنى فيه ان يكون اختتام الصحيفة بالعبادة كما جعل ابتداءها بها ليمحى مابينهما من الزلات ولذا كره الكلام قبل صلوة الفجر وتمامه في الامداد ويؤخذ من كلام الزيلعي انه لو كان لحاجة لا يكره وان خشي فوت الصبح لانه ليس في النوم تفريط وانما

التفریط علی من اخرج الصلوٰۃ عن وقتها کما فی حدیث مسلم نعم لو غلب علی ظنه تفویت الصبح لا یحل لانه یکون تفریطا تاما (رد المحتار ص۲۳۶ ج۱) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۲ ربیع الاول سنه ۱۴۰۰هـ

## اخبار کتل

**سوال**: بعضې خلك په جوماتونو کښې داخبار کتلو عادت وی کله چی هغوئ ددې څخه منع کولې شی نو هغوئ په ځواب کښې دبعضې علماء کرامو عمل پیش کوی که هغوئ ته وویل شی چی علماء کرام خو د شریعت له څلورو دلائلو څخه یوهم ندې، که چیرته هغوی له حجج اربعه څخه کوم حجت پیش کړی نو مونږ یی منلو ته تیاریو، نورهم داسې قسم دلائل وړاندی کوی، که تاسو دشریعت له نګاه نه ددې څه وضاحت بیان کړی ډیره فائده به وشی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: بلاضرورته اخبار کتل هسی هم ګناه ده په جومات کښې ګناه کول نورهم باعث دعذاب ګرځی. داخبار کتلو یو څو مفاسد:

**اول**: دوخت ضائع کول، فضول اولایعنی خبرې لیدل چی په هغو کښې نه د آخرت فائده وی اونه د دنیا، دحضور صلی الله علیه وسلم ارشاد دې: کوم سړې چی دلایعنی کارونونه ځان نه ساتی دهغه اسلام خوښ کړې شوې ندې ..... (من حسن اسلام المرء ترکه مالایعنیه) همدارنګه حضور صلی الله علیه وسلم له داسې علم نه پناه غوښتې ده چی په هغه کښې ددین یا دنیا څه فائده نه وی. (اللهم انی اعوذبك من علم لاینفع)

**دویم**: په اخبارونو کښې ډیرې خبرې داسلام خلاف دی په اخبار کتلو کښې دهغه خلاف شرع خبرو په کتلو کښې داشاعت تعاون دی.

**دریم**: داخبار اکثر خبرې غیرمصدقه وی اوځینی یقیناً غلطې وی او دحضورصلی الله علیه وسلم ارشاد دې چی دغیر مصدقه خبرونقل کونکې هم ددرواغجنو په فهرست کښې داخل دې (کفی بالمرء کذبا ان یحدث بکل ماسمع)

**څلورم**: اخبار دتصویرنه خالی نه وی اوتصویر کتل ګناه ده داخبار بینی دمفاسدو تفصیل په رساله دحکیم الامت قدس سره «اخباربینی» کښې شته دې، چی په امداد الفتاوی کښې شائع شوې دې والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۰ جمادی الاخرة سنه ۱۴۰۰هـ

## دسکول (مکتب) تعلیم حاصلول

**سوال**: دحضرت عالی په وصیت نامه صفحه نمبر (۴) وصیت نمبر اول کښې راغلی دی چی «اخپل اولاد دسکول او کالج له تعلیم څخه داسې وساتئ لکه څنګه چې له زمری یا لیوه څخه چی ساتل کیږی ...... الخ».

اوحضرت تهانوی قدس سره په بهشتی زیور څلورمه حصه ص۲۲۴ کښې په آخری کرښه کښې لیکی چې (لڑکیوں کو اتنا لکھنا سکھا دو کہ ضروری خط اور گھر کا حساب وکتاب لکھ سکیں).

دومره خو په پوهه کښې راځی چې په دغو دواړو قولونو کښې کوم تعارض نشته ځکه کومه منع چې دحضرت مقصود ده هغه ددغه ماحول اوکالج وغیره طرز تعلیم نه منع کول دی، او حضرت تهانوی صاحب چې کوم ترغیب ورکړې دې یا خوهغه په هغه صورت کښې دې چې له محرم څخه وی یا که له محرم څخه نه وی نو دشریعت داصولو مطابق د معقولې پردې انتظام به ضرور وی لیکن باعث دسوال داخبره ده چې ماشومان او ماشومانې په یو حال کښې هم سکول ته لاړنشی اوکه نه دومره ګنجائش شته چې دضرورت مطابق لیکل اولوستل زده کړی، که دومره هم ګنجائش نه وی نو آیا هغوئ ته بقدر ضرورت زده کړه ضروری ده ؟ که ضروری وی نودسکول اوکالج نه بغیر به یې څنګه اوایی؟ او آیا بغیر دسکول دکتابونو د ویلو نه به هغه تعلیم الاسلام اوبهشتی زیور اونور دینی رسائل څنګه ولولی ؟ چې په دې کښې دزده کړی سره ښودنه کول هم زده کړی او ذهن هم دینی جوړشی په دې باره کښې مو دخپلې مفیدې رایی څخه خبرکړئ ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : مقصود له بدچاپیریال اوماحول څخه ساتل دی هغه په هره طریقه سره چې وی، مثلا دکوم سکول ماحول چې ښه وی یا په کور کښې ددرس ورکولو لپاره څوك مقررشی ، خپله په کور کښې درس ورکړل شی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۴جمادی الاخرة سنـ۱۴۰۰ھـ

## دشرابو بوتل استعمالول

**سوال** : دشرابو هغه بوتل چې ښه صفا کړې شی هغه دشربتووغیره لپاره استعمالولې شی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هو! جائز دی مګر دګناه دیادولونه ځان ساتل بهتر دی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۵رجب سنـ۱۴۰۰ھـ

## له دیوث سره تعلق ساتل صحیح ندی

**سوال** : زمونږ په محله کښې یوسړې دخپل رشته دار کره راځی او دهغه له لورسره یې غلط مراسم قائم کړی دی، ددې نجلۍ مور اوپلار او دمحلې نور خلك هم ورباندی علم لری، سره ددې بیا هم ددې مخه نه نیسی نو آیا داسې شخص سره تعلق ساتل جائزدی اوکه نه ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : داسړې دیوث دې خوپورې چې له زانی څخه دحفاظت تدبیرنه کوی ترهغه وخته ورسره تعلق ساتل جائزندی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۱رجب سنـ۱۴۰۰ھـ

## دحیوان سترگه انسان ته لگول جائزدی

**سوال**: لکه څنگه چې دمړه انسان سترگه نوروانسانانو ته لگولې شي دغه رنگه دحیوان سترگه هم انسان ته لگیدلې شی آیا ددې لگول شرعًا جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دحیوان سترگه لگول جائزدی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۴ / رجب، سنه: ۱۴۰۰ هـ.

## اډنتی کارت جوړول جائزندی

**سوال**: حکومت دعربی مدرسو دطالبانو لپاره په بسونو او هوائی جهاز کښې دکرایی درعایت تفصیل اعلان کړې دې، لیکن ددې دحصول لپاره اډنتی کارت جوړول اوپه هغه تصویر لگول ضروری دی اوبل طرفته حقیقت دادې چې دمدارس عربیه طالبان عموماً غریبان وی ډیرخله دکرایی دنه لرلو له وجی ضروری سفر هم ملتوی (معطل) کیږی او دکارت د نه لرلو په وجه دیو مسلم (منلی شوی) حق نه هم بی برخی کیږی.

اوس پوښتنه داده چې د داسې طالبانو لپاره دکرایی دتخفیف په غرض تصویر ایستل اوپه شناختی کارت نښلول اوله ځان سره محفوظ ساتل جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

وجهٔ د اشکال داده چې په دې کارت کښې یوطرفته جلب منفعت دې ځکه که چیرته څوك کارت جوړنکړی زیات نه زیات دابه وشی چې له هغه سره به په کرایه کښې رعایت ونشی اوبل طرف دادې چې طالبانو ته په نیمه کرایه دسفر کولوحق حاصل دې اودهغوی داحق دتصویرنه بغیرنه حاصلیږی نودیته به دفع مضرت هم وویل شی، لهذا ددې دواړه طرفونونه کوم طرف غالب وبلل شی؟

دلته داخبره هم قابل د ذکرده چې دامام مالك په نزد دتصویر دعدم جواز لپاره سایه دارکیدل (سوری لرل) ضروری دی.

کما فی حاشیة الخطاب المواق علی مختصر خلیل ص۳ ج۴ والشرح الصغیر للصاوی علی شرح الدردیر ص۵۰۱ ج۲ کتاب النکاح باب الولیمة والمغنی لابن قدامة ص۶ ج۸ والانصاف للمرداوی ص۳۳۶ ج۸ وغیر ذلك من کتب المالکیة.

نو داسی قسم شناختی کارت ته ضرورت په معنی داضطرار کښې خویقینا داخل ندې لیکن په حاجت کښې داخل بلل کیږی داسې تصویر اخستل جائزدی اوکه نه؟ پداسی حال کښې چې دا تصویر سایه دارهم نه وی آیا دا په دی مسئله مجتهد فیها کښې داخل دې اوکه نه؟ دارالعلوم کراچی نمبر ۱۴ - ۲ـ۵ـ۱۴۰۴ هـ.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اډنتی کارډ دلاندی مفاسدوخطره کثیره له وجی ناجائزاوحرام دې.

**اول**: دا ټول رعایت دتصویر ترلعنت پورې موقوف دې والموقوف علی الحرام حرام دتصویر

په باره کښې وعیدونه مشهور اومعروف دی، دتصویر په حرمت باندې لس روایات صرف په صحیح بخاری کښې موجود دی. (لکن حبك الشیئ یعمی ویصم)

**دویم** : ددې رعایت خبیثه له وجې په طالبانو کښې آوارګی اوبدمحنتی پیداکیږی ضرورت اوبلا ضرورته چې کله هم وغواړی او چیرته وغواړی ځی به، حالانکه دزمانې دتنزل علمی تقاضا داده چې دعامو خلکو په نسبت دشاګردانو په کرایو کښې معتدبه اضافه شوی وای چې دغیر ضروری سفرونو نه یې نجات حاصل کړی وای اوپه سکون اوا طمنان سره یې خپل محنت کولې.

**دریم** : حکومت په شخصی بسونو باندې دا رعایت جبرا اوظلماً ایښې دې، پداسی صورت کښې دا قبلول له حکومت سره په ظلم کښې اعانت کول دی اوپه حرام کار کښې حمایت دې.
والظالم وعونه سواء فی الوزر.

اودحدیث په موجب : ((لایحل مال امرء مسلم الاطیب نفس منه)) سراسر ناجائزاوحرام دې ظلم اوغصب ته دحق اخستلو نوم ورکول په اسلامی دنیا کښې ډیره لویه اوانتهائی خطرناکه فتنه ده او داشتراکیت ویل شوې درس دې.

**څلورم** : له معتبرو ذرائعو څخه معلومه شوې ده چې دشخصی بسونو مالکان په دې راضی ندی، لدې وجې نه د طالبانو او کلنرانو ترمنځ کشیدګی کیږی اهل مشاهده ښه پوهـ دی چې په دې وخت کښې ددینی طالبانو څومره بی عزتی کیږی، دعلم ذلت ددین حقارت دې په دغه وخت کښې عوام دعلماء دین په حق کښې ګستاخی کوی حتی کفریه کلمات وایی دا ددغه رعایت نتیجه ده.

**پنځم** : د ډیرو خلکو مشاهده ده چې طالبانو په وخت دمزاحمت کښې په بس او په اهل بس مشتعل شوی او حمله یې ورباندی کړی ده په لسګونه ځله دبسونو دسورلو واقعات په اخبارونو کښې شائع شوی دی تر قتل اوقتال پورې نوبت رسیدلی دی چونکه دمدارسو دچلونکو په طالبانو کنترول نه وی لدې وجې هغوی دا رعایت وینی دډیرونورو ناجائزکارونو ارتکاب کوی.

**شپږم** یوه لویه مفسده داهم ده چې په دې کښې حکومت او ارباب اقتدارته اظهار احتیاج دې چې هغه داهل علمولپاره تباه کن اورسواکن دې، افسوس اوډیر افسوس چې دا مطالبه داهل مدارسو له طرفه کیږی اوڅوځله په اخبارونو کښې شائع شوې ده.

په اوس وخت کښې لږ رعایت هم دحکومت له طرفه حاصلول ددین لپاره سخت مضر بلکه مهلك دی کومو مدارسو چې له حکومت څخه امداد اخستې دې په آینده کښې دهغوئ خولې له حق ویلو څخه بندې شوی دی، اوحکومت له هغوئ څخه ددغه احسان په بدله کښې ډیر خلاف شریعت کارونه اخلی.

نوکوم کار چې په دومره ناجائزو امورو مشتمل وی هغه سراسر ضرر وی او دهغه په ترك کولو

کښې دفع دمضرت وی. لان ادنی المعصیة مضرة کبیرة.
لهذا دسوال جلب منفعت اودفع مضرت قیاس باطل محض دې ددې فلسفې لاندې غلا، رشوت خوری، چور چپاول ټول کبائر حلال ګرځی. واللازم باطل فالملزوم مثله.
دغیر په مذهب فتوی ورکول دضرورت شدیده په وخت کښې وی اودلته دمذکوره قباحتونو له وجې ددې په حرمت فتوی ورکول ضرورت شدیده دې علاوه له دې څخه په سوال کښې درج شوې مذهب دبعضې مالکیانو دې چې محققینو ورته مذهب باطل فرمایلی دې او د امام مالك څخه یې مطلقاً عدم جواز نقل کړې دې کما فی شرح مسلم للنووی، دجواز قول دروایت اودرایت دواړو نه سراسر خلاف دې.
دطالبانو له عدم رعایت نه خوف اوپریشانی دبې دینی او حب دنیا له وجې ده افسوس چې اهل مدارس دطالبانو ددغه مرض علاج په معاصیو سره کوی.

**ع : چون کفر از کعبه برخیزد کی ماند مسلمانی**

اوافسوس چې ددې دور دعلماؤ نظر دالله تعالی اوحضور صلی الله علیه وسلم دصریحو او واضحو ارشاداتو څخه پورته شوې ددنیا په مردارو پسی دې که دداسې ضرورتونو په وجه حرام جائز ګرځیدلې نو بیا د اډنتې کارت څه خصوصیت دې؟ طالبانو ته دغلاکولو او چور کولو او جیب وهلو جواز پکار دې، ځکه چې ضرورت دې بیا طالبان څه چې هر ضرورتمند ته دا جائز کیدل پکار دی.
په بیمه اوبانك کښې خود دې نه زیات مصالح اوضروریات دی اوپه شرابو کښې خومنافع له قرآن څخه ثابت دی، دهغو په باره کښې څه فکر کول په کاردی.
اهل مدارس دطالبانو دعلمی، عملی اواخلاقی کمزوریو لرې کولو پرځای ددوئ دنیا او آخرت دواړه تباه کوی، طالبانو ته دسفر اجازت اوهغه هم په صریح حرام کار دتصوّر څخه لوړه خبره ده.

ع : یه اعمال بد کی ہے پاداش ورنہ
کھیں شیر بھی جوتے جاتے ھیں ہل میں

قال الله تعالی: ومن یتق الله یجعل له مخرجا ویرزقه من حیث لا یحتسب ومن یتوکل علی الله فهو حسبه ان الله بالغ امره قد جعل الله لکل شیء قدرا.
ومن یتق الله یجعل له من امره یسرا.
وقال النبی صلی الله علیه وسلم: من کان لله کان الله له.
من کانت الاخرة همه جعل الله غناه فی قلبه وجمع له شمله واتته الدنیا وهی راغمة ومن کانت الدنیا همه جعل

ان مفقرعين عيليه وفرق عليه شمله ولم تاته من الدنيا الاماقدرله رواه الترمذي.

لايحملنكم استبطاء الرزق ان تطلبوه بمعاصي الله فانه لايدرك ماعندالله الابطاعته رواه في شرح السنة.

وان الرزق ليطلب العبد كما يطلبه اجله رواه ابونعيم.

اووم: کله چی ثابته شوه چی دداسې بدترين رعايت لپاره تصوير اخستل ناجائز اوحرام شو نو بلاضرورته دتصوير ساتلو گناه به څومره لويه وی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۷جمادی الاولی سنه ۱۴۰۴هـ

## دشطرنج، لډو او باره گوټی لوبې کول جائزندی

**سوال**: دشطرنج دحرمت علت څه دې؟ څينی وايی په دی کښې تصويرونه دی او دجواری يو قسم دې له دې وجی حرام دې، کريم بورډ اوباره گوټی وغيره کښې تصويرونه نشته اوپه هغو کښې د ذهنی ورزش فائده هم ده؟ نو داسې لوبې چی دجواری په طور استعمال نه شی نو جواز يی په کار دې، لږپه تفصيل سره يی راته وليکئ چی ددې لوبوشرعاً څه حکم دې؟ که ناجائزوی نودعدم جواز علت يی څه دې؟ همدارنگه دلوبو په باره کښې يوه کليه وليکئ چی له هغی څخه دهرې لوبې حکم معلوم کړې شی. بينوا بالتفصيل آجرکم الجليل.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دشطرنج دحرمت علت صرف تصويرونه اوجواری نده که دتصويرونو اوجواری وجود له شطرنج سره لازم وای نو امام شافعی به دهغه دمکروه تنزيهيه قول نه کاوه. قاعده داده چی په کومه لوبه کښې دذهن ورزش وی هغه ناجائزه ده اوکومه چی دذهنی ورزش څخه پاك وی هغه جائزه ده خواه که په هغې کښې جسمانی ورزش وی يا محض دزړه او دماغو تفريح پکښې وی لکه لډو، چکئ، دماشومانو دلوبو دسامان او دسيراو تفريح وغيره دفرق لپاره درې وجوهات دی:

**اول**: دزړه او دماغ لپاره مقاصد اصليه ډير دی بلکه مقاصد د آخرت خو غيرمتناهی دی، لهذا هغه دکوم مقصد دتحصيل لپاره دذهنی ورزش وسيله جوړلوته ضرورت نشته بلکه فرصت نشته ورته.

آن خيالاتی که دام اوليا ست
عکس مهرويان بستان خدا ست

دجسمانی صحت لپاره جسمانی ورزش ته ضرورت شته لدې وجی نه جائزبلکه بقدر ضرورت واجب اوموجب داجر دې دارنگه دزړه اودماغو دتفريح سامان هم دصحت جسمانی لپاره دمفيد کيدوله وجی جائزاوباعث د اجردې.

پدې شرط چی دذهنی ورزش نه پاك وی حقيقت خو دادې چی دزړه اودماغو تفريح او ورزش اجتماع محاله ده، دماغی تفريح دصحت جسمانيه لپاره نافع اودماغی ورزش مضر دې.

که چاته په باره ګوئی غوندې ذهنی ورزش کښې دماغی تفریح محسوس کیږی دهغه مثال دخارښت دمریض دې چی هغه ته په ګرولو کښې وقتی طور لذت محسوسیږی لیکن وروسته په سخت تکلیف او آذیت کښې وی.

دماغ بادشاه دې اوټول جسم دهغه فوج دې فوج ته جنګی مشقونه کول لازم دی ځکه چی دا دمقصد د حاصلولو ذریعه ده مګر د بادشاه لپاره لکه څنګه چی جسمانی پریډ مضر دې همدارنګه فکری ورزش هم سخت مضردې دحکومت بقاء په دې پوری موقوف ده چی باشاه خپل دماغ په فکری پریډ کښې د لګولو په ځائ براه راست د مقاصدو تحصیل ته متوجه کړی.

**دویم**: ذهنی ورزش د زړه او دماغو په تحصیل دمقاصد اصلیه و کښې دمخل کیدونه علاوه دجسمانی صحت لپاره هم سخت مضردی، ددې برعکس جسمانی ورزش اوتفریح دصحت جسمانیه لپاره دمفید کیدونه علاوه دزړه او دماغو لپاره هم په تحصیل دمقاصد اصلیه و کښې معین اومددګار دی.

په دې اوله وجه اودومه وجه کښې فرق دادې چی په اوله کښې مقصود دادې چی ذهنی ورزش ته ضرورت نشته نو په لهو اوعبث کښې د داخلیدو په وجه ناجائزشو او دویمه وجه کښې دا بیانول مقصود دی چی دا دصحت جسمانی لپاره او د زړه او دماغو دتحصیل دمقاصدو لپاره سخت مضردی.

**دریم**: په ذهنی ورزش کښې دومره انهماك کیږی چی دینی اودنیوی مشاغلوته نقصان رسوی په جسمانی ورزش کښې دومره انهماك نه وی، ددې فرق دوه وجی دی: **اول**: په جسمانی ورزش کښې څه وخت پس دستړیا احساس ددې نه منع کول کوی ګویا دا دزنګ وهونکی ساعت اومنبه کاروركوی په ذهنی ورزش کښې داسی کوم منبه نه وی.

**دویم**: په جسمانی ورزش کښې دماغ یوڅه آزاد وی په لوبو کښې خومشغول وی مګردومره نه چی دبل طرف توجه ته یی بیخی هوش هم نه وی او په ذهنی ورزش کښې په مکمل ډول دې طرفته مشغول اومتوجه وی.

خلك چی ذهنی ورزش ورته وائی هغه په اصل کښې بی مقصده تفکر وی چی دفکر دنعمت دبی ځایه مصرف کولو له وجی تبذیردې

دحکم دتحقیق په غرض ددې قسم مروجه لوبو دنقشې او لوبوپوهیدونکی دار الافتاء ته را وغوښتل شو، بنده څو نورعلماء یوځای ورسره کینول دهغوئ دکار دطریقی معاینه یی وکړه او فیصله یی وکړه چی په دې کښې کوم تفکر بی مقصده دی اوپه کوم کښې محض دماغی تفریح ده چی په لاندی ډول دی:

**تفکر بې مقصد**: **اول**: شطرنج **دویم**: تاش **دریم**: ډرافټ **څلورم**: لډو **پنځم**: سوان جوړ

شپږم : اپاره گوټی اوباره گوټی او نو گوټی. اووم : اډه کهډه چوسر، چوپړ، چنگل چرا ، چنگالوه ، نردبازی ، پچیس.

**دماغی تفریح : اول** : کیرم بورډ . **دويم** : دلوډو حاشیه . **دريم** : دلوډوپشت . **څلورم** : دوگوټی

«څکه چی پدې کښې عدم تفکر ضروری دې»

پورته ذکرشوی ددماغی تفریح لوبې دذکر شوی تفصیل له مخې اگر که جائزمعلومیږی لیکن هغه هم دلاندې فساداتوله وجی ناجائزې دی :

**اول** : پدې کښې دذهنی ورزش په لوبو کښې دواقع کیدو خطره ده .

**دويم** : دناجائزولوبو سره مشابهت دې .

**دريم** : دبی دینه خلکو شعاردې .

**څلورم** : لیدونکوته داشتباه موقع اوباعث دسوء ظن .

**پنځم** : د انهماك له وجی ددین اودنیا له اهموکارونو څخه غفلت . والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۴ / رجب ، سنه : ۱۴۱۰

## دینی تنظیمونو ته دانگریزی نومونه کیښودل

**سوال** : نن سبا دځینی دینی تنظیمونو نو مونه مشائخ عظامو طرفته منسوب کیږی او د انگریزی الفاظو دشاملولو رواج پکښې را روان دې، آیا ددوئ دغه فعل شرعا جائز دې ؟ مثلا شیخ الهند اکیډمی، شاه ولی الله اکیډمی ، غیره؟ بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : اگرچه داسې امور بالکل معمولی گڼلې شی او اکثر علماء هم پدې کښې کوم حرج نه محسوسوی او ددې رواج دصحت لپاره مختلف تاویلات پیش کوی، لیکن حقیقت دادې چی که ددې رواج په محرکاتو او نتائجو سرسری نظرهم واچول شی نو داخبره به د رڼا ورځی پشان ښکاره شی چی دا وخت دمسلمانانو دتباهی اوبربادی اصل سبب د انگریزانو برتری اوخپل دکمترئ احساس دې، همداوجه ده چی نن بی ضمیره مسلمانان خوراك، پوښاك ناسته ولاړه، خبری غرض دا چی په هرشی کښې دانگریزانو نه نقل کوی او په هغې فخر هم کوی تر علماؤ پوری داسلامی تاریخ په ځای انگریزی تاریخ استعمالوی اوپه دې کښې مطلقا کوم حرج هم نه محسوسوی، بلکه پدې کښې خپل اعزاز اووقار بولی، دکوم صورت په باره کښې چی استفتاء شوې ده دا هم ددې مرعوب ذهنیت کرشمه ده. کومواکابروچی دانگریزیه مخالفت کښې دخپل سرقربانی ورکوله هغوی ددې خطی نه په تیښته وؤ، نن دهغوی له مبارکو نومونو سره انگریزی الفاظ یو ځای کیږی او دهغوئ توهین وربانده کیږی

خومره دافسوس خبره ده چی خان ته علماء ویونکی او پوه خلك دعربی په شان مبارکه او

مسلمانانو ته اهمه اواعظمه ژبه باندې دانګریزانو په شان ددشمنان اسلام ژبی لره ترجیح ورکوی چی دعلم او دعلماؤ د اقدارو او دینی غیرت سخت خلاف کار دې په دې نیت انګریزی زده کول چی په دنیوی ضروری معاملاتو کښې له هغوی سره معامله وکړل شی بلاشبه جائزدی اوپه بعضی حالاتو کښې واجب دی لیکن دمجلسونو اوتنظیمونو اوکتب خانو په نومونوکښې استعمالولوته بی هیڅ ضرورت نشته اودا بلاشکه دانګریزی زهرو اثردې، له تجربوثابته ده چی له داسې کارونو څخه یا له انګریزانو سره مشابهت قصد وی او یا د هغوی له نقل کونکو سره چی دنن په شان فاسقه معاشره کښې داسی نومونه باعث د اعزاز بلل کیږی، حضرت عمر رضی الله تعالی عنه چی په کومو شرائطو یهودو اونصاری ؤوته معافی کړی وه یوداشرط هم ؤو چې (ان لایتکلموابکلامنا) نن دهغې برعکس مسلمانان دکافرانو په شان خبرې کوی اوتعجب بالای تعجب داچی په دې فخر هم کوی

ع : ببین این تفاوت از کجا تا بکجا است

**الغرض** : دشیخ الهند په شان دیوغوره اوانګریز دښمن شخصیت له نوم سره انګریزی الفاظ لګول دپورتنی تفصیل له نظره نهایت قبیح اوشنیع عمل دې اوددینی غیرت سخت خلاف دې دعلم اوعلماؤ د اقدارو سره منافی دې او اکابروته باعث دآذیت دې او د فاسقی معاشری زهرجن اثر دې اوبلاضرورت دینیه اودنیویه انګریزی ته په عربی ترجیح ورکول دی، دوخت په علماؤ لازم دی چی د داسې منکراتو مخه ونیسی که نه نو ددې تساهل نتیجه واضحه ده چی ډیر زربه دیندارہ معاشره هم مکمل طورسره انګریزی معاشره وګرځی، اوله مسلمانانو سره به داسلام یوشې هم باتې نشی او بیابه ددې داصلاح هم کوم صورت ممکن نه وی.

په آخر کښې دحضرت دحکیم الامت قدس سره داحکام القرآن نه دشمسی تاریخ د استعمالولو په باره کښې دا د زړه درد رانقل کول مناسب معلومیږی:

ویعد منه کل البعدان یمیل الی هذا الضد بحیث لایبقی له میل الی المطلوب الشرعی بالمرة کما هو مشاهد من غوائل اکثر المسلمین فی هذا الزمان بل ومن عادة کثیر من العلماء والی الله المشتکیٰ من انقلاب القلوب ومیلها الی العیوب المؤدیة الی الذنوب وکل ذلک مع دعواهم من ذلک ورزقنا من حب السنة النبویة والغوائد الاسلامیة انه سمیع مجیب (احکام القران ص۱۹۸ ج۱) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۱ رمضان سنه ۱۴۱۱ هـ

## دانګریزی تاریخ استعمالول

**سوال** : دمهتمم صاحب خیال دې چی په امورو دمد[illegible]ې کښې دې انګریزی تاریخ استعمال شی تعطیلات هم دانګریزی میاشتو له حسابه په جون اوجولائی کښې وشی شرعاً ددې څه حکم دې؟

همدارنګه په مکاتباتو (لیکونو) او مخاطباتو کښې اوعامو خبرو کښې دې انګریزی تاریخ استعمال شی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په مکاتباتو او مخاطباتو او عامو چاروانورو امورو کښې دانګریزی تاریخ استعمال بغیر دسخت ضرورت نه قبیح اوشنیع دې . پدې کښې دعیسایانو دباطلې نظریې تائید او شائبه اودهغوئ دخوشحاله کولو مفسده موندل کیږی.

دانګریزی تاریخ ابتداء دحضرت مسیح علیه السلام درفع السماء نه شوې ده لیکن دعیسایانو نظر دادې چې یهودو حضرت عیسی علیه السلام قتل کړې دې له هغه ځایه ددې تاریخ ابتداء شوې ده.

قال حکیم الامة رحمة الله تعالی : ومن ههنا علم ان استعمال الحساب الشمسی فی المکاتبات والمخاطبات والمعاملات وان کان جائزا فلاریب انه خلاف الاولی لکونه خلاف سنة رسول الله صلی الله علیه وسلم وسنة اصحابه والسلف الصالحین وایضا فلما کان مدار الاحکام الشرعیة والعبادات الدینیة علی الحساب القمری کان حفظه وضبطه فرضا علی الکفایة واحسن طرقه وایسرها ان یستعمل فی المکاتبات والمخاطبات والمعاملات الیومیة ولایخفی ان الاتیان بفرض الکفایة عبادة وما کان طریقا الی حفظه فهو عبادة ایضا فاستعمال الحساب القمری مطلوب شرعا وبعید من المسلم ان یترك المطلوب الشرعی ویستعمل الحساب الشمسی الذی هو ضده فی الجملة ویبعد منه کل البعد ان یمیل الی هذا الضد بحیث لایبقی له میل الی المطلوب الشرعی بالمرة کما هو مشاهد من عوائد اکثر المسلمین فی هذا الزمان بل ومن عادة کثیر من العلماء ایضا فالی الله المشتکی من انقلاب القلوب ومیلها الی العیوب المؤدیة الی الذنوب وکل ذلك مع دعواهم بغض النصاری وقد اشرب قلوبهم حب النصرانیة اعاذنا الله من ذلك ورزقنا حب السنة النبویة والعوائد الاسلامیة انه سمیع مجیب (احکام القران ص۱۹۷ ج۱) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۰ صفر سنه ۱۴۱۵ هـ

## په دې زمانه کښې مباهله نده صحیح

**سوال** : آیا دمباهلې حکم ترنبی کریم صلی الله علیه وسلم پورې خاص وو اوکه اوس هم مشروع دې ؟ که جائزوی نوصرف کفارو سره یا دمسلمانانو په خپل منځی اختلافاتو کښې هم جائزه ده ؟

په بیان القرآن کښې یې جواز لیکلې دې ورسره یې داهم لیکلی دی چې دحق اوباطل دتعین لپاره دلائل شرعیه کافی دی، ترمباهلې پورې موقوف ندی.

پدی اشکال داد چې بیاد مباهلې څه فائده شوه ؟ دفیصلې حکم ولیکئ او زمونږ رهنمائی وکړئ ؟ بینوا توجروا.

الکلب ع ش (قوله ومثل ذلک بالاولی الخ) لعل وجهها ان العظم یدوم ومع ذلک عفی عنه والدهن ونحوه مما
لا یدوم فهو اولی بالعفو ع ش (قول المتن لفقد الطاهر) ای بمحل یصل الیه قبل تلف العضو او زیادة ضررہ اخذا
مما تقدم فیمن عجز عن تکبیرة الاحرام او نحوها حیث قالوا یجب علیه السفر للتعلم وان طال وفرقوا بینه
وبین ما یطلب منه الماء فی التیمم بمشقة تکرار الطالب للماء بخلافه هنا وعبارة سم علی حج لم یبین ضابط
الفقد ولا یبعد ضبطه بعدم القدرة علیه بلا مشقة لا تحتمل عادة وینبغی وجوب الطلب عند احتمال وجوده
لکن ای حد یجب الطلب منه انتهی اقول ولا نظر لهذا التوقف ع ش وهو الظاهر وما نقله عن سم هو الموافق لما فی
ایدینا من نسخه وفی البصری بعد نقله عبارة سم من نسخة سقیمة ما نصه وکان فی اخر عبارة سم سقطا واصلها ان
وجد بمحل یجب الطلب للماء منه کانه یشیر بذلک الی مجیء التفصیل المار فی التیمم ولیس ببعید اھ (قوله کان
قال خبیر ثقة الخ) وفاقا للمغنی وخلافا للنهایة عبارته ولو قال اهل الخبرة فان لحم الادمی لا ینجبر سریعاً
الا بعظم نحو کلب قال الاسنوی فیتجه انه عذر وهو قیاس ما ذکروه فی التیمم فی بطء البرء انتهی وما تفقهه
مردود والفرق بینهما ظاهر وعظم غیره من الادمیین فی تحریم الوصل به ووجوب نزعه کالعظم النجس
ولا فرق فی الادمی بین ان یکون محترما اولا کمرتد وحربی خلافا لبعض المتاخرین فقد نص فی المختصر بقوله
ولا یصل الی ما انکسر من عظمه الا بعظم ما یؤکل لحمه ذکیا ویؤخذ منه انه لا یجوز الجبر بعظم الادمی مطلقا
فلو وجد نجسا یصلح وعظم ادمی کذلک وجب تقدیم الاول اھ وفی سم بعد ذکرها ووافقه ع ش والرشیدی
ما نصه وقضیته ای قوله م ر وجب تقدیم الاول انه لو لم یجد نجسا یصلح جاز بعظم الادمی اھ قال ع ش قوله
م ر خلافا لبعض المتاخرین هو السبکی تبعا للامام وغیره منهج ونقله المحلی عن قضیة کلام التتمة وقوله م
ر وهو قیاس ما ذکروه الخ جری علیه حج وقوله وعظم غیره الخ ای غیر الواصل من الادمیین ومفهومه ان عظم
نفسه لا یمتنع وصله به ونقل عن حج فی شرح العباب جواز ذلک نقلاً عن البلقینی وغیره لکن عبارة ابن عبد الحق
وعظم الادمی ولو من نفسه فی تحریم الوصل به ووجوب نزعه کالنجس اھ صریحة فی الامتناع وینبغی ان محل
الامتناع بعظم نفسه اذا اراد نقله الی غیر محله اما اذا وصل عظم یده بیده مثلا فی المحل الذی ابین منه
فالظاهر الجواز لانه اصلاح للمنفصل منه ثم ظاهر اطلاق الوصل بعظم الادمی ای اذا فقد غیره مطلقا انه
لا فرق بین کونه من ذکر او انثی فیجوز للرجل الوصل بعظم الانثی وعکسه ثم ینبغی انه لا ینتقض وضوءہ
ووضوء غیره بمسه وان کان ظاهرا مکشوفا ولم تحله الحیاة لان العضو المبان لا ینتقض الوضوء بمسه الا اذا کان

من الفرج واطلق عليه اسمه وقوله مر مطلقا اى حيث وجد ما يصلح للجبر ولو نجسا وقوله مر فلو وجد نجسا اى ولو مغلظا اه ع ش (قوله محترم) ليس بقيد عند النهاية والمغنى كما مر (قوله فتصح صلاته الخ) قال مر وحيث عذر ولم يجب النزع صار لذلك العظم النجس ولو قبل استتاره باللحم حكم جزئه الطاهر حتى لا يضر مس غيره له مع الرطوبة وحمله به فى الصلاة ولا ينجس ماء قليلا لاقاه انتهى اه سم (قوله وان وجد الخ) ولم يخف من نزعه ضررا خلافا لبعض المتاخرين نهاية ومغنى (قوله وينبغى الخ) تقدم عن النهاية والمغنى انها خلافه (قوله وان لم يج التيمم) فربذلك من الزوم اتحاد الشقين سم (قوله مع وجود ظاهر الخ) اى اولم يحتج للوصل نهاية والمغنى كما مر (قوله مع وجود نجس الخ) يفهم انه لوملم يجد الا عظم ادمى وصل به وهو ظاهر وينبغى تقدم عظم الكافر على غيره وان العالم وغيره سواء وان ذلك فى غير النبى ع ش وفى سم والرشيدى مثله الاقوله وينبغى الخ قول المتن (وجب نزعه الخ) اى وان لم يكن الواصل مكلفا مختارا عند الشارح كما ياتى فى الوشم ويشرط ان يكون مكلفا مختارا عند النهاية والمغنى قول المتن (ان لم يخف ضررا الخ) ينبغى ان يكون موضعه اذا كان المقلوع معه ممن يجب عليه الصلاة فان كان ممن لا يجب عليه الصلوة كما لووصله ثم جن فلا يجبر على قلعه الا اذا افاق اوحاضت لم تجبر الا بعد الطهر ويشهد لذلك ما سياتى فى عدم النزع اذا مات لعدم تكليفه اه حاشية الشهاب الرملى على شرح الروض اى ومع ذلك فينبغى انه اذا لاقى مائعا اوماء قليلا نجسه ولو قيل بوجوب النزع على وليه مراعاة للاصلح فى حقه لم يكن بعيدا وقد يتوقف ايضا فى عدم وجوب النزع على الحائض لان العلة فى وجوب النزع حمله لنجاسة تعدى بها وان لم تصح منه الصلاة لمانع قام به ع ش (قوله ولا تصح صلاته الخ) وينبغى على قياس ذلك نجاسة الماء القليل والمائع بملاقاة عضوه الموصول بالنجس قبل استتاره بالجلد وعدم صحة غسل عضوه المذكور عن الطهارة لنجاسة الماء المماس للنجس المتصل به بخلاف ما اذا لم يجب النزع فينبغى مر عدم نجاسة بالماء القليل بملاقاته وصحة غسله عن الطهارة للعفو عن النجس حينئذ وتنزيله منزلة جزئه الطاهر سم (قوله ولو نحو شين) ظاهره ولو كان فى عضو باطن ع ش (قوله على الاول) هو قوله لان فيه الخ و(قوله دون الثانى) هو قوله اولسقوط الخ (قوله عليه) اى الثانى (قوله لكن الذى صرح به جمع ونقله الخ) وهذا هو المعتمد مغنى ونهاية وقضية صحة غسله وان لم يستر العظم النجس باللحم مع انه فى حال الحياة لا يصح غسله فى هذه الحالة وكانهم اغتفروا ذلك لضرورة هتك حرمته سم على المنهج اه ع ش (قوله الاول) اى فى القبر (قوله دم كثير) اى لانه بفعله فلم يعف عنه مع كثرته سم (قوله كما لو قطعت اذنه الخ) اى وانفصلت

بالکلیة بخلاف ما اذا بقی لها تعلق بمحله ثم لصقت بحرارة الدم فلا تلزمه ازالتها مطلقا وتصح صلاته وامامته (قوله وان عل به صغیرا الخ) هذا ممنوع بل لا لزوم هنا وفیما لو اکره مطلقا مر اهـ سم عبارة النهایة فعلم من ذلک ای من ان الوشم کالجبر فی تفصیله المذکور ان من فعل الوشم برضاه فی حال تکلیفه ولم یخف من ازالته ضررا یبیح التیمم منع ارتفاع الحدث عن محله لتنجسه والا عذر فی بقائه وعفی عنه بالنسبة له ولغیره وصحت طهارته وامامته وحیث لم یعذر فیه ولاقی ماء قلیلا اومائعا اورطبا نجسه کذا افتی به الوالد رحمه الله تعالی اهـ وفی المغنی مایوافقه وعبارة ع ش قال فی الذخائر فی العظم قال بعض اصحابنا هذا الکلام فیه اذفعله بنفسه اوفعل به وباختیاره فان فعل مکرها لم تلزمه ازالته قولا واحدا قلت وفی معناه الصبی اذا وشمته امه بغیر اختیاره فبلغ واما الکافر اذا وشم نفسه او وشم باختیاره فی الشرک ثم اسلم فالمتجه وجوب الکشط علیه بعد الاسلام لتعدیه ولانه کان عاصیا بالفعل بخلاف المکره والصبی سم علی المنهج اهـ (قوله فیما لم یتعد به) ای علی بحثه السابق فی سم ای بقوله وینبغی حمله الخ الذی خالفه النهایة والمغنی کما مر (تحفة المحتاج ج۲ص۱۲۵تا۱۲۷)

دنووی هیثمی او شروانی رحمهم الله تعالی عنهم دمباحث مذکوره نه لاندې امور مستفاد کیږي.

**اول**: دامام شافعی رحمه الله تعالی دنص صریح خلاف دهغه دمقلدینو په اقوالو کښې غیر معمولی اختلاف او اضطراب دي.

**دویم**: مونږ په ابتداء دبحث کښې دعضوې داکل په نسبت دترقیع دزیات قباحت دوه وجی بیان کړی چی په هغو کښې دویمه داده چی په اکل کښې افناء ده اوپه ترقیع کښې ابقاء، ددې تائید له علامه شروانی اودهغه له اسلافو څخه هم وشو. حیث قال: (قوله ومثل ذلک بالاولی الخ) لعل وجهها ان العظم یدوم ومع ذلک عفی عنه والدهن ونحوه مما لا یدوم فهو اولی بالعفو ع ش (تحفة المحتاج ج۲ص۱۲۵)

**دریم**: مونږ داهم ولیکل چی دانسان دخپلې عضوې ترقیع دعضوې په اصل مقام کښې اعاده باندې قیاس کول صحیح ندی، له علامه شیروانی څخه دهغه تائید هم ومندل شو.

وینبغی ان محل الامتناع بعظم نفسه اذا اراد نقله الی غیر محله اما اذا وصل عظم یده بیده مثلاً فی المحل الذی ابین منه فالظاهر الجواز لانه اصلاح للمنفصل منه (تحفة المحتاج ج۲ص۱۲۶)

**څلورم**: علامه هیثمی اوعلامه شروانی رحمهما الله تعالی دعضوې مقطوع الصاق په اصل مقام پورې په حرراة الدم سره ممنوع ګرځولی.

وقال العلامة الشروانی رحمه الله تعالی: (قوله کما لو قطعت اذنه الخ) ای وانفصلت بالکلیة بخلاف ما اذا بقی لها تعلق بمحله ثم لصقت بحرارة الدم فلا تلزمه ازالتها مطلقا وتصح صلاته وامامته (تحفة المحتاج ج۲ص۱۲۷) فقط والله تعالی اعلم

رشید احمد غرة رمضان ۱۴۱۰هـ عند نداء العصر.

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿ وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴾ (۳۱-۶)

# د تلویزون زهر

## له ټی بی (سل) مرض نه هم زیات هلاکونکی دی

**افاضه: حضرت فقیه العصر دامت برکاتهم**

**لیکنه: حضرت مفتی محمد ابراهیم صاحب صادق آبادی مد ظله.**

### د تلویزون زهر له سل مرض نه هم زیات مهلک دی:

۱ــ دتصوریر جوړولو لعنت

۲ــ دتصوریر لیدلو لعنت

۳ــ دتصوریر ښودلو لعنت

۴ــ د رحمت د ملائکو په ځائ د لعنت ملائکې.

۵ــ مال ضائع کول

۶ــ د آوزا اوساز سرود آوریدلو لعنت

۷ــ د حیاء اوغیرت اوشرم جنازه

۸ــ د زړه توروالې اوظلمت اوکدورت

۹ــ په زړه کښې له ګناهونو سره الفت پیدا کیدل

۱۰ــ د وقت په شان قیمتی دولت ضائع کول

۱۱ــ دصحت جسمانی دماغی اواعصابو اوبینائی له مینځه تلل

۱۲ــ دجرمونه تعلیم اوپه دنیا کښې دجرمونو خورول

۱۳ــ ددین دشعائروبی حرمتی

### دتلویزون احکام:

تلویزون لیدل، اخستل، خرڅول، جوړول حرام دی

دداسی خلکو اذان، اقامت او امامت جائزندې او دهغوئ شهادت قبول ندې

## دتلویزون لعنت

**سوال**: تلویزون نن سبا په هر کور کښې موجود دې که دیندار دې اوکه بې دینه ټول خلك په شوق ورته ګوری د خلکو وینا ده چی په دې کښې ګناه نشته بلکه نن سبا تلویزون دتعلیم ذریعه ده په دې کښې کعبه، مسجد، نبوی، فیصل مسجد، جدید ایجادات، نوی ماشینونه او دټولې دنیا عجائبات ښودل کیږی برسیره پر دې دعلماء کرامو تقریرونه، نعتونه او د قرآن مجید تلاوت هم پدې آوریدل کیږی، غرض داچی دا دمشرانو اوکشرانو دتعلیم اوتربیت ذریعه ده.

آیا ددغو فوائدو په نظر کښې نیولو سره تلویزون ساتل اوکتل شرعاً جائزدی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دتلویزون تباهی دهیڅ ذی عقل څخه پټه نده، په موجوده معاشرې کښې دتلویزون دکردار په لیدلو سره که کوم شخص هم دهغه په منافعو شمیرلو مصروی ددې مثال له هغه احمق څخه مختلف ندې چی دهغه په مخ کښې اور لمبې وهی اوشغلې یې له آسمان سره خبرې کوی اودهغه مینځ کښې ګیرچاپیره هرڅه سوځی عقلمند خلك چی دا منظر وینی نو لرې ترینه تیښته کوی او دې قرار ولاړوی او د اور فوائد شمیری او نارې وهی چی ما ته قناعت راکړئ که نه نوزه سره دخپل اولاد اوښځی دې اورته ورننووځم، نو داسې شخص ته به څه جواب ورکړل شی بغیر له دې خبرې چی دخپل دماغ علاج دې وکړه.

مقصد دا چه دتلویزون مفاسد اوتباه کاری یونظریاتی مسئله نده چی ددلائلو په ذریعه بیان کړې شی بلکه دا یو دسترګو لیدلې حقیقت دې چی د تلویزون لعنت دمعاشرې صحتمند جسم دتی بی (سل) مرض په شان له مینځه وړی، مګر افسوس چی دهغه رنګینو دهوښیارو خلکو نظرونه هم تیاره کړی دی، له دې وجی نه مونږ یوڅه په تفصیل ددې په مفاسدو رڼا اچوو شاید چی دکوم لیدونکی لپاره دبصیرت ذریعه جوړه شی.

### ۱ - تصور لیدل

په تلویزون کښې دتصویر لیدل یوه ګناه ده مګر که په ژور نظر ورته وکتل شی نو دلاتعداد ګناهونو مجموعه ده مثلاً: **اول**: د معصیت د آلې استعمال. **دویم**: دهغه په خریداری مال ضائع کول **دریم**: تصویر سازی. **څلورم**: تصویر لیدل. **پنځم**: تصویر ښودل. **شپږم**: درحمت له ملائکو څخه لرې والې. **اووم**: لعنت مستحق ګرځیدل. **اتم**: له کفارو سره مشابهت. **نهم**: دسړیو نامحرمو ښځوته کتل. **لسم**: دغیر محرمو ښځو آواز آوریدل. **یولسم**: دښځوغیر محرمو سړیو ته کتل. **دولسم**: بلاضرورته دغیر محرمو سړیو آواز آوریدل. **دیارلسم**: پهلوانان لامبو وهونکی او لوبې کونکی عموما نیم بربنډ وی دهغوی دلیدلو ګناه.

تقریبا ټول ګناهونه په خپل ځای کبیره اودسختو وعیدونو مصداق دی، مثلا آله دمعصیت

او په هغې کښې د مال مصرفولو په باره کښې ارشاد دی: ﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَشۡتَرِي لَهۡوَ ٱلۡحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ بِغَيۡرِ عِلۡمٖ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًاۚ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٞ مُّهِينٞ ۝٦ ﴾ (۳۱:۶)

**ترجمه**: بعضې خلك داسې دی چې د هغه خبرو خریدار جوړیږي چې غافلونکې دی چې د الله له لارې بې علمه ګمراه کړی او په هغه پورې توقی وکړی، د داسې خلکو لپاره د ذلت عذاب دې.

د «لهو الحديث» تفسير کښې سيدنا عبدالله بن مسعود رضی الله عنه فرمائی چې **((الغناء والذی لا إله إلا هو يرددها ثلاث مرات))** تفسير ابن جرير ص ۳۶ ج ۲۱

له دې څخه مراد سندرې دی، په هغه ذات قسم چې له هغه څخه سوا بل معبود نشته، دری ځله یې دا جمله تکرار کړه.

امام مجاهد فرمایی چې: **((هو اشتراء المغنی والمغنية والاستماع اليه والی مثله من الباطل))**. تفسير ابن جرير ص ۳۷ ج ۲۱

له دې څخه مراد سندرې ویونکې غلام یا سندرې ویونکې مینځه ده او له هغونه سندرې آوریدل او د سندرو په شان نور خرافات آوریدل.

## تصوير د احاديثو په رڼا کښې

- له رحمت الهی څخه د لرې والی سبب دې.
- په صفت تخليق کښې له الله تعالی سره مقابله ده
- مستوجب د سخت عذاب دې
- حضور صلی الله عليه وسلم په تصوير جوړونکښې لعنت ويلې دې.

دا تمام احاديث په مفصله توګه په رساله (النذير العريان عن عذاب صورة الحيوان) کښې درج کړې شوی دی.

د ښځو بې پردګی او عریانی خو د حکومت الهی څخه ښکاره د بغاوت اعلان دې د پردې په باره کښې د ګڼ شمير آياتونه نه علاوه له اويا څخه زيات احاديث منقول دی د پردې مفصل احکام په رساله «هداية المرتاب فی فريضه الحجاب»، «شرعی پرده د قرآن په رڼا کښې» مطالعه کړئ.

تلويزون ليدونکې په يوه وخت د دې تولو ګناهونو مرتکب کيږی که په چاکښې يوه زره عقل او ادراك او ايمانی احساس وی نو سوچ دې وکړی او فيصله دې وکړی چې څه ګټی او څه بايلی.

## ۲ - غناء او مزامير آوريدل ګناه ده

ساز او سرود وغيره د تلويزون لازمه حصه ده، دا کار خو په هرحال حرام دې مګر چونکه

دتلویزون کارکوونکو هره گناه دعروج بام ته درسولو ټیکه اخستې ده، لدی وجی نه دتلویزون سندرې له فحش نه فحش وی اوبالعموم دفاحشه ښځوپه آواز کښې وړاندې کیږی

ښځی هم بیا څنگه ؟ بی پردې خوانه، نیم عریانه ، متحرکه او رقصانه اوپه پوره ډول دفتنې سامان «ظلمات بعضها فوق بعض» سندرې اوسرود آوریدل په زړه کښې دحدیث له رویه دمنافقت تخم شندی .الغناء ینبت النفاق فی القلب کما ینبت الماء الزرع (ابوداود بیهقی)

ترجمه: ساز اوسرود په زړه کښې نفاق داسی زرغونوی لکه څنگه چی اوبه فصل زرغونوی (ابوداود ، بیهقی)

همدارنگه سندروته دزنا منتر ویل شوې دې : الغناء رقیة الزنا (تلبیس ابلیس ص۲۹۱)

دالله تعالی ارشاد دې : ﴿ وَٱسۡتَفۡزِزۡ مَنِ ٱسۡتَطَعۡتَ مِنۡهُم بِصَوۡتِكَ ﴾

په دې کښې چی دکوم شیطانی آواز ذکر دې دهغه یو معروف مشهور تفسیر سندرې اوسازونه دی، تفسیر ابن جریر ص۷۶ ج۱۵ اوعام تفاسیر.

د سندرو مفصل تفصیل مونږ په رساله (المصابیح الغراء للوقایه عن عذاب الغناء) کښې درج کړې دې

غرض داچی دا گناهونه دتلویزون د ښکاره گناهونو له جملې څخه دی اواکثر تلویزون کتونکی په دې کښې مبتلاء دی، ډیرځله ددغو خلکو له کورونو څخه دساز اوسرود اوفلمی سندرو هغه شور راوخی چی گیرچاپیره گاونډیان ترینه خبره نشی آوریدلی، دهغوئ کاروبار تباه اوخوب حرام او زندگی دربدره وی، داسې هم بیا بیالیدل شوی دی چی دکوم جومات سره متصل دکوم کوریا دکان نه دتلویزون آواز پورته کیږی دلمونځ کوونکو غریبانو لمونځ گډوډشی، بنده خپله لیدلی دی چی بیچاره سپین گیری چیغی وهی چی دخدای لپاره مونږ خو لمانځه ته پریږدئ. څوك ویلې شی چی دا دمسلمانانو اداء ده که دکفارو حرکتونه؟

**۶ عار دارد کفر از اسلام تو**

گاونډی که کافر هم وی دهغه دحقوقو اندازه له دغو احادیثو څخه ولگوئ:

والله لا یؤمن والله لا یؤمن والله لا یؤمن قیل من یارسول الله قال الذی لا یامن جاره بوائقه (بخاری ومسلم)

ترجمه: حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد وفرمایلو : والله مؤمن نشی کیدی، والله مؤمن نشی کیدی، والله مؤمن نشی کیدی، عرض وشو څوك یارسول الله ؟ حضورصلی الله علیه وسلم اوفرمائل هغه سړې چی گاونډی دده دضرر څخه په امن نه وی

من کان یؤمن بالله والیوم الاخر فلا یؤذ جاره (بخاری ومسلم)

ترجمه کوم شخص چی ایمان لری په الله اوپه ورځ دآخرت نو خپل گاونډی ته دې ضرر نه رسوی

## ۳ - دحیاء اوغیرت جنازه وتل

حیاء دایمان شعبه اودانسان جوهردې په حدیث کښې دی چې ((الحیاء شعبة من الایمان)) (بخاري ومسلم)

ترجمه: شرم اوحیاء دایمان حصه ده.

((اذالم تستحی فاصنع ماشئت)) (بخاري ومسلم)

ترجمه: کله چه شرم او حیاء نه کوې نو بیا دې چه څه خوښه وی هغه کوه.

مګرتلویزون، وی سی آر او دسینما ګانو زیادت دنیا دبی حیائی زانګو جوړه کړه هرطرف بی پردګی، عریانی او د فواحشو او منکراتو یلغار دې.

دتلویزون له ایجاد څخه مخکښې دهر منکر دائره دفساد دهغه تر وجود پوری محدوده وه لدې وجی نه هرشخص ته په هره ګناه کښې شرکت ممکن نه وو، مګر دتلویزون ایجاد هغه ناممکن په ممکن بدل کړ، دټولې دنیا بی حیائی له هر طرفه راجمع شوه اوپه یوه وخت کښې تلویزون کښې ځای پرځای شوه.

زمونږ نشریات او د ابلاغ ذرائع، بی حیائی په معاشره کښې په څه قسم خپروی؟

ددې اندازه هیڅ شخص ته هم مشکله نده زنا، همجنس پرستی بلکه حیواناتوسره بدفعلی ددې بد قسمته معاشرې نوې واقعه نده، نوبت تر دې ځایه ورسیده چې دسکه ورور اوخور بلکه پلا اولور ترمینځه دبدفعلی اوناجائزو تعلقاتو واقعات ښکاره کیږی، **یالتنی مت قبل هذا**....

## ۴- په زړه کدورت پریوتل

دګناهونو دنحوست له وجی په زړه توروالې پیداکیږی کما جاء فی الحدیث، دتلویزون لیدلو دا نتیجه هم عام طور سره مشاهده کیږی که له کوم تلویزون کتونکی سره په دې موضوع خبرې وکړې شی نو د دې په ځائ چې په خپله ګناه اعتراف وکړی ، هغه دتلویزون فوائد درته شمیرل شروع کړی، یوقطعی حرام ته دجائزویلو رجحان چی په دینی لحاظ څومره خطرناك دې هغه د بیان محتاج ندې.

## ۵ - دګناه بدوالې له زړه څخه وتل

کوم خلك چی تلویزون ته جائز نه وایی مګرله لیدلو نه یی هم نه منع کیږی، نو یقینا چی دا خلك په دې شیطانی فریب کښې مبتلاء دی چی دوئ وایی چې دنجات لپاره ترك دمنکراتو ته ضرورت نشته بلکه صدقه اوخیرات خواه د حلال مال څخه وی یاله حرام نه هغه کافی ده، او د اذکارو او نوافلو اهتمام دنجات لپاره کافی دې، حالانکه دمسلمان ددین لپاره ګناه زهر قاتل دې

دبعضي گناهونو زهر دومره متعدي وي چي هغه دانسان نيكي هم ختموي لدې وجې نه څومره زور چي په قرآن اوحديث كښې دگناه په ترك وركړې شوې دې دومره زور د كوم نفلي عبادت په كولو باندې ندې وركړشوې، د مثال په توگه الله تعالی فرمايي:

﴿وَذَرُوا ظَاهِرَ الْإِثْمِ وَبَاطِنَهُ﴾

﴿وَلَا تَقْرَبُوا الزِّنَىٰ﴾

﴿وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ﴾

﴿يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ﴾

وغيرها من ايات كثيرة كثيرة

- اتق المحارم الحديث
- والمهاجر من هجر ما نهى الله عنه
- المهاجر من هاجر الخطايا والذنوب
- والمجاهد من جاهد نفسه.
- ليس الشديد بالصرعة الحديث

وغيرها من احاديث كثيرة شهيرة.

دگناه دپرېښودو په ځای چي څوك په نفلي عباداتو كښې كوښښ كوونكی دی اوهغه وسيله دنجات بولي دهغه مثال دهغه احمق په شان دې چي دغورځيدونكي مكان دبنياد مستحكم كولو په ځای دهغ چاك چاك ديوالونه رنگ وركوي اوپه رنگ اوروغن يې مصروف وي.

## ۶ - تلويزون وخت ضائع كول

ددې فاني ژوند څوپه شمار ساگاني دانسان د ژوند سرمايه دی ، دهغو يوه يوه لمحه له دنيا ومافيها نه قيمتي دی، دحضور صلی الله عليه وسلم ارشاد گرامي دې چې: من حسن اسلام المرء تركه مالا يعنيه (مالك، احمد، ترمذی)

دمسلمان ددين خوبي داده چي بې فائدې كارونه پرېږدي

اوارشاد دی: علامة اعراضه تعالى عن العبد اشتغاله بما لا يعنيه (مكتوبات امام ربانی)

دانسان په بې فائده كارونو كښې مشغوليدل ددې نښه ده چي الله تعالی له هغه څخه ناراض دی

او بل ځای ارشاد دی چې : ليس يتحسر اهل الجنة الاعلى ساعة مرت بهم ولم يذكرالله تعالى فيها. (طبرانی کبیر، ابن السني)

په جنتیانو به دڅه حسرت نه وی مګر ددې چې ده کوم ساعت بغیر دذکر دالله نه تیر کړې وی. هغه غافل مسلمان چې یوه ورځ هم بغیر له تلویزون لیدلو څخه نه تیروی یوه ورځ دی کینی چې د راتلونکې ورځې لپاره څومره دحسرت سامان برابروی.

## ۷ - جسمانی صحت خصوصاً دماغی صلاحیتونو او دبینائی طاقت له منځه وړل

جسمانی صحت او داعضاؤ سلامتی له هزار نعمتونو څخه یونعمت دې مګر اکثرخلك ددې بی بها او ډیر قیمتی نعمت له قدر او قیمت څخه بی خبره دی، په حدیث کښې دی چې :

نعمتان مغبون فيهما كثير من الناس الصحة والفراغ (بخاری)

تندرستی اوفراغت دوه داسی نعمتونه دی چې اکثر خلك په هغو کښې نقصانی دی او له هغو څخه فائده نه اخلی.

دتلویزون عاشقان په دومره غټ نقصان سترګی بندوی دجسم اوجان دومره غټه متاع بربادوی له کومه وخته چې تلویزون ایجاد شوې دې له هغه وخته ډاکتران دهغه له نقصاناتو څخه خبرداری ورکوی ، دجرمنی مشهور ډاکتر والټر بوهلرلیکښې چې : «ځینی واړه حیوانات لکه مونږك یا مرغی وغیره که دتلویزون مخ ته کینبودل شی نو هغه به دسکرین دشعاعو دتیزی له وجی لږوخت پس مړه شی.

لدې دا څخه اندازه لګیږی چې انسانی صحت له دې څخه څومره متاثر کیږی.

دلته په کراچی کښې دیوې نجلی ددماغو رګ پری شوی وو ددماغی امراضومشهور پروفیسر ډاکتر جمعه خان یی معاینه وکړه اووې ویل : دا دماغی رګ دتلویزون دکتلو له وجی پرې شوې دې.

یوه نجلی دسترګوډاکتر ته دسترګو دمعاینی لپاره راغلې وه ډاکتر ورته وویل : ددې نجلی سترګی دتلویزون دکتلو له وجی کمزورې کیږی، داسې قسم واقعات دشمیرله حدڅخه وتلی دی څومره وارې به یی مونږ دلته درج کړو.

دماهرین فن خبره ده چې په یوه کمره (اطاق) کښې تلویزون غږیږی نو ورسره پخوا کښې دکمرې دخلکو صحت هم متاثرکیږی، دا هم دلیدوخبره ده چې دکومو هلکانو دتلویزون کتل عادی وګرځی دهغوئ له درس ویلو سره علاقه ختمه شی اوبل کارهم نشی کولې ، نه ددین شی اونه ددنیا ((خسرالدنيا والاخرة)) دنیا او آخرت یی داړه تباه شی.دا دنقصان یوجانب وو، بل طرفته

دهلکانو اونجونو دشهوانی جذباتو اوجنسی خواهشاتو کوم اور چی تلویزون بل کړي دي دهغې له تپ څخه ټوله معاشره سوزی.

دعشق اومحبت فحش داستانونه اودنارینه او زنانه وو شرمونکی ملاویدلو مناظر پیش کول دهغوی دخامو ذهنونو جنسی جذباتو مسلسل برانگیخته کوی، نتیجه داشی چې په لاشعوری توگه نوې نسل دبالغ کیدونه مخکښې بالغ کیږی، بیا د وفور جذباتو دبې قابوکیدو له وجی دتسکین لپاره غیر فطری طریقې اختیاروی چی دهغو په کاغذ لیکلو څخه قلم شرمیږی.

**ع: وگوره ماته خوږه سترگودعبرت سره**

یوه سړی دخپلې مخ توری قصه لیکلې وه او په غرض داستفتاء په خپله دارالافتاء ته ارغلې وو. چی دهغې خلاصه داده چې دهغه ښځی اولور «وی سی آر» کتلو، لږ وخت وروسته دهغه ښځه په بستره څملاسته اوویده شوه نو هغه دخپلی لورسره خپل مخ تورکړ اومکملې طریقې سره یی داکار وکړ ښځی ته ددې معلومات وشو هغی په استفتاء مجبورکړ، اوکه نه نو دا دتلویزون او «وی سی آر» په وړاندی معمولی قصه ده والله اعلم روزانه به څومره داسې واقعات پیښیږی، داسی قوم چی په قسم قسم عذابونو کښې نه مبتلاکیږی نو څه به کیږی؟

آفرین دې وی په هغو الدینو باندې چی دا هر څه آوری او وینی بیاهم دماشومانو دتفریح او ذهنی نشو اونما لپاره په کور کښې تلویزون ساتل ضروری بولی.

**ع: دې کورته اورلگیدلی دکورله ډیوې څخه.**

دخپل زړه له ټوټو سره به له دې نه زیاته ددښمنی مظاهره نوره څه وی؟
قران مجید علی الاعلان وائی

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ قُوٓاْ أَنفُسَكُمۡ وَأَهۡلِيكُمۡ نَارٗا وَقُودُهَا ٱلنَّاسُ وَٱلۡحِجَارَةُ﴾ (۶۶:۶)

ترجمه: ای ایماندارو تاسې خپل ځانونه او کوروالا له هغه اورڅخه وساتئ چی دهغه اورخس او خاشاک انسانان اوکانی دی.

ددې په تفسیر کښې علامه آلوسی لیکی چې:

روی ابن عمر رضی الله تعالی عنهما قال حین نزلت یارسول الله نقی انفسنا فکیف لنا باهلینا فقال علیه الصلاة والسلام تنهوهن عما نهاکم الله عنه وتامروهن بما امرکم الله به فیکون ذلك وقایة بینهن وبین النار.

واخرج ابن المنذر والحاکم وصححه وجماعة عن علی رضی الله تعالی عنه انه قال فی الایة علموا انفسکم واهلیکم الخیر وادبوهم.

والمراد بالاهل علی ماقیل مایشمل الزوجة والولد والعبد والامة واستدل بها علی انه یجب علی الرجل

تعلم ما یجب من الفرائض وتعلیمه لهؤلاء.

وادخل بعضهم الاولاد فی الانفس لان الولد بعض من ابیه.

وفی الحدیث رحم الله رجلا قال یا اهلاه صلوتکم صیامکم زکاتکم مسکینکم یتیمکم جیرانکم لعل الله یجمعکم معه فی الجنة. وقیل ان اشد الناس عذابا یوم القیمة من جهل اهله (روح المعانی ج۸ ص۱۳۷)

کله چی دا آیت نازل شو نو حضرت عمر رضی الله تعالی عنه عرض وکړو چې یارسول الله (صلی الله علیه وسلم) مونږ خو به خپل ځانونه ددوزخ نه وساتو، خپل اهل څنګه له اوره وساتو؟ حضرت ورته ارشاد اوفرمایه: له کومو کارونو چی الله تعالی تاسو منع کړی یاستئ له هغو څخه هغوئ هم منع کړئ اوپه کومو کارونو یی چی تاسوته امر کړې دهغو حکمونو پابندی وکړئ او هغوئ ته یی هم حکم وکړئ دغی رنګې تاسې دهغوئ لپاره له اورڅخه دځان ژغورنی ذریعه جوړیږئ.

امام ابن المنذر او امام حاکم سره دتصحیح او دمحدثینو یوجماعت له حضرت علی رضی الله عنه څخه ددې آیت تفسیر داسی نقل کړې دې: خپلو ځانونو او خپل عیال ته دخیر تعلیم ورکړئ اوهغوئ ته ددین طوراوطریقې ور زده کړئ.

په آیت کښې له اهل څخه ښځی، اولاد، غلام، اومینځی مراد دی، له آیت نه په دې استدلال شوې چی په هر مسلمان ټول فرائض زده کول واجب دی.

اوبعضې حضراتو اولاد په انفس کښې داخل کړې دې، له دې وجی چی اولادهم دپلار جز دی.

په حدیث کښې دی چې په هغه شخص دې دالله جل جلاله رحمت وی چی کوروالا بیداروی چی ای اهل خانه! دخپل لمونځ، روژی او زکات فکر کوئ، دخپل مسکین، یتیم اوګاونډیانو خبر اخلئ، شاید چی تاسو الله تعالی له هغوئ سره په جنت کښې یوځای کړی.

ویل شوی دی چی په ورځ دقیامت به شدید ترین عذاب دهغه شخص وی چا چی خپل عیال ـه دین څخه ناخبره ساتلې وی.

مګر دلته چی حفاظت کوونکې خپله فصل خوری نو ساتنه به یی څوک وکړی. مصداق والدین خپله خپل اولاد له دین څخه ګرځوی دتلویزون او وی سی آر په ذریعه یی په ګناهونو کښې مبتلاء کوی همدا اولاد به سبا ددوئ په سر پښی ږدی، اوهغوئ ته به کنځل کوی اوهغوئ سره به غیر انسانی سلوك کوی.

داځه دتعجب خبره نده چی دا د سکول اوکالج اوتلویزون او وی سی آر دتعلیم اوتربیت منطقی نتیجه ده «څه چی کرې هغه به ریبې» دا ددنیا مسلم اصول دی. اوپه آخرت کښې به همدا اولاد ددې والدینو ګریوان نیسی.

## ۸ - جرائمو ته هوا ورکول

تلویزون صرف دتفریح اوتماشی او طرب اوعیش یوه آله نده، بلکه ددنیا دلویو لویو جرمونو د پرېښتنګ سنټر دې په اخبارونوکښې داسې خبرونه په وار وار شائع شوی چی په غټوغټوواردا تو کښې نیول شویو نو جوانانو دسزا ګاللووروسته پخپله اعتراف کړې دې چی دغلا دا پروګرام مونږ د فلانی تلویزون د فلانئ ډرامې دلیدو څخه ترتیب کړ.

دجنوبی افریقا د علماؤ د مجلس له طرفه نشر شوی کتاب کښې (اسلام اینډتیلیویژن) کښې بی یوه واقعه لیکلې ده:

په تلویزون کښې پیش کړې شوې (دښځې د بې عزتی منظر) په حقیقةً مخې ته راغې، یو بدمعاش هو بهو همداشان چاړه اوچاقو واخستل او دیوې زنانه کورته ننوت اودهغې بی عزتی یې وکړه اوپیسی یی ترینه واخیستی او وتښتیده، دتفتیش لپاره دهغه کورته پولیس ورغلل، دپولیسو افسر ناخاپه وویل ملزم یقینا دتلویزون ډرامه لیدلې ده او داکاریی کړې دې چی په هغه کښې دامنظر پیش کړې شوی وو.

## ۹ - د دینی شعائرو بی حرمتی

په تلویزون کښې ضمنی طور سره څه دینی پروګرامونه مثلا دحج مناظر، آذان، تلاوت اونعتیه کلام وغیره پیش کوی، دا ددین کوم خدمت ندې بلکه له دینی احکامو سره ښکاره ټوقې دی، قرآن مجید دا دکفارو عمل ښودلې اومسلمانانو ته یی له هغې څخه دبیزار اوسیدو تاکید فرمایلې دې

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلَّذِينَ ٱتَّخَذُوا۟ دِينَكُمْ هُزُوًا وَلَعِبًا مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُوا۟ ٱلْكِتَٰبَ مِن قَبْلِكُمْ وَٱلْكُفَّارَ أَوْلِيَآءَ ۚ وَٱتَّقُوا۟ ٱللَّهَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٥٧﴾﴾ (۵:۵۷)

ترجمه: ای ایماندارو! هغو خلکو ته چی ستاسې نه مخکښې کتاب ورکړشوې وو اوستاسی دین پورې مسخرې کوی اونور کفارهم په دوستی مه نیسئ او دالله تعالی څخه وډارشئ که چیرې تاسو ایماندار یاست.

په دې کښې خو ددین بی عزتی هسی هم ده خو علاوه په دې بله غټه مفسده داده چی عوام داسې بی حیایی ته جائز بلکه مباح وایی او بلکه د اشاعت دین یوه ذریعه یی بولی.

## ۱۰ - په معاشره کښې د ذکر شوو ټولو ګناهونو دتشهیر اوترویج عظیم وبال

دتلویزون اووسی آر په ذریعه چې په ټوله دنیا کښې څومره بی حیایی خپرېږی په دې کښې

دټولو کارکوونکو «د تاجر، خریدار، مشتهر، جوړونکی، لیدونکی اوښودونکی» برابره حصه ده دوی پکښې شریك دی. په کومه نیکی یا بدی کښې دحصه دار کیدو لپاره بنفس نفیس شریك کیدل ضروری ندی بلکه په کور کښې ناست صفت کوونکی یاپه زړه سره راضی کیدل یا په بله کومه طریقه دهغې حوصله افزایی کول په هغې کښې دشرکت مترادف دی لکه چې حدیث دی:

**اذا عملت الخطیئة فی الارض فمن شهدها فکرهها کان کمن غاب عنها ومن غاب عنها فرضیها کان کمن شهدها (ای باشرها وشارك اهلها) (سنن ابی داود ص۲۳۹ ج۲)**

ترجمه: کله چې په ځمکه کومه ګناه کیږی نو چې کوم شخص په دغه موقع موجودوی د هغه زړه په دې باندې خوښ نه وی نو هغه حکما داسې دې لکه هغه څوك چې ترینه غائب وی، اوکوم سړې چې هلته غائب هم وی لیکن په زړه کښې په هغې راضی وی هغه حکما په شان دهغه چا دې چې په دغه موقع کښې حاضر او شریك وی.

دا ظاهراوښکاره حقیقت دې او دلیل ته محتاج ندی، چې نن سبا په ټوله انسانی معاشره کښې دفحاشی اوعریانی په خپرولو کښې څومره کردار یواځې تلویزون ادا کوی ددنیا ټولې رنډۍ اوفاحشې اوبی غیرته اوسندرغاړی او دهغوئ دوستان سره یوځای شی هم دومره کردار نشی ادا کولې، تلویزون کورپه کور سینما خانه جوړه کړې ده، څه وخت مخکښې چې کومه ګناه خلکو بهر تلاش کوله، نن هغه ګناه دتلویزون له برکته نه صرف جائز بلکه فیشن جوړه شوه او په هر کور کښې موجوده شوه.

د ګناهونو دې ډیر والی معاشره په جهنم بدله کړه، ددې ټولې خرابی ذمه داری دهغه چاپه سرده چې ددې سرچشمهٔ فساد په تشهیر اوترویج کښې په څه قسمه درجه کښې هم دخیل دی، دا خلك یواځې دخپل ځان نه بلکه دټولې معاشرې دښمنان اوبدخواه دی اوپه دې باندې چې کوم قرآنی وعیدونه دی په هغې کښې داخل دی.

﴿إِنَّ ٱلَّذِينَ يُحِبُّونَ أَن تَشِيعَ ٱلۡفَٰحِشَةُ فِي ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٞ فِي ٱلدُّنۡيَا وَٱلۡأٓخِرَةِۚ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ وَأَنتُمۡ لَا تَعۡلَمُونَ ١٩﴾ (۱۹ــ۲۴)

ترجمه: هغه څوك چې غواړی چې خپره شی دبی حیایی خبره په مسلمانانو کښې، هغه ته به په دنیا او آخرت کښې دردناك عذاب وی، اوالله تعالی پوهیږی اوتاسو نه پوهیږی.

## دګناه عذر

دتلویزون دهغه هولناکو او خطرناکو نتائجو له لیدلو سره هیڅ یو ذی هوش انسان هغه دځان لپاره او دخپل اولادلپاره یا دمعاشرې دکوم بل فرد لپاره مفید نشی بللې، مګر ددې لوی حقیقت

دپوهیدلو لپاره څه انسانی حس په کاردي، افسوس چی تلویزون دخپلو عاشقانو له زړه او دماغو څخه داحس داسې صفا سوتره کړي دي چی هیڅ دخیر اوشر تمیز نشی کولې.

په سوال کښې ذکر شوې تقریر چی دتلویزون فائدې یې شمیرلی دی هغه دتلویزون غوره کونکو خلکو ژبه تکراریږی، که له ده څخه څوك پوښتنه وکړی چی آیا په دنیا کښې داسې کومه بدی شته چی ستاسې ددغه خبرې په اساس په هغې کښې هیڅ خیر اونیکی نه وی؟ بلکه هره بدی کښې یوه نه یوه نیکی ضروری وی، ، آیا آدم خور درنده مار لړم وغیره په خپل ذات کښې دفائدې یو اړخ نه لری؟ بیا څه وجه ده چی احمق نه احمق انسان هم دې ته دلاس په وروړلو تیارندې؟ رښتیادی: **دبی دینی اول گذار په عقل لگیږی.**

بعضې خلق دتلویزون دطرفدارانو ددې تقریر په آوریدوسره چی دتلویزون په سکرین براه راست پیش کیدونکی مناظر تصویرندیې بلکه عکس دې. پدې خبره طویل طویل بحثونه کوی.

مونږ دابحثونه څکه بې اساسه گڼو چی دتلویزون اصل حکم په دې موقوف ندې که دامناظر تصویر وی هم حرام دی او که عکس وی هم قطعی حرام دی که دهغوی په قول داعکس وی نو بیا دبی پردې فاحشو ښځوعکس لیدل چا جائزکړی دی؟ او د سړیو نیمه بربنډ عکس لیدل ښځوته چا جائزکړی دی؟ حقیقت دادې چی داعکس له یوه پلوه له اصلی صورت څخه زیات مهلك اوخطرناك دې، شاعر ډیرښه ویلی دی:

د شعر ترجمه: **ستاپه تصویر کښې یوشی ستا څخه جدادې چی څومره یی چپوم (ښکلوم) هغه نه ښوریږی اونه کنځلې کوی.**

که داعکس تسلیم کړې شی او جائز وگرځول شی دخارجی مفاسدو په بناء یوجائز کارهم ناجائز گرځی اوتلویزون خو (مجسمه دفساد) دې له دې ټولو مفاسدو څخه سترگی بندول اوداجائز گرځول څنگه کیدی شی؟

که له خارجی مفاسدو څخه هم نظر قطع کړې شی او دا فرض کړې شی چی براه راست پیش کیدونکی مناظر(عکس) دې اوله وړاندې نه فلم شوی مناظر (تصویر) وو نو هرتلویزون کتونکې به هروخت څنگه تمیزوکړی چی اوس پروگرام براه راست چلیږی اونشرته سپارل کیږی اوکه دهغه فلم ښودل کیږی؟ پداسې حال کښې چی عموماً دتلویزون پروگرام دفلم په صورت کښې ښودل کیږی.

## ویډیوکیسټ

داهم په فتنه خپرولو کښې له تلویزون څخه دوه گامه مخکښی ده په دې کښې محفوظ تصویرونه وی، ځینی خلك دلته هم هماغه تقریرشروع کوی چی دا تصویر هم داوبو عکس یا د ننی دعکس په شان دې حالانکه څوك ادنی عقل لرونکې هم په دې پوهیږی چی تصویر اوعکس

دوه متضاد شیان دی، تصویر دکوم شی پائیدار نقش اومحفوظ نقش ته ویلې شی اوعکس ناپائیدار اووقتی نقش ته ویلې شی د اصل په غائب کیدو سره عکس هم غائب کیږی

ویډیو کیسټ کښې تصویر محفوظ وی کله یې چی وغواړی اوځومره یې چی وغواړی نو د تلویزون په سکرین «شیشه» باندې دهغه نظاره کولې شی او دا تصویر تابع داصل نه دې بلکه له دې ځخه بالکل لاتعلق دې ځومره خلق مړه دی چی په دنیا کښې یې نوم اونشان نشته مگر دهغوئ متحرك تصویرونه په ویډیو کیسټونو کښې موجود دی.

داسې تصویر ته کوم لیونې هم عکس نه وایی، صرف د دې په خاطر چی په ویډیو کیسټ کښې تصویر زمونږ په نظر نه راځی نو دتصویر له وجودنه انکار کول دا یوه مغالطه ده.

که دامنطق تسلیم کړې شی چی په فته «کیسټ» کښې تصویر محفوظ ندې بلکه معدوم دې او په وډیو کیسټ کښې محفوظ نقوش دتلویزون سکرین «شیشې» ته ځی اوتصویر ترینه جوړیږی نو د داسې لاحاصل تقریر نه په اصل حکم څه اثر پریوځی؟.

دتصویر دمحفوظ کیدوپه تقدیر تلویزون صرف دتصویر دنمائش یوه آله ده اوس دتصویر سازی آلی هم قرار وموندلو چی صرف تصویر ښودل نه بلکه تصویر هم جوړوی اوس نو هغه قباحت دوچند شو. **یک نه شد دوشد**.

لنډه داچی دتلویزون او وډیو کیسټ دتصویر متعلق به زیات نه زیات دا وویل شی چی دسائنس ترقی دفن تصویرته ترقی ورکړه په دې کښې یې زیات تیزوالې پیدا کړو اودتصویر سازی لپاره یې یوه دقیقه اوجدا طریقه ایجاد کړه مگر یاد ساتئ چی تصویر که دهر قسم ځخه وی دحضور صلی الله علیه وسلم له دې وعید ځخه خارج ندی چې: **اشد الناس عذابا یوم القیامة المصورون**.

یعنی په ورځ دقیامت به ترټولو سخت عذاب والا تصویر جوړونکی وی.

**لعن النبی صلی الله علیه وسلم ............ المصور.**

یعنی حضور صلی الله علیه وسلم په تصویرساز باندې لعنت ویلې دې.

داځوکرښې مونږ دهغو خلقو په تردید کښې ولیکلې چی دعکس بهانه نیسی او د تلویزون دلعنت دجواز لپاره دغلا دروازه خلاصوی اوکه نه نو په شروع کښې مونږ لیکلی دی چی دتلویزون حرمت اوشناعت په دې پورې موقوف ندې.

**یوه پوښتنه**: په آخر کښې له هغو خلکو ځخه چی دعکس دبیا بیا تکرارولو ځخه نه ستړی کیږی یوه پوښتنه کیږی چې که چیرته ستاسې خپلې لوڼه دتلویزون په سکرین باندې داسې رانبکاره شی او ټولې دنیا ته د دعوت نظاره وړاندی کړی نو خدای خبر چی تاسوبه په خپل زړه کښې ځومره سوچونه کوئ اوخپل ځان به مطمئن کوئ چی «دا خو یو عکس دې او وی به» او یا به

له غیرت او حمیت نه په څمکه ننوځئ

ع آنکه برخود نپسندی بردیگران مپسند

یعنی کوم شی چی دځان لپاره نه خوښوې دنورو لپاره یی مه خوښوه.

ځینی مغرب زده روشن خیال قسم خلك علماؤ باندې طعن کوی چی داحضرات قدامت پسند او تنګ نظری دی. هغوی ته نده معلومه چی تلویزون نن دمتمدنې زندګئ یو جزء لازمی ګرځیدلې دعلم او ادب اوفلسفې اوسائنس بلکه ددین دتبلیغ اونشر او اشاعت یوه بهترینه ذریعه ده. مګر علماء غواړی چی له تلویزون څخه دا دنیکئ عنصر ختم کړی او دا باطل آزاد اوبی مهاره پریږدی.

ددی جواب دادې چی دعلم او ادب او ددین له نور اشاعت څخه هیڅ مسلمان هم منع نه کوی بالخصوص علماء کرامو خو ټوله زندګی دعلم دین داشاعات لپاره وقف کړې ده.

په هغوی داتهمت لګول له حقیقت څخه مخ ګرځول دی مګر په دین کښې دتحصیل عمل څه آداب اواصول دی، تلویزون دتحصیل علم آله نده بلکه دسندرغاړو ښځو اوبی غیرته خلکو او ډولکیو زانګو ده، دګندګی په دې ډنډ کښې کیناستل اوتبلیغ کول دینی خدمت ندې بلکه له دین سره بدترینې مسخرې کول دی.

که له کوم معترض سره دانصاف اودیانت یولږ شان رڼا هم وی نو ودې ښایی چی آیا تلویزون شپه اوورځ دفلمی ایکټرانو اوزنانه فلمی ایکټرو اونیم عریان لوبغاړو لپاره وقف ندې؟ دهغوئ په هجوم کښې که دلږ ساعت لپاره که یوسرکاری مولوی یا درباری شاعراونعت خوان ته دڅه ویلو موقع ورکړل شی نو آیا دا دتلویزون تطهیر (پاکوالې) د اوکه دبیت الخلاء نه دعبادت خانې جوړولو حماقت دې؟

آیا دکوم تلویزون عاشق ویلې شی چی دتلویزون دپروګرامونو په کلونو چلیدوسره اودهغو په لیدلو سره څومره کافران ترننه پورې مشرف په اسلام شول؟ دغه شی څومره بی نمازه خلق نماز ګذار کړل؟ اوخپله د تلویزون په دغه عاشق څومره اثرشوې دې؟

**افسوس** په دنیا کښې دهر فن اوهرنهر زده کولولپاره داخلك دفن ماهرینو ته ځی اوهغوئ ته غټ غټ فیسونه ورکوی اوهرقسم نازبرداری کوی مګردین ددوئ په نظرکښې یو لایعنی کار دې په کور کښې ناست تماشه وینی او د دین حاصلول غواړی، له دې نه زیات ددین بی عزتی اوبی حیثیتی نوره څه وی؟

څوك په دې خبره نه پوهیږی چی دتلویزون په پروګرامونو کښې ددینی امورو په دغه اندازه شاملیدل صرف د ذائقی بدلولو لپاره یوه وقتی خبره ده، که کوم وخت په ملك کښې اسلامی حکومت قائم شو او هغه دتلویزون ټول اختیارات په خپل لاس کښې واخستل اوله موجوده منکراتو څخه یی پاك کړو، په تلویزون کښې دښځو تګ راتګ نه وی اودکوم ذی روح تصویر هم

پیش نکړی اودهغه ټول کارکوونکی صالح خلك وی اودا دعوامی خواهشاتو دتابع کولو په ځای په مفیدو مقاصدو کښې استعمال کړې شی داستعمال مخصوص شرائط اوحد.ود دوخت له محقق عالم سره طی کړې شی نو په داسې حال کښې به تلویزون واقعی آله دخیر وګرځی اوعلماء کرام به په هغه هیڅ اعتراض ونه کړی، مګر په موجوده حالاتو کښې دا قطعاً دشر آله ده او دهغه دماهیت د بدلیدلو آثار ترلرې لرې په نظرنه راځی.

علماء دکوم نوی ایجاد مخالف ندی، هغوئ په هرقیمت ددین تقدس برقرار ساتل غواړی په عناد او تعنت بناء دیواعتراض نامعقولیت اولغویت ظاهرولو لپاره دا مفروضه ولیکل شوه اوکه نه نو داحقیقت واضح دې چی دتلویزون تطیهر په طریقه مذکوره سره ډیر وخت غواړی، هغه هم په دې شرط چی فی الحال په تلویزون باندې مکمله پابندی ولګول شی چی دټول مملکت څخه دهغه وجود ختم کړې شی. دتلویزون په موجودګی کښې له هغه څخه فحاشی اودبی دینی هره لمحه زیاتیدونکی سیلاب او طغیان باندې بندیز لګول ناممکن دی، دتلویزون زهر دهغه دمسموم شوی معاشرې درګونو څخه دویستلولپاره څوکاله کافی ندی، بلکه د پیړیو ضرورت دې.

داخیال صحیح ندې چی که حکومت وغواړی په موجوده حالاتو کښې هم پابندی عائد کولی شی اوتطهیر یی کولی شی، ځکه چی تر څو پورې دحکومت اصلاح نه وی شوی هغه به له جهنم څخه څنګه نجات حاصل کړی؟ او دجمهوری طرز حکومت اصلاح دعواموتر اصلاح پورې موقوفه ده. له دې څخه ثابته شوه چی په موجوده حالاتو کښې دتلویزون دتطهیر مشورې اود تطهیر په صورت کښې داستعمال جوازټولی خام خیالیانی اوخوب اومحض دڅبی اودقلم دتفریح سامان دې

## دجهالت یوه نمونه

ځینی خلك وایی چی مونږ صرف په کار راتلونکی پروګرامونه ګورو، فحش او نور ناجائز پروګرامونه نه ګورو، ددوئ دامنطق تلبیس ابلیس اوفریب دنفس اوشیطان دې، مونږ چی دتلویزون کوم فسادات ولیکل دهغو په نظر کښې نیولوسره دا شیطانی آله په هیڅ حال اوپه هیڅ نیت هم کتل ندی جائز دجائز پروګرام دکتلو دعدم جواز وجوه مونږ دوباره لیکو:

**اول**: تصویر یا عکس ددې دواړو دفساداتو تفصیل مخکښې تیرشو.

**دویم**: دښځې تصویر یا عکس اونطاقه ښځه په هرحال ښځه وی.

**دریم**: دلوبو اولامبووهلو په مناظروکښې ستر ښکاره وی.

**څلورم**: دفحاشی په دغه اډه کښې دحج مناظراو نور دینی پروګرامونه پیش کول دهغو کتل ددین اسلام توهین اوډیره لویه ګمراهی بلکه خطره د ایمان ده.

**پنځم**: تلویزون لیدونکی په حد دجواز باندې نشی قائمیدلی، دانشه یو وخت نه یو وخت به یی

په حرامو کښې مبتلاء کړی او دا قاعده ده چې : «الامرالمفضی الی الحرام حرام» کوم کار چې دحرامو دمبتلاء کیدو سبب ګرځی هغه هم حرام دې.

**شپږم** : په لمانځه کښې تاخیریا دترک جماعت سبب دې.

**اووم** : صحت جسمانی اودماغي او اعصابو اونظرته نقصان رسوی.

**اتم** : بالفرض که کوم سړې دحدودو او قیودو پابندی وکړی نو دهغه له عمل څخه عوام استدلال کوی اوپه فواحشواو معاصیوکښې به مبتلاء شی چې دهغوئ ګناه اووبال به هم په دغه شخص وی چې دهغوئ دبی دینی اوفسق اوفجور سبب جوړشو.

## دتلویزون احکام

تلویزون په اوسنی حالت اوصورت کښې د ډول او باجی اوسرندې وغیره لهو لعب په شان یوه آله دلهو لعب ده، بلکه دمفاسدوپه لحاظ سره دمعاصی له نورو آلاتو نه لویه ضرررسونکې اوتباه کونکې آله ده، لهذا دهغه خرڅول او اخستل اوپه اجاره ورکول یا اخستل ، هبه کول په هبه کښې قبلول، مرمت کول له ځان سره ساتل اودهغه تصویر کتل اوښودل اوپه داسې ځای کښې کیناستل چې په هغه ځای کښې تلویزون چلیږی دا ټول کارونه حرام دی.

کوم مسلمان ته چې له دې ګناه نه دتوبې توفیق ورکړل شوې وی هغه دې دا مات اوضائع کړی البته که په دې کښې کومه پُرزه داسې وی چې دبل جائز کار په کار راځی دهغې په ایستلو کښې مضائقه نشته اوهمدارنګه که له کوم شخص نه یا کمپنئ نه یی اخستې وی دخرید په قیمت یا له هغه نه په لږ کم قیمت یی بیرته واپس کولې شی.

که څوك مسلمان دچاتلویزون مات کړی په هغه ضمان نشته مګر که دفتنې اندیښنه وی نو ماتول یی جائز ندی.

کوم خلك چې دتلویزون یا وی سی آر یا تصویرونو کاروبارکوی دهغوئ دولت اوګټه حرامه ده لهذا له هغوئ سره لین دین او دهغوئ دعوت خوړل، هدیه اخستل، غرض په کوم شکل کښې هم دهغوی له مال څخه نفع اخستل جائزندی.

چونکه تلویزون دلهو اولعب آله ده لهذا په دې کښې دحج مناظر، آذان، تلاوت حمد اونعت اونور دینی پروګرامونه نشر کول ناجائز اوقطعی حرام دی، دې ګناه ته دنیکئ په نظر کتل اندیښنه دکفرده.

کوم سړې چې ددغه مذکوره ګناهونو مرتکب وی هغه فاسق دې لهذا دهغه آذان او اقامت مکروه دې او داسې سړې په خپل اختیار امام کول جائزندی که جوړشونو فرض لمونځ ادا کول وروسته صحیح دی په دې شرط چې دامامت نورشرطونه پکښې موجود وی. تراویح اووتر وروسته

جائزندی. او دهغه شهادت مردود دي.

په داسې مخصوصوځايونو كښې چې هلته دتلويزون استعمال ضروری وی لكه حفاظتی تدابير، ايتمی تنصيبات، سائنسی مراكز د ډاكټری مهارت لپاره عملی تجربات په دورحاضر كښې، نو پداسی ځايونو كښې دضرورت په وخت بقدر ضرورت دهغې كتل جائزدی. والله هو العاصم من جميع الفتن.

محمد ابراهيم نائب مفتی دارالافتاء والارشاد ۶ذی قعده ۱۴۱۲هــ

## الحاق

## د شهوت دغلبې له وجې په خپلې مور حمله كول

يوشخص له دار الافتاء څخه دخپل ځان په باره كښې داسی استفتاء غوښتله «ماله خپلې مورسره يوفحش پروګرام كتلو، شهوت را باندې غلبه وكړه اوپه آله تناسل كښې مې انتشار پيدا شو او دشهوت په جوش كښې مې بی اختياره مور ونيوله» د وی سی آر په باره كښې خو د خپلې لورسره دبدكاری كولو واقعه مخكښې وليكل شوه.

داسی شرمناك اوحياسوز واقعات ليكل او دقلم لاندې په راوستلوله دې څخه قلم په لړزه كښې راځی مګر زړه باندې موتيګه كيښوده صرف ددې مقصد لپاره داسې واقعات شائع كيږی چې شايد دهغو خلكو لپاره د عبرت تازيانه وګرځی چې دتفريح په نوم دې بی حيايی ته په انكشاف او وده وركولو باندې مصروف دی.

ددغو حقائقو دمشاهده كولو باوجود كه داخلك خپل روش بدل نكړی نوددې باور كولو نه بغير چاره نشته چې شايد ددغو خلكو په لغت كښې د دين اوايمان، شرم اوحياء اوغيرت، روحيت الفاظ مهمل اوبی معنا وی.

ع: حميت نوم وو دهغه چې دمسلمانانو كورنيو څخه تللی.

## په سترګوليدلې عبرتناک عذاب

درمضان المبارك خبره ده چې له روژه ماتی څخه لږمخكې مور لورته وويل: راځه له ماسره دروژه ماتی لپاره په تياری كښې كومك وكړه؟ لور ورته وويل مورې زه خوبه دتلويزون پروګرام ګورم او كله چې مې هغه وكوت بيابه كار وكړم

دابی وويل اوپورته چت ته وختله په كمره كښې تلويزون اينښې وو. دې نجلۍ دمور له ډاره چې مور راباندې په زبردستۍ سره دكور كار ونكړی اوآواز راته ونكړی نو دروازه يې ددننه له طرفه په خان پسې بنده كړه. هلته مور لورته آوازونه كوی، لور يو آواز هم وانه ورېدلی، كافی وخت تېر شو

کورته ټول سړی هم راغلل روژه ماته شوه لیکن نجلۍ تراوسه له کوټې څخه نده راوتلې، مور دروازه ورته ور وټکوله خودنته له طرفه آواز رانغې په زړه کښې وډاره شوه او دهغې پلار اوورونو ته یې غږوکړ هغوئ دروازه ماته کړه اودننه داخل شول چې گوري نجلۍ په ځمکه پړمخې پرته ده چې هغه یې وکتله نو مړه شوې وه، اوس حالات داسې شو چې نجلۍ په ځمکه پورې نښتې وه په را پورته کولو نه را پورته کیدله ټولو هغه راپورته کولو خو ټول ستړي شول اوهغه را پورته نشوه کړای، اوس حیران شول چې څه وکړي، دچا په ذهن کښې ناڅاپي یوه خبره راغله چې تلویزون پورته کول پکاردي کله یې چې تلویزون پورته کړ نجلۍ هم پورته کړې شوه، اوس قصه داسې شوه چې که به تلویزون پورته کیده نو نجلۍ به هم پورته کیدله اوکه نه نو هیچاهم هغه نه شوای پورته کولی، آخر هغوئ له نجلۍ سره تلویزون هم راواخستلو اوهغه یې لاندې راکوزه کړو اوغسل اوکفن وغیره یې ورکړل، کله چې دجنازې د وړلو لپاره جنازه پورته کیده نو کټ له ځمکې سره نښتې وو بالاخره هغوئ تلویزون راپورته کړ او تر قبرستانه پورې یې ورسره یوړو اوس هغوی نجلۍ په قبر کښې دفن کړه اوتلویزون یې کورته راوړل غوښتل کله چې هغوئ تلویزون راپورته کړ نو مړې هم له قبر څخه بهر شو هغوئ بیاهغه دفن کړو مگر کله یې چې تلویزون راواخست مړې بیاله قبر څخه بهر را وغورځیده اوس ټولو خلکو ته سخته پریشانی شوه بالاخره هغوئ نجلۍ سره له تلویزون نه په قبر کښې خښه کړه.

اوس به چې دهغې نجلۍ څه حشروي پدې الله جل جلاله ښه پوهیږي

(رساله ختم نبوت جلد۷ شماره ۱۸)

## دتلویزون فضائی اثرات

د (مسلمان) ورځپاڼې دمدارس په ۵ اگست ۹۲ گڼه کښې لیکلي دي: اوپه رپوټ کښې ویل شوي دي چې کورني برقي سامان آلات مثلا دتلویزون نه چې کومې زهري مادې په شکل دگیس خارجیږي هغه په نیوکلیائي تجربه گاه کښې دبم دچاودنې څخه بعد دپیداکیدونکو اثراتو پنځه چنده زیات خطرناك دي

## په دنیا کښې لوئ عذاب

دیرشم اکتوبر کال ۱۹۹۰چې کله هر طرف دمسلمانانو قتل عام کیده او دمسلمانانو جایدادونو ته اورلگیده او دزنانوو بې حرمتي کیدله نو ۳۱ اکتوبر۹۰ زه د استخارې په نیت ویده شوم په خوب کښې یوه بزرگ تشریف راوړ ماهغه ته عرض وکړو چې (حضرت دمسلمانانو قتل عام کیږي دهغوئ مالونه په اور کښې اچول کیږي دښځوبې حرمتي یې کیږي هر طرفته مسلمانان پریشانه دي، نو هغه عمل راته وښایه چې دهغې په وجه دمسلمانانو پریشانی لرې شي؟

هغه بزرگ راته اوفرمایل : له چټونو څخه چتړئ لرې کړئ یعنی دتلویزون انتن لرې کړئ
رساله «**تلویزون کی تباه کاریان**»

## د قبر عذاب

دوه دوستان وو یوپه جده کښې اوسیده اوبل په ریاض کښې ددواړو ترمینځ کورنی اړیکې وې دواړه دیندار اوپرهیزګاره وو، درياض اوسيدونکی سره دکورنۍ غړو ضد وکړ چې کورته تلویزون راوړی، دښځی او اولاد په اصرار کولو هغه کورته تلویزون راوړ څو ورځې پس دهغه انتقال وشو د جدې اوسیدونکی هغه درې ځلی په خوب کښې ولیده او په هره مرتبه یی هغه په عذاب کښې لیده اوهغه به په درې واړه خوبونو کښې دجدې دوست ته ویل چې دخدای لپاره زما کورنۍ ته اووایه چې له کوره تلویزون اوباسی ځکه چې کله هم زه دوئ دفن کړې یم ماته دتلویزون په وجه عذاب راکول کیږی ځکه چې هغه ما اخستې وو اوپه کور کښې مې ایښې وو هغوئ له دې بی حیایی څخه مزې اخلی اوزه په عذاب کښې مبتلاء یم.

دجدې دوست دجهاز په ذریعه ریاض ته ورسیده او دهغه کورنۍ ته یی خوب اووایه اودایی هم ورته وویل چې ما دا خوب درې ځله لیدلې دې کله چې کوروالو داخبره واوریده په ژړا شول او دهغه زوی اوپه غصه کښې تلویزون پورته کړ او مات یی کړ او ټوټې ټوټې یی بهر وغورځاوه کله چې دجدې دوست بیرته خپل کورته راغې نو بیایی هغه دوست په خوب کښې ولیده چې په ښه حالت کښې دې او دهغه په مخ یوه تازګی ده اوهغه دې خپل همدرد دوست ته دعا وکړه چې الله تعالی دې تاهم له مصیبتونو نه خلاص کړی لکه څنګه چې تا زما پریشانی لرې کړه. «تیره شوې حواله»

شیخ عبدالله حمید دسعودی دسپریم کوټ «سترې محکمې» پخوانې قاضی دسعودی عرب په خپل یومضمون کښې لیکلی دی : یوجرمنی د اجتماعیاتو ماهر دمختلفو درسګاهونو او ادارو براه راست ښه مطالعه وکړه او په هغه پس یی دمعاشرې او نوی نسل دتلویزون دخطراتو ژوره جائزه واخسته او وې ویل چې اې خلکو ! تلویزون اودهغه نظام تباه کړئ ! مخکښې لدې نه چې تاسو تباه کړی.

## تلویزون په ماشومانو تباه کن اثرات مرتب کوی

په تلویزون کښې پرتشدد او دجنس متعلق پروګرامونه په ماشومانو باندې تباه کن اثرات مرتب کوی دا خبره د برطانیی وزیر صحت کړیده، دهغه وینا ده چې حکومت ته دتلویزون په نشراتو باندې کنټرول ساتل په کار دی اودې سره سره والدینوته هم په خپلو اولادونو پابندې لګول په کار دی او هغوئ ته دې یوخاص حد کیږدی، چې له هغه څخه اخواته قدم کیښږدی، هغه

ویلی دی چی والدینو ته دهغوئ ذمه داری محسوس کول پکاردی او د ماشومانو عزت کول او هغوئ ته دښو اوبدوتر مینځ تمیز ورزده کول په کار دی.

## له تلویزون نه کینسر (سرطان) جوړیږي

ډاکټر این ویګمورمشهور ژورنالست اودعیسائی مشن «دعوت» معزز رکن دې هغه په خپل کتاب (WHYSUFFER) کښې لیکلي دی: ریښتیا خو دادی چې تلویزون یو قسم ایکسری مشین دې، ډاکټر چې کله دایکسری مشین استعمالوی دهغه له خطراتو څخه دځان ژغورنی لپاره مناسب انتظام کوی لیکن په تلویزون کښې تراوسه پورې داسی انتظام نشته، دایکسری کول ډیر مهلك وی، دانسان په نازکو اندامونو باندې دهغه اثرات څنګه مرتب کیږي؟ ددې له فکر کولو نه هم جګر چوی.

هغه وړاندې لیکی چې هلکان اونجونې دتلویزون دسیټ مخی ته ناست وی اوپروګرام ګوری د امریکا په بوستن نومی ښار کښې صرف په یوه هسپتال کښې د وینې په کنسر اخته شپږ سوه هلکان اونجونې تر علاج لاندې دی.

ډاکټر ګروډ، لیکی چې: په تور اوسپین تلویزون «ساده» کښې ۱۹ کلو والټ په رنګین تلویزون کښې ۲۵کلو والټ پوری ټیوب وی په شروع کښې ۱۶۰۱۶کلووالټ لرونکې ایکسری مشین دهغه په استعمالونکې ټیکنیشن په جسمونو کښې دکینسر حشره پیدا کوی، اندازه ولګرئ چې کله ۱۶ کلووالټ دایکسری مشین کینسر پیداکوی، نوتلویزون چی۱۹ او ۲۵ کلووالټ وی نو آیا هغه به څه تباهی نه کوی. دعکس تصویر مشهور ماهر ډاکټر «آئلکروب» د امریکې دشیکاګو په هسپتال کښې دروح دوتلوپه وخت کښې په نهایت سختۍ سره ددې خبری تاکید کاوه چې (په کورونو کښې دتلویزون وجود د یو وژونکی سرطان په شان دې چې دماشومانو په جسمونو کښې په قرار او آرامه سره سرایت کوی).

شیخ عبدالله بن حمید دسعودی پخوانې قاضی القضاة د دغه ډاکټر آئلکروپ په باره کښې لیکلی دی:

ډاکټر هم دتلویزون دشعاعونه دپیداشوی کینسر په مرض مبتلاء وو. دهغه له مرګ نه مخکې دهغه نه دکینسر دجراثمو دایستلو لپاره شپږ نوی خله اپریش شوی وو مګر دهغه هیڅ فائده نه وه ځکه چې دا مرض خپلې انتهاء ته رسیدلی وو، دهغه دبازو او مخ ډیری حصې قطع شوې وې.

«تیره شوې حواله»

## فالج اوړوند والې

له دې نه علاوه له تلویزون نه نور جسمانی نقصان هم پیدا کیږی، مثلا له بعضې تجربانو څخه

انتهائی مضر اثرات اچوی . د معلومه شوي ده چې ددی نه فالج هم پیدا کیږی اودسترګو په نظر انتهائی مضر اثرات اچوی . د ډاکتر ایچ پی شوین تجربه ده چی په یوه حامله سپیئ تر دوه میاشتو پورې یی دتلویزون شعاع غورځولی له هغې وروسته دې سپیئ ځلور بچی وزیږول او دا ځلور واړه فالج وهلی وو چې په هغو کښې درې ړانده هم وو.

یوبل شخص دوه طوطیان واخستل اودهغوئ پنجره یی د تلویزون دسیټ له څنګ سره کیښود له نتیجه داشوه چی د طوطیانو پښې شلی شوی . «**تیره شوې حواله**»

## په بانک باندې دغلاحمله

په دهلی کښې په یوه بانك دغلا حمله وشوه چی په هغې کښې دغلو له ډلې څخه دځوانانو یوټولې ونیو ل شول په هغوی کښې اکثر دکوم کالج شاګردان وو دهغوئ نوجوان مشر په عدالت (محکمه) کښې بیان اقرار وکړ چی ده او دده ملګرو د (بی ایمان فلم) ولیده او داحرکت مو وکړ لیکن دبد قسمتی له وجی ونیول شو . (**رساله سینما بینی اوراسکی مهلک اثرات**)

## تلویزون اودسترګومرضونه

همدا اوس اوس دسترګو ماهر ډاکتر این این سود په نوی دهلی کښې دراجندر پرشاد اپتهك سنټر کښې درس ورکاوه اوویلی یی دی چی دسینما او تلویزون له کتلو څخه دسترګو مرض (ګلوکوما) پیدا کیږی . (**پورته حواله درهنمای دکن یکم اپریل ۱۹۸۲**ء)

## له تلویزون څخه عذاب قبر

په فیصل آباد کښې یوه سړی دماشومانو لپاره تلویزون واخسته دا سړې مړشو هغه په خوب کښې خپل ګاونډی ته وویل : هره ورځ دتلویزون پرزی ګرمیږی اوماته ورباندی عذاب راکول کیږی دخدای دپاره پرما رحم وکړئ او دا تلویزون له کوره اوباسئ؟ دتلویزون دعذاب قبر په باره کښې مخکښې هم قصې لیکل شوی دی.

## له لونوسره بدکاری

دوی سی آر دلیدلو په وجه له خپلې لور سره دبدکاری یوه قصه مخکښې تیره شوه اوس له تلویزون نه دتعلیم اخستلونه ددوو لونو سره دبدکاری قصه واورئ :

اوس څو میاشتې مخکښې داخبره په اخبارونو کښې شائع شو چی دلکونو خلکو له نظره تیره شوه چی په کراچی کښې یوه دروند صفته انسان له خپلو دوو ځوانو لونو سره خپل مخ توراو له نیول کیدو وروسته هغه ښکاره اعتراف وکړ چی هغه دفلانی فلم پروګرام ولیده نوپه دې ګناه

باندی بی جرئت وکړ

## دالله تعالی له طرفه تنبیه

ولایغرنکم الحیوۃ الدنیا ولایغرنکم باللہ الغرور.

ترجمه: تاسو دې هیڅ کله هم دنیاوی زندګی په دوکه کښې وانچوی او تاسو دې دالله جل جلاله په باره کښې شیطان خطا نکړی.

دمحسن اعظم صلی الله علیه وسلم ارشاد دې چې: **اکثروا من ذکر هاذم اللذات الموت.**

یعنی مرګ ډیر یادوئ چې دټولو لذتونو ختمونکې دې.

ع **دزمانی په رنګین کیدو تازګی پسی مه خه ای زړه**
**دا خزان دې چې د سپرلی په انــداز راغلی دې**

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

﴿وَمَا تَوْفِيْقِيْٓ إِلَّا بِاللّٰهِ عَلَيْهِ تَوَكَّلْتُ وَإِلَيْهِ أُنِيْبُ﴾

# له حلال اوحرام څخه
# دمخلوط مال حکم

**((دحضراتو فقهاء کرامو دعباراتو تنقیح او توجیه: په متعارضه عباراتو کښې تطبیق اوترجیح دمسئلې په هراړخ په تفصیل اوتحریر کښې منفرد تحقیق))**

********

******

## دحلال اوحرام مال څخه دمخلوط مال حکم

**په دې مسئله کښې دفقهاء کرامو په عباراتو کښې ډیر اختلاف موندل کیږي ددې لپاره اکابرو علماء کرامو اود ارباب فتوی اقوال اوفتاوی هم مختلف دی.**

**په دې رساله کښې:**

مکمل جزئیات او د دلائلو لیکلو سره سره دلاندې صورتونو حکم هم لیکل شوې دې.

۱- چې خلط متیقن وی، برابره خبره ده چې حلال غالب وی یا حرام.

۲- خلط مشتبه وی، حلال غالب وی.

۳- خلط مشتبه وی، حرام غالب وی

۴- دحلال اودحرام دیوه هم دغلبی علم نه وی

۵- په حلال اوحرام کښې امتیاز وی مگر دامعلوم نه وی چی دا له حلال مال څخه دې اوکه له حرام مال څخه.

۶ - دحرام مال دمصرفولو تدبیر.

## له حلال او حرام څخه مخلوط مال

**سوال:** له حلال او حرام څخه دمخلوط مال حکم په شریعت کښې څه دې؟ په اردو فتاوو کښې ددې په حکم کښې مختلف اقوال موندل کیږي . لهذا عرض دې چې تحریر ورباندې اوفرمایئ دبنده یوه لیکنه لپاره داصلاح ستاسې په خدمت کښې ده .

بسم الله الرحمن الرحیم

۱- مغصوب غیرمخلوط خالص حرام دې **وتنتقل حرمته من ذمة الى ذمة وان تداولته الایدی وتبدلت الاملاك بشرط العلم، والخبث فیه لعدم الملك.** البته کله چې مالك معلوم نه وی نو دفقیر لپاره حلال او طیب دې

**قال فی الدر: واما الخبث لعدم الملك كالغصب فیعمل فیهما (شامیه ص ۹۸ ج۵)، وكذا فی منحة الخالق بها مشول البحر (ص ۹۸ ج۹)، وفی الخانیة: وان كان غیر مختلط لایجوز للفقراء ان یاخذوا اذا علموا انه مال الغیر. (خانیة بهامش الهندیة ص۴۰۰ ج۳)**

**وفی الخلاصة: لكن من غصب غصبه ان كان لم يخلطه بدراهم اخرى. (خلاصة ص ۲۲۵ ج۱)**

**وفی حاشیة الطحطاوی علی الدر: ان علم ان العین التی یغلب علی الظن انهم اخذوها من الغیر بالظلم قائمة وباعوها فی الاسواق فانه لاینبغی شراوها منهم وان تداولته الایدی (طحطاوی علی الدر ص ۱۹۲ ج۴)**

**قلت: لاینبغی بمعنی لایحل كما هو الظاهر.**

**وفی الشامیة عن الحموی ومانقل عن بعض الحنفیة من ان الحرام لایتعدی الی ذمتین سألت عنه الشهاب ابن الشلبی فقال هو محمول علی ما اذا لم یعلم بذلك اما لو رای المكاس مثلا یاخذ من احد شیئا من المكس ثم یعطیه اخر ثم یاخذ من ذلك الاخر اخر فهو حرام اه (شامیة ص ۹۸ ج۵)**

**وفی الهندیة: وان دفع عین المغصوب من غیر خلط لم یجز (هندیة ص ۳۴۲ ج۵) وغیر ذلك من العبارات الاتیة ان شاء الله تعالی.**

۲- مال مغصوب قبل الخلط خالص حرام دې لیکن کله چې دخپل مال سره یا دغیرله مال سره خلط شو **(بحیث لایمكن التمیز)** نو خالط ددې مالك جوړشو اوهغه دده لپاره خالص حرام نشو لیکن له هغه څخه انتفاع قبل اختیار الضمان حرامه ده.

۳- په مال مخلوط باندې د خالط ملکیت خبیث د فاسدې بیعې په شان دې

۴- دمال مخلوط شراء وغیره مکروه دی .

قبل مضی زمن ينفخ فيه الروح هل يباح لها ذلك ام لا اختلفوا فيه وكان الفقيه على بن موسى يقول انه يكره فان الماء بعد ما وقع فى الرحم ماله الحياة فيكون له حكم الحياة كما فى بيضة صيد الحرم ونحوه فى الظهيرية قال ابن وهبان فاباحة الاسقاط محمولة على حالة العذر اوانها لا تأثم اثم القتل اه وبما فى الذخيرة تبين انهم ما ارادوا بالتخليق الا نفخ الروح وان قاضيخان مسبوق بما مر من التفقه والله الموفق اه كلام النهر ح (تنبيه) اخذ فى النهر من هذا ومما قدمه الشارح عن الخانية والكمال انه يجوز لها سد فم رحمها كما تفعله النساء مخالفا لما بحثه فى البحر من انه ينبغى ان يكون حراما بغير اذن الزوج قياسا على عزله بغير اذنها قلت لكن فى البزازية له منع امراته عن العزل اه نعم النظر الى فساد الزمان يفيد الجواز من الجانبين فما فى البحر مبنى على ما هو اصل المذهب وما فى النهر على ما قاله المشايخ والله الموفق (رد المحتار ص۳۸۰ ج۲)

قال فى الهندية: رجل عزل عن امراته بغير اذنها لما يخاف من الولد السوء فى هذا الزمان فظاهر جواب الكتاب ان لا يسعه وذكر هنا يسعه لسوء هذا الزمان كذا فى الكبرى. وله منع امراته من العزل كذا فى الوجيز للكردرى، وان اسقطت بعد ما استبان خلقه وجبت الغرة كذا فى فتاوى قاضيخان، العلاج لاسقاط الولد اذا استبان خلقه كالشعر والظفر ونحوهما لا يجوز وان كان غير مستبين الخلق يجوز واما فى زماننا يجوز على كل حال وعليه الفتوى كذا فى جواهر الاخلاطى، وفى اليتيمة سالت على بن احمد عن اسقاط الولد قبل ان يصور فقال اما فى الحرة فلا يجوز قولا واحدا واما فى الامة فقد اختلفوا فيه والصحيح هو المنع كذا فى التتارخانية، ولا يجوز للمرضعة دفع لبنها للتداوى ان اضر بالصبى كذا فى القنية امراة مرضعة ظهر بها حبل وانقطع لبنها وتخاف على ولدها الهلاك وليس لابى هذا الولد سعة حتى يستاجر الظئر يباح لها ان تعالج فى استنزال الدم ما دام نطفة اومضغة اوعلقة لم يخلق له عضو وخلقه لا يستبين الا بعد مائة وعشرين يوما اربعون نطفة واربعون علقة واربعون مضغة كذا فى خزانة المفتين وهكذا فى فتاوى قاضيخان والله اعلم (عالمگيرية ص۳۵۶ ج۵)

والله سبحانه وتعالى اعلم ١٠ محرم سنہ ١٤١٥ھ

* * * * * * * * *

﴿لِلَّهِ مُلْكُ السَّمَوَاتِ وَالْأَرْضِ يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ يَهَبُ لِمَنْ يَشَاءُ إِنَاثًا وَيَهَبُ لِمَن يَشَاءُ الذُّكُورَ ﴿٤٩﴾ أَوْ يُزَوِّجُهُمْ ذُكْرَانًا وَإِنَاثًا وَيَجْعَلُ مَن يَشَاءُ عَقِيمًا إِنَّهُ عَلِيمٌ قَدِيرٌ ﴿٥٠﴾﴾

بسم الله الرحمن الرحيم

قوم يخضبون بالسواد اخر الزمان كحواصل الحمام لا يريحون رائحة الجنة

«رواه النسائی وابوداؤد»

# طريق السداد

## لمُحلّ الخضاب بالسَواد

★ په يوه استفتاء کښې يوه قلمی رساله رالیږل شوې وه چی په هغې کښې دحديثو اوفقهی دنصوصو تحريف شوې وو اودخضاب بالسواد دجائز کولو کوښښ يې کړی وو

★ په دې رساله کښې دهغې جواب دې، قاعده خو داده چی له جواب سره اصل رساله تړوله يا دهغې خلاصه ليکل شوې وای مګر د د وقت د نشتوالی له وجی دهغې رسالی له نقل کولونه بغير واپس ليږل شوې ده

* * * * * * *
* * * * * *

### دخضاب بالسواد متعلق ديوې رسالی جواب:

قال: ان اباحنيفة رحمه الله تعالى الخ (ص ۲)

وقال الامام ابويوسف رحمه الله تعالى الخ (ص ۲)

وقال الامام محمد رحمه الله تعالى الخ (ص ۲)

قال فى البحر الرائق لاباس الخ (ص ۲)

ومذهبنا ان الصبغ الخ (ص ۲)

وقال فى الشامية قوله جاز الخ (ص ۲)

عن ابى ذر رضى الله تعالى الخ (ص ۳)

عن ابن عباس رضى الله تعالى عنه الخ (ص ۳)

پس مراد خضاب بمجموع حنا و كتم باشد (ص ۳)

اقول: جواب هذا العبارات باسرها بان المراد منها غير السواد الخالص من غير التفات الى تحقيق معنى

الکتم بانه یکون سوادا خالصا اولا، والی ان الواو للجمع ام بمعنی او وان الجمع بین الحناء والکتم یورث سوادا خالصاً اولا. والدلیل علی ما ادعیت من سبعة اوجه.

۱ـــ رفع التعارض بین الادلة فالممنوع منه ما یکون سوادا خالصا والمجاز غیر ذلک لتتحد معانی الاثار ولاتتضاد.

۲ـــ نقل المحشی علی ص ۸عن فتح الباری فکان اکثرهم یخضب بالصفرة منهم ابن عمر وابوهریرة واخرون رضی الله تعالی عنهم وروی مالک رحمه الله تعالی عن علی رضی الله تعالی عنه وخضب بعضهم بالحناء والکتم وبعضهم بالزعفران وخضب جماعة بالسواد.

فعلم من هذه المقابلة صراحة بان المراد من الحناء والکتم غیر السواد.

۳ـــ اختضب لاجل التزین للنساء والجواری جاز فی الاصح ویکره بالسواد (رد المحتار)

۴ـــ اما الخضاب بالسواد فمن فعل ذلک من الغزاة لیکون اهیب فی عین العدو فهو محمود منه اتفق علیه المشائخ ومن فعل ذلک لیزین نفسه للنساء ولیحبب نفسه الیهن فذلک مکروه وعلیه عامة المشائخ (الی ان قال) وعن الامام رحمه الله تعالی ان الخضاب حسن لکن بالحناء والکتم والوسمة (عالمگیریة)

۵ـــ روی الامام البخاری رحمه الله تعالی فی باب هجرة النبی صلی الله علیه وسلم واصحابه الی المدینة قدم النبی صلی الله علیه وسلم وکان اسن اصحابه ابوبکر فغلفها بالحناء والکتم حتی قنا لونها (بخاری ج۱ ص ۵۵۸)

۶ـــ فی الموطا للامام محمد رحمه الله تعالی قال محمد رحمه الله تعالی لانری بالخضاب بالوسمة والحناء والصفرة باسا وان ترک ابیض فلا باس بذلک کل ذلک حسن اه وفی التعلیق الممجد علی الموطا (قوله بالوسمة) والخضاب به صرفا لایکون سوادا خالصا بل مائلا الی الخضرة وکذا اذا خلط بالحناء وخضب به نعم لو خضب الشعر اولاً بالحناء صرفا ثم بالوسمة علیه یحصل السواد الخالص فیکون ممنوعا کما سیاتی ذکره (وبعد اسطر علی قوله لانری) واما الخضاب بالسواد الخالص فغیر جائز لما اخرجه ابوداود والنسائی وابن حبان والحاکم وقال صحیح الاسناد عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما مرفوعا یکون قوم یخضبون فی اخر الزمان بالسواد کحواصل الحمام لایریحون رائحة الجنة وجنح ابن الجوزی فی العلل المتناهیة الی تضعیفه مستندا بما روی ان سعدا والحسین بن علی رضی الله تعالی عنهم کانا یخضبان بالسواد ولیس بجید فلعله لم یبلغهما الحدیث والکلام فی بعض رواته لیس بحیث یخرجه عن حیز الاحتجاج ومن ثم عد ابن حجر المکی فی الزواجر الخضاب بالسواد من

الكبائر ويؤيده ما اخرجه الطبراني عن ابي الدرداء رضي الله تعالى عنه مرفوعاً من خضب بالسواد سود الله وجهه يوم القيامة وعند احمد رحمه الله تعالى غيروا الشيب ولا تقربوا السواد واما ما في سنن ابن ماجة مرفوعاً ان ما اختضبتم به هذا السواد رغب لنسائكم واهيب لكم في صدور اعدائكم ففي سنده ضعفاء فلا يعارض الروايات الصحيحة واخذ منه بعض الفقهاء جوازه في الجهاد اهـ

۷ــ روى الامام البخاري رحمه الله تعالى في مناقب الحسن والحسين رضي الله تعالى عنهما عن انس بن مالك رضي الله تعالى عنه وكان (الحسين رضي الله تعالى عنه) مخضوباً بالوسمة. قال المحدث السهارنفوري رحمه الله تعالى في الحاشية ظاهره وان كان معارضاً لقوله عليه السلام جنبوه السواد لكن المعنى كان مخضوباً بالوسمة الخاصة والخضب بها وحدها لا يسود الشعر فاندفع التعارض بينهما لان المنهي عنه هو السواد البحت او كون السواد غالباً لا بالعكس ومنشأ الشريعة بنهيه ان لا يلتبس الشيب بالشباب والشيخ بالشاب على ان الحسين رضي الله تعالى عنه كان غازياً شهيداً فالخضاب بالسواد جائز في الجهاد (صحيح البخاري ج۱ص۵۳۰)

فافادت عبارة التعليق الممجد وحاشية صحيح البخاري اموراً.

۱ــ ما يروى من فعل الحسين رضي الله تعالى عنه فليس في رواية البخاري التصريح بالسواد.

۲ــ فالرواية المصرحة بالسواد ثبتت فهي مؤولة بالشبه بالسواد عزاه الى اللمعات في حاشية ابي داود باب الخضاب (ص۲۲۶ ج۲)

۳ــ لم يبلغ الحسين رضي الله تعالى عنه حديث النهي عن السواد.

۴ــ كان الحسين رضي الله تعالى عنه غازياً.

تلك سبع شداد على ان المراد من الحناء والكتم الذي ابيح استعماله غير السواد.

قال: والممنوع من الخضاب هو ما يكون لونه كحواصل الحمام الخ (ص۴)

اقول: ان المراد من الحديث هو السواد الخالص لا لون الحواصل بعينه لانه لا وجه لكونه منهياً عنه ووجه النهي عن السواد الخالص معقول.

قال: لان الوعيد صادق على قوم يظهر في اخر الزمان يخضبون بالسواد الخالص فعلم ان مراده صلى الله عليه وسلم هو السواد لا لون الحواصل بعينه.

اقوال الصحابة رضي الله تعالى عنهم (ص۹)

اقول: لا يقتدى بأقوالهم فى مقابلة الاحاديث الصحيحة كما لا نقتدى بأقوال جماعة من الصحابة رضى الله تعالى عنهم التى تقول بوجوب قراءة الفاتحة خلف الامام والحال انا قائلون بتحريمها على ان خصم مفتر فمة فلعله لايستطيع ان يتعدى قوله الى التحريم ثم غفور. وهذا بعد تسليم صحة نقل المفتى فانى لم اتتبع الكتب المنقول عنها.

قال: على اولوا الالباب (ص ١٠)

اقول: الصحيح على اولى الالباب.

قال: قد ورد فى الحديث الخ (ص ١٠)

اقول: قال ابو الحجاج كل ما تفرد به ابن ماجة فهو ضعيف لايراده طائفة من الاحاديث الموضوعة ولذا اخرجه الشاه ولى الله رحمه الله تعالى من فهرس الصحاح. والحديث ضعيف جدا لان ثقاعاً السدوسى ضعيف (التقريب) وايضا فى اسناده عبد الحميد الصيفى وهو لين الحديث (الحاج)

قال: على النهى ........ فلما صار النهى الخ (ص ١١)

اقول: فيا للعجب لعلم المفتى والادب بأن وضع لفظ النهى موضع الاباحة فلعلهما مترادفان عنده.

قال: لايدل على الكراهة التحريمية الخ (ص ١٣)

اقول: ان المتبادر من الكراهة التحريمية الا عند القرائن الدالة على التنزيه فالمستثنى منه الكراهة التحريمية والمستثنى عنه الكراهة التحريمية ولذا يذكر حد الكراهة التحريمية فى تعريف مطلق الكراهة كما قال فى الهداية تكلموا فى معنى المكروه والمروى عن محمد رحمه الله تعالى نصا ان كل مكروه حرام الا انه لما لم يجد فيه نصا قاطعا لم يطلق عليه اسم الحرام وعن ابى حنيفة وابى يوسف رحمهما الله تعالى انه الى الحرام اقرب وفى الشامية احدهما كره تحريما وهو المحمل عند اطلاقهم الكراهة الخ.

على ان الاحاديث الصحيحة وعبارات الفقه مصرحة بالمنع والتحريم بدون ذكر لفظ الكراهة كما ورد فى الحديث الصحيح عن جابر رضى الله تعالى عنه قال جيئ بأبى قحافة يوم الفتح الى النبى صلى الله عليه وسلم وكان راسه ثغامة فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم اذهبوا به الى بعض نسائه فلتغيره وجنبوه السواد (رواه ابن ماجة) وهذا الحديث صحيح (رواه مسلم) ومذهب الجمهور المنع (الحاج) واعرابن عابدين عبارات التحريم يدل على اعتباره اياه كما قال فى الشامية فى بحث الخضاب تحت (قوله وابو يوسف خضبهم) الخ ذكر وجه ابى يوسف رحمه الله تعالى لافادة اعتباره الخ (رد المحتار) فالظاهر ان المفتى جار عن الحق الباهر تعسفا وما سلك

فی الاستدلال مسلك الديانة فاورد الضعاف وحر الكلم عن مواضعها واورد قطع العبارات الناقصة على طريقه ان تذكر قوله تعالى لاتقربوا الصلوة وتترك وانتم سكارى.

والحاصل ان العبارات الدالة على التحريم من الفقه والحديث كثيرة يتعسر احصائها والاغماض عنها تعسف وتجاهل على انه ان سلمنا التعارض فالترجيح للمحرم. والحق انه لامعارضة بين الحديث الضعيف الساقط عن حد الاعتبار والصحاح، وبين قول شرذمة قليلة مذهب الجمهور من المحققين.

قال: اولا الخ (ص١٥)

اقول: قد اشتهر فی الافاق اطلاق اسم المصنف على المصنف فكيف جهل عنه المفتی الاديب فمن هذا القبيل الجامی وعبد الرسول وعبد الغفور و الملا عبد الرحمن والملا جمال فی النحو. والزواهد الثلاثة فی المنطق واشتهر لواء الهدى فی الليل والدجى باسم مصنفه غلام يحيى ويطلق لفظ ابن عابدين على رد المحتار فی بلاد العرب وفی بلادنا يقال له الشامی كما ارتكبه المفتی ايضا على ص ٢ وص٢٣ فالعجب انه كيف يعترض بما يرتكب وكذا اكرثاء وذوسيوس واكربطليموس فی الرياضی وكذا عبد الحكيم وغيرها من اسماء الكتب مما لاتحصى وكتب الحديث كلها معروفة باسماء مصنفيها.

قال: والثانی الخ (ص١٧)

اقول: فای منقلب ينقلب المفتی الفاضل الاديب فی عبارات الفقهاء التی فيها اضافة الكراهة الى التحريم كما قال فی الفتح ثم ان هذا حد المكروه كراهة تحريم واما كراهة المكروه كراهة تنزيه فالى الحل اقرب.

فقط والله الهادی الی سبيل الرشاد ٢٣ رمضان سنه ٧٢ هجری

## ضميمه

دحضرت مفتی محمد ابراهيم صاحب صادق آبادی له طرفه

## د تور حضاب لګوونکې به دجنت خوشبويی هم محسوسه نکړی

عن ابی هريرة رضی الله تعالى عنه عن النبی صلی الله عليه وسلم قال ان العبد اذا اذنب ذنبا كانت نكتة سوداء فی قلبه فان تاب منها صقل قلبه وان زاد زادت فذلك قول الله تعالى: كلا بل ران على قلوبهم ما كانوا يكسبون (احمد، ترمذی، نسائی)

ترجمه: دحضور اكرم ارشاد دی: كله چی بنده دكومې ګناه ارتكاب وكړی نو دهغه په زړه باندې يو وړوكې تور خال ولګيږی. له هغه وروسته كه هغه توبه وباسی (نو هغه تور والی ختم شی، زړه ی

صفا اوشفاف وګرځي، لیکن که په ځای دتوبې نورګناهونه وکړي نو دا توروالې نورهم ډیر شي حتی چې ټول زړه تك تور شي ، داهغه زنګ دی چې الله تعالی دهغې ذکر په دې آیت کښې کړې دې

چې ﴿كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَى قُلُوبِهِم مَّا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿١٤﴾﴾ .

که ددې ارشاد نبوی (صلی الله علیه وسلم) په نظرکښې نیولو سره مونږ دخپلې شاوخوا جائزه واخلو نو دا حقیقت به ښکاره مخی ته راشي چې زمونږ په معاشره کښې دکومو ګناهونو هرطرف ته دوران دې، په دې کښې زیاتره هغه ګناهونه دی چې دهغو دعام کیدلو په وجه نه صرف دګناهونو له فهرست څخه ویستل شوی بلکه هغه دفیشن اوترقی نښانې جوړې شوی دی .

لږ فکر وکړئ ! څومره مسلمانان دی چې په تصویر سازی، ساز اوموسیقی اوسینما کتلو ، ږیره خریلو یالنډولو په لعنت، دبی پردګی ، نسوانی قیادت ، غیر شرعی لباس او د اغیاروپه طرز او طریقو کښې بوخت دی .

خضاب بالسواد یعنی په تور خضاب (نکریزو) خپله سپینه ږیرتوب پټول ددغوګناهونو د فهرست په سرکښې دی اوله بله پلوه زیات سخته داخبره ده په دې عامو ګناهونو کښې د مبتلاء خلکو اکثریت بی دینه او له آخرت څخه بیزار خلك وی، لیکن ددغې ګناه ښکار صرف بی دینه خلك نه دی بلکه دیندار اودږیرو والا بزرګان اوپیران اوفقیران هم دی کومو خلکو چې اسلامی شعار له بیخه اوبنیاده ایستلې دې دهغو له خضاب اونکریزو سره څه واسطه ؟ هغوئ خو له مردانه شکل اوصورت څخه هم خان خلاص کړې دې .

## په تورخضاب باندې وعیدونه

تورخضاب استعمالول که په ږیره کښې وی یا په سر کښې وی حرام دی لکه څنګه چې دسپینو ویښتانو دتبدیلی لپاره دحناء (نکریزو) یا دکتم (وسمې) ترغیب ورکړل شوې دې اودخالص توررنګ په استعمال ډیر سخت وعیدونه راغلی دی. دا لاندې احادیث ملاحظه کړئ.

۱ــ عن ابی ذر رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان احسن ما غیر به هذا الشیب الحناء والکتم (سنن اربعة)

ترجمه : حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمایلی دې چې : بهترین رنګ چې دسپینو ویښتانو سپینوالی ورباندې بدل کړې شی هغه نکریزی اووسمه دی .

۲ــ عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم یکون قوم فی اخر الزمان یخضبون بهذا السواد کحواصل الحمام لا یریحون رائحة الجنة (ابوداود، نسائی، احمد، ابن حبان)

ترجمه د حضورصلی الله علیه وسلم ارشاد دې : په آخره زمانه کښې به څه خلك راشی چې

دکوترو دججورو په شان تور رنګ باندې به یې خضاب کړی وی، دوئ به له جنت څخه دومره لرې وی چې دجنت بوی به هم ورباندی نه لګیږی.

۳ــ عن جابر بن عبدالله رضی الله تعالی عنهما قال اتی بابی قحافة رضی الله تعالی عنه یوم فتح مکة وراسه ولحیته کالثغامة بیاضا فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم غیروا هذا بشیء واجتنبوا السواد (مسلم، ابوداود نسائی، احمد، ابن ماجه)

ترجمه: جابر بن عبدالله رضی الله عنه فرمائی چې ابوقحافه رضی الله تعالی عنه دمکې دفتحې په ورځ دنبی کریم صلی الله علیه وسلم خدمت ته راوستل شو، دهغه دسرا وږیرې ویښته دثغامه بوتی په شان تك سپین وو، نو حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائلو چې دده سپینوالې په څه شی سره بدل کړئ، لیکن له تور رنګ څخه ځان وساتئ، دمطلب دوضاحت لپاره دا ارشادات کافی اووافی دې لیکن یوڅونورروایات هم پیش کولې شی چې دسند په لحاظ سره دومره قوی نه دی، مګر دتائید اوتقویت لپاره وراندې کولې شی.

۱ــ عن عامر رحمه الله تعالی مرسلا ان الله لاینظر الی من یخضب بالسواد یوم القیامة (کنزل العمال ص۶۷۱ ج۶)

له عامر رحمه الله نه روایت دې چې توررنګ خضاب استعمالونکی ته به په ورځ دقیامت الله تعالی درحمت په نظر نه ګوری.

۲. عن ابی الدرداء رضی الله تعالی عنه مرفوعا من خضب بالسواد سود الله وجهه یوم القیامة رواه الطبرانی وابن ابی عاصم (کنزل العمال ص۶۷۱ ج۶ جمع الوسائل ص۱۲۵ ج۱، وجز المسالك ص۳۳۵ ج۶)

څوك چې تور خضاب لګوی په ورځ دقیامت به الله تعالی دهغه مخ تور کړی.

۳ــ من مثل بالشعر لیس له عندالله خلاق (طبرانی)

قال فی النهایة مثلة الشعر حلقه من الخدود وقیل نتفه او تغییره بسواد. (ص۲۹۴ ج۴)

چاچې ویښتان مثله (خراب) کړل دالله په نزد به دهغه هیڅ حصه (درحمت) نه وی، دابن اثیر په نهایه کښې دی چې دمثلې نه مراد له رخسار څخه دویښتانو قطع کول دی اودځینی علماؤقول دې چې مراد سپین ویښتان ویستل یا هغوته توررنګ ورکول دی.

۴ــ عن انس رضی الله تعالی عنه اول من اختضب بالحناء والکتم ابراهیم خلیل الرحمن واول من اختضب بالسواد فرعون (فردوس دیلمی، السراج المنیر، کنزل العمال، اوجز المسالك، کشف الخفاء للعجلونی)

ترټولو له مخه حضرت ابراهیم علیه السلام نکریزی اووسمه استعمال کړی دی اوتر ټولو دمخه تورخضاب فرعون لګولی دی.

## د څلور واړه مذهبونو اجماع

دتور خضاب په حرمت دڅلورواړو مذهبونو اجماع ده، د مثال په توگه له هر مذهب نه په یوه یوه قول وراندې کولو اکتفاء کولې شی.

**احناف**: علامه علاء الدین حصکفی رحمه الله تعالی فرمایی: **یستحب للرجل خضاب شعره ولحیته (الی قوله ویکره بالسواد**

ترجمه: دسړی لپاره دسراوگیری خضاب کول مستحب دی مگر په تور رنگ خضاب کول مکروه تحریمی دی.

او علامه شامی دهغه نه لاندی فرمائی:

**(قوله ویکره بالسواد) ای لغیر الحرب قال فی الذخیرة: اما الخضاب بالسواد للغزو لیکون اهیب للعدو فهو محمود بالاتفاق وان یزین نفسه للنساء فمکروه وعلیه عامة المشائخ (ردالمحتار ص۴۲۲ ج۶)**

له جهاد نه ماسوا دبل کوم مقصد لپاره تور خضاب استعمالول مکروه دی په ذخیره کښې یی لیکلی دی چی په دښمن د رعب اچولو لپاره په دوران دجهاد کښې تورخضاب استعمالول بالاتفاق محمود اومستحسن دی، دمیره دخپلی ښځی لپاره دتور رنگ استعمال مکروه دې دعامو مشائخو همدامذهب دې.

علاوه له دې څخه په عالمگیری ج ۵ ص ۳۵۹، ددی په حاشیه کښې قاضیخان ص۴۱۲ ج۳ بزازیه ج۶ ص ۳۷۷ الجوهرة النیره ص۳۶۱ ج۲ اونورو فتاوی وو کښې دامسئله په همدې تفصیل سره موجوده ده.

**تنبیه**: دفقهې په کتابونو کښې چی چیرته لفظ دمکروه مطلق ذکر شی له هغه څخه مکروه تحریمی مراد وی چی دحرامو یوقسم اوپه گناه کښې هم دحرامو برابر اوپه عذاب کښې هم دحرامو برابر دې، تفصیل یی را روان دې:

**مالکیان**: د مالکیانو په کتابونو کښې دسر سری خیرنې کولونه څه تصریح په لاس رانغله البته شارح دموطاء حضرت شیخ الحدیث مولانا زکریا صاحب قدس سره لیکلی دی: **وفی المحلی: یکره عند مالک صبغ الشعر بالسواد من غیر تحریم. (اوجز المسالک ص۲۵ ج۱۵)**

په محلی کښې دی چې: دامام مالك په نزد سپینو ویښتانو ته تور رنگ ورکول مکروه دی اوحرام ندی.

داوضاحت مخکې وشو چی دمکروه نه مکروه تحریمی مراد دی، چی دهغې گناه اوعذاب له حرامو نه کم ندی.

مشهور اهل حدیث عالم علامه محمد بن علی الشوکانی دحضرت جابر دمذکوره روایت لاندی لیکلی دی.

**والحدیث یدل علی مشروعیة تغییر الشیب وانه غیر مختص باللحیة وعلی کراهة الخضاب بالسواد قال بذلك جماعة من العلماء قال النووی: والصحیح بل الصواب انه حرام ومعنی الخضاب بالسواد وممن صرح به صاحب الحاوی انتهی (نیل الاوطار ص۱۴۰ ج۱)**

حدیث پدې دلالت کوی چی دسپینو ویښتانو بدلول مشروع دی او دا چی داحکم تر ږیرې پوری خاص ندې همدارنگه داحدیث په کراهیت دتوررنگ دلالت کوی دعلماء یوجماعت داقول بیان کړې دې، امام نووی فرمایی چی صحیح او روغه خبره داده چی دتور رنگ خضاب حرام دی اوصاحب دحاوی هم په دې تصریح کړیده.

**شوافع**: امام محی الدین ابوذکریا شافعی رحمه الله تعالی فرمایی: **ومذهبنا استحباب خضاب الشیب للرجل والمراة بصفرة اوحمرة ویحرم خضابه بالسواد علی الاصح وقیل یکره کراهة تنزیه والمختار التحریم لقوله صلی الله علیه وسلم واجتنبوا السواد (شرح مسلم ص۱۹۹ ج۲)**

زمونږ دعلماؤ (شوافعو) مذهب دادې چی دسړی اوښځې لپاره په سپینو ویښتانو زیړ یا سور رنگ لگول مستحب دی او دصحیح ترین قول مطابق د تور رنگ خضاب حرام دی، اویو ضعیف قول دکراهیت تنزیهی هم دې مگر قول مختار دحرمت دې ځکه چی دحضور صلی الله علیه وسلم ارشاد دی چې: **واجتنبوا السواد**

**حنابله**: امام موفق الدین ابن قدامه حنبلی رحمه الله تعالی فرمائی: **ویکره الخضاب بالسواد قیل لابی عبدالله: تکره الخضاب بالسواد؟ قال ای والله، قال: وجاء ابوبکر بابیه الی رسول الله صلی الله علیه وسلم وراسه ولحیته کالثغامة بیاضا فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم: غیروهما وجنبوه السواد (المغنی ص۶۹ ج۱)**

توررنگ خضاب مکروه دی له امام احمد بن حنبل رحمه الله تعالی ځخه پوښتنه وشوه چی آیا تاسو توررنگ خضاب مکروه گڼی؟ هغه اوفرمایل چې: هو! په الله جل جلاله قسم: حضرت ابوبکر رضی الله عنه خپل والد درسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کښې حاضر کړ و په داسی حال کښې چی دهغه سراو ږیره دثغامه وښو په شان سپین وو نورسول الله صلی الله علیه وسلم اوفرمایل چې: دده دسر اوږیرې سپین والې تبدیل کړئ مگر له توررنگ ځخه لری اوسیږئ

## داکابرو (مشرانو علماؤ) فتواگانې

اوس مونږ دمتاخرینو اکابروفتواگانی په تفصیل سره ذکر کوو

۱. علامه عبدالحی لکهنوی رحمه الله تعالی فرمایی: (خضاب کردن برنگ سیاه خالص ممنوع وگناه کبیره است)

ابن حجر مکی رحمه الله تعالی فرمائی : (در زواجر این را درکبائرشمرده است ازین وجه که درحدیث وارد است) یکون فی اخر الزمان قوم یخضبون بالسواد کحواصل الحمام لایجدون رائحة الجنة رواه ابوداود والنسائی (الی قوله) وطبرانی رحمه الله تعالی روایت کرده است من خضب بالسواد سود الله وجهه یوم القیامة (الی قوله) وملاعلی قاری رحمه الله تعالی درشرح شمائل ترمذی رحمه الله تعالی می نویسد ذهب اکثر العلماء الی کراهة الخضاب بالسواد وجنح النووی الی انها کراهة تحریم وان من العلماء من رخص فیه للجهاد ولم یرخص فیه لغیره انتهی (مجموعة الفتاوی علی هامش خلاصة الفتاوی ص۳۵۰ ج۴)

په خالص توررنګ باندې خضاب ممنوع اوګناه کبیره ده، امام ابن حجر مکی رحمه الله په زواجر کښې داپه ګناه کبیره کښې شمارکړیده ځکه چی په حدیث کښې راغلی دی چې په آخره زمانه کښې به څه خلك راشی چی دکونترې دججورې په شان به یی په توررنګ خضاب کړی وی هغوئ به دجنت خوشبوی نه مومی . رواه ابوداود والنسائی.

اوامام طبرانی روایت کړې دې : چاچی تور خضاب ولګول دهغه مخ به الله تعالی په ورځ دقیامت تورکړی.

اوملاعلی قاری په شرح شمائل کښې فرمائی: اکثرعلماؤ تور خضاب ته مکروه ویلی دی.

دامام نووی میلان دې طرفته دې چی مکروه تحریمی دی، ځینی علماء صرف دجهاد په موقع تورخضاب ته اجازه ورکړیده ددې نه علاوه دبل کوم مقصد لپاره یی اجازه نده ورکړې.

۲. فقیه النفس حضرت مولنا رشیداحمد صاحب ګنګوهی قدس سره لیکلی دی : ویښتان خضاب کول بغیر له توروالی نه نور په هر قسم صحیح دی، فتاوی رشیدیه ، مطبوعه اداره اسلامیات لاهور ص ۴۸۲

تورخضاب دسرولپاره درست ندی ، فتاوی رشیدیه ص ۴۸۹

۳. دحضرت حکیم الامت تهانوی قدس سره فتوی :

**سوال**: څه فرمایی علماء کرام په دې مسئله کښې چی دسریو لپاره سراو ږیره باندې تورخضاب لګول دشرع شریف له نظره جائزدی یا مکروه یا حرام ؟

**الجواب**: حرام دی ځکه چی کلیًا اوجزئیًا وعید راغلې، کما روی مسلم رحمه الله تعالی عن جابر رضی الله تعالی عنه قال اتی النبی صلی الله علیه وسلم بابی قحافة رضی الله تعالی عنه یوم فتح مکة وراسه

ولحيته كالثغامة بياضا فقال النبي صلى الله عليه وسلم غيروا هذا بشئ واجتنبوا السواد. والامر للوجوب وترك الواجب يوجب الوعيد (امداد الفتاوى ص ۲۱۸ ج ۴)

همدارنګه حکيم الامت قدس سره ددې په عدم جوازيوه مستقله رساله په نوم دالقول السداد في الخضاب بالسواد ليکلې ده ، هغه ملاحظه کړئ، امداد الفتاوى ص ۲۱۸ ج ۴

۴. حضرت مولانا شاه انور شاه کشميرى رحمه الله فرمايي : وفي الحديث النهي الشديد عن الخضاب الاسود الذي لايتميز به بين الشيخ والشاب (الى قوله) والوسمة اذا لم تكن اسود اشد السواد ويتميز بين الشيخ والشاب جائزة كما في موطا محمد رحمه الله تعالى (العرف الشذي على الترمذي ص ۱۰۵ ج ۱)

اوپه حديث کښې له داسې تور خضاب څخه سخت ممانعت دې چې دهغې په استعمال سره دسپين ږيرى اوځوان فرق نه کيږي، وسمه که ډيره توره نه وي اوله هغې څخه دسپين ږيرى اوځوان په منځ کښې فرق کيږي نودهغې استعمال جائزدې لکه چې په موطا دامام محمد رحمه الله کښې دي

۵. حضرت مولانا خليل احمد صاحب سهارنپورى قدس سره فرمائي : وفي الحديث تهديد شديد في خضاب الشعر بالسواد وهو مكروه كراهة تحريم. (بذل المجهود ص ۸۲ ج ۶)

په دې حديث کښې په تورخضاب سخت وعيدراغلې دې اودهغې استعمال مکروه تحريمي دې

۶. ددارالعلوم ديوبند دمفتي حضرت مولنا عزيز الرحمن صاحب قدس سره فتوى :

**سوال**: کوم سړې چې خضاب لګوى اوويښته تورساتي آيا په هغه پسې لمونځ کيږي اوکه نه؟

**الجواب**: مکروه دى، فتاوى دارالعلوم ديوبند ص ۱۸ ج ۳

۷. د مفتي اعظم هند حضرت مفتي کفايت الله صاحب فتوى :

دتوررنګ خضاب يى دمجاهدينو لپاره محمود اومستحسن فرمايلى دى مګر په قصدد زينت خالص توررنګ خضاب ته يى مکروه ويلى دى، کفايت المفتي ص ۱۷۲ ج ۹

۸ . شيخ الحديث حضرت مولانا زکريا صاحب قدس سره په اوجزالمسالك ص ج کښې په کراهت دخضاب بالسواد باندې مفصل دلائل فرمايلى دى فليراجع.

۹. دسيدى ومرشدى قبله حضرت مفتي رشيد احمد صاحب لدهيانوى دام مجدهم فتوى:

**سوال**: کوم حافظ صاحب چې ږيرې ته خضاب ورکوى آيا هغه د تراويح لمونځ ورکولې شي؟ بينوتوجرو

**الجواب باسم ملهم الصواب**: تورخضاب لګونکې فاسق دې لهذا دداسې امام په اقتداء کښې تراويح کول مکروه تحريمي دى که صالح امام نه پيداکيږي نو تراويح دې تنها وکړل شي ، احسن الفتوى ص ۲۹۴ ج ۳.

۱۰. دحضرت مفتی عبدالرحیم لاجپوری زاد مجدهم فتوی:

**سوال**: که دسر ویښته په خوائې کښې سپین شی نو خضاب لګول څنګه دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب**: تور خضاب لګول سخته ګناه ده په احادیثو کښې په هغې وعید راغلې دی. فتاوی رحمیه صـ ۲۹ جـ ۶

اوس مونږ د جواز ورکونکو ددلائلو جائزه اخلو:

دمجوزینو دلائل:

۱. دتورخضاب دمجوزینو د دلائلو سرفهرست دسنن ابن ماجه دا روایت دې: **ان احسن ما اختضبتم به لهذا السواد ارغب لنساء کم فیکم واهیب لکم فی صدور عدوکم.**

**الجواب**: دا روایت دسند په لحاظ سره ضعیف دې ددې بالمقابل خضاب بالسواد دحرمت په باره کښې چی کوم احادیث وړاندې کړی شول هغه صحیح، مسلم او دسنن ابی داود نسائی وغیرهم روایات دی چی روایتًا اودرایتًا له هره اړخه قوی اوراجح دی.

دابن ماجه محشی حضرت شیخ عبدالغنی مجددی رحمه الله تعالی فرمائی:

**ان احسن ما اختضبتم به لهذا السواد هذا مخالف لروایة جابر السابقة وهو صحیح اخرجه مسلم (الی قوله) وهذا الحدیث ضعیف لان دفاع السدوسی ضعیف وفی التقریب وعبدالحمید بن صفیی لین الحدیث ومذهب الجمهور المنع. (حاشیة سنن ابن ماجة صـ ۲۵۸)**

حضرت مولانا عبدالحی ددې روایت متعلق فرمائی: **ففی سنده ضعفاء فلا یعارض الروایات الصحیحة (التعلیق الممجد صـ ۳۹۲)**

۲. دځینی صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم عمل دې چی هغوی تورخضاب استعمال کړی دی

**جواب**: دحرمت اوممانعت احادیث قولی دی چی داصول حدیث له نظره په فعلی روایاتو باندې ترجیح لری، همدارنګه دا قولی روایات مرفوع احادیث دی اوفعلی روایات موقوف دی. بیا دسند په لحاظ هم دنهی روایات قوی دی، او د اباحت روایات ضعیف یاموقوف دی.

پس له هرې خوا دنهی اوحرمت روایات قوی اوراجح دی.

له کومو صحابه کرامو څخه چی خضاب بالسواد منقول دی ممکنه ده چی همدغو حضراتو ته دنهی روایات نه وی رسیدلی، لدې وجی نه هغوئ معذور ګڼل کیږی.

یا خوبه دغوحضراتو خضاب بالسواد دجهاد دضرورت له وجی کړې وی اودا خبره قیاس ته هم نژدې ده ځکه چی دا حضرات هروخت له دښمن سره په مقابله کښې وو، همدارنګه دا احتمال هم شته چی مراد د تورخضاب نه توروالی ته مائل مراد وی چی له هغې څخه بیا دشیخ اوشاب تمیز

مشکل نه وی، توروالی ته مائل هم عموماً په تور سره تعبیر کیږی.

۳- فقهاء کرامو تورخضاب صرف مکروه گڼلی اودمکروه ارتکاب کوم داسې جرم ندی چی په هغې دومره نکیر وکړل شی.

**الجواب**: په احادیثو کښې دهغې صفا صفا ممانعت راغلې دې اودهغې په مرتکب باندې شدید وعید راغلی دی کمااسلفناحضرات فقهاء کرامو هم حرام گناه کبیره یاداسی نورالفاظ استعمال کړی دی البته ځینی حضراتو فقط مکروه لیکلی دی چی له هغې څخه مراد مکروه تحریمی دی.

**قال فی البحر: والمکروه فی هذا الباب نوعان احدهما: مایکره تحریما وهو المحمل عند اطلاقهم کما فی زکوة الفتح (ردالمحتار ص۶۳۹ ج۱)**

اودمکروه تحریمی درجه حرام یا هغې ته نزدې ده، چنانچه په هدایه کښې دی:

**تکلموا فی معنی المکروه والمروی عن محمد رحمه الله تعالی: نصاً ان کل مکروه حرام الا انه لما لم یجد فیه نصاً قاطعاً لم یطلق علیه لفظ الحرام وعن ابی حنیفة وابی یوسف رحمهما الله تعالی انه الی الحرام اقرب (هدایة ص۴۵۲ ج۴)**

اودمکروه په حقیقت کښې فقهاء کرامو کلام کړې دې له حضرت امام محمد څخه روایت دې چی هرمکروه حرام دې لیکن چونکه ددې په حرمت دلیل قطعی پیدانشو لدې وجی په هغې دحرامو اطلاق نه کیږی اوله حضرت امام ابوحنیفه او امام ابویوسف رحمهما الله څخه روایت دې چی مکروه حراموته نزدې تردې یعنی ډیرقریب دې، عوام دمکروه پروا نه ساتی او دا معمولی جرم بولی، حالانکه فقهاء کرامو عموما په حرامواو ناجائزکارونو باندې دمکروه اطلاق کړې دې، ددې یومثال ملاحظه کړئ امام مرغینانی رحمه الله فرمائی: **ویکره اکل الضبع والضب والسلحفاة والزنبور والحشرات کلها (هدایة ص۴۴۱ ج۴)**

د «یگی» او «سمسری» او «کشب» اونورو حشراتو خوړل مکروه دی، آیا کوم سلیم الطبع مسلمان د «یگی» او «مار» او «لړم» اونوروحشراتو او درندگانو خوراك صرف مکروه گڼلو سره دهغو دخوراك تصور کولې شی.

مختصر دا چی دمکروه په پرده کښې دکوم حرام ارتکاب اوپه هغې مسلسل اصرار له کوم علمی دلیل څخه ماخوذ ندی بلکه د اصطلاحات علمیه نه دبی خبرئ ثبوت پیش کول دی، اوپه خپل جرم کښې لا دروند والې دوه چنده کول دی.

۴- حضرت امام ابویوسف دخوانې ښځې ددلجوئی «زړه خوشحاله کولو» لپاره تور خضاب جائز گرځولی دی، چنانچه په فتاوی عالمگیریه اوشامیه وغیره کښې هغه ته منصوب داقول لیکل شوې دې. **کما یعجبنی ان تتزین لی یعجبها ان اتزین لها.**

**الجواب**: ددې متعلق حضرت تهانوی قدس سره لیکلی دی چې بعضې خلك دامام ابویوسف روایت پیش کوی، په شرط دثبوت ددې روایت اودهغه درجوع نه کولو په صورت کښې جواب دادې چې په رسم المفتی کښې داخبره لیکل شو ده چې که د صاحبینو په خپل مینځ کښې اختلاف وی نو له کوم یوه سره چې امام اعظم ملګرې وی دهغه په قول به فتوی وی، خصوصا کله چې داقوا دصریحو اوصحیحو دلائلو مؤید وی، لهذا دامام ابویوسف په قول عمل کول خلاف اصول مقرره دمذهب حنفی دی او د دلیل صریح اوصحیح دموجودوالی په صورت کښې خلاف دیانت هم دی.

خلاصه داچې اول خوددې خبرې ثبوت له امام ابویوسف څخه یقینی نه دې بیا درجوع احتمال هم قوی دې که له دې دواړو څخه صرف نظر وکړې شی نو دا یو غیر مفتی به او مرجوع قول دې چنانچه په عالمګیری اوشامی کښې دمذکور الصدر قول سره دا لیکل شوی دی چې: **ومن فعل ذلك ليزين نفسه للنساء وليحبب نفسه اليهن فذلك مكروه عليه عامة المشائخ عالمگیری ص۳۵۹ج۵شامی ج۲۲۳ج۶**

راجح اومستند مسائل نظر انداز کول او دمتروکواقوالوڅخه خپل مقصد را ویستل اتباع دشریعت نده بلکه اتباع دهوی ده، دفقهی په کتابونو کښې چې امام ابویوسف ته څومره اقوال منسوب دی هغه مرجوع یا غیر مفتی به دی، مجوزینودخضاب ته شاید په ټول عمر کښې له دغو اقوالو څخه په یو قول باندې دعمل کولو خیال نه وی راغلې آخر په دغه یوه قول په دومره درجه اصرار ولی کیږی؟ د حق طلب کوونکی هر مسلمان ته یوه لاره متعینه ده کومه یوه چې جمهورو علماؤ راجحه اومنقحه ګرځولې ده اوکه هر سړې له کتابونو څخه دخپلی خوښې اقوال راجمع کړی اوعمل ورباندی شروع کړی نوددین دې الله حافظ شی.

خلاصه داده چې دصریحو احادیثو اوجمهورفقهاء اومحدثینو د واضحو ارشاداتو په رڼا کښې دتور خضاب استعمالول ناجائز دی اوپه دې اصرار کول سنګینه ګناه ده، دحدیث له نظره دمؤمن دسر او ږیرې هر سپین ویښته نور دې.

**عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لا تنتفوا الشيب ما من مسلم يشيب فى الاسلام، قال عن سفيان الا كانت له نورًا يوم القيامة وقال فى حديث يحيى الا كتب له بها حسنة وحط عنه بها خطيئة (سنن ابی داؤد ص: ۱۲۳، ج: ۲).**

حضور صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمایلی دی: سپین ویښتان مه اوباسئ داسلام په حالت کښې چې دچا ویښته سپین شول دهغه لپاره دقیامت په ورځ نور وی اودهر سپین ویښته په بدله کښې به ورته یوه نیکی لیکلی شی، اویو خطا به معاف کولې شی.

د دې ارشاد نبوی مخی ته کیښودلو سره دې داخلك خپله یصله وکړی چې دنور په بدل کښې ظلمت اختیارولو سره دوی څه ګټی؟ بوداوالې په پټولو سره نه پټیږی.

روى ابو القاسم القشيري رحمه الله تعالى في الرسالة قال حكى ابو عبدالله الحسين بن عبدالله بن سعيد قال كان القاضي يحيى بن اكثم صديقا لي وكان يودني واوده فمات فكنت اشتهي ان اراه في المنام فاقول له ما فعل الله بك؟ فرايته ليلة في المنام فقلت ما فعل الله بك؟ فقال غفرلي الا انه وبخني ثم قال لي يا يحيى خلطت على نفسك في دار الدنيا فقلت يارب اتكلت على حديث حدثني به ابو معاوية الضرير عن الاعمش عن ابي صالح عن ابي هريرة رضي الله تعالى عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم انك قلت اني لاستحيي ان اعذب شيبة بالنار فقال قد عفوت عنك يا يحيى وصدق نبيي الا انك خلطت على نفسك في دار الدنيا (شذرات الذهب ص۱۰۲ ج۲)

امام ابوقاسم قشيري په خپله رساله کښې روايت کړې دې چې ابوعبدالله حسين بن عبدالله بن سعيد بيان کړې چې قاضي يحيى بن اكثم زما دوست وو دهغه زما سره مينه وه اوماله هغه سره محبت کولو کله چې دهغه وفات وشو نو زما خواهش وو چې هغه په خوب کښې اووينم اوپو ښتنه ترينه وکړم چې الله جل جلاله تاسره ښنګه معامله وکړه، آخر يوه شپه مې هغه په خوب کښې وليده اوپوښتنه مې ترينه وکړه چې الله تعالى تاسره ښنګه معامله وکړه ؟ هغه ووېل الله تعالى زما بخشش وکړ، مګر دومره ضرور وشول چې دهغه له دربار ښخه منع کړې شوم او راته ووېل شو چې اى يحيى ! تا په دنيا کښې ښه کوتاهيانې کړى دى.

ما عرض وکړو چې اې زما پروردګاره ! «زما دغفلت وجه داوه چې» ما په يو حديث باندې اعتماد کړې وؤ چه هغه ماته ابو معاويه اعمش له اعمش نه او اعمش له ابو صالح نه او ابو صالح له ابو هريرة رضى الله تعالى عنه نه بيان کړې وؤ چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد فرمايلې دې چې الله تعالى فرمايي چې : «ما لره سپينو ويښتانو والا ته يعنى مسلمان سپين ږيرى ته دجهنم عذاب ورکولو ښخه حيا راځي» . نو الله پاك راته اوفرمايل چې : «اې يحيى ! ما ته معاف کړې ، او ښما پيغمبر ريښتيا ويلى دى ليکن تا په دنيا کښې يوښه کوتاهي کړيده» .

شعر:　　رحمت حق بها نمى جويد　　رحمت حق بهانه مى جويد

سپين ويښتان ګويا که دالله تعالى له طرفه درحمت اومغفرت رسولو يوه غيبي ذريعه ده مګر نادان بنده دويښتانو سپينوالې پټوى او په پرده کښې دالله تعالى له دغه عطيه ښخه اعراض اوروګرداني کوى ښه به وايى په حرامان ددې بى نصيبى کښې.

معى زمنى والشيب حل بمفرقى　　و ابعد شئ ان يرد شباب

اذا مر عمر المرء ليس براجع　　وان حل شيب لم يفده خضاب

## مسائل متفرقه

۱. حضور صلی الله علیه وسلم دسپینو ویښتانو دتبدیلی په باره کښې په متعددو احادیثو کښې ترغیب ورکړې دې دنکریزو اووسمی داستعمال فضیلت یې بیان کړې دې له حضرت ابوبکر اوحضرت عمر نه علاوه له متعددو اصحابو کرامو څخه اودتابعینو دیوجماعت نه خضاب ثابت دی لیکن آیا حضور صلی الله علیه وسلم بنفس نفیس خضاب لګولی دی او که نه؟

په دې باره کښې له صحابه کرامونه دوه قسمه روایات منقول دی له دی وجی نه د وروستنیو علماؤ هم په دې باره کښې آراء مختلف دی، علامه نووی فرمائی دعلماؤ رایه داده چې استعمال یې ندې کړېځ دامام مالك رحمه الله هم همدا قول دې.

لمنعه الاکثرون لحدیث انس رضی الله تعالی عنه وهو مذهب مالك رضی الله تعالی عنه (شرح مسلم ص۲۵۹ج۲)

داحنافو علماؤ رای هم همدا ده کما صرح به فی الشامیه ص ۴۵۹ ج ۲

لیکن علامه نووی قول فیصل دا فرمایلې دې.

والمختار انه صلی الله علیه وسلم صبغ فی وقت وترکه فی معظم الاوقات فاخبر کل بما رای وهو صادق وهذا التاویل کالمتعین (شرح مسلم ص۲۵۹ج۲)

قول مختار دادې چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم په ځینی وختونو کښې نکریزی یاوسمه لګولې اواکثراوقات یې نده لګولې لدې وجی نه هر صحابی چې کوم حالت مشاهده کړې دې هغه یې بیان کړې دې اوهغه په خپله خبره کښې ریښتونې دې، ګویا دتطبیق داصورت متعین دې.

۲. په سرا و ګیره سور خضاب مستحب دی اودمسلمانانو خاص شعاردې. البته دسړیو لپاره په لاسونواوپښو نکریزی لګول جائزندی ځکه په دې کښې له ښځو سره مشابهت راځی عالمګیری ص۳۵۹ ج۵ ردالمختار ص ۴۲۲ ج۶

۳. بلاضرورته د وړو هلکانو په لاسونو اوپښو نکریزی لګول جائزندی.

۴. دښځو لپاره په لاسونو اوویښتو نکریزی لګول مستحب دی، مرقات ص ۳۰۴ ج۸

۵. مجاهد که په دښمن دخپل رعب داچولو لپاره تور خضاب استعمال کړی نو جائز بلکه مستحسن دی.

۶. تورخضاب تیارول اوخرڅول جائزدی ځکه چې ددې لپاره یومحل دجواز موجود دې یعنی په دښمن باندې دهیبت اچولو لپاره، لهذا جوړول اوخرڅول یې خلاف اولی دی، مګر دداسې سړی په لاس خرڅول جائز ندی چې یقین یې وی چې په ناجائز طور سره یې استعمالوی، کما فی رد المختار وغیره.

۷. که چاناپاك نکریزی استعمال کړل بیایې درې ځله ومینځل اوصفائی کړل نو پاك شو اګر که

رنگ باقي پاتې وي.

۸- د سر یا ږيرې سپين ويښتان ويستل جائزندی . لما قال صلى الله عليه وسلم لاتنتفوا الشيب فانه نور المسلم الحديث (رواه الاربعة)

**محمد ابراهيم**

**نائب مفتي دار الافتاء والارشاد ۲۴رجب ۱۴۱۳هـ**

ماداضميه اول نه ترآخره پورې ښه په غور سره وليدله او صحيح ده.

رشيد احمد ۱۵ شعبان سنه ۱۴۱۳هـ

**قوم يخضبون بالسواد آخر الزمان كحواصل الحمام لا يريحون رائحة الجنة**

**«رواه النسائي وابوداؤد»**

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ

﴿وَمِنَ النَّاسِ مَن يَشْتَرِي لَهْوَ الْحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ اللَّهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًا أُولَٰئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ۝٦﴾ «۳۱ - ۶»

# المصابيح الغراء للوقاية عن عذاب الغناء

**دسندرو او ساز اوسرود د حرمت ثبوت له قرآن، حديث او د ائمه اربعه رحمهم الله تعالى له اجماع څخه**

افاضه: حضرت فقيه العصر دامت بركاتهم

ليکنه: حضرت مفتی محمد ابراهيم صاحب صادق آبادی مدظله

●●●●●●●●●●●

●●●●●●●●●●

## المصابيح الغراء للوقايه عن عذاب الغناء

- په ساز او سرود باندې د الله تعالى د رسول لعنت
- زلزله. خسف. مسخ
- اودقسم قسم عذابونو وعيدونه
- قرآنی آيتونه
- نبوی مبارك احاديث
- ائمه اربعه رحمهم الله تعالى

## د ساز او سرود آوریدل حرام دی او د هرې گناه جرړه ده

**سوال**: زمونږ په کالج کښې داسلامیاتو پروفیسر صاحب وایی چی دموسیقی د آلاتوسره بنې سندرې او قوالیانې آوریدل شرعا جائزدی، دیته ناجائزاوحرام ویل دا دملایانو خبرې دی، دلیل دا وایی چی دحضور صلی الله علیه وسلم په وړاندې «دف» وهل کیدلو، ماشومانو نجونو سندرې ویلې مگرحضورهغوئ منع نه کړلې، دموسیقی جدیدآلات د «دف» یوترقی یافته شکل دې په موسیقی آوریدوکښې هیڅ مضائقه نشته خکه چی دا د روح غذا ده اوصوفیای کرام رحمهم الله دسماع مستقل شغل لری.

دقرآن اوسنت په رڼا کښې ددې مسئلې وضاحت وکړئ او د پروفیسر صاحب د دلائلوهم جائزه واخلئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ویر او ماتم مقام دې چی کوم رسول د ساز اوسرود اوسندرو له مینځه وړل خپل مقصد گرځولې وو د دغه رسول نام نهاد امتی په دغه گناه باندې خپل ځان فدا کوی، بلکه ددغې بی حیایی دسند دجواز دپیدا کولو لپاره دسرقربانی ته هم تیار دې، دغه د نوی ترقی متولیانو ته به دا لوئ حقیقت څنگه ور وپیژندل شی چی دالله تعالی شریعت څوارلس سوه کاله مخ کښې مکمل شوې دې.

دهغه هره مسئله به ترقیامته پوری لازواله قائمه او محفوظه وی، ستاسې له موافقت یا مخالفت نه په کومه مسئله هیڅ اثر نه پریوځی. کوم شی چی حلال دې هغه به ترقیامته پورې حلال وی اوکوم شی چی شرعاً حرام وی هغه به ترقیامته پورې حرام وی. اگر که دټولې دنیا رایه دهغې خلاف وگرځی.

په شریعت مطهره کښې دموسیقی حرمت هم یوه داسې بدیهی مسئله ده چی په هغې باندې د دلائلو دپیش کولو چندان حاجت نشته. داسې قطعی حرامو ته دمباح او جائز ویلو خسارت داسې دې لکه یوسړې سر تاو کړی او وه وایی چی دشریعت له رویه زنا او شراب نوشی، سود خوری او رشوت اخستل جائز دی.

ظاهره ده چی داسې بې خایه خبرې کول هیڅ کله لائق داعتناء ندی اونه ددې قابل دی چی ددې په رد کښې سرې وخت ضائع کړی مگر څه وکړو؟ په دې دور دهوا پرستی کښې دعلم اوتحقیق ترعنوان لاندې خس اوخاشاک هم پیش کول کیږی.

ددین له مبادیاتونه نا آشنا جدیده طبقه کښې دجدید تحقیق ترعنوان لاندې ډیر زر پزیرائی حاصلوی پدې شان سره هر کفر اوالحاد په دې بدقسمته معاشره کښې په آسانی سره خپریږی، اکبر مرحوم څه ښه ویلی دی:

اُنھوں نے دین کب سیکھا ہے رہ کر شیخ کے گھر میں
پلے کالج کے چکر میں مرے صاحب کے دفتر میں

له دې تمهيدی کړښونه بعد مونږ دموسيقی په حرمت دلائل پيش کوو.

## دحرمت دلائل

**قرآنی آيتونه**: ﴿ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يَشۡتَرِي لَهۡوَ ٱلۡحَدِيثِ لِيُضِلَّ عَن سَبِيلِ ٱللَّهِ بِغَيۡرِ عِلۡمٖ وَيَتَّخِذَهَا هُزُوًاۚ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمۡ عَذَابٞ مُّهِينٞ ۝٦ ﴾ (۳۱ - ۶)

اوځينې خلك داسې دی چې دهغه خبرو خريدار جوړيږی چې هغه غافله کوونکې دی، د دې لپاره چې دالله له لارې نه ناخبره او بی علمه خلق ګمراه کړی اوهغه نيسی په توقو او مسخروباندې د داسی خلکو لپاره د ذلت عذاب دې.

امام ابن کثير ددې آيت په تفسير کښې فرمايی: **عن ابی الصهباء البکری انه سمع عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه وهو يسال عن هذه الاية (ومن الناس من يشتری لهو الحديث ليضل عن سبيل الله فقال عبدالله بن مسعود رضی الله تعالی عنه الغناء والله الذی لا اله الا هو يرددها ثلاث مرات.**

**وكذا قال ابن عباس وجابر رضی الله تعالی عنهم وعكرمة وسعيد بن جبير ومجاهد ومكحول وعمرو بن شعيب وعلی بن بذيمة رحمهم الله.**

**وقال الحسن البصری رحمه الله تعالی نزلت هذه الاية (ومن الناس من يشتری لهو الحديث ليضل عن سبيل الله بغير علم) فی الغناء والمزامير. (تفسير ابن كثير ص۴۴۲ ج۳)**

عبدالله بن مسعود رضی الله عنه درې خله قسم وکړ او وې ويل چې له «لهو الحديث» نه مراد سندری او ساز اوسرود دې، اوحضرت عبدالله بن عباس او حضرت جابر رضی الله عنهما او حضرت عکرمه، سعيد بن جبير، مجاهد، مکحول، او عمروبن شعيب اوعلی بن بذيمه رحمهم الله تعالی نه هم همدا تفسير منقول دی اوحضرت حسن بصری فرمائی چې دا آيت دسندرو اوسرود متعلق نازل شوې دې.

او دا تفسير په قرطبی صـ ۵۱ جـ ۱۴ بغوی صـ ۴۰۸ جـ ۴ خازن صـ ۴۶۸ جـ ۳ مدارك بهامش خازن صـ ۴۶۸ جـ ۳ مظهری صـ ۲۴۶ جـ ۷ وغيرها کښې په مفصل ډول ذکر دې.

۲- ﴿ وَٱسۡتَفۡزِزۡ مَنِ ٱسۡتَطَعۡتَ مِنۡهُم بِصَوۡتِكَ ﴾ (۱۷:۶۴)

يعنی دوکه ورکوه له هغوئ نه هغه چاته چې ستا طاقت وی دهغوئ د دوکه کولو په خپل آواز سره

۴ــ فی هذه الامة خسف ومسخ وقذف فقال رجل من المسلمین یا رسول الله ومتی ذلك؟ قال اذا ظهرت القینات والمعازف وشربت الخمور (جامع ترمذی)

په دې امت کښې به دا آفتونه راځی : په ځمکه کښې به خسف وی دشکلونو مسخ به وی او دکاڼو باران به وی یوه صحابی عرض وکړ چې : یارسول الله صلی الله علیه وسلم ؛ دابه کله وی؟ هغه صلی الله علیه وسلم ارشاد وفرمایه : کله چې سندرغاړې ښځې او ساز اوسرود ډیر شی اوشراب په عام مجلس کښې وڅښل شی.

۵ ــ ان الله عزوجل بعثنی هدی ورحمة للمؤمنین وامرنی بمحق المزامیر والاوتار والصلیب وامر الجاهلیة ( احمد،ابوداود،الطیالسی)

الله تعالی زه دمؤمنانو لپاره هدایت او رحمت رالیږلی یم او د ساز اوسرود اوشرکیه تعویذونو اوصلیب او د زمانه جاهلیت دغلطو کارونو دختمولو حکم یی راته فرمایلې دې .

۶ــ الکوبة حرام والدف حرام والمزامیر حرام (مسند، بیهقی، بزار)

طبله حرامه ده اودشرابو لوښی حرام دی اوساز اوسرود حرام دې، دشرابو د لوښوحرمت په ابتداء د اسلام کښې وو وروسته منسوخ شو.

۷ــ الغناء ینبت النفاق فی القلب کما ینبت الماء البقل. (ابوداود، بیهقی، ابن ابی الدنیا)

ساز اوسرود ، نفاق په زړه کښې داسې زرغونوی لکه اوبه چې فصل زرغونوی .

۸ ــ وظهرت القینات والمعازف وشربت الخمور ولعن اخر هذه الامة اولها فارتقبوا عند ذلك ریحا حمراء وزلزلة وخسفا وقذفا وایات تتابع کنظام بال قطع سلکه (جامع ترمذی)

کله چې دسندرغاړیو ښځو ظهوروشی اوساز اوسرود ښکاره شی اوشراب په کثرت سره څښل کیږی او ددې امت آخری خلك په اولنو ددې امت باندې طعن اوتشنیع شروع کړی نوپه دې وخت کښې ددغو عذابونو انتظارکوئ : تك سور باد، زلزله اوخسف اومسخ اوکاڼی وریدل اونورې علامې لکه دهار (غاړکی ) تارچی پرې شی اوداڼې یی یوپه بل پسی را لویږی.

۹ــ اذا فعلت امتی خمس عشرة خصلة حلت بها البلاء وفیها واتخذت القیان المعازف (جامع ترمذی)

کله چې زما امت دا پنځلس کارونه په کثرت سره وکړی نو په دوئ به مصیبت نازلیږی له هغو څخه به یو دا هم وی چې سندر غاړې ښځی اوسازاوسرود به عام شی.

۱۰ ــ صوتان ملعونان فی الدنیا والاخرة مزمار عند نغمة ورنة عند مصیبة. (البزار، بیهقی، ابن مردویه)

دوه آوازونه دی په دنیا او آخرت کښې دواړه ملعون دی، یو د ساز اوسرود سره آواز او دویم دمصیبت په وخت چیغی اوبغاری وهل .

۱۱ـــ نهيت عن صوتين احمقين فاجرين صوت عند نغمة لهو ولعب مزامير الشيطان وصوت عند مصيبة لطم وجوه وشق جيوب. (مستدرك حاكم ص۴۰ج۴ مصنف ابن ابي شيبة ص۳۹۳ج۳ وغيرها)

زه له دوه آوازونو «چی له حماقت اوفسق اوفجور څخه ډك دی منع شوی یم» یو دلهو اولعب اوشیطانی ساز اوسرود سره آواز اودویم دمصیبت په وخت کښې دمخ وهلو او ګریوان شلولو اونوحی آواز.

۱۲ـــ الجرس مزامير الشيطان (صحيح مسلم، سنن ابي داود)

ګونګری دشیطان باجه ده.

۱۳ـــ يمسخ قوم من هذه الامة في اخر الزمان قردة وخنازير قالوا يارسول الله ليس يشهدون ان لا اله الا الله وان محمدا رسول الله قال بلى ويصومون ويحجون ويصلون قيل فما بالهم؟ قال اتخذوا المعازف والقينات (مسند ابن ابي الدنيا)

په آخره زمانه کښې به ددې امت څه خلك دشادو ګانو اوخنزیرانو په شان مسخ شی، صحابه کرامو عرض وکړ یارسول الله! هغوئ به ددی کلمی ګواهی نه وی ورکړې چی دالله تعالی نه سوا بل معبود نشته اوتاسو دالله رسول یئ؟ هغه صلی الله علیه وسلم اوفرمایل: ولی نه! ددې نه علاوه به هغوئ روژی هم نیسی، حج به هم کوی اولمونځ به هم کوی، عرض وشو نوبیا په کوم سبب داعذاب ورکول کیږی؟ هغه صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د ساز او سرود او دسندرغاړو ښځو دشغل اختیارولو په وجه.

داختصار له مخې مونږ په دې څو روایاتو باندې اکتفاء کوو، دحضرت مفتی محمد شفیع صاحب کتاب (**كشف العناء عن وصف الغناء**) مندرج احکام القرآن ص۲۰۳ ج۳ په دې موضوع باندې جامع ترین کتاب دې چی په هغې کښې ډیر روایات دی، مولانا عبدالمعز ددې کتاب ترجمه کړې ده په نوم د (اسلام اوموسقی) سره چی په هغې کښې یې نورهم ډیر روایات جمع کړی دی.

## د څلورو امامانو رحمهم الله اجماع

دساز اوسرود په حرمت دڅلور واړو امامانو اجماع منعقده ده اوددوئ دمذاهبوله مستندو کتابونو څخه په شلګونو عبارات وړاندې کیدې شی مګر مونږ په یوه یوه اکتفاء کوو.

۱- امام زین الدین ابن نجیم حنفی لیکی:

(قوله اويغني للناس) لانه يجمع الناس على ارتكاب كبيرة كذا في الهداية وظاهره ان الغناء كبيرة وان لم يكن للناس بل لاسماع نفسه دفعا للوحشة، وهو قول شيخ الاسلام رحمه الله تعالى فانه قال بعموم المنع.

بالدرة (فتح القدير ص۳۶ ج۹ البحر الرائق ص۸۸ ج۷)

بیا دف وهو نکی عموما ماشومانې وی دسرېو دف وهل چیرته هم ثابت ندی، بیا دا دف د اهل عربو دعادت موافق بالکل ساده وهل کیدلو له هغه سره نه رقص وو، نه سرود یا طرب یامستی وغیره، ددې ځیزونو بالکل نشان هم نه وو، زمونږ په زمانه کښې دغسې دف چیرته هم په نظرنه راځی

د دې با وجود د تیرو شوو شرئطو د رعایت کولو سره سره د دف وهلو گنجائش هم د امام شافی په نزد باندې دې له احنافو څخه اکثر فقهاء کرامو دا هم ناجائز بللی.

**قال التوربشتی رحمه الله تعالی انه حرام علی قول اکثر المشائخ وماورد من ضرب الدف فی العرس کنایة عن الاعلان (امداد الفتاوی ص۲۸۳ ج۲)**

امام توریشتی فرمایی چی دف داکثر مشائخو په نزد حرام دې او د ښادی په موقع چی کوم دف وهل ثابت دی له هغه څخه اعلان اوتشهیر مراد دې.

په امداد الفتاوی کښې دتوریشتی ددې قول حواله له شرح نقایه او نصاب الاحتساب، بستان العارفین نه منقوله ده، آخری دوه کتابونه موجود ندی او شرح نقایه کښې په سر سری تلاش کولو سره پیدانه شو، په هر حال دنصوص محرمه په نظر کښې نیولو سره د اعلان اوتشهیر لپاره دا کنایه په عرف عام کښې ډیره مشهوزه اوزبان زده ده، مثلا «د ډول په آواز وایی، ډول وهی، ډنډوره وهی نغاره ډنگوی» مونږ مخ کښې ذکر کړل چی دا اختلاف دساده دف متعلق دې ملاعلی قاری رحمه الله تعالی فرمایی. **المراد به الدف الذی کان فی زمن المتقدمین واما ما علیه الجلاجل فینبغی ان یکون مکروها بالاتفاق (مرقاة المفاتیح ص۲۱۰ ج۶)**

له دې څخه مراد هغه دف دې چی په دور دمتقدمینو کښې استعمالیده البته گونگړی دار دف بالاتفاق مکروه دې دمکروه اطلاق په حرامو باندې کیږی لکه مخکښې چی تیرشو

۲- له بعضی صوفیانو نه منقول دی چی هغوئ ساز اوسرود آوریدلو.

**الجواب**: اول خوپه شرعی مسائلو کښې دکوم صوفی په قول اوعمل استناد کول خلاف اصول دی په دې موقع دحضرت مجدد الف ثانی چی خپله هم یولوی صوفی اوعارف وو دهغه دا ارشاد دیادساتلو قابل دې: عمل صوفیه درحل وحرمت سند نیست همین بس است که ما ایشان را معذور داریم وملامت نه کنیم ومر ایشان را بحق سبحانه وتعالی مفوض داریم اینجا قول ابی حنیفه وامام ابویوسف وامام محمد معتبر است نه عمل ابوبکر شبلی وابوحسن نوری رحمهما الله تعالی.

یعنی په حلت اوحرمت کښې دصوفیای کرامو عمل حجت نه دې بس دومره کافی ده چی مونږ دوئ معذور وگنو اوملامت یې نکړو اودهغوئ معامله الله تعالی ته وسپارو، دلته دامام ابوحنیفه

او امام ابویوسف او امام محمد قول معتبر دی نه د ابوبکر شبلی او ابوالحسن نوری رحمهما الله تعالی.

دویم داچی دهغو صوفیای کرامو سماع په مخصوصو احوالو کښې بطور دواء او علاج وو او په دی کښې هغوی د ډیرو شرائطو لحاظ ساتلو چی دهغې تفصیل دادې:

**قال الخیر الرملی رحمه الله تعالی:**

**ومن اباحه من المشائخ الصوفیه فلمن تخلی عن الهوی وتحلی بالتقوی واحتاج الی ذلك احتیاج المریض الی الدوا وله شرائط:**

**احدها: ان لا یکون فیهم امرد.**

**والثانی: ان لا یکون جمیعهم الا من جنسهم لیس فیهم فاسق ولا اهل الدنیا ولا امراة.**

**والثالث: ان تکون نیة القوال الاخلاص لا اخذ الاجر والطعام.**

**والرابع: وان لا یجتمعوا لاجل طعام او فتوح.**

**والخامس: لا یقومون الا مغلوبین.**

**والسادس: لا یظهرون وجدا الا صادقین (الفتاوی الخیریة ص۱۶۹ ج۲)**

او مشائخ صوفیه چی دکومې سماع دجواز قائل دی په دغو شرطونو سره چی صاحب سماع دخواهش نفس نه پاك او په زیور تقوی سره مزین وی او دسماع لپاره داسی مجبوری او احتیاج ولری لکه مریض چی دوائه احتیاج او ضرورت لری او ددې د جواز لپاره شپږ شرطونه دی.

**اول:** په سماع کونکو کښې څوك بی ږیرې نه وی.

**دویم:** ټول عارفین کاملین وی په دوئ کښې څوك فاسق او فاجر، طالب دنیا او ښځه نه وی.

**دریم:** د قوال نیت په اخلاص بناء وی مزدوری او خوراك او معاوضه یې مدنظر نه وی.

**څلورم:** جمع دخوراك یا بل دنیوی غرض لپاره نه وی.

**پنځم:** په دغه دوران کښې به قیام نه کوی مگر هغه څوك چی مغلوب یا بې خوده وی.

**شپږم:** دوجد او مستی اظهار به نکوی مگر داچی رښتیاوی ریا او تصنع نه وی.

بیا ددغو شرائطو د پابندی سره سماع به صرف دکاملې درجې منتهی عارفینو کوله، مبتدی سالك به یې له دې نه په سختی سره منع کاوه.

امام الطائفه حضرت جنید بغدادی رحمه الله تعالی داوویل اوله سماع څخه یې توبه وکړه او وی ویل چی اوس ددی شرطونو پابندی نه کیږی.

**قال الشیخ السهروردی رحمه الله تعالی: وقیل ان الجنید ترك السماع فقیل له کنت تستمع، فقال مع من.**

# دمصافحې اومعانقې څلور مسائل

## په دواړه لاسونو مصافحه مستحب ده

**سوال**: دمصافحې صحيح طريقه په شريعت اسلامى كښې څه ده؟ په دواړه لاسونو يوصاحب اعتراض وكړ او ويل ئې چې دا طريقه دكوم حديث څخه نده ثابته، دليل شرعى په كار دې او د معترض صاحب ليكل ستاسو خدمت ته درليږل كيږى؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مصافحه په دواړو لاسونو مستحب ده.

### داحاديثو روايات:

**قال ابن مسعود رضى الله تعالى عنه علمنى النبى صلى الله عليه وسلم التشهد و كفى بين كفيه (صحيح البخارى ص۹۲۶ج۲ صحيح مسلم ص۱۷۳ سنن نسائى ص۱۷۵ج۱)**

امام بخارى رحمه الله دا روايت په باب المصافحه كښې ذكركړې دې اولدې څخه يى په ثبوت دمصافحې باندې استدلال كړې دې، په دې كښې مصافحه باليدين ذكرده دا له ثبوت دمطلق مصافحى سره سره ددوه لاسونو دمصافحې دثبوت دليل هم دې، لدې كبله امام بخارى رحمه الله په باب الاخذ باليدين كښې ذكر كړې دې.

حافظ ابن حجر ، عينى ، كرمانى اوقسطلانى رحمهم الله تعالى په باب المصافحه اوباب الاخذ باليدين كښې د امام بخارى له دې روايت نه په استدلال كولو باندې كوم اشكال ندې كړې دا ددې واضح دليل دې چې دا استدلال دهغوئ حضراتو په نزد هم صحيح دې.

په دې حديث كښې دحضور دكفينو ذكر صراحة دې دعبدالله بن مسعود دكفينو ذكر دلالتاً دې صحابه كرام رضى الله عنهم به د تبرك حاصلولو لپاره دخپل وجود زيات نه زياته حصه دنبى كريم صلى الله عليه وسلم دجسد مبارك سره دلګولو كوشش كاوه ددې په نظركښې نيولوسره داناممكنه خبره ده چې حضور صلى الله عليه وسلم دې په دواړو لاسونو مصافحه كړى وى اوعبدالله بن مسعود رضى الله تعالى عنه دې په يوه لاس كړې وى، له داسې جانباز صحابى اوعاشق الرسول څخه د داسې ګستاخى تصورهم نشى كيدې.

په دې حديث كښې دمصافحة التعليم ذكر دې، امام بخارى رحمه الله ددې څخه مطلقه مصافحه ثابته كړې ده چې مصافحة الملاقاة ته هم شامله ده اوددې مقصد لپاره امام دحماد بن زيد اوعبدالله بن المبارك دمصافحة الملاقات ذكر كړې دې.

دامام دمصافحة التعليم څخه استدلال په مصافحه الملاقات باندې بالكل واضح دى له دې وجى نه چې لكه څنګه تعليم موقع دمودت اومحبت ده همداشان ملاقات هم دې، د مدعيان فرق

دعوی بالکل بلادلیله ده ددوئ سره نه کوم روایت دلیل شته اونه کوم درایت.

۲ــ اخرج الامام البخاری رحمه الله تعالی تعلیقا: وصافح حماد بن زید ابن المبارك بیدیه (صحیح بخاری صه۹۲۶ج۲)

قال الحافظ رحمه الله تعالی: وصله غنجار فی تاریخ بخاری من طریق اسحاق بن احمد ابن خلف قال سمعت محمد بن اسماعیل البخاری یقول سمع ابی من مالك ورای حماد بن زید یصافح ابن المبارك بکلتا یدیه. وذکر البخاری فی التاریخ فی ترجمة ابیه نحوه وقال فی ترجمة عبدالله ابن سلمة المرادی حدثنی اصحابنا یحیی وغیره عن ابی اسماعیل بن ابراهیم قال رایت حماد ابن زید وجاءه ابن المبارك بمکة فصافحه بکلتا یدیه (فتح الباری صه۴۷ج۱۱)

حماد بن زید اوعبدالله بن مبارك دواړه دخپلې زمانې جبال الحدیث او له لویو امامانو څخه شمیرل کیدل.

قال عبدالرحمن بن مهدی رحمه الله تعالی: الائمة اربعة مالك وسفیان الثوری وحماد بن زید وابن المبارك (تذکرة الحفاظ صه۱۷۵ج۱)

۳ــ قال عروة قالت عائشة رضی الله تعالی عنها فمن اقر بهذا الشرط من المؤمنات قال لها رسول الله صلی الله علیه وسلم قد بایعتك کلاما ولا والله مامست یده ید امراة قط فی المبایعة مایبایعهن الا بقوله قد بایعتك.

قال الحافظ العینی رحمه الله تعالی: (قوله قال لها) ای للمبایعة منهن قد بایعتك کلاما وهو منصوب بنزع الخافض وهو من قول عائشة رضی الله تعالی عنها والتقدیر کان یبایع بالکلام ولایبایع بالید کالمبایعة مع الرجال بالمصافحة بالیدین (عمدة القاری صه۲۲۱ج۹)

وقال القسطلانی رحمه الله تعالی: ای بالکلام لابالید کما کان یبایع الرجال بالمصافحة بالیدین (ارشاد الساری صه۳۸۱ج۷)

په دې حدیث کښې اګر چه دمصافحة المبایعه بیان دې لیکن له دې څخه دمصافحة الملاقات هم همدا طریقه ثابتیږی، لما قدمنا تحت الحدیث الاول.

## دمانعینو ددلائلو څیړنه

په دې سلسله کښې د رالیږونکی دمندرجه دلائلو ماخذ اومراجعې ته ضرورت نشته. لدې وجې نه دمحرر عبارات بعینه وړاندې کولې شی.

**اول دلیل**: دحضرت انس رضی الله عنه روایت دې: فیاخذ بیده ویصافحه؟ قال نعم: (سنن ترمذی

عنه له حديث څخه هم د امام بخاری استدلال صحيح ګرځولې اوله هغه څخه دمصافحې ثبوت وړاندې کوی.

اوس پاتې شو دا بحث چې امام بخاری له باب المصافحه څخه وروسته (باب الاخذ باليد) ولې ايښې دې؟ حافظ عسقلانی اوقسطلانی ددې حکمت دابيان کړې دې چې چونکه په حديث دعمر رضی الله عنه کښې اخذ باليد بدون المصافحه هم احتمال لری لدې وجې نه امام بخاری په دويم باب کښې دحمادبن زيد اوعبدالله بن المبارك رحمهما الله له عمل اوله حديث دعبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه دا ثابتول غوارې چې له اخذباليد څخه اصل اواغلب دادې چې هغه دمصافحې لپاره وی، چنانچه په دغه باب کښې حافظ رحمه الله فرمائی: **قال ابن بطال رحمه الله تعالى بالید هو مبالغة المصافحة وذلك مستحب عند العلماء (فتح الباری ص۴۸ ج۱۱)**

که په ګمان دمحرر دامام بخاری له باب الاخذباليدنه اخذ بدون المصافحه بيان مقصود وی نو هغه بيا ددې باب لاندې دلائل دمصافحې ولی راوړل؟ . دصحيح البخاری په ځينی نسخو کښې (باب الاخذباليدين) دهغې په نظر کښې نيولو سره له دې څخه دطريق مصافحه بيان مقصود دې چې په دواړه لاسونو په کار وه اوله اول باب نه نفس اثبات دمصافحې مقصود دې.

**دويمه شبه**: علامه عبدالحی لکهنوی فرمائی چې په روايت دابن مسعود کښې چې دکومې مصافحی ذکر دې هغه مصافحه متوارثه عندالملاقات نده بلکه يوه تعليميه طريقه ده.

**جواب**: ددې تفصيل په اثبات المصافحه باليدين کښې په دليل اول کښې تيرشو.

## دفقهای کرامو فيصله

حضرات فقهای کرامو د ذکر شوو رواياتو په وجه مصافحه باليدين سنت ګڼلې ده.

**قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وفي القنية السنة في المصافحة بكلتا يديه وتمامه فيما علقته على الملتقى.**

**وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وتمامه الخ) ونصه وهي الصاق صفحة الكف بالكف واقبال الوجه بالوجه فاخذ الاصابع ليس بمصافحة خلافا للروافض والسنة ان تكون بكلتا يديه وبغير حائل من ثوب اوغيره وعند اللقاء بعد السلام الخ (ردالمحتار ص۲۴۴ ج۵)**

**حاصل د خبرې دادې چې**: په يوه لاس مصافحه جائزه اوپه دوه لاسونو مستحب ده.

## د استحباب دلائل

۱- د يدينو احاديث ناقابل تاويل دی اوروايات د(يد) محتمل التاويلات دی.

۲- دحمادبن زيد اوعبدالله بن مبارك په شان جليل القدر امامانو عمل.

۳. دمغوی په عمل دحاضرینو اوسامعینو دچاهم انکار نه کول بلکه دمشهورو ائمه حدیث دمغوئ په عمل استدلال کول.

۴. دامام بخاری فیصله.

۵. د څلورو مسلمو جبال الحدیث امامانو : حافظ ابن حجر عسقلانی، حافظ بدرالدین عینی، علامه کرمانی، اوحافظ قسطلانی له طرفه دامام بخاری دفیصلې تائید اوتقریر.

۶. دحضرات فقهاء کرامو فیصله.

۷. د ادب مدار په عرف سره وی اودصالحینو په عرف کښې په یوه لاس مصافحه کول خلاف ادب بلل کیږی، کوم لوئ شخص ته دځه ورکولو په وخت کښې دواړه لاسونه استعمالیږی نو دمصافحې په وخت کښې په دواړه لاسونو مصافحه کول په طریق اولی سره مقتضای ادب دی.

۸. د أمت دعلماؤ اوصلحاؤ تعامل اوتوارث.

۹. په یوه لاس مصافحه دکفارو او فجاروشعار دې.

۱۰. له محدثینو اوفقهاء کرامونه له هیڅا څخه په یوه لاس مصافحه ثابته نده، والله سبحانه وتعالی اعلم بالصواب.

۱۰شوال سنه۹۵ هـ

## ۲. ثبوت د مصافحې په وخت د وداع کښې

**سوال** : یوشخص وائی چی در خصتیدو په وخت کښې صرف سلام سنت دې دمصافحې ثبوت نشته حالانکه دا دټولو علماء اکابرینومعمول دې، په دې باره کښې تشفی اوفرمائی، بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د وداع په وخت کښې مصافحه له متعددو احادیثو څخه علاوه درایتاً هم ثابته ده.

۱ــ عن ابن مسعود رضی الله عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال من تمام التحیة الاخذ بالید وهذا حدیث غریب ولا نعرفه الامن حدیث یحیی بن سلیم عن سفیان وسالت محمد بن اسمعیل عن هذا الحدیث فلم یعده محفوظا (جامع الترمذی صه۱۰۲ جه۲)

داضعیف حدیث محض دتائید لپاره نقل کولې شی ددې نه علاوه ددویم حدیث دلاندې وجوهو څخه هم ددې تقویت کیږی.

۲ــ اخرج الامام احمد رحمه الله تعالی: عن علی بن یزید عن القاسم عن ابی امامة رضی الله عنه ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال وتمام تحیاتکم بینکم المصافحة. (مسند احمد صه۲۶۰ جه۵)

وقال العلامة احمد البناء المعروف بالساعاتی رحمه الله تعالی معزیاً الی الترمذی رحمه الله تعالی : وقال اسناده لیس بالقوی ونقل عن البخاری ان عبیدالله بن زحر و کذا القاسم ثقتان لکن علی بن یزید ضعیف اهـ

وقال الحافظ رحمه الله تعالى حديث الترمذي سنده لين اهـ وقال الحافظ السيوطي رحمه الله تعالى له شواهد تعضده (منها) عن ابي رهم السمعي عند الطبراني (ومنها) عن ابي هريرة رضي الله تعالى عنه عند البيهقي (ومنها) عن عائشه رضي الله تعالى عنها عند ابن السني وغير ذلك والله اعلم (بلوغ الاماني شرح الفتح الرباني ص۱۶۳ ج۱۹)

دا حديث دلاندې وجوهو له کبله قابل دقبول دې:

۱- ضعيف حديث په فضائلو کښې مضرندې.

۲- معضد بالشواهد دی.

۳- په نورو قوليه او فعليه او په حکم داريه سره مؤيد دې.

۳ــ عن ابن عمر رضي الله تعالى عنهما قال كان النبي صلى الله عليه وسلم اذا ودع رجلا اخذ بيده فلا يدعها حتى يكون الرجل هو يدع يد النبي صلى الله عليه وسلم ويقول استودع الله دينك وامانتك واخر عملك وفي رواية وخواتيم عملك رواه الترمذي وابوداود وابن ماجه وفي روايتهما لم يذكر واخر عملك (مشکوة ص۲۱۴ ج۱)

۴ــ عن قزعة قال كنت عند عبد الله بن عمر رضي الله عنهما فاردت الانصراف فقال: كما انت حتى اودعك كما ودعني النبي صلى الله عليه وسلم فاخذ بيدي فصافحني ثم قال استودع الله دينك وامانتك وخواتيم عملك. (عمل اليوم والليلة للنسائي حديث نمبر ۵۱۷).

## دمانعينو تاويلات

**اول تاويل**: تحية السلام له قدوم سره خاص دې.

دا خيال په لاندې وجوهو سره باطل دې:

۱- دا خبره بې دليله او خلاف الظاهر ده، لفظ دتحيه مطلق دې چې سلام د قدوم او وداع دواړوته شامل دې.

۲- قوله تعالى (وَإِذَا حُيِّيتُم بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا) ددې لاندې مفسرين حضرات سلام او وداع هم ليکی، داهم ثابته شوه چې سلام او وداع هم په تحيه کښې داخل دی.

۳- عن ابي هريرة رضي الله تعالى عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال اذا انتهى احدكم الى مجلس فليسلم فان بدا له ان يجلس فليجلس ثم اذا قام فليسلم فليست الاولى باحق من الاخرة (جامع الترمذي ص۱۰۰ ج۲)

له دې حديث څخه ثابته شوه چې سلام قدوم په سلام وداع باندې کوم فضيلت نه لری لهذا اتمام بالمصافحه کښې دواړه مساوی دی.

**دويم تاويل**: اخذ د «يد» بغير له قصد نه مصافحه وه.

داخیال هم په لاندې وجوهو سره باطل دې
۱. بلادلیل او خلاف الظاهر دی
۲. د مصافحې حقیقت همدا اخذ د ید دې
وقد مر فی الحدیث الاول عن النبی صلی الله علیه وسلم: من تمام التحیة الاخذ بالید ولذا احتج به البخاری رحمه الله تعالی فی باب المصافحة.
وقال الحافظ رحمه الله تعالی: قال ابن بطال رحمه الله تعالی: الاخذ بالید هو مبالغة المصافحة وذلك مستحب عند العلماء (فتح الباری ص۴۷ ج۱۱)
وقال الافریقی: المصافحة الاخذ بالید والتصافح مثله (لسان العرب) وکذا قال الجوهری (الصحاح)
۳ ـ دحدیث الفاظ (هو یدع ید النبی صلی الله علیه وسلم) واضح دلیل دې چی عمل داخذ ید له جانبینو څخه وو.
**د درایة حکم:**
دمصافحې مشروعیت داظهار محبت لپاره دې او د اظهار محبت موقع لکه چی اول دملاقات دې دغسې د وداع وخت هم موقع د اظهار محبت دې لکه څنګه چی سلام د وداع هم ددې لپاره دې او له همدې وجی نه په ټوله دنیا کښې دستور دې ، والله سبحانه وتعالی اعلم
۱۹ شعبان سنه ۱۴۰۳ھ

## ۳ - په معانقه کښې سینه لګول

**سوال:** عرب په خپلو کښې د ملاقات په وخت کښې یو له بل سره غاړه ملاووی او له لفظ دمعانقې څخه هم همدا ثابتیږی، دلته زمونږ په علاقه کښې چی د سینې دلګولو کوم دستور دې آیا ددې کوم ثبوت شته ؟ بینوا توجروا
**الجواب باسم ملهم الصواب:** دمعانقې معنا خو هماغه ده (دغاړه له غاړی سره لګول) البته په دوه روایاتو ضعیفه و کښې التزام هم ذکر دې : قال الافریقی: عانقه معانقة عناقا: التزمه فادنی عنقه الی عنقه. (لسان العرب)، وقال الجوهری: المعانقة والعناق وقد عانقه اذا جعل یدیه علی عنقه وضمه فی نفسه (الصحاح) ،وقال الیومی: عانقت المرأة عناقا وهو الضم والالتزام (المصباح المنیر)
وفی المنجد: عانقه معانقة اذا جعل یدیه علی عنقه وضمه الی صدره (المنجد)
په سرسری لټون سره په بذل المجهود کښې په (اجلح) کلام ونه موندل شو له دې عبارت څخه داخبره محققه شوه چی دامتکلم فیه دې

له دغو رواياتو څخه په استدلال كولو كښې په لاندې وجوهو سره كلام دې.

**اول**: په اول روايت كښې يو راوى مبهم دې اودويم روايت مرسل دې له دې څخه علاوه ددې په سند كښې اجلح رواى متكلم فيه دې.

**دويم**: التزام په معنى داعتناق سره هم كيدې شى اى الصاق العنق بالعنق، وهذا هو الموافق لروايات المعانقه.

**دريم**: دا دحضور صلى الله عليه وسلم خصوصيت وو كما نقله الحافظ العسقلانى عن الامام مالك رحمه الله فى المعانقه، كله چې اعتناق دهغه خصوصيت شو نوالتزام هم په طريقه اولى سره خصوصيت ګرځول په كار دى.

**څلورم**: دحضور صلى الله عليه وسلم دا عمل صرف له اصاغروسره لپاره داظهار دمحبت مختص وو.

**پنځم**: له صحابه كرامو څخه او ائمه حديث اوفقه څخه ددې كوم ثبوت نه موندل كيږي.

**شپږم**: دحضور صلى الله عليه وسلم له دې عمل خاص څخه ظاهره ده چې التزام نه الصاق بالعنق مراد دې اوزيات نه زيات الصاق بالصدر مراد دې نه الصاق بالبطن.

دپاكستان اوهندوستان په عوامو كښې دمعانقې مروجه طريقه چې سينى څخه علاوه خيټه هم لګول كيږى ددې په طريقه د خصوصيت هم له نبى كريم صلى الله عليه وسلم څخه كوم ثبوت نشته له دې څخه علاوه نورهم ډير مفاسد دى، لهذا دا رسم واجب الترك دې، والله سبحانه وتعالى اعلم

۳۰ جمادى الاولى سنه۱۴۰۲ هـ

## ۴- دمعانقې حكم

**سوال**: آيا په وخت دملاقات كښې دمعانقې دمروجه رسم ثبوت شرعا شته ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دمعانقې معنى ده (غاړه له غاړى سره لګول) په عربو كښې متوارثه هم همداده چې ټول جسم جدا وى اوغاړه له غاړې سره ولګوى.

دلغت په كتابونو كښې ددې په معنى كښې ضم او التزام هم ليكل شوې دې چې مختص بالعنق هم كيدې شى، البته په منجد كښې دضم الى الصدر تصريح ده.

قال الافريقى: عانقه معانقة عناقا: التزمه فادنى عنقه الى عنقه (لسان العرب)

وقال الجوهرى: المعانقة والعناق وقد عانقه اذا جعل يديه على عنقه وضمه الى نفسه (الصحاح)

وقال الفيومى: عانقت المراة عناقا وهو الضم والالتزام (المصباح المنير)

وفى المنجد: عانقه معانقة اذا جعل يديه على عنقه وضمه الى صدره (المنجد)

که ضم الی الصدر تسلیم هم کړې شی نو ددغو عباراتو له ظاهر څخه معلومیږي چی دا دلقاء الکبیرین پورې متعلق ندې بلکه دا د اصاغرو سره لپاره داظهار دمحبت یا له ازواجو سره لپاره داظهار دمحبت په باره کښې دې اگر چه علت دفرط محبت کښې د اشتراك له وجی کله کله په مواقع مخصوصه کښې په معانقه دکبیرینو کښې هم جائزدې کما سیجئ.

په دې څو قرائن دی:

۱. په دې کښې دجانب واحد عمل ذکر دې پداسی حال کښې چی په لقاء الکبیرین کښې عمل له جانبینو څخه وی.

۲. خپل دواړه لاسونه دچاپه غاړه کښې اچول او خپل ځان ته راکشول ظاهره خبره ده چی دا معامله د اصاغرو او ازواجو سره په فرط دمحبت کښې وی.

۳. دفیومی عبارت (عانقت المراة) په دې باره کښې نص صریح دې، دحدیثو له روایاتو څخه هم همدا ثابتیږی.

۱ــ عن ابی هریرة الدوسی رضی الله عنه قال خرج النبی صلی الله علیه وسلم فی طائفة من النهار لایکلمنی ولا اکلمه حتی اتی سوق بنی قینقاع فجلس بفناء بیت فاطمة فقال اثم لکع اثم لکع فحبسته شیئا فظننت انها تلبسه سخابا او تغسله فجاء یشتد حتی عانقه وقبله وقال اللهم احبه واحب من یحبه (صحیح البخاری ص۲۸۵ ج۱)

۲ــ عن یعلی رضی الله تعالی عنه قال ان حسنا وحسینا رضی الله تعالی عنهما استبقا الی رسول الله صلی الله علیه وسلم فضمهما الیه رواه احمد (مشکوة ص۴۰۳)

۳ــ عن الشعبی ان النبی صلی الله علیه وسلم تلقی جعفر بن ابی طالب رضی الله تعالی عنه فالتزمه وقبل ما بین عینیه (سنن ابی داود ص۳۵۳ ج۲)

۴ــ عن عائشة رضی الله تعالی عنها قالت قدم زید بن حارثة المدینة ورسول الله صلی الله علیه وسلم فی بیتی فقرع الباب فقام الیه النبی صلی الله علیه وسلم عریانا یجر ثوبه والله ما رایته عریانا قبله ولا بعده فاعتنقه وقبله هذا حدیث حسن غریب لانعرفه من حدیث الزهری الا من هذا الوجه (جامع الترمذی ج۲ ص۱۰۲)

۵ــ عن ایوب بن بشیر عن رجل من عنزة انه قال قلت لابی ذر رضی الله تعالی عنه هل کان رسول الله صلی الله علیه وسلم یصافحکم اذا لقیتموه قال ما لقیته قط الا صافحنی وبعث الی ذات یوم ولم اکن فی اهلی فلما جئت اخبرت انه ارسل الی فاتیته وهو علی سریره فالتزمنی فکانت تلك اجود واجود (سنن ابی داود ص۳۵۲ ج۲)

اخرج الامام احمد رحمه الله تعالی ایضا (فتح الباری ص۵۰ ج۱۱)

۶ــ اخرج ابن سعد ان النبی صلی الله علیه وسلم قبل نعیم بن عبدالله النحام واعتنقه لما قدم المدینة مهاجرا (اعلاء السنن ص۳۲۰ ج۱۷)

۷ــ عن اسید بن حضیر رضی الله تعالی عنه رجل من الانصار قال بینما هو یحدث القوم وکان فیه مزاح بینا یضحکهم فطعنه النبی صلی الله علیه وسلم فی خاصرته بعود فقال اصبرنی فقال اصطبر قال ان علیك قمیصا ولیس علی قمیص فرفع النبی صلی الله علیه وسلم فاحتضنه وجعل یقبل کشحه قال انما اردت هذا یارسول الله (ابوداود ص۳۱۸ ج۲)

۸ ــ اخرج الامام البخاری رحمه الله تعالی فی الادب المفرد فی باب المعانقة حدیث جابر رضی الله عنه انه بلغه حدیث عن رجل من الصحابة قال فابتعت بعیرا فشدت الیه رحلی شهرا حتی قدمت الشام فاذا عبدالله بن انیس فبعثت الیه فخرج فاعتنقنی واعتنقته (فتح الباری ص۳۹ ج۱۱)

۹ــ اخرج الطبرانی فی الاوسط من حدیث انس رضی الله تعالی عنه کانوا اذا تلاقوا تصافحوا واذا قدموا من سفر تعانقوا (فتح الباری ص۵۰ ج۱۱)

له اتم او نهم روایت ښخه له سفر نه د واپسی د صورت عموم معلومیږي وسیجئ البحث عنه.
د ترمذی ددې لاندې روایت ښخه مطلقا ممانعت مراد دې.

عن انس بن مالك رضی الله تعالی عنه قال قال رجل یارسول الله صلی الله علیه وسلم منا یلقی اخاه اوصدیقه اینحنی له قال لا قال افیلتزمه ویقبله قال لا قال فیاخذ بیده ویصافحه قال نعم، هذا حدیث حسن (جامع الترمذی ص۱۰۲ ج۲)

## د ترجیح وجوه

دمنع په روایاتو کښې دترجیح دا لاندې وجوه موندل کیږی
۱- دا روایات قولی دی اوروایات داباحت فعلی دی.
۲- داقاعده کلیه ده اوروایت داباحت جزئیات محتمله التخصیص دی.
۳- حظرلره په اباحت باندې ترجیح وی.
امام طحاوی رحمه الله فرمایی چی معانقه دصحابه کرامو ښخه هم ثابته ده چی دا روایات داباحت دتاخر او د منع دروایاتو د نسخ دلیل دې لهذا اباحت لره ترجیح ده ونصه:
فهولاء اصحاب رسول الله صلی الله علیه وسلم قد کانوا یتعانقون فدل ذلك ان ماروی عن رسول الله صلی الله علیه وسلم من اباحة المعانقة متاخر عما روی عنه من النهی عن ذلك فبذلك نأخذ وهو قول ابی یوسف رحمه

الله تعالیٰ (شرح معانی الآثار ص۳۰۲ ج۲)

## وجه التوفيق

روایات داباحت دسفر نه دواپسی یا داسی نورقسم مواقع دمسرت اوفرط محبت سره مختص دی اوروایات دمنع له قیود مذکوره څخه قطع نظر دمعانقې په تعمیم پورې مختص دی، ولاشك ان التوفيق احسن وارجح من الترجيح.

حضرت مولانا ظفر احمد وجه دتوفیق دا بیان کړې ده چی معانقه په وخت دهیجان دمحبت کښې مباح ده او دتحية اللقاء په طور ممنوع ده ونصه:

وهذا (ای حديث الممانعة يدل بسياقه على ان التقبيل والمعانقة الذين كرههما ابوحنيفة رحمه الله تعالى هما اللذان يكونان على وجه التحية عند اللقاء لامطلقا (الى قوله) وقديكونان لهيجان المحبة والشوق والاستحسان عند اللقاء وغيره من غير شائبة الشهوة وهما مباحان باتفاق ائمتنا الثلاثة رحمهم الله تعالى لثبوتهما عن النبی صلی الله عليه وسلم واصحابه رضی الله تعالى عنهم، ولعدم مانع شرعی عنه هذا هی التحقيق وقد التبس الامر على مشايخنا (اعلاء السنن ص۳۱۸ ج۱۷)

د شیخ عثمانی رحمه الله تعالی په دغه توجیه کښې په یوڅو وجوهو سره اشکال دې:

۱- دمعانقې له تحیه څخه بالکل خارج کول په وخت دلقاء کښې دتمام التحيه لپاره سنیت المصافحه قبل المعانقې لره مستلزم دې حالانکه په روایاتو دمعانقې کښې دمصافحې هیڅ ذکر نشته

۲- په احادیث مذکوره کښې دتحية اللقاء په موقع له معانقې څخه همدا ظاهره ده چی دا په تمام التحيه کښې داخله ده.

۳- مصافحه داظهار اومحبت له وجی تمام التحيه ګرځیدلې ده اوداعلت په معانقه کښې زیات موندل کیږی نو هغه دې په طریقه اولی سره تمام التحيه وګرځی.

له دغو دریو وجو څخه ظاهره شوه چی تمام التحيه عند اللقاء على سبيل البدل احد الشيئين دې په عامو حالاتو کښې مصافحه اومواقع مخصوصه کښې معانقه.

حاصل داچی اصل تحية اللقاء صرف په سلام سره اداء کیږی اوتمام التحيه له سلام څخه بعد د ډیر اظهار دمسرت اومودت نه چی دهغې دوه طریقی دی على سبيل البدل مشروع دی په عامو حالاتو کښې مصافحه اودکوم خاص محرك په وخت معانقه. د اظهار محبت د دغو دواړو طریقونه هریوه چی وی تمام التحيه جوړیدلې شی اوله موقع تحیه څخه علاوه مستقل هم په تحیه کښې د دواړو جمع کولو د واضح دلیل دنه موندلو په وجه دا خلاف سنت معلومیږی

البته مستقلا یعنی په غیر دموقع دتحیه په جمع کولو کښې کوم اشکال نشته، ددې لپاره

دثبوت حاجت نشته والفرق ان الاول من موارد الشرعيه دون الثانی
له دې نه علاوه يوبحث مخی ته راځی چی په معانقه کښې تيامن افضل دی اوکه تياسر؟
په دې باره کښې کومه تصريح له نظره نده تيره شوې له عامو اصولو څخه تيامن لره ترجيح معلوميږی، مګر دمعانقی منشاء چونکه هيجان دمحبت دې چی دهغې محل قلب دې اوپه صورت دتياسر کښې دجانبينو د زړونو له يوبل سره دلازيات قريب والی اونږديکت راځی له دې وجی نه تياسر راجح دې اوله دې وجه نه دتياسر عام معمول دې.

## د امامانو رحمهم الله اقوال

له طرفينو اوامام مالك څخه كراهيت اوتبديع منقول دي.

قال العلامة العينی رحمه الله تعالی معزيا الی الجامع الصغير: محمد عن يعقوب عن ابوحنيفه رحمه الله تعالی ان قال: اكره ان يقبل الرجل من الرجل فمه اويده اوشيئا منه ويكره المعانقة ولا اری بالمصافحة بأسا (البناية ص۲۱۳ ج۱۱)

وقال الامام الطحاوی رحمه الله تعالی: فذهب قوم الی هذا فكرهوا المعانقة منهم ابوحنيفة ومحمد رحمهما الله تعالی (شرح معانی الاثار ص۳۰۲ ج۲)

و كذا نقل عنه الامام المرغينانی رحمه الله تعالی (هدايه ص۳۶۷ ج۴)

وقال العلامة السهارنفوری رحمه الله تعالی معزيا الی اللمعات: وعند ابی حنيفة ومحمد رحمهما الله تعالی يكره ان يقبل الرجل يد الرجل اوفمه اوشيئا منه اويعانقه لورود النهی عنه فی حديث انس رضی الله تعالی عنه (بذل المجهود ص۳۲۵ ج۶)

وقال الحافظ رحمه الله تعالی: قال ابن عبد البر روی ابن وهب عن مالك رحمه الله تعالی انه كره المصافحة والمعانقة وذهب الی هذا سحنون وجماعة وقد جاء عن مالك رحمه الله تعالی جواز المصافحة وهو الذی يدل عليه صنيعه فی الموطا وعلی جوازه جماعة العلماء سلفا وخلفا والله اعلم (فتح الباری ص۷ ج۱۱)

وقال ايضا: استاذن سفيان بن عيينه علی مالك رحمهما الله تعالی فاذن له فقال السلام عليكم فردوا عليه ثم قال السلام خاص وعام السلام عليك يا اباعبدالله ورحمة الله وبركاته فقال وعليك السلام يا ابامحمد ورحمة الله وبركاته ثم قال لولا انها بدعة لعانقتك قال قد عانق من خير منك قال جعفر قال نعم قال ذاك خاص قال ماعمه يعمنا (حواله بالا)

په فتح الباری کښې چې دامام مالك اوسفيان بن عيينه په مابين کښې چې کومه مکالمه وراندې نقل شو دهغې په آخر کښې دامام مالك دسکوت نه معلوميږی چی هغه دقول تخصيص

اوکراهیت اوتبدیع دتعمیم نه رجوع فرمایلی ده .

حنفی مشائخو اباحت ته ترجیح ورکړیده اودطرفینو دقول یی مختلف توجیهات کړی دی تر ټولو ښه اوغوره توجیه داده چی په وجه التوفیق کښې ولیکل شوه چی دمواقع مخصوصه درعایت څخه بغیر عام عادت جوړول مکروه دی، په دې صورت کښې امام ابویوسف هم د اباحت قائل ندې ددې توجیه لاندې دطرفینو اوثانی رحمهم الله تر مینځ هیڅ اختلاف نشته.

له روایاتو اوعباراتو مذکوره وو څخه ثابته شوه چی معانقه که صرف ضم دعنق وی یا ضم دصدر هم وی په هر حال په خاصو مواقعو پورې مختصه ده .

په پاکستان اوهندوستان کښې مروجه معانقه چی سینه او خیټه اوټول جسم یوله بل سره پیوست کړل شی بلاشبه او بالاتفاق بدعت اوواجب الترک ده، له عدم ثبوت څخه علاوه په دې کښې لاندې درج شوی مفاسد دی :

۱۔ دا مخترعه اوله ځان نه جوړه شوې طریقه سنت بلل کیږی اوغیر سنت سنت بلل بدعت دې.

۲۔ دمختلف الاحوال اشخاصو بوئ اوخولونه تلوث چی موجب د تاذی ګرځیدلونه علاوه مورث دامراضو هم وی، له دې وجی نه له عربونه علاوه په نورو ملکونو کښې ډیر مستهجن (بد کار) او ډیر قبیح ګڼل کیږی.

۳۔ داسی متسهجن اوقبیح رسم سنت ګڼل دسنتو توهین اوبی عزتی ده .

دخواهشات نفسانیه دتکمیل یوه لاره ده، بی دینه اوګمراه خلك دسنت په نوم شهوت رانی کوی او دنورو کبائرولپاره دا وسیله اوذریعه جوړوی .

۵۔ دچا د قتل کولو یو آسان تدبیر دې، همدا اوس یوه حادثه شوې ده چی په دوستانه انداز کښې یو شخص بل شخص سره سینه لګولې وه اودومره زور یی ورکړې وو چی دهغه په زړه دشدید دباو له وجې هغه مړ شو .

سخته ایذاء رسانی خو معمولی خبره ده یو شخص بل ته دومره زور ورکړې وو چی هغه مرګ ته رسیدلې وو خو مړنشو مګر شوورځی په ساه اخستلو کښې ورته ډیر تکلیف وو، یو شخص بل دومره دباوکړې وؤ اوزور یی ورکړی وو چی پوښتی یی ماتې شوې وې، ببیا حماقت برحماقت داچی دا ظلم عظیم دمحبت حق ګڼل کیږی. والله سبحانه وتعالی اعلم یوم عرفه سنه ۱۴۱۶ھ

•••••••••••••

بسم الله الرحمن الرحیم

قال رسول الله صلی الله علیه وسلم : وتمام تحیاتکم بینکم المصافحة (احمد وترمذی)

وقال انس رضی الله تعالی عنه : کانوا اذا تلاقوا تصافحوا واذا قدموا من سفر تعانقوا (اوسط طبرانی)

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

إِنَّ أَشَدَّ النَّاسِ عَذَابًا عِنْدَ اللهِ الْمُصَوِّرُوْنَ (بخاری)

«یعنی تر ټولو سخت عذاب به د تصویر جوړونکو وی»

# النذیر العریان عن عذاب سورة الحیوان

«دساه لرونکو تصویر جوړونکښې اوستانونکښې باندې لعنت اوسخت عذاب اووعیدونه»

**افاضه** : فقیه العصر دامت برکاتهم

**لیکنه** : حضرت مفتی محمد ابراهیم صاحب صادق آبادی مدظله

***********
***********

## النذیر العریان عن عذاب صورة الحیوان

- په کوم کور کښې چې تصویر وی هغه ته ملائکه نه داخلیږی
- له ټولونه زیات سخت عذاب به تصویر جوړونکو ته وی
- تصویر جوړول د الله تعالی سره یو قسم شرک دې
- دمختلف قسم تصویرونو د احکامو تفصیل
- دحضورصلی الله علیه وسلم اراشادات.
- دائمه اربعه اوفقهاء امت رحمهم الله تعالی اجماع

## دتصویر شرعی احکام

**سوال**: څه فرمائی علماء دین متین په دې مسئله کښې چې بنده په یوه سکول (ښوونځی) کښې مامور دې په هغه کښې دا دستوردې چې د کال په آخر کښې د اووم ټولګی زده کوونکی د اتم ټولګی زده کوونکی او دنهم ټولګی زده کوونکی دلسم ټولګی زده کوونکو ته الوداعی دعوت ورکوی، په دې مجلس کښې په اهتمام سره کیمرې رواړل کیږی او د مجلس دټولو شرکت کوونکو تصویرونه اخستل کیږی ما د منع کولو کوشش وکړ مګر هغوئ منع نه شول، زه خپله ترخپل وسه پورې په رومال مخ پټوم آیا په داسې طریقې سره زما دې مجلس کښې شرکت کول جائزدی او که نه؟ حقیقت دادې چې عام خلك دا ګناه نه ګنی اوهمدارنګه دتصویرپه حرمت باندې مکمله رڼا واچوئ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا دمعصیت مجلس دې چې شرکت پکښې بالکل جایزندې بلکه که مجلس په دوران کښې داسی قسم حرکت شروع شی او په منع کولوئی قدرت څوك نه لری نو په هغوئ هریوشخص لازم دی چې مجلس پریږدی مګر دا چې په دې مجلس کښې دچاپه چا پورې حق متعلق وی کجماعة الصلوة واستیفاء الدین.

چنانچه دقرآن کریم واضح هدایت دی: ﴿وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتَابِ أَنْ إِذَا سَمِعْتُمْ آيَاتِ اللَّهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَأُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوا مَعَهُمْ حَتَّىٰ يَخُوضُوا فِي حَدِيثٍ غَيْرِهِ إِنَّكُمْ إِذًا مِثْلُهُمْ﴾ الآیة (۴ــ۱۴۰)

ترجمه: اوالله تاسوته داپیغام رالیږلې چې کله داحکام الیهی سره استهزاء او کفر کیږی نو تاسو له دغوخلکو سره مه کینئ. څوپورې چې هغوئ بله خبره نه وی شروع کړې چې په داسې حال کښې به تاسو هم ددوئ په شان شئ.

امام ابوبکر جصاص ددې آیت په تفسیر کښې لیکلی دی: **وفی هذه الآية دلالة على وجوب انكار المنكر على فاعله وان من انكاره اظهار الكراهة اذا لم يمكنه ازالته وترك مجالسة فاعله والقيام عنه حتى ينتهي ويصير الى حال غيرها (احكام القران ص۲۸۹ ج۲)**

دا آیت په دې دلالت کوی چې کوم سړې دګناه ارتکاب کوی نو په هغه باندې رد اونکیر واجب دې او که دګناه ازاله ممکن نه وی نو دا هم دنکیر یوصورت دې چې په ګناه کولو دنفرت اوکراهت اظهار وکړل شی او د ګناه دمرتکب ملګرتیا پریښودل شی او د هغه لخوا څخه ولاړشی حتی چې هغه ګناه پریږدی اوپه بل کار مصروف شی.

له دې څخه انکارنشته چې دتصویر لعنت په دې زمانه کښې دعامې وباء شکل اختیارکړې دې دپارلمان له ایوان څخه نیولې تر کچه جونګړو پورې دملك در اودیوار تصویرونو پوښلې دې

مگر دا فلسفه د خودكش مترادفه ده چې كوم مرض وبايي صورت اختيار كړي اوتوله آبادي په غير
كښې ونيسي نو دمناسب تدبير د اختيارولو په ځاى دې مرض ته مرض ويل هم پرېښودل شي
په هرحال كومه گناه كه څومره هم عامه شي نوله دې څخه دشريعت په حكم كوم اثر نه پرېوځي
دلسان نبوت نه يو يو حرف وتلې او داپه خپل ځاى يو پوخ حقيقت دې او د ژوندئ دنيا لپاره
دلارې بل مشال دې.

كه نن يو فارمې مسلمان د هادي الكونين صلى الله عليه وسلم دصريحو ارشاداتو خلاف
دبغاوت جنډه پورته كړې ده نو دا دهغوى خپل شقاوت اوبدبختي ده نه د رسول الله صلى الله عليه
وسلم د فرمان نقص.

تصوير جوړول دا دشريعت له نظره يوه گناه كبيره ده، دهغې خطرناك نتائج په يو هوشدار
اوعقلمند انسان پټ ندي د معذبو قومونو عبرتناك انجام قرآن كريم مفصل بيان كړې دې په هغو
كښې دكفر اوشرك گمراهي دتصوير له لارې راغلې ده چنانچه دصحيحنو حديث دې:

**اولئك اذا مات فيهم الرجل الصالح بنوا على قبره مسجدا ثم صوروا فيه تلك الصور اولئك شرار خلق الله (متفق عليه)**

په اهل كتابو كښې به چې كوم نيك سړې له دنيا څخه رخصت شو نو دهغه په قبر به يې جومات
جوړ كړ اوبيا به يې دهغه تصويرونه پكې كيښودل دا دالله تعالى په مخلوق كښې بدترين خلق دي.

دبخاري شارح امام ابن حجر عسقلاني ليكي: **وكان غالب كفر الامم من جهة الصور (فتح الباري ص ۱۷ ج۸)** يعني اكثر امتونو كښې شرك او كفر دتصوير له لارې راغلې دې.

په دې دور كښې چې دفحاشي اوعرياني اوبې پردگۍ سيلاب تول بندونه مات كړي دي هرسړې
پوهيږي چې دا فتنه دتصوير له وجې څخه ده اودا تول سيلاب دټي وي او وي سي آر اوفحش
اخباراتو له خولې څخه راوځي.

## دحرمت دلائل

دتصوير په حرمت احاديث په كثرت سره موجود دي چې په معنوي طورسره حد تواترته
رسيدلي دي، صرف په صحيح بخاري كښې په دې باره كښې لس ابواب ذكر دي، مونږ د اختصار
په نظر كښې نيولو سره دبخاري له هغو بابونو څخه يو يو حديث نقل كوو:

۱ــ **عن ابي طلحة رضي الله عنه قال قال النبي صلى الله عليه وسلم لاتدخل الملئكة بيتا فيه كلب ولاتصاوير (بخاري ص۸۸۰ ج۲ باب التصاوير)**

يعني په كوم كور كښې چې سپې ياتصوير وي هلته درحمت فرشتې نه داخليږي.

۲۔ قال عبدالله بن مسعود رضی الله عنه سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول ان اشد الناس عذابا عندالله المصورون (ایضا باب عذاب المصورین یوم القیمة)

یعنی دقیامت په ورځ به سخت ترین عذاب دتصویر جوړونکوو وی.

۳۔ قال ابوهریرة رضی الله عنه سمعت رسول الله صلی الله علیه وسلم یقول ومن اظلم ممن ذهب یخلق کخلقی فلیخلقوا حبة ولیخلقوا ذرة الحدیث.

یعنی له هغه چا څخه به غټ ظالم څوك وی چی دخالقیت په عمل کښې زما مقابله کوی نو دا خلق خودې یوه دانه یا یوه ذره پیدا کړی او ودې ښائی.

۴۔ قالت عائشة رضی الله تعالی عنها: قدم رسول الله صلی الله علیه وسلم من سفر وقد سترت بقرام لی علی سهوة لی فیه تماثیل فلما راٰه رسول الله صلی الله علیه وسلم هتکه وقال اشد الناس عذابا یوم القیمة الذین یضاهون بخلق الله. (ایضا باب ما وطئ من التصاویر)

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی حضور صلی الله علیه وسلم له یوسفر څخه تشریف راوړلو ماپه تاخچه باندې تصویر لرونکې پرده زوړنده کړې وه، حضور صلی الله علیه وسلم چی کله هغه ولیدله نو څیری یی کړه اووې فرمایل چې: په ورځ دقیامت به سخت عذاب دهغه خلکو لپاره وی چی په صفت دخالقیت کښې دالله تعالی نقل کوی.

۵۔ عن عائشة رضی الله تعالی عنها انها اشترت نمرقة فیها تصاویر فقام النبی صلی الله علیه وسلم بالباب فلم یدخل فقلت اتوب الی الله مما اذنبت قال ما هذه النمرة؟ قلت لتجلس علیها وتوسدها. فقال ان اصحاب هذه الصور یعذبون یوم القیمة یقال لهم احیوا ما خلقتم وان الملائکة لا تدخل بیتا فیه الصور (ص ۸۸۱ ج۲ باب من کره القعود علی الصور)

حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها فرمائی: مایوه تصویر لرونکې تکیه واخسته نو حضور صلی الله علیه وسلم په دروازه کښې ودریده اودننه یی تشریف رانه وړ ماعرض اوکړ ماڅخه څه خطاشوی ده؟ زه دخپلې ګناه له الله تعالی څخه معافی غواړم، حضور اوفرمایل: په ورځ دقیامت به دغه تصویر جوړونکی ته عذاب وی او دوئ ته به وویل شی چی خپل جوړ کړی تصویرونه را ژوندی کړئ، اویقیناً فرشتې هغه مکان ته نه داخلیږی چی په کوم کور کښې تصویرونه وی.

۶۔ کان قرام لعائشة رضی الله تعالی عنها سترت به جانب بیتها فقال لها النبی صلی الله علیه وسلم امیطی عنی فانه لا یزال تصاویره تعرض لی فی صلوتی (ایضا باب کراهیة الصلوة فی التصاویر)

دحضرت عائشې رضی الله تعالی عنها په کور یوه تصویر لرونکې پرده ځوړنده وه نو حضور

صلی الله علیه وسلم ارشاد اوفرمائلو چې: دا لرې کړه، ددې تصویرونه بیا بیا زما دلمانځه خلل واقع کیدونکی گرځی.

۷ـ عن عبدالله بن عمر رضی الله تعالی عنهما قال وعد النبی صلی الله علیه وسلم جبریل فراث علیه حتی اشتد علی النبی صلی الله علیه وسلم فخرج النبی صلی الله علیه وسلم فلقیه فشکا الیه ما وجد فقال له انا لا ندخل بیتا فیه صورة ولا کلب. (ایضا باب لا تدخل الملائکة بیتا فیه صورة)

حضرت جبرئیل علیه السلام دحضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم سره دملاقات وعده کړې وه مگر هغه په خپل وخت رانغې، داخبره نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته گرانه پریوتله لیکن کله چې هغه له کوره دباندې تشریف راوړ نو جبریل ورسره ملاقات وکړ حضرت هغه ته دخپل انتظار رنج اوتکلیف څخه شکایت وکړو، په دې سره جبریل علیه السلام اوفرمایل چی په کوم کور کښې سپې یا تصویر وی مونږ هغه ته نه داخلیږو، دحضور صلی الله علیه وسلم په کور کښې دغه وخت دواړه موجود وو چی دهغو علم حضور صلی الله علیه وسلم ته نه وو، جبرئیل علیه السلام هغه ورته وښودل نو حضرت هغه لرې کړل.

۸ـ عن عائشة رضی الله تعالی عنها زوج النبی صلی الله علیه وسلم انها اشترت نمرقة فیها تصاویر فلما راها رسول الله صلی الله علیه وسلم قام علی الباب فلم یدخل فعرفت فی وجهه الکراهیة وقالت یارسول الله اتوب الی الله والی رسوله ماذا اذنبت، قال ما بال هذه النمرقة قالت اشتریتها لتقعد علیها وتوسدها فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم ان اصحاب هذه الصور یعذبون یوم القیمة ویقال لهم احیوا ما خلقتم وقال ان البیت الذی فیه الصور لا تدخله الملائکة (ایضا باب من لم یدخل بیتا فیه صورة)

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمائی چی مایوه تصویر داره تکیه واخسته نو دحضرت په هغی نظر ولگیده نو په دروازه کښې ودریده دننه یی تشریف رانه وړ ما دهغه په مخ مبارك دناراضگی آثار ولیدل نوعرض مې وکړ یا رسول الله! زه دالله جل جلاله اودرسول الله صلی الله علیه وسلم په درگاه کښې توبه اوباسم مانه کومه گناه شویده؟ حضرت اوفرمایل دا تصویر لرونکې پرده څنگه ده؟ ماعرض وکړ دا ما دد ې لپاره اخستې ده چی تاسو ورباندې کینئ اوتکیه ورته اووهئ نو حضرت صلی الله علیه وسلم اوفرمایل: دغه تصویر لرونکو باندې به په ورځ دقیامت عذاب وی او ورته وبه وئیل شی چې خپل مخلوق تصویرونه ژوندی کړئ. او وې فرمایل: په کوم کور کښې چی تصویر وی هغه کورته فرشتی نه داخلیږی

۹ـ عن وهب السوائی رضی الله تعالی عنه ان النبی صلی الله علیه وسلم لعن اکل الربوا وموکله والواشمة والمستوشمة والمصور (ایضا باب من لعن المصور)

حضور اکرم صلی الله علیه وسلم په سود خوړونکی باندې اوسود ورکونکی باندې اوخال وهونکی اوخال لګونکی باندې اوپه تصویر جوړونکی باندې لعنت ویلې دې:

۱۰ــ عن ابن عباس رضی الله تعالی عنهما قال سمعت محمدا صلی الله علیه وسلم یقول من صور صورة فی الدنیا کلف یوم القیمة ان ینفخ فیها الروح ولیس بنافخ (ایضا باب من صور صورة فی الدنیا)

حضرت صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمایلی دې کوم سړې چی په دنیا کښې تصویر جوړوی هغه به په ورځ دقیامت مجبور کړل شی چی په دې کښې روح واچوه خو هغه به یی نشی پکښې اچولې، نه به روح پکښې اچولی شی نه به دعذاب تخفیف وی.

داوعیدونه دهر قسم تصویر متعلق دی که هغه لوی وی اوکه وړوکې په کاغذ یا ټوټه یا دیوال وی اوکه په بل څه په سکه نقش کړې شوې یا په لوټونو چاپ کړې شوې وی، په هر کیف دذکر شوی وعیدونو مصداق دې اوحرام دې.

په دې باره کښې داکابروعلماؤ دامت تصریحات را روان دی:

بیا ددغو وعیدونو مصداق صرف تصویر جوړونکی ندی بلکه دامام ابن الحاج رحمه الله تعالی دتصریح مطابق دهغو تحسین اوتصویب کونکی هم په دې کښې ورسره شامل دی، دهغوی په دغه فعل باندې له زړه نه راضی کیدونکی خلك او د دغه فعل لیدونکی سره دقدرت نه نکیر نه کونکی ټول په ګناه کښې ورسره شریك دی «المدخل صـ ۲۷۳ جـ ۱».

البته غیر ذی روح تصویر له دغو وعیدونو څخه مستثنی دې دهغو په جوړلوکښې کوم حرج نشته چنانچه صحیح بخاری اوصحیح مسلم کښې دحضرت عبدالله بن عباس فتوی موجوده ده.

ان ابیت الا ان تصنع فعلیك بهذا الشجر کل شئ لیس فیه روح. (صحیح بخاری صـ ۲۹۶ جـ ۱ صحیح مسلم صـ ۲۰۲ جـ ۲)

که څوك یی جوړوی نو د ونو اونوروشیانو تصویرونه دې جوړ کړی چی روح پکښې نه وی.

## د امت اجماع

دروح لرونکی تصویر جوړول په اجماع دامت سره حرام دی، په دې مسئله باندې داکابرین امت دومره عبارتونه موجود دی چی دهغو استقصاء یوه دضخیم کتاب تقاضا کوی، موږ په طور د نمونې د هر فقهی مکتب فکر یویو عبارت نقل کوو:

۱- دبخاری شارح علامه بدرالدین عینی رحمه الله تعالی فرمائی: وفی التوضیح قال اصحابنا وغیرهم تصویر صورة الحیوان حرام اشد التحریم وهو من الکبائر وسواء صنعه لما یمتهن اولغیره فحرام بکل حال لان فیه مضاهاة لخلق الله وسواء کان فی ثوب اوبساطا ودینارا ودرهما وفلس اواناء اوحائط واما مالیس فیه صورة حیوان کالشجر ونحوه فلیس بحرام، وسواء فی هذا کله ماله ظل وما لاظل له وبمعناه قال جماعة

العلماء مالك والثوری وابوحنیفة وغیرهم رحمهم الله تعالی. (عمدة القاری ص۔۴۰ ج۲۲)

په توضیح کښې دی چی زمونږ فقهاء احناف اونور حضرات هم فرمائی چی دروح لرونکی تصویر جوړول سخت حرام دی اوله کبیره گناهونوڅخه دی اگر که د پایمال کولو او ذلیل کولو لپاره جوړ کړې شی یاد بل کوم مقصد لپاره، په هرکیفیت حرام دی، ځکه چی په دې کښې دالله تعالی دصفت تخلیق مقابله ده که تصویر د رخت په ټوټه وی اویا په بل څه دینار یا درهم یالوښی یا دیوال وغیره وی، البته په کوم کښې چی د جاندار تصویر نه وی لکه ونه وغیره نو دا حرام ندی.

دحرمت په حکم کښې سیوری لرونکې اوغیرسوری لرونکې صرف نقش یو برابر دی. همداشان فرمایلی دی یوجماعت دعلماؤ لکه امام مالك، ثوری اوابوحنیفه وغیرهم رحمهم الله تعالی.

داحنافو په نورو کتابونو کښې هم دامسلك په تفصیل سره مذکور دې وګورئ البدائع ص۔ ۱۱۶ ج۱ هندیه ص۔ ۳۵۹ ج۵ ردالمختار ص۔ ۶۴۷ ج۱ المتانه ص۔ ۲۲۴ وغیرها.

۲- شیخ الاسلام محی الدین النووی الشافعی فرمائی: **قال اصحابنا وغیرهم من العلماء تصویر صورة الحیوان حرام شدید التحریم وهو من الکبائر لانه متوعد علیه بهذا الوعید الشدید المذکور فی الاحادیث وسواء صنعه بما یمتهن اوبغیره فصنعته حرام بکل حال لان فیه مضاهاة لخلق الله تعالی وسواء ما کان فی ثوب اوبساط اودرهم اودینار اوفلس اواناء اوحائط اوغیرها.**

**واما تصویر صورة الشجر ورحال الابل وغیر ذلك مما لیس فیه صورة حیوان فلیس بحرام (وبعد سطرین) ولافرق فی هذا کله بین ماله ظل ومالاظل له هذا تلخیص مذهبنا فی المسالة وبمعناه قال جماهیر العلماء من الصحابة رضی الله تعالی عنهم والتابعین ومن بعدهم رحمهم الله تعالی وهو مذهب الثوری ومالك وابی حنیفة وغیرهم رحمهم الله تعالی وقال بعض السلف انما ینهی عما کان له ظل ولاباس بالصور التی لیس لها ظل وهذا مذهب باطل فان الستر الذی انکر النبی صلی الله علیه وسلم الصورة فیه لاشك احد انه مذموم ولیس لصورته ظل مع باقی الاحادیث المطلقة فی کل صورة.** (شرح النووی علی صحیح مسلم ص۱۹۹ ج۲)

زمونږ شوافعو علماؤ اونورو علماؤ فرمایلی دی چی دروح لرونکی تصویر جوړول سخت حرام دی او له گناه کبیره څخه دی، لدی وجی نه وربانذی سخت وعیدونه راغلی دی چی په احادیثو کښې ذکر دی برابره خبره ده که دا تصویر دپامال کولو او ذلیل کولو لپاره جوړشوې وی یا دکوم بل مقصد لپاره، ددی جوړول په هرحال حرام دی چی په دې کښې دالله تعالی دصفت تخلیق مقابله ده اوبرابره خبره ده که په ټوټه (کپړه) سره وی یاپه بل څه سره وی لکه فرش، دینار او درهم، روپئ لوښی، دیوال یا په بل څه، البته د ونې اونورو بی روح شیانو تصویر جوړول جائزدی.

په دغه ټولو احکامو کښې سوری لرونکی اوبې سوری (صرف نقش) په منځ کښې هیڅ فرق نشته دواړه قسمه یو شان حرام دی، دا زمونږ په مذهب کښې ددې مسئلې خلاصه ده او دا قول دجمهورو صحابه کرامو اوتابعینو او وروستنو علماؤ دې او دا مذهب دامام ثوری مالك ابوحنیفه وغیرهم رحمهم الله تعالی دې.

په اسلافو کښې دځینو قول دادې چې له سیوری لرونکی تصویر څخه منع راغلې اوپه هغه تصویرونو کښې کوم حرج نشته چې سورې نه لری، لیکن دا مذهب باطل دې ځکه چې په کومه پرده حضور نکیر فرمایلی وو بی شکه اوبې شبهې هغه تصویر مذموم وو حالانکه دهغې سیورې نه وو اونور احادیث خولا اضافه دی چې دهر تصویر په باره کښې مطلق دی.

دشوافعو حضراتو په نوروکتابونو کښې هم دتصویر حرمت صریح ذکر دې ملاحظه کړئ: نهایة المحتاج الی شرح المنهاج ص ۲۱۹ ج۲ تکملة المجموع شرح المهذب ص۴۰۲ ج۶ حواشی تحفة المحتاج ص۴۷۲ ج۷ وغیرها.

۳- علامه مرداوی حنبلی فرمایی: **یحرم تصویر مافیه روح ولایحرم تصویر الشجر ونحوه والتمثال ممالایشابه مافیه روح علی الصحیح من المذهب (الانصاف ص۴۷۳ ج۱)**

د روح لرونکی تصویر جوړول حرام دی دونې او د داسې نوروشیانو تصویر جوړول چې روح پکې نه وی دصحیح مذهب مطابق حرام ندی. دغه تفصیل په لاندې کتابونو کښې هم دې: المغنی لابن قدامه ص۲۸۲ ج۷ الاقناع ص۲۳۰ ج۳ کشاف القناع ص۱۷۱ ج۵

۴- په فقه مالکی کښې دتصویر په باره کښې داتفصیل مذکور دې چې سیوری لرونکې تصویر ناجائزاوسیوری نه لرونکې تصویر جائزدې لکه څنګه چې په دردیرعلی مختصر الخلیل کښې دی.

**والحاصل ان تصاویر الحیوانات تحرم اجماعا ان کانت کاملة لها ظل ممایطول استمراره، بخلاف ناقص عضولایعیش به لوکان حیوانا، وبخلاف مالاظل له کنقش فی ورق اوجدار وفیها لایطول استمراه خلاف والصحیح حرمته. (الشرح الصغیر علی الدردیر ص۱۰ ج۲)**

خلاصه دا چې دروح لرونکښې تصویر بالاجماع حرام دی په دې شرط چې مکمل وی سیورې ولری او دیر پا (همیشه پایه دار) وی، په خلاف دهغه تصویر چې دهغه داسې عضو ناقصه وی چې بغیر له هغې روح لرونکې ژوندې نه شی پاتی کیدې اوپه خلاف د بی سیوری تصویر لکه په کاغذ باندې یا په دیوال باندې نقش شوې تصویر، چې دا دواړه قسمه جائزدی کوم تصویر چې دیرپا (همیشه پایه دار) نه وی په هغه کښې اختلاف دې دصحیح قول مطابق هغه هم حرام دې. په شرح منح الجلیل ص۱۶۶ ج۲ اوپه الخرشی ص۳۰۲ ج۳ وغیرهما کښې هم دامذکور دی.

له صاحب المذهب امام مالك څخه دواړه قولونه موجود دی یودسیوری لرونکی اوبی سیوری

په تصوير کښې دتفصيل چې اول ناجائز اودويم جائز دې ، اودويم قول د على الاطلاق حرمت دې،
ملاحظه کړئ التمهيد لابن عبدالبر صـ ۳۰۱ جـ ۱.

په دې کښې هيڅ شك نشته چې دبې سايه تصوير دجواز قول دجمهورو دمذهب خلاف دې او د
دلائلو په لحاظ سره هم ضعيف دې دصحيح بخاري په مذکوره رواياتو باندې له سرسرى نظر کولو
نه دهغه ضعف ظاهرېږى لدې وجې نه امام نووى دغه مذهب باطل ګڼلې دې اودحضرت امام مالك
طرفته يې نسبت ندې کړى کما مر آنفا.

دمذهب مالکيه بعضې اکابر ائمه کرامو هم لدې موقف سره اختلاف کړې دې اودجمهورو
مذهب يې غوره کړې دې چنانچه قاضى ابن العربى دجمهورو مذهب اصح اوعلامه زرقانى رحمه
الله تعالى دا اعدل المذاهب ګڼلې دې، امام عبدالبر مالکى هم دا راجح بللې دې، ملاحظه کړئ
عارضة الاحوذى صـ ۱۵۳ جـ ۷ زرقانى على الموطاصـ ۳۶۷ جـ ۴.

۵. مشهور غير مقلد عالم علامه محمدبن على الشوکانى هم په نيل الاوطار جـ ۲ کښې صـ
۱۱۳ نه ترصـ ۱۱۷ پورې په حرمت د تصويرونو احاديث په مفصل طورنقل کړى دى، اوپه صـ ۱۱۴
کښې يې دعلامه نووى وړاندى مذکور عبارت مکمل نقل کړې دې، دصحيح بخارى اومسلم يې
دوه حديثونه نقل کړى اوپه شرح کښې يې ليکلى دى چې:

**الحديثان يدلان على ان التصوير من اشد المحرمات للتوعد عليه بالتعذيب فى النار وبان كان كل مصور من اهل النار وورود لعن المصورين فى احاديث اخر وذلك لايكون الا على محرم متبالغ فى القبح.**

**وانما كان التصوير من اشد المحرمات الموجبة لما ذكر لان فيه مضاهاة لفعل الخالق جل جلاله، ولهذا سمى الشارع فعلهم خلقا وسماهم خالقين، وظاهر قوله كل مصور وقوله بكل صورة صورها انه لا فرق بين المطبوع فى الثياب وبين ماله جرم مستقل ويؤيد ذلك ما فى حديث عائشة رضى الله تعالى عنها المتقدم من التعميم الخ (نيل الاوطار صـ ۱۱۶ جـ ۲)**

دواړه حديثونه په دې دلالت کوى چې تصوير له سخت ترينو محرماتو څخه دې څکه چې په دې
باندې يې دجهنم دعذاب وعيد آورولى دې اودا چې هر تصوير جوړونکې له جهنميانو څخه دې
اوله دې سببه چې په نورو احاديثو کښې په تصوير جوړونکو باندې لعنت راغلې دې او دومره
شديد وعيدونه صرف دهغه ګناه په باره کښې وى چې په قباحت اوشناعت کښې آخرى درجې ته
رسيدلى وى، دتصوير ګناه سخت ترين حرام او د ذکر شوى پورتنيو وعيدونه مصداق له دې وجې
ده چې په دې کښې دالله تعالى دفعل تخليق مقابله ده، لدى وجې نه حضور اکرم صلى الله عليه
وسلم ددې عمل تصوير سازى ته «خلق» اوجوړونکوته «خالقين» ويلى دى، اودحديثونو له ظاهر د

الفاظو (کل مصور) یا (بکل صورة صورها) نه معلومیږی چی په رخت باندې نقش تصویر اومستقل جسم لرونکی تصویر په منځ کښې هیڅ فرق نشته اوددې تائید دحضرت عائشې رضی الله تعالی عنها دمذکور حدیث نه هم کیږی چی دواړو تصویرونو ته عام دې.

## متفرق فوائد

په حدیث نمبر (۱) کښې تصریح ده چی فرشتې دتصویر ځای ته نه داخلیږی، دجمهورو علماؤ په نزد له دې ځخه خاص قسم ملائك مراد دی، چی هغه درحمت اوبرکت ملائك دی، کرام کاتبین او یاهغه فرشتې چی دجناتو، شیاطینو وغیره ناګهانی آفتونو نه دساتنی او دانسان په حفاظت مامور ملائکه دی، هغه ددې حکم ځخه مستثنی دی. په دویم نمبر حدیث کښې دتصویر جوړونکو لپاره سخت عذاب (اشد العذاب) ترټولو خلکو نه دسخت عذاب وعید راغلې دې.

په دې باندې چاته اشکال کیدې شی چی د اشد العذاب وعید په قرآن اوحدیثونو کښې دنور ډیرقسمه مجرمانو لپاره هم راغلې دې.

په دې باندې چاته اشکال کیدې شی چی د اشد العذاب وعید په قرآن اوحدیثونوکښې دنور ډیرقسمه مجرمانو لپاره هم راغلې دې نو دا نصوص متعارض معلومیږی.

**جواب**: دکومو خلکو لپاره چی داشد العذاب وعید راغلې دې هغه ټول په یوه وخت کښې په دغه کښې شریك وی، دیوقسم په هغه کښې داخلیدل دبل فریق دخارج کیدو مستلزم نه دی.

له پنځم اوشپږم نمبر حدیث ځخه معلومیږی چی تصویر داره پرده دعائشې صدیقې رضی الله تعالی عنها په حجره کښې موجوده وه مګر حضرت صلی الله علیه وسلم په هغې نکیر ونه کړ بلکه دهغې په موجود ګی کښې یی لمونځ کاوه لکه ځنګه چی دصحیح مسلم دیوروایت الفاظ دی: وکان النبی صلی الله علیه وسلم یصلی الیه.

په ظاهره دا روایت له څلورم نمبر اوپنځم نمبر حدیث سره متعارض دې چی په هغو کښې تصریح ده چی نبی کریم صلی الله علیه وسلم تصویر داره پرده دیوې لحظی لپاره هم نه منله بلکه دنظر په لګیدلو سره یی فوراً د لرې کولو حکم وکړو.

**الجواب**: ۱- اولنی دواړه روایتونه دجاندار تصویر متعلق دی چی دهغو دلرې کولو حکم فورا نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورکړ او شپږم روایت کښې موجود تصاویر دجاندارو نه وو بلکه دبې روحه شیانو لکه دونو او ګلانو وغیره نقشونه وو، چونکه دا شیان باوجود دجائز کیدو سبب دبې توجهی دلمانځه ګرځی لدې وجی نه نبی کریم صلی الله علیه وسلم داحتیاط له مخې دهغې دلرې کولو حکم ورکړ، هکذا جمع البدر العینی رحمه الله فی عمدة القاری ص۷۴ ج۲۲.

۲- ممکنه ده چی دا حدیث دحرمت دزمانې نه وړاندی وو، فتح الباری ص۳۲۸ ج۱

له دې حدیث څخه دحرمت پرځای حلت ثابتيږي نوله همدې كبله د جوابونو ضرورت پيدا شو لهذا دا په دلائل دحرمت كښې شميرل صحيح ندي . (رشید احمد)

## د جواز د دلائلو تجزيه

كوم خلك چې تصوير جائزګڼي دهغوى له طرفه دا لاندې دلائل وړاندې كيږي:

۱- ﴿ يَعۡمَلُونَ لَهُۥ مَا يَشَآءُ مِن مَّحَٰرِيبَ وَتَمَٰثِيلَ وَجِفَانٖ كَٱلۡجَوَابِ وَقُدُورٖ رَّاسِيَٰتٍ ﴾ (۱۳-۳۴)

ترجمه : جوړول به ئې دده لپاره هغه چې دده به خوښ وو، قلاګاني او تصويرونه اوكاسې په شان دتالاب (حوض) اولويې كټوئ (ديګونه) .

په دې آيت كښې صراحت دې چې سليمان عليه السلام به په جناتو تصويرونه جوړول اوله دې څخه معلومه شوه چې تصوير جوړول جائزدي اوكه نه نو يو جليل القدر نبي به داكارڅنګه كاوه؟

۲- دنهى دتمامو احاديثو مصداق جسم دار تصويرونه (مجسمې) دي په رخت او كاغذ وغيره باندې نقش شوي تصويرونه له دې بحث څخه خارج دي لكه څنګه چې په صحيح البخاري كښې دى چې كوم ځاى كښې په تصويرونو باندې وعيد راغلې هلته دنقشي تصوير په «اِلَّا رَقمًا فِى ثَوبٍ» (يعنى مګر په رخت چې كوم نقش وى) الفاظوسره استثناء شوې ده، ملاحظه كړى ص ۸۸۱ ج ۲ باب من كره القعود على الصور.

۳- ددې ټولواحاديثو اصل علت دصحابه كرامو له زړونوڅخه دبت پرستى آثار او نشانات ختمول وو چې نوى اسلام ته راغلى وو كله چې دتوحيد عقيده دهغوى په رګونو او وينو كښې ګډه شوه اوله بتانو دهغوى طبعي نفرت پيدا شو نو ددې نوع احاديث پخپله منسوخ شول لكه چې په ابتداء داسلام كښې دخاص خاص مقصدونو په نظر كښې نيولو سره دسپيو د وژلو حكم صادر شوې وو او د شرابو دمخصوصو لوښو د ماتولو حكم فرمايل شوې وو اوقبرونوته له تللومنع شوې وه، مګر كله چې ورو ورو مقاصد حاصل شول نو دا درې واړه حكمونه منسوخ شول

على الترتيب به مونږ ددې درې واړو دلائلو ځوابونه ذكركړو

۱- دا صحيح ده چې تمثال په معنى دتصوير دې مګر ددې دعوى څه دليل دې چې حضرت سليمان عليه السلام صرف د جاندارو تصويرونه جوړول ؟ په داسې حال كښې چې دونو، ګلانو ميوو، غرونو سمندرونو او د قدرتي مناظرو عكاسى هم ترتماثيل لاندې داخل دى، بلكه ددې مدلول حقيقي دې نو ولى يى بيا تاو راتاو كوى او د جاندارو تر تصويرونو پورې خاص كولى شى؟ دا استدلال له دې وجى هم له مطلب څخه لرې دې چې سليمان عليه السلام دنورو انبياء دبنى اسرائيل په شان دتورات پيروكار وو اوپه تورات كښې د جاندارو اشياو تصوير جوړول په سختى سره منع شوى دى، له زرګونو تحريفاتو سره ممانعت ترننه پورې باقى پاتې دې او د تورات په پانو

کښې محفوظ دي، ملاحظه کړی. خروج ۱: ۲۰ استثناء ۴: ۱۶ تا ۱۸.
که چیرته ومنل شی چی سلیمان علیه السلام د ذی روح تصویرونه جوړول نودا دهغه دشریعت پورې خاص حکم وو چی د امت محمدی داتباعو څخه دهیڅ فرد لپاره دهغه اتباع قطعا جائزنده، څکه چې د اصول فقه معروفه اومسلمه قاعده ده چی دپخوانیو شریعتونو اتباع په هغه احکامو کښې واجب ده چی قرآن اوحدیث برقرار پریښی وی او دهغې په مخالفت کښې یی بل حکم نه وی صادر کړې.

دلته خودحضور صلی الله علیه وسلم له قول اوعمل څخه صفا دتصویر حرمت ثابت دې نودا به څنګه جایزوی چی دنبی کریم صلی الله علیه وسلم دشریعت له دې صفا اوصریح حکم څخه مخ واړول شی او دسلیمان علیه السلام دشریعت یو منسوخ حکم واخستل شی؟ پداسې حال کښې چی دحضور صلی الله علیه وسلم واضح اعلان دې چې: **والذی نفس محمد بیده لوبدالکم موسی فاتبعتموه وترکتمونی لضللتم عن سواء السبیل ولوکان حیاً وادرک نبوتی لاتبعنی (مشکوة بحواله دارمی)**

یعنی قسم په هغه ذات چی دهغه په قبضه دقدرت کښې دمحمد روح دې که موسی ستاسو په منځ کښې ظاهر شی اوتاسو ماپریږدئ او دهغه اتباع اختیارکړئ نو تاسو به ګمراه شئ، که موسی ژوندی وای او زما دنبوت زمانه یی موندلې وای نو هغه به هم زما تابعداری کړې وه.

۲. په تیروشویو صفحوکښې مونږ دصحیح البخاری لس حدیثونه نقل کړل داټول احادیث مطلق دی په هغو ټولو کښې په یو حدیث کښې له یوه لفظ څخه هم اشاره قدری نه موندل کیږی چی جسم دار تصویر ناجائز اوبی جسم تصویر جایز دې بلکه ۴، ۵، ۶ او ۸ حدیث ددې متعلق دی چی کوم تصویرونه په رخت باندې نقش وو حضرت صلی الله علیه وسلم په هغو باندې په سختی سره نکیر فرمایلې دې اوجوړونکو ته یی وعید فرمایلی دې.

همدارنګه په احادیثو او سیرو کښې تصریح ده چی دمکې دفتحې په موقع کله چی حضور صلی الله علیه وسلم بیت الله ته داخل شو نو وې لیدل چی له بتانو څخه علاوه دحضرت ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام تصویرونه هم راځوړندوو حضور صلی الله علیه وسلم دا تصویرونه ختم کړل او دمشرکانو متعلق یی اوفرمایل چې «قاتلهم الله» «صحیح البخاری صـ ۲۱۴ جـ ۲ وغیره»، «یعنی الله دې دوئ هلاک کړی»

پاتې شوه داخبره چی «الاماکان رقمافی ثوب» الفاظ راغلی دی، نو د رقم معنی دلغت په یوه کتاب کښې هم د روح لرونکی تصویر نده لیکل شوې، ددې اصل معنی نقش اونګار دې لکه څنګه چی په صحیح بخاری اوسنن ابی داود کښې دا واقعه لیکل شوې ده چی دحضرت فاطمې رضی الله تعالی عنها په دروازه نبی کریم صلی الله علیه وسلم منقش پرده ولیدله نو وی فرمایل

«مالناوللدنيا ومالنا وللرقم - الخ» جمع الفوائد ص۸۲۲ ج۱ په حواله دبخاري او ابوداود يعني نبي كريم صلى الله عليه وسلم اظهار د نا رضايت وكړ. يعني زمونږ له دنيا سره څه واسطه ده ؟ اوزمونږ له نقش اونگار سره څه غرض دې ؟

امام نووي فرمايي چې وجوابنا وجواب الجمهور عنه انه محمول على رقم على صورة الشجر وغيره مما ليس بحيوان ، «نووي على مسلم ص۲۰۰ ج۲».

زمونږ اوجمهورو علماؤ جواب داديې چې د «الاماكان رقما في ثوب» د ونو اونورو بې روحه اشياؤ دنقشونو په باره كښې دې. حافظ ابن حجر فرمايي : «ويحتمل ان يكون ذلك قبل النهى» «فتح الباري ص۳۲۸ ج۱۰. دا هم احتمال شته چې دا واقعه دتصويرونو دحرمت نه مخكښې وي.

علامه بدرالدين عيني فرمايي : **وقال الطحاوي يحتمل قوله الارقما في ثوب انه ارادرقما يوطأ ويمتهن كالبسط والوسائد انتهى (عمدة القاري ص۷۳ ج۲۲)**

امام طحاوي فرمائي داهم احتمال لري چې «الارقما في ثوب» نه مراد داسې تصويرونه وي چې تر پښو لاندې كيږي او ذليل وي لكه فرش اوتكيه.

غرض داچې په شراح الحديث كښې هيڅ څوك دِدې قائل نشته چې دتصوير دې كوم قسم له دې وعيدونو څخه خارج وي.

۳- دا استدلال هم له مغالطې وركولو څخه پرته بل كوم حيثيت نه لري دكومو دريو شيانو مثالونه چې يې وړاندې كړي دي دهغوى اجازت هم پس له ممانعت نه له حضرت څخه صراحتاً منقول دې لكه چې دسپيو متعلق حديث دې : **عن ابن مغفل قال امر رسول الله صلى الله عليه وسلم بقتل الكلاب ثم قال مابالهم وبال الكلاب الحديث (صحيح مسلم ص۲۰ ج۲)**

حضرت ابن مغفل فرمائي چې په ابتداء كښې حضور صلى الله عليه وسلم دسپيو دوژلو حكم كړې ووبيا يې اوفرمايل چې دخلكو له سپيو سره څه كار ؟ اوس دې دهغو قتل كول پرېښودل شي.

او د زيارت القبور اوشرابو متعلق ارشاد دى : **كنت نهيتكم عن زيارة القبور فزوروها ونهيتكم عن لحوم الاضاحي فوق ثلاث فامسكوا مابدا لكم ونهيتكم عن النبيذ الا في سقاء فاشربوا في الاسقية ولاتشربوا مسكرا (صحيح مسلم ص۳۱۴ ج۱)**

ماتاسو دقبرونو له زيارت كولو څخه منع كړې وئ اوس دا منسوخ شو اوس دهغو زيارت كولې شئ. اوتاسو دقرباني دغوښوله كيښوده څخه زيات له دريو ورځو منع شوي وئ. ليكن اوس دا حكم هم منسوخ شو. څومره وخت يې چې كيښودې شئ هغه كيږدئ. اوتاسوله ژى «مشك» څخه علاوه په نورولوښو كښې له نبيذ جوړولو څخه منع شوي وئ. ليكن اوس يې په هر لوښي كښې

جوړولې شئ اونشه راوستوکی شیان مه څښئ، ددې برعکس دتصویر دجواز هیڅ روایت نشته که وی نو مجوزین دې پیش کړی. **ودونه خرط القتاد**.

البته ددې شواهد ضرورموندل کیږی چی حضور صلی الله علیه وسلم تر آخری عمره پورې په تصویر نکیر کولو، دصحیح بخاری دا یوروایت دې ملاحظه شی:

**عن عائشة رضی الله تعالی عنها قالت لما اشتکی النبی صلی الله علیه وسلم ذکر بعض نسائه کنیسة راتها بارض الحبشة یقال لها مارية وکانت ام سلمة وام حبیبة رضی الله تعالی عنهما اتتا ارض الحبشة فذکرتا من حسنها وتصاویر فیها فرفع راسه فقال اولئك اذا مات منهم الرجل الصالح بنوا علی قبره مسجدا ثم صوروا فیه تلك الصور واولئك شرار الخلق عند الله (صحیح بخاری ص۱۷۹ج۱)**

حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایی کله چی دحضور صلی الله علیه وسلم په مرض الوفات کښې بعض ازواج مطهرات رضی الله عنهن دحبشې په ملك کښې دیوې ګرجی ذکر وکړ چی دهغې نوم ماریه وو، حضرت ام سلمه اوام حبیبه حبشې ته تللې وی هغوئ دګرجی دحسن اوجمال اوپه هغې کښې دموجودو څوتصویرونو ذکر وکړ، حضور صلی الله علیه وسلم چی دا واوریدل سر مبارك یی راپورته کړ او وې فرمایل دا د اهل کتابو دستور راروان دې چی کله به په دوئ کښې کوم صالح او نیك انسان انتقال وکړو نو دهغه په قبر باندې به یی مسجد جوړ کړو او بیا به یی په هغه کښې دا تصویرونه کیښودل بالاخر به د تصویرنونه بتان جوړشول او له بتانو څخه به شرك شروع شو، دالله تعالی په نزد دابدترین دخلکو دی.

همدارنګه دصحیح بخاری د ذکر شوی احادیثو څخه په څلورم نمبر کښې چی دکوم سفر څخه دحضور صلی الله علیه وسلم دواپسی ذکر دې دا سفر هم دحضور صلی الله علیه وسلم دحیاة طیبه دآخری کالونو سفروو څکه چی دیو روایت مطابق دا سفر دخیبر وو او د بل روایت مطابق دا سفر دتبوك وو، دخیبر غزا په اووم کال هجری کښې او د تبوك غزا په نهم کال دهجری کښې شوې ده کما صرح به اصحاب السیر.

او د صحیح البخاری په دې ذکر شوی احادیثو کښې چیرته هم دا اشاره نشته چی دا ممانعت دبت پرستی دعلت له وجې وو، فرض محال که دا علت هم وګڼل شی بیا هم دا یوه دعوی ده چی له دنیا څخه بت پرستی ختمه شوې ده، لهذا دتصویر جوړولو عامه رخصتی ده.

په نني متمدنه دنیا کښې هم ملکونه دبت پرستی په ګرداب کښې ډوب دی اوډیر مشرك قومونه خاص طور دمذهب بانیانو ته د الوهیت اختیارات سپاری او د هغوئ دتصویرونو عبادت کوی، عیان راچی بیان؟

که چیرې دلږ وخت لپاره دا مفروضه رښتیا شی چې بت پرستی خو له دنیا څخه ختمه شوې ده نو

بيا د دې دعوې څه دليل دې چې د ممانعت علت صرف په بت پرستی کښې منحصر وو ؟ په ذکرشويو پورتنيو احاديثو باندې که تکرارا يونظر واچول شی نو هلته دتصوير د ممانعت اوحرمت لپاره يواهم سبب دالله جل جلاله دصفت «تخليق» مقابله بيان شوې ده اوبل يې د رحمت دملائکو د راتګ مانع بيان کړې دې.

**الغرض**: د داسې قسم مفروضو په وجه دشريعت له يوې قطعی مسئلې څخه انکار نشی کيدې اونه داسې قسم اجتهاد له سلفو څخه چاکړې دې.

دحضور صلی الله عليه وسلم داقوالو اوافعالو لپاره دصحابه کرامو څخه پرته بل څوک غټ شارح نشی کيدې هغوئ حضرات درسول الله صلی الله عليه وسلم حقيقی رمزشناس او د هر قول اوفعل عينی شاهدان وو هغوئ حضراتو هم دتصوير متعلق له تمامو احاديثو څخه همدا مفهوم کړی چی دا ارشادات دهر قسم تصويرونو متعلق دی او دهميشه لپاره دی.

حضرت عمر رضی الله تعالی عنه د نصرانيانو دعوت رد کړلو اووې فرمايل چې: ستاسو په کورونو کښې تصويرونه وی، حضرت علی، حضرت ابوالهياج اسدی وليږه چی په ښار کښې ټول تصويرونه وران کړه اوورته وی فرمايل چې: زه رسول الله صلی الله عليه وسلم ددې لپاره ليږلې وم.

حضرت عبدالله بن مسعود په يوه مکان کښې تصوير وليده، له دروازې څخه واپس شو.

داواقعات په صحيح بخاری اومسلم کښې په مفصل ډول ذکر دی.

په مسند احمد اوسنن کبری للبيهقی وغيره کښې نورهم دصحابه کرامو واقعات په تفصيل سره ذکر دی چی مونږ د اختصار له وجی ذکر نکړل.

دمذاهب اربعه تصريحات هم مونږ وړاند مفصل ذکر کړل له هغوڅخه علاوه څه نور دلائل هم وړاندې کولی شی. د مثال په توګه:

۱- ددغه وعيدونو مصداق صرف مشرکانه نوعيت تصاوير دی چی دعبادت کولو په غرض جوړولې شی.

ددې دليل ضعف اوکمزوری دليل ته محتاج نده دحديثونو په کتابونو کښې تقريبا څلوېښت حديثونه موندل کيږی چی په هغو کښې په تصوير جوړولو شديد وعيدونه راغلی دی په دې ټوله ذخيره داحاديثو کښې چيرته اشاره قدرې هم نه موندل کيږی چی دحرمت حکم صرف ترمشرکانه قسم تصويرونو پورې خاص دې.

دصحيح بخاری په کومو رواياتو کښې چی دحضرت عائشې رضی الله تعالی عنها دتصوير لرونکې پردې دساتلو ذکر دې اوپه هغې درسول الله صلی الله عليه وسلم دنارضګی ذکر دې آيا په هغو کښې هم ددې احتمال وو، معاذالله آيا حضرت عائشی دا تصويرونه دعبادت اوپرستش لپاره اينښی وو ؟ حاشا وکلا.

بیا چی په احادیثو کښې دحرمت لپاره نور وجوهات صراحت سره ذکر دی مثلا مضاهاة بخلق الله اومنع د دخول الملائکه، هغه نظر انداز کول او دحرمت حکم صرف په یوه سبب کښې منحصر کول څه وزن لری؟

۲. دکیمرې تصویر په حقیقت کښې تصویر ندې چی هغه ته حرام وویل شی، ځکه دا یوعکس اوسیورې دې.

۳. له دې نه علاوه یو دا عجیب دلیل وړاندې کولی شی چی په کیمره کښې خو کیمره مین د جاندار صرف ظاهری صورت جوړوی د هغه د اعضاء او جوارحو تخلیق اوتکوین نه کوی چی دا دمضاهاة بخلق الله اونورو وعیدونو مصداق وګرځول شی.

ددې دلائلو سطحیت اوکمزوری بالکل ظاهره ده ، مونږ ددې په جواب ورکولو کښې وخت نه ضائع کوو، البته دتصویر اوعکس په مینځ کښې واضح فرق مونږ په خپله رساله «دتی وی زهر» کښې واضح کړې دې دچاچی شوق وی هلته یی کتلې شی.

## دسیاسی علماؤ کردار

انتهائی په خفګان سره لیکل کیږی چی دتصویر لعنت له عامو خلکو څخه تجاوزکړې اوخاصو خلکو ته بلکه ترعلماؤ پورې رسیدلې دې چی دهغې دا افسوسناکه نتیجه مخې ته راځی چی ډیر خلك د دغو حضراتو عمل وینی دا قطعی حرام حلال ګڼی لکه چی مشاهده ده چی کله هم عوام له دغه ګناه څخه منع کیږی نوهغوی فورا وایی چې : تاسونه وینئ؟ اوس خو لوی لوی علماء هم تصویرونه اوباسی ددوئ دا وینا څه دروغ نده بلکه هره ورځ په اخباراتو کښې ددغو حضراتو تصویرونه ښکاریږی.

قطع نظرله دې څخه چی داخلك واقعا تصویر جائزګڼی یا صرف له منع کونکی څخه دخلاصی لپاره دا مات ګوډ عذر وړاندې کوی په دې کښې شك نشته چی دځینی علماؤ دې افسوسناك طرز عمل جاهلان زړور کړل، بلکه بی دینه اوبد زبانه خلکوته یی ژبه ورکړه، بهانه جوړونکی خلك دې خپله سوچ اوفیصله وکړی چی یوطرفته دصحیح بخاری احادیث، دحضورصلی الله علیه وسلم واضح تنبیهات اولعنت او «اشدعذابًا» په شان سخت وعیدونه اوبیا د صحابه کرامو طرزعمل اوټول امت اجماعی موقف دې. اوبل طرفته دڅومعدودو سیاسی علماؤ طرزعمل دې «نه فتوی» آیا سبا په ورځ دقیامت دالله په حضور کښې تاسو په دې ځان خلاصولې شئ چی : ددغو علماؤ ددې بدعملی په لیدلو سره مونږ دشریعت یوقطعی حکم شاته وغورځولو. **خود تومنصف باش.**

علماء دخپلو کړو خپله ذمه واردی مونږ دهغوئ بی ځایه وکالت کول نه غواړو، البته دیوې خطرناکې اوګمراه کونکې مغالطې ځواب ورکول ضروری ګڼو اوهغه داچی کله د باعمله علماؤ له طرفه په هغوئ انتقاد کیږی نو عموما ددې حلقې له طرفه دا جواب راځی چې

ددینی مصلحت لپاره مونږ داګناه کوو ځکه چې په دې دور دفساد کښې دا ممکنه نه ده چې له داسې قسمه ګناه څخه ځان وساتل شي اوپه عوامی سطحه باندې کوم دینی خدمت وکړل شي ګویا دخپل دین اوایمان دا نقصان ددینی نفعې په خاطر کوی، که چیرته دومره نرمی اختیار نکړی نوله عوامو سره رابطه ساتل ممکنه نه ده.

داټول منطق په خپل ځای مګر دا اوفرمایئ چې په ننئ مسلمانه ټولنه کښې ګویا دمسلمان تر نوم پورې محدود موانع او مشکلات دحضرت محمد صلی الله علیه وسلم د زمانې دمعاشرې څخه ډیر زیات دی چې هغه پکښې تکی تنها دتوحید آواز پورته کړی وو؟ د دغو وختی مشکلاتو دهغه وینی زبیښونکی دور سره کوم لږی نسبت هم نشته، بیا آخر څه وجه ده چې رسول الله صلی الله علیه وسلم دهغو آزمایښونو دیلغارسره سره یوه ذره نرمی اختیار نکړه، دمخالفینو دپیشکش په کولو سره هغه اوفرمایل : **((والله لو وضعوا الشمس فی یمینی والقمر فی یساری علی ان اترک هذا الامر حتی یظهره الله اواهلك فیه ماتر کته))** البدایه ص۴۱ ج۳.

داسلام دشمنان چې له مسلمانانو نه په عَدَد اوعُدَد کښې څوچنده زیات وو له هغوئ ټولو نه لویه تمنا داوه چې حضور صلی الله علیه وسلم دې له خپل مقصد څخه نه لاس په سرکیږی بلکه صرف لږ دې نرمی اختیار کړی، نو مونږ به مخالفت پریږدو. **((ودوا لوتدهن فیدهنون))**.

مګر قرآن کریم دا قاطعه فیصله واوروله چې ددوئ پخوانی ارزو یې له خاورو سره خاورې کړه. **((ولاتطع کل حلاف مهین))**.

په دغه صفا الفاظو کښې اعلان دې چې دحق اوباطل ترمینځ هیڅ کله په هیڅ صورت کښې روغه جوړه ممکنه نده. یو طرفته دهغه صلی الله علیه وسلم دسیرت مبارکه دا بی داغه او پرکیدونکې اړخ دې مګر بل طرفته دهغه صلی الله علیه وسلم دنوم اخستونکو بلکه نائبینو دا شرمناك طرز عمل چې د موهوم منفعت په خاطر په خپل دین باندې داغ لګوی.

**(ببین این تفاوت را اوکجاتا بکجا است)**

نن سبا دا اعتراض هم دعامو او خاصو په ژبو باندې دې چې : له اوږد جدوجهد اوقربانیو سره سره دینی جماعتونه دکامیابی منزل ته ونه رسیدل؟ په ملك کښې اسلامی نظام ولې نه نافذیږی؟ ددې ځواب همدادې چې له اسلام نافذ کولو نه مخکښې خپله معیاری مسلمان جوړیدل ضروری دی **ادخلوا فی السلم کافة**.

له دې څخه بغیر دنصرت اوکامیابی امیدونه لرل له خوش باوری پرته نورڅه ندی، له دغه علماء کرامو څخه پرته نور څوك بنه پوهیږی چې د احد او حنین په غزاګانو کښې دصحابه کرامو په لږ لغزش سره ((چې هغې ته لغزش ویلو کښې هم ویره ده)) دالله تعالی له طرفه راغلې نصرت

بیرته واپس شو ، ددې باوجود چې دهغوی اخلاص دهغوئ جان نثاری اوجذبه دجهاد دهر شک اوشبهې څخه بالاتروو ، دالله او د الله درسول محبت دهغوئ په رګونو اووینو کښې ګډ وو ترڅولو نه لویه داچې په هغو معرکو اوغزاګانو کښې حضور صلی الله علیه وسلم په نفس نفیس پخپله موجودوو مګر سره ددې ټولو خبرو ، له آسمانونو څخه راغلې مدد بیرته پورته کیږي، ګویا الله تعالی ددې قطعی قانون خبردارې ورکاوه چې دهغه له ناراضګۍ سره «اګرکه وختی وی اومعاف هم شی» کله هم دهغې نصرت نه راځی

ددې حقائقوپه مخ ته کیښوودو سره دې دا حضرت فیصله وکړی چې دالله تعالی نصرت به څنګه راځی؟ په داسې حال کښې چې داسلام دنفاذ نعرې وهل کیږی ، د تصویر سازی لعنت راوربړی دا په حقیقت کښې په یو وخت کښې د اوبو او اور دیوځای کولو ناکام کوښښ کول دی

خلاصه داچې دتصویر حرمت قطعی دې که دکوم عالم دین اومقتدا عمل خلاف دشریعت وی نو هغه دخپلو کړو ذمه واردې په شرعی حکم دهغه کوم اثرنه پریوځی

## داحکامو خلاصه

- دروح لرونکی حیوان تصویر جوړول سخت حرام دی اوګناه کبیره ده، خواه تصویر هر قسم وی لوئ وی یاوړوکې په رخت (کپړه) یا په کاغذ جوړشوې وی یا په دیوال وغیره په قلم جوړشوې وی یا په کیمره ویستل شوې وی همدارنګه چاپو کول یا په ماشین یاسانچه کښې اچول ټول حرام اوناجائز دی

- تصویر ساز، فوټو ګرافر او ددوئ په عمل کښې په هر قسم شرکت کونکې فاسقان دی دهغوئ اذان ، اقامت، امامت ناجائزدې اوشهادت یې مردود دې

- دتصویر خرید اوفروش حرام دې او ددې په ذریعه لاس ته راوړل شوې پیسې حرامې او ناقابل انتفاع دی

- داپه هغه وخت کښې چې دتصویر خرید او فروخت پخپله مقصود وی اوکه مقصود بل څه وی لکه رخت یا کاغذ یا بل څه اوتصویر له هغه سره لګیدلې وی نو دداسی شی تجارت جائز دې مګر په خریدار لازم دی چې دشی د اخستلو سره سم تصویر ضائع کړی

- دتصویر دجوړولو په شان هغه ته بالقصد کتل نوروته ورښودل او هغه له خپل ځان سره ساتل هم جائزندی دسینما ، ټی وی ، وی سی آر فحش تصویرونه کتل اوبل ته ورښودل هم ناجائز اودحرام بالای حرام ارتکاب دې

- همداحکم دې داخبار، رسائلو اودسکول اوکالج دچاپ شویو کتابونو دتصویرونو ، دهغو جائز مضامین لوستل جائزدی مګر په تصویر عمدا نظر کول ناجائزدی

* دتصوير لرونكې ساعتونو، دلوبو دشيزونو اوتصوير لرونكې شيريني هم همدا حكم دې چې جوړول او خرڅول اوخوړل يې جائزندي، بغير له اخستلو يې هم خوړل ندي جائز ځكه چې په دې كښې تعاون على المعصية دې.

* پاسپورت اوشناختي كارت لوټ او سكه اوتصوير لرونكې ټكټ دضرورت شيان دي دهغو په ساتلو كښې كوم باك نشته، ځيني خلك شوقا ټكټونه جمع كوي هغوئ ته تصويردار ټكټ ساتل جائزندي.

* دتجارتي ادارو تصوير دارنشان (ماركه) يا د زده كونكو دشناختي كارت تصوير په كوم شرعي ضرورت بناء ندي لهذا هغه ناجائزدې.

* په داسي لباس كښې لمونځ كول چې په هغه كښې تصويرونه وي يا په داسې ځاى كښې لمونځ كول چې هلته تصويرونه وي جائزندي، پداسي صورت كښې لمونځ مكروه تحريمي او واجب الاعاده دې، البته كه دتصوير سر پرې وي يايي مخ وران شوې وي يا تصوير ډير وړوكې وي چې د ولاړې په حالت كښې هغه په نظرنه راځي نو په لمانځه كښې كراهت نه راځي، همدارنګه كه لوى تصوير پټ وى (مثلا دقميص نه لاندې په بنيان كښې وى) بياهم لمونځ كيږى مګر بلاضرورته داسې لباس اغوستل ګناه ده.

* په كوم مكان كښې چې دجاندار تصوير وي هلته داخليدل جائزندي، البته دضرورت مواقع مستثني دي، مثلا دقرض اخستلو يا د معاش اومعاد پورې كوم تړلې ضرورت وي.

* كه تصوير په ډبى كښې بندوي يا په غلاف كښې يالفافه وغيره كښې پټ وي نو دا د رحمت د ملائكو ددخول مانع نه ګرځي، البته دهغة دجوړولو اوخرڅولو اوبلاعذره دساتلو ګناه به اوس هم وي.

* كه تصوير دچا په مكان يا دوكان وغيره كښې موجود دي اوبل مسلمان دهغه په تلف كولو قادر وي نوتلف كول يې په هغه واجب دي، شرعا په هغه هيڅ ضمان واجب ندې، البته كه چيرته دفتني خطره وي هلته داسې اقدام ندي كول په كار.

* ځيني حضرات په داسي ځاى كښې چې هلته تصوير اخستل كيږى شركت كوى اوله تصوير اخستونه دځان ساتلو لپاره مخ په ځادر وغيره پټوى، له ګناه نه دځان ساتلو لپاره دومره كافي ندي بلكه له داسي مجلس څخه تلل واجب دي، اګر كه دا ديني اجتماع وي، بالخصوص چې دا شخص مقتداوي نودده ناسته نوره دوه چنده ګناه ده يوځپله بدي اوبل دعوامو په ګناهونودزړوركولو ګناه.

* ځيني خلك دبزرګانو تصويرونه په ډير اهتمام په كورونو كښې ږدى دهغو تصويرونو حكمونه دهغو متبرك شميرلو كښې دكفر خطر دې دشرك اوګمراهي دروازه دهمداسې تصويرونو له وجې خلاصيږي.

● دا ټول احکام دجاندارو دتصویرونو دی، دبی روحه شی دتصویرونو یا د هغه جاندار تصویر چی سرئی قطع وی یاله مخ نه ماسوا دهر عضوځان ځان ته تصویر جوړول خرڅول او اخستل ټول جائزدی.

محمد ابراهیم
نائب مفتی دار الافتاء والارشاد
۲۳ جمادی الاولی ۱۴۱۱هجری

# ضمیمه

## له فقیه العصر حضرت مولنا مفتی رشید احمد صاحب مدظلهم العالی څخه دتصویرونو دمختلفو اقسامو د احکامو بیان

**سوال**: دزرو په زیوراتو باندې ځینی اوقات دکوم جان دار تصویر جوړشوې وی آیا د داسې زیور استعمالول او اغوستل جائزدی اوکه نه؟ همدا راز داسې زیور اغوستلوسره لمونځ کول مکروه دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

او دا وضاحت هم وکړئ چی دحیوان کوم تصویر جائز اوکوم ناجائز دې او همداراز دکوم قسم تصویر په موجودګی کښې لمونځ کول مکروه دی؟ بینوا بالتفصیل آجرکم الله الجلیل.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: قال الشیخ ابوالسعود رحمه الله تعالی: واعلم ان ظاهر التقیید بلبسه یفید ان بیع ثوب فیه تصاویر لایکره وقیل یکره ای تحریما بدلیل ماقیل من رد شهادته اذ المکروه تنزیها لایوجب رد الشهادة وحیث کان بیعه موجبا رد شهادته فماسعه بالاولی ووجه الاولویة ثبوت الخلاف فی کراهة بیعه بخلاف النسج لکونه تصویرا (فتح المعین ص۲۴۵ ج۱)

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی فی مکروهات الصلوة ولبس ثوب فیه تماثیل ذی روح وان یکون فوق راسه اوبین یدیه اوبحذائه یمنة اویسرة اومحل سجوده تمثال ولو فی وسادة منصوبة لامفروشة واختلف فیما اذا کان التمثال خلفه والاظهر الکراهة ولایکره لو کانت تحت قدمیه اومحل جلوسه لانها مهانة اوفی یده عبارة الشمنی بدنه لانها مستورة بثیابه اوعلی خاتمه بنقش غیر مستبین قال فی البحر ومفاده کراهة المستبین لاالمستتر بکیس اوصرة اوثوب اخر واقره المصنف اوکانت صغیرة لاتتبین تفاصیل اعضائها للناظر قائما وهی علی الارض ذکره الحلبی اومقطوعة الراس اوالوجه اوممحوة عضو لاتعیش بدونه اولغیر ذی روح لایکره

لانها لاتعبد وخبر جبريل مخصوص بغير المهانة كما بسطه ابن الكمال واختلف المحدثون فى امتناع ملائكة الرحمة بما على النقدين فنفاه عياض واثبته النووى (ردالمحتار ج س ا ص ۴۳۶)

وقال ابن عابدين رحمه الله تعالى تحت قوله (ولبس ثوب فيه تماثيل)

قال فى البحر وفى الخلاصة وتكره التصاوير على الثوب صلى فيه اولا انتهى وهذه الكراهة تحريمية وظاهر كلام النووى فى شرح مسلم الاجماع على تحريم تصوير الحيوان وقال وسواء صنعه لما يمتهن اولغيره فصنعته حرام بكل حال لان فيه مضاهاة لخلق الله تعالى سواء كان فى ثوب اوبساط اودرهم واناء وحائط وغيرها انتهى فينبغى ان يكون حراما لامكروها ان ثبت الاجماع اوقطعية الدليل بتواتره اه كلام البحر ملخصا وظاهر قوله فينبغى الاعتراض على الخلاصة فى تسمية مركوها قلت لكن مراد الخلاصة اللبس المصرح به فى المتون بدليل قوله فى الخلاصة بعد مامر اما اذا كان فى يده وهو يصلى لايكره وكلام النووى فى فعل التصوير ولايلزم من حرمته حرمة الصلاة فيه بدليل ان التصوير يحرم ولو كانت الصورة صغيرة كالتى على الدرهم او كانت فى اليد او مستترة اومهانة مع ان الصلاة بذلك لاتحرم بل ولاتكره لان علة حرمة التصوير المضاهاة لخلق الله تعالى وهى موجودة فى كل ماذكر وعلة كراهة الصلاة بها التشبه وهى مفقودة فيما ذكر كما ياتى فاغتنم هذا التحرير (ردالمحتار ج ا ص ۴۳۵)

وقال: (قوله وخبر جبريل الخ) هو قوله للنبى صلى الله عليه وسلم انا لاندخل بيتا فيه كلب ولاصورة رواه مسلم وهذا اشارة الى الجواب عما يقال: ان كانت علة الكراهة فيما مر كون المحل الذى تقع فيه الصلاة لاتدخله الملائكة لان شر البقاع بقعة لاتدخلها الملائكة ينبغى ان تكره ولو كانت العلة التشبه بعبادتها فلاتكره الا اذا كانت امامه اوفوق راسه والجوب ان العلة هى الامر الاول واما الثانى فيفيد اشدية الكراهة غيران عموم النص المذكور مخصوص بغير المهانة لماروى ابن حبان والنسائى استاذن جبريل عليه السلام على النبى صلى الله عليه وسلم فقال ادخل فقال: كيف ادخل وفى بيتك ستر فيه تصاوير ؟ فان كنت لابد فاعلا فاقطع رؤوسها اواقطعها وسائدا واجعلها بسطا نعم يرد على هذا ما اذا كانت على بساط فى موضع السجود فقدمر انه يكره مع انها لاتمنع دخول الملائكة وليس فيها تشبه لان عبدة الصنام لايسجدون عليها بل ينصبونها ويتوجهون اليها الاان يقال فيها صورة التشبه بعبادتها حال القيام والركوع وتعظيم لها ان سجد عليها اه ملخصا من الحلية والبحر.

اقول: الذى يظهر من كلامهم ان العلة اما التعظيم اوالتشبه كما قدمناه والتعظيم اعم كما لو كانت

عن يمينه او يساره او موضع سجوده فانه لا تشبه فيها بل فيها تعظيم وما كان فيه تعظيم وتشبه فهو اشد كراهة ولهذا تفاوتت رتبها كما مر وخبر جبريل عليه السلام معلول بالتعظيم بدليل الحديث الاخر وغيره فعدم دخول الملائكة انما هو حيث كانت الصورة معظمة وتعليل كراهة الصلاة بالتعظيم اولى من التعليل بعدم الدخول لان التعظيم قد يكون عارضا لان الصورة اذا كانت على بساط مفروش تكون مهانة لا تمنع من الدخول ومع هذا الوصلى على ذلك البساط وسجد عليها تكره لان فعله ذلك تعظيم لها والظاهر ان الملائكة لا تمتنع من الدخول بذلك الفعل العارض واما ما فى الفتح عن شرح عتاب من انها لو كانت خلفه او تحت رجليه لا تكره الصلاة ولكن تكره كراهة جعل الصورة فى البيت للحديث فظاهره الامتناع عن الدخول ولو مهانة وكراهة جعلها فى بساط مفروش وهو خلاف الحديث المخصص كما مر (رد المحتار ص٦٣٩ ج١)

## الاحكام المستفادة من النصوص المذكورة

داسې زيور جوړول، خرڅول، اخستل له ځان سره ساتل او هغه اغوستل اولمونځ ورسره کول جائزندی، دداسې لمونځ اعاده واجبه ده.

که تصوير په لباس وغيره کښې پټ وی يا دومره وړوکې وی چی په ځمکه يې کيږدی او ورسره ودريږی نو ورته په کتلو کښې داعضاؤ تفصيل په نظر نه راځی نو دهغه متعلق دالاندی مسائل دی:

ددومره وړوکی تصوير جوړول: واړه واړه تصويرونه جوړول هم بالاجماع حرام دی لدخوله فی العلة المنصوصة يضاهؤن خلق الله

## دداسی تصوير خريد اوفروش

په دې کښې يوڅه اختلاف دې مگر په لاندی دلائلو سره عدم جواز راجح دې.

۱- دحرمت دلائل قوی دی.

۲- دتعارض په وخت کښې دمساوات ددلائلو په صورت کښې هم دحرمت ترجيح مسلمه ده.

۳- ددې په اباحت کښې ددې دصنعت تقويت راځی چی بالاجماع دغه صنعت حرام دې، لهذا دتعاون علی الاثم له وجې نه ناجائزدې.

۴- دعوامو دگمراهی او دکبائرو دارتکاب ذريعه ده ځکه چی هغوی صغيره او کبيره اوپټ اوظاهروغيره قيدونو اوتفاصلونه قطع نظر کوی اونفس عمل وينی اوپه مطلقا جواز استدلال کوی

۵- دصورة صغيره په تعريف مذکور کښې داختلاف انظار او آراؤ له وجی عوامو ته دبهانه سازی موقع په لاس ورځی

## د آراؤ او انظارو د اختلاف وجوه

۱- دکتونکو په قدکښې اختلاف.
۲- دهغوئ په نظرونو کښې اختلاف.
۳- په رڼا کښې اختلاف.

## داسې تصویرونه ساتل

داهم جائز ندی لما قدمنا من الدلائل الخمسه
**داسې تصویر له ځان سره ساتل اولمونځ ورسره کول:**
دفقهاء کرامو له عباراتو څخه معلومیږی چی په داسې حالت کښې لمونځ بلاکراهیته جائزدې لدې وجی نه چی په دې کښې دکراهیت کوم علت نه موندل کیږی، مګر په دې کښې یو څه کلام شته، کما سیاتی.

## دکراهیت علتونه

۱- امتناع الملائکه
۲- تعظیم غیرالله
۳- تشبه بعبدة الاصنام
بیاځینی حضراتو دعلت اولی مدارهم علت ثانیه ګرځولې دې.
دبنده په خیال کښې دعلل مذکوره په نه موجودیت کښې هم دکراهیت الصلوة دا علت موجود دې چی په دغه مقام کښې دداسې معصیت یوشې موجود دې چی په صانع ئی لعنت ویل شوې دې لکه څنګه چی په ځینی نصوص فقهیه کښې دعلت امتناع الملائکه په تشریح کښې مذکور دې چی دا بقعه شرالبقاع ده، څکه دلته لمونځ مکروه دې.
ددې مقتضی داده چی په موجودګی دصورة صغیره یا پوشیده کښې دې هم لمونځ مکروه اوواجب الاعاده شی، لدې کبله چی په داسې ځای کښې **اول**: قول دعدم امتناع الملائکه دمختلف فیه کیدو نه علاوه فی نفسه هم محل دتامل دې.
**دویم**: که دا تسلیم هم کړې شی نو دا بقعه اګر چه دعدم امتناع الملائکه له وجی نه شرالبقاع نده مګر دلته دوجود منکر له وجی په بقعه خبیثه کیدوکښې هیڅ شك نشته وهو یکفی لثبوت الکراهة فلیتامل.

## په بساط یا په ځای دناستی کښې تصویر

په دې کښې هم دا قبائح دی:

۱. دتصویرصنعت ته ترقی ورکول کیږی چی بالاجماع حرامه ده.

۲. دعوامو دضلالت اوګمراهی ذریعه ده چی هغوئ لدې څخه مطلقا په اباحت استدلال کوی عوام په مهانه اوغیر مهانه کښې فرق نه پیژنی.

۳. امتناع ملائکه: په دې صورت کښې اګر چه امتناع ملائکه مختلف فیه دې مګر د ذکر شویو وجوهو له خاطره امتناع راجح معلومیږی.

له هغو څخه هم لویه وجه د امتناع داده چی دعمل ملعون دمعمول کیدو د ابقاء بلکه اقتناء ده، خلك دا په نیت داهانت نه ساتی بلکه په نظر داشتیاق یی ساتی.

ذکر شوی قبائح په دې صورت کښې هم دلمانځه دکراهیت اود وجوب اعادې مقتضی دی.

وهذا لا یخالف مارجحه الفقهاء رحمهم الله تعالی لان الاحکام تتغیر بتغیر الزمان فتفکر ولعل الحق لا یعدوه لتشکر. والله سبحانه وتعالی اعلم

رشید احمد

۲۷ جمادی الثانیه سنه ۱۳۸۷هـ

بسم الله الرحمن الرحيم

قَالَ رَسُوْلُ اللهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَحْفُوا الشَّوَارِبَ وَاعْفُوا اللُّحٰى (متفق عليه)

# نيل المٰارب بحلق الشوارب

* * * * * * *
* * * * * *

## ددريو فتواګانو مجموعه

۱- دشونډو دواړه طرفونه غتول مکروه دی
۲- د زياتو ويښتانو دصفائی حد.
۳- حُكم حلق الشارب
- د رسول الله صلی الله عليه وسلم ارشادات
- دفقهاء كرامو رحمهم الله تعالى نصوص
- عقل سليم اوطبع مستقيم

* * * * * * * *
* * * * * * *

## نيل المارب بحلق الشوارب

**په دی رساله کښې** له نصوصو د احاديثو اوعباراتو د فقهاء كرامو څخه ثابته کړې شوې ده چه
- دشونډو ويښتان اخستل سنت دی
- او دواړه طرفونه غتول مکروه دی
- علاوه له دې نه دبدن دنورو هغوويښتانو چی صفائی يی ضروری ده دهغو د صفائی موده بيان شوې ده

# د بریتونو احکام

## بریتونه دواړه طرفونو ته غځول مکروه دی

**سوال** آیا دبریتونو دواړه طرفونو ته اوږدول جائزدی اوکه ناجائز ؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** مکروه دی

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: واما طرفا الشارب وهما السبالان فقيل هما منه وقيل من اللحية وعليه فقيل لا بأس بتركهما وقيل يكره لما فيه من التشبه بالاعاجم واهل الكتاب وهذا اولى بالصواب وتمامه في حاشية نوح (رد المحتار ص۲۰۴ ج۲)

وقال في حاشية على البحر تحت (قوله وهو المبالغة في القطع) وقيل كره ابقاء السبال وفيه من التشبه بالاعاجم بل بالمجوس واهل الكتاب وهذا اولى بالصواب لما رواه ابن حبان في صحيحه من حديث ابن عمر رضى الله تعالى عنهما قال ذكر لرسول الله صلى الله عليه وسلم المجوس فقال انهم يوفرون سبالهم ويحلقون لحاهم فخالفوهم فكان ابن عمر رضى الله تعالى عنهما يجز كما تجز الشاة والبعير (منحة الخالق) بهامش البحر الرائق ص۱۱ ج۳)

والله سبحانه وتعالى اعلم　　　　۱۵ ربيع الاول سنه ۱۴۰۰ هـ

## دزیاتی ویښتانو دصفائی حد

**سوال** د بریتونو د لنډولو ، دنوکونو د اخستلو ، د ترخونو (ابط) د ویښتانو د اخستل او له نامه څخه لاندې د ویښتانو اخستلو حدود تر کوم ځایه پورې دی؟ اوڅوورځی پس ئی صفائی واجبه ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په اتفاق دامام صاحب اوصاحبینو رحمهم الله تعالی د بریتونو خریل یا لنډول په شان د خریبلو سنت دی، د بریتونو او نوکونو داوږدولو په باره کښې ظاهر دحدیث نه تر څلویښتو ورځو پورې رخصت معلومیږی. دا تحدید دفقهی په کتابو نو کښې هم ذکر دې مگر فقهاء کرامو د حکم د علت په نظر کښې نیولو سره ضابطه دنظافت لیکلې ده چې ترهغې لاندې د اشخاصو اواحوالو داختلاف له کبله د وجوب حکم هم مختلف کیږی

له ذکر شوې ضابطې نه ثابته شوه چې د څلویښتو ورځو د ذکر دامطلب ندې چې د وجوب د دواعیو باوجود رخصت شته. بلکه مطلب دادې چې د اعذارمرخصه باوجود له مدت مذکوره نه بعد هیڅ رخصت نشته

د بریتونو د لنډولو حکم دنورودرې امورو په نسبت دلاندې وجوهو له خاطره زیات مؤکد دی

۱۔ په خوراک اوڅښاک کښې دنظافت دنه وجودله وجې په امراضو کښې دمبتلاء کیدو خطره ده

۲- دپوزې درطوبت له کبله تلوث (گنده کیدل) موجب دتاذی اومورث دامراضو دی.

۳- دخارجي گرد اوغبار د اجتماع له وجی پوزې اوخولی ته نږدې تعفن چی هغه موجب دتاذی اومورث د امراض دې.

۴- تشويه الوجه

۵- ايذاء الزوجه وتنفيرها

عن ابن عمر رضی الله تعالی عنهما (مرفوعا) قصوا شواربکم فان بنی اسرائل لم يفعلوا ذلك فزنت نساؤهم رواه الديلمی. ونقل عنه الامام عبد الرؤف المناوی فی كنوز الحقائق والشيوخ علی المتقی فی كنز العمال.

ددغو دواعیو لاندې دشونډو دبرنی حصې خلاصه پرېښودل واجب معلومیږی، البته دکوم عذر له وجی ترڅلویښتو ورځو پورې رخصت شته، مگر په دغه موده کښې دنظافت خیال ساتل ضروری دی، دفقهی په کتابونو کښې دپورتنی شونډې برنی حصه خلاصه پرېښودل سنت لیکل شوی دی، له هغې سره د وجوب د قول د تطبیق دوه وجهې دی:

۱- سنت لعينه واجب لغيره

۲- دواجبو د اداء دوه صورتونه دی: حلق اوقص، دحلق په سنتیت کښې ځینی علماؤ اختلاف کړې دې او د واجبو اداء کول په طریقه دلنډولو چی دی ددې په سنتیت اتفاق دې.

د خرییلو د نستیت نه انکار دامام اوصاحبینو دمذهب منصوص دخلاف کیدلو له وجی بالکل غیر معتبر دی، صحیح داده چی حلق هم سنت دې، بلکه دسنتو اعلی درجه ده. نص علیه الامام الطحاوی رحمه الله تعالی.

قص شوارب نه وروسته ددواعی موجبه وجود په تقليم الاظفار کښې دې له هغې څخه بعد دا نوردوه دی «نتف الابط او حلق العانه»..

په معتدلو حالاتو کښې ددواعی مذکوره نه لاندې په امور اربعه مذکوره کښې مناسبه وقفه په لاندی ډول ده:

د بریتونو لنډول په هفته کښې دوه ځله، دنوکونو اخستل په هفته کښې یوځل اوباقی په دوه هفتو کښې یوځل بهتر دی اوکه نه نو دوه هفتی وروسته باید صفا شی.

قال العلمة النووی رحمه الله تعالی: واما وقت حلقه فالمختار انه يضبط بالحاجة وطوله فاذا طال حلق وكذلك فی قص الشارب ونتف الابط وتقليم الاظفار واما حديث انس المذكور فی الكتاب وقت لنا فی قص الشارب وتقليم الاظفار ونتف الابط وحلق العانة ان لا يترك اكثر من اربعين ليلة فمعناه لانترك تركا نتجاوز به اربعين لاانهم وقت لهم الترك اربعين، والله اعلم. (شرح النووی علی صحيح مسلم ص۱۲۸ج۱)

وقال الحافظ العسقلانی رحمه الله تعالی المعنی فی مشروعیة ذلک مخالفة المجوس والامن التشویش علی الاکل وبقاء زهومة الماکول فیه (وبعد اسطر) وقد ابدی ابن العربی تخفیف شعر الشارب معنی لطیفا فقال ان الماء النازل من الانف یتلبد به الشعر لما فیه من الزوجة ویعسر تنقیته عند غسله وهو بازاء حاسة شریفة وهی الشم فشرع تخفیفه لیتم الجمال والمنفعة (فتح الباری ص۲۹۳ ج۱۰)

وقال ایضا: قال ابن دقیق العید لا اعلم احدا قال بوجوب قص الشارب من حیث هو واحترز بذلک عن وجوبه بعارض حیث یتعین کما تقدمت الاشارة الیه من کلام ابن العربی. (فتح الباری ص۲۹۵ ج۱۰)

په ترک د لنډولو دبریتونو کښې دمفاسد مذکوره نه علاوه تشویه الوجه، کراهت المنظر، ایذاء زوجه، دهغې نفرت اوددې نه پیدا کیدونکې بدکاریو قباحت اوعذاب په هغې لپاسه دی، کما قدمنا من حدیث الرسول صلی الله علیه وسلم فی نساء بنی اسرائیل.

وقال العلامة العثمانی رحمه الله تعالی: قال القرطبی رحمه الله تعالی فی المفهم ذکر الاربعین تحدید لاکثر المدة ولا یمنع تفقد ذلک من الجمعة الی الجمعة والضابطة فی ذلک الاحتیاج اهـ وقال النووی رحمه الله تعالی فی شرح المهذب ینبغی ان یختلف ذلک باختلاف الاحوال والاشخاص والضابطة الحاجة فی جمیع الخصال المذکورة (فتح الملهم ص۳۲۰ ج۱)

وقال الملا علی القاری رحمه الله تعالی: والمعنی ان لا نترک ترکا یتجاوز اربعین لانه وقت لهم الترک اربعین لان المختار ان یضبط الحلق والتقلیم والقص بالطول فاذا طال حلق وقص وقلم ذکره الره النووی (مرقاة ص ۸۱ ج۸) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۲ جمادی الاولی سنه ۱۴۰۱ھ

## حکم حلق الشارب

**سوال**: په چاره یابلید باندې دبریتونو خرییل جائزدی اوکه مکروه؟ امام طحاوی ترجمة الباب قائم کړې دې چې (باب حلق الشارب) بیاپه بحث کښې هم احفاء یې په مقابله دقص کښې راوړې ده همدارنګه وجه النظر کښې یې هم افضلیت دحلق په محرم باندې قیاس کړې دې ونصه:

قصه حسن واحفاؤه احسن وافضل وهذا مذهب ابی حنیفة وابی یوسف ومحمد رحمهم الله تعالی.

وقال فی اخر البحث: ان قص الشارب من الفطرة وهو مما لابد منه وان ما بعد ذلک من الاحفاء هو افضل وفیه من اصابة الخیر ما لیس فی القص (شرح معانی الاثار ص۲۷۹ ج۲) بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: امام طحاوی بالاتفاق اعلم بمذهب ابی حنیفه دی ستاسی دتحریر موافق په اتفاق دعلمائنا الثلاثه حلق الشوارب مسنون دی، ترجمة الباب (حلق الشارب) لاندې د

احاديثو د احفاء راوړلو څخه مقصد دادې چې په دغه احاديثو كښې احفاء په معنا دحلق ده لكه څنګه چې په يو روايت دفتح البارى كښې صراحتاً لفظ دحلق ذكر دې، وسيجئ نصه

حافظ عينى فرمايى چې په ترجمة الباب كښې دحلق نه احفاء يعنى استيصال كالحلق مراد دې چې له هغې څخه په غرض داظهار مبالغه په حلق سره تعبير كيږى.

**ولا يخفى ان هذا التحمل تمحل وتأويل القول بما لا يرضى به قائله ووتفرد به الحافظ العينى رحمه الله تعالى ثم نقل هو نفسه فى البناية سنية الحلق عن المختار والمحيط وسيجئ نصه.**

داتاويل په لاندې وجوهو سره ناقابل قبول دې:

په صنيع المصنفين كښې اصل مقصود ترجمة الباب وى دهغه د اثبات لپاره د هغې لاندې احاديث راوړل كيږى، په ترجمة الباب كښې مصنف خپله دعوى وړاندې كوى، بيا له هغې نه لاندې دراوړل شويو احايثونه دخپلې دغې دعوى اثبات كوى. له دې څخه ثابته شوه چې امام طحاوى داحاديث احفاء نه سنيت دحلق ثابتوى، ددې برعكس دحلق نه احفاء اخستل له اصولو دتصنيف نه خلاف اوقلب دموضوع دى.

دحلق استيصال كالحلق نه ابلغ فى المعنا اوايسر فى العمل كيدل ظاهر دى، ددې وجى نه په حلق بمعنى الاستيصال بالقص كالحلق ته ترجيح وركول خلاف دى له عقل څخه.

**قال الحافظ العسقلانى رحمه الله تعالى: وورد الخبر بلفظ الحلق وهى رواية النسائى عن محمد بن عبد الله بن يزيد عن سفيان بن عيينه بسند هذا الباب ورواه جمهور اصحاب ابن عيينه بلفظ القص و كذا سائر الروايات عن شيخ الزهرى ووقع عند النسائى من طريق سعيد المقبرى عن ابى هريره رضى الله تعالى عنه بلفظ تقصير الشارب نعم وقع الامر بما يشعر بأن رواية الحلق محفوظ كحديث العلاء بن عبد الرحمن عن ابيه عن ابى هريره رضى الله تعالى عنه عند مسلم بلفظ جزوا الشوارب وحديث ابن عمر رضى الله تعالى عنهما المذكور فى الباب الذى يليه بلفظ احفوا الشوارب وفى الباب الذى بلفظ انهكوا الشوارب فكل هذه الالفاظ تدل على ان المطلوب المبالغة فى الازالة لان الجز وهو بالجيم والزاى الثقيلة قص الشعر والصوف الى ان يبلغ الجلد والاحفاء بالمهملة والفاء الاستقصاء ومنه احفوه بالمسالة قال ابو عبيد الهروى معناه الزقوا الجز بالبشرة وقال الخطابى هو بمعنى الاستقصاء والنهك بالنون والكاف المبالغة فى الازالة ومنه ما تقدم فى الكلام على الختان قوله صلى الله عليه وسلم للخافضة اشمى ولا تنهكى اى لا تبالغى فى ختان المراة وجرى على ذلك اهل اللغة وقال ابن بطال: النهك التاثير فى الشئ وهو غير الاستئصال (فتح البارى صـ ۲۸۵ جـ ۱۰)**

وقال: قال الطحاوی رحمه الله تعالی: الحلق هو مذهب ابی حنیفة وابی یوسف ومحمد رحمهم الله تعالی اهـ (فتح الباری صـ۲۸۶ جـ۱۰) وقال: وقد رجح الطحاوی الحلق علی القص بتفضیلة صلی الله علیه وسلم الحلق علی التقصیر فی النسك (حواله بالا)

وقال الحافظ العینی رحمه الله تعالی: قوله یحفی من الاحفاء بالحاء المهملة والفاء یقال احفی شعره اذا استاصله حتی یصیر کالحلق وتکون احفاء الشارب افضل من قصه عبر الطحاوی بقوله باب حلق الشارب (عمدة القاری صـ۴۳ جـ۲۲)

وقال: وقال الکاکی وذکر الطحاوی رحمه الله تعالی فی شرح الاثار ان حلقه سنة ونسب ذلك الی العلماء الثلاثة انتهی قلت لم یذکر الطحاوی کذالك وانما قال بعد روایاته الاحادیث المذکورة والتوفیق بینهما ان الاحفاء افضل من القص نعم قال باب حلق الشارب وانما اراد بذلك الاحفاء حتی یصیر کالحلق وفی المختار حلقه سنته وقصه حسن وفی المحیط الحلق احسن من القص وهو قول ابی حنیفة وصاحبیه رحمهم الله تعالی (بنایة صـ۲۵۵ جـ۴)، وقال عبدالله بن محمود رحمه الله تعالی فی متنه المختار: والسنة تقلیم الاظفار ونتف الابط وحلق العانة والشارب وقصه احسن.

نقل فی شرحه عن الامام الطحاوی رحمه الله تعالی: والحلق سنة وهو احسن من القص وهو قول اصحابنا رحمهم الله تعالی قال علیه الصلوة والسلام: احفوا الشوارب واعفوا اللحی والاحفاء الاستئصال (الاختیار لتعلیل المختار صـ۱۶۷ جـ۴)

په متن کښې (قصه احسن) دکتاب غلطی ده صحیح لفظ (حسن) دې په دې باند دوه دلائل دی. دعینی رحمه الله له مختار څخه په نقل شوی عبارت کښې (وقصه حسن) دې

مصنف پخپله په شرح کښې له امام طحاوی څخه دحلق احسن والی نقل کړې دې. عینی دحلق احسن من القص کیدو په باره کښې دمختار اومحیط په شرح کښې حواله ورکړې ده. دمختار دعبارت تحقیق مخکښې ذکر شو. له محیط څخه په ظاهره محیط سرخسی مراد دې خکه چی په حاشیه دطحطاوی علی الدرکښې ددې تصریح ده. وسیجئ نصه. ممکنه ده چی په محیط برهانی کښې هم دغه شان وی. عنقریب دهغه طباعت متوقع دې فلیراجع بعد

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: و کره ترك وراء الاربعین مجتبی وفیه حلق الشارب بدعة وقیل سنة.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله وقیل سنة) ومشی علیه فی الملتقی وعبارة المجتبی بعد مارمز للطحاوی حلقه سنة ونسبه الی ابی حنیفة وصاحبیه رحمهم الله تعالی والقص منه حتی یوازی الحرف الاعلی من الشفة العلیا سنة بالاجماع (رد المحتار صـ۲۶۱ جـ۵)

وقال العلامة الطحطاوی رحمه الله تعالی (قوله حلق الشارب بدعة) وقع فی بعض التعبير بالقص وفی بعضها التعبير بالحلق ففی الهندية ذكر الطحاوی فی شرح الاثار ان قص الشارب حسن وتفسيره ان يوخذ منه حتی ينقص من الاطار وهو الطرف الاعلی من الشفة العليا قال والحلق سنة وهو احسن من القص هذا قوله وصاحبيه رحمهم الله تعالی كذا فی محيط السرخسی ، اه، وعبارة المجتبی وحلق الشارب بدعة والسنة فيه القص صح حلقه سنة نسبه الی ابی حنيفة وصاحبيه رحمهم الله تعالی والقص منه حتی يوازی الحرف الاعلی من الشفة العليا سنة بالاجماع (طحطاوی علی الدر ص۲۰۳ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۸ جمادی الاولی سنہ ۱۴۰۱ھ

بسم الله الرحمن الرحيم

قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : اَحْفُوا الشَّوَارِبَ وَاَعْفُوا اللُّحٰى (متفق عليه)

# کتاب احیاء الموات

**سوال**: زمونږ په ولایت کښې خوړونه دی چې اوبه لری او ځینی یې جاری چینې هم لری اوځینې یې نه لری له هغو اوبو لاندې خلق آبادی کوی اوهغه اوبه دلښتی (ویالې) په ذریعه بیایی او خپله آبادی ورباندې اوبه کوی پس له څه وخته څونفره د آبادی پورته نوره آبادی کوی او اوبه وروله اودا اوبه جاری دی، کله کله د قحطی په دوران کښې وچیږی هم، اول شخص مانع گرځی، خلاصه داچې آیا صاحب د اولې آبادی کولې شی چې د نوې آبادی والا منع کړی اوکه نه ؟ او دا اوبه حریم لری اوکه په حکم داوبو دلویو خوړونو کښې دی؟ او نوې آبادی اوزړه آبادی فرق لری اوکه نه ؟ اومنع کولې یې شی اوکه نه ؟ که وی نو په وخت دضرورت کښې به وی اوکه هر وخت ؟ او اوبه که پورته وگرځول شی لاندې اوبه وچیږی اوس ددی څه حکم دې ؟ بینو اتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: داسی وادی حریم نلری، لهذا اول شخص حق دمنع کولو نه لری. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۷ربیع الاول سنه ۱۳۹۱ھ

## دکوهی (څاه) حریم

**سوال**: دماشین دکوهی حریم څومره دې ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په ارض مباحه کښې دځمکې دصلابت (سختوالی) او رخاوت (نرموالی) په لحاظ دحریم مقدارهم مختلف کیږی، اهل تجربه دې دومره حریم مقررکړی چې دکوهی اوبه بل طرفته لاړې نشی اوپه درمیانه ځمکه کښې څلور واړه طرفونو ته څلویښت گزه حریم دې.

په مملوکه ځمکه کښې دحریم کوم مقدار معلوم ندې، مالك چې چیرته غواړی هلته کوهی وهلې شی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: وحریم بئر الناضح وهی التی ینزح الماء منها بالبعیر کبئر العطن وهی التی ینزح الماء منها بالید والعطن مناخ الابل حول البئر اربعون ذراعا من کل جانب وقالا ان للناضح فستون وفی القهستانیة عن شرح المجمع لو عمق البئر فوق اربعین یزاد علیها اھ

لکن نسبه القهستانی لمحمد رحمه الله تعالی ثم قال ویفتی بقول الامام رحمه الله تعالی وعزاه للتتمة ثم قال: وقیل التقدیر فی بئر وعین بما ذکر فی اراضیهم لصلابتها وفی اراضینا رخاوة فیزاد لئلا ینتقل الماء الی الثانی وعزاه للهدایة وعزاه البرجندی للکافی فلیحفظ. وعبارة القهستانی: وفیه رمز الی انه لو حفر فی ملك الغیر لایستحق الحریم فلو حفر فی ملکه فله من الحریم ماشاء.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى تحت (قوله فوق الاربعين) وفي التتارخانية عن الينابيع ولاحاجة الى الزيادة ومن احتاج الى اكثر من ذلك يزيد عليه وكان الاعتبار للحاجة لا للتقدير ولا يكون في المسالة خلاف في المعنى اه ونقل العلامة قاسم في تصحيحه عن مختارات النوازل ان الصحيح اعتبار قدر الحاجة في البئر من كل جانب (ردالمحتار ص۲۷۹ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۴ رمضان سنه ۹۴هـ

## په مملوکه ځمکه کښې دحريم کوم مقدار متعين ندې

**سوال**: يوه سړي په ارض موات «بنجر ځمکه» کښې کاريز ويستلې دې اوددغه کاريز نه لرې بل سړي په خپله مملوکه ځمکه کښې کوهی وکندلو آيا د کاريز والا شرعا داحق لری چی کوهی کندونکی ته ووايي چی کوهی بند کړه. ځکه چی ددې د کندلو نه په کاريز کښې اوبه کميږی

په دې مسئله کښې ددې ځای دعلماؤ ډير اختلاف دې ځينی علماء وائی که چيرته کوهی له کاريز څخه لس زراع لری وی نو کاريز والا حق نلری چی دکوهی بندولو مطالبه وکړی. اوځينی علماء يی په بئر بالوعه قياسوی او وائی چی دقرب اوبعد اعتبار نشته بلکه اوبو جذبو لوته دې وګوری که اوبه نه راجذبوی نو که دکاريزنه په يوګزفاصله کښې وکندل شی هم څه حرج نشته اوکه کوهی دکاريز اوبه را جذبوی نو کوهی که څومره هم لرې وی بندول يی ضروری دی. اول قول صاحب دشرح وقايه اخستې دې، مګربحرالرائق په هغه رد کړې دې، اودويم قول قاضی خان اوشامی وغيره اخستې دې اوس که قرب اوبعد ته ونه کتل شی، بلکه اوبوجذبولوته وکتل شی نو کاريزنه به دکوهی دجذبولو داوبو څنګه معلومات وشی. مهربانی وکړئ د اوبو دجذبولو طريقه دکتابونو په حواله سره راته وليکئ. ډيره مهربانی به مووی

اوکه داصورت بعينه دکاريز اوکوهی ترمينځ نه بلکه ددووکوهيانو ترمنځ پيداشی نو څه حکم دې آيا په اوبو جذبولو کښې دارض موات او ارض مملوکه فرق شته اوکه نه ؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**. دحريم وغيره مسائل د ارض موات په باره کښې دی په خپله مملوکه ځمکه کښې کوهی په هر صورت جائزدې اګرکه دبل کاريز يا کوهی نقصان هم وی. والله سبحانه وتعالی اعلم ۳۰ ذی القعده سنه ۱۳۹۸هـ

## دچنيې حريم

**سوال**: په يوه دره کښې دوه چينې دی اود دواړو ترمينځ کم از کم دوه سوه زراع فاصله ده آيا دادوه سوه زراع صرف ديوې چينی لپاره دی يا د دواړو لپاره؟ بينوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که داچينې قدرتی وی نو دهغوی هيڅ حريم نشته اوکه خلکو کندلې وی نو کومه چی مخکې ويستل شوې وی دهغې حريم څلورواړه طرفونو ته پنځه سوه ګزه

دي او ددويمې چينی درې طرفونو ته پنځه سوه گزه او د اولې چينې طرفته يې حريم نشته
قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: وحريم العين خمس مائة ذراع من كل جانب كما في الحديث (رد المحتار ص۲۷۹ج۵)
وقال ايضا: وللحافر الثاني الحريم من الجوانب الثلاثة دون جانب الاولى لسبق الملك الاول فيه (رد المحتار ص۲۸۰ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۶ جمادی الاولی سنہ ۹۹ھ

## دبرې (تيږی) كيښودل مُثبتْ دملک نه گرځی

**سوال**: په شاړه ځمکه کښې دحکومت لطرفه اذن عام دې چنانچه يوه سړی يوه قطعه ځمکه صفاکړه اوځلور واړه طرفونو ته يې بطور علامه اونشانه دبرې كيښودلې بيا يې په دې يقين دوه درې کاله پريږدی چې دا زما ملکيت دې، کله هم چې زه وغواړم نو کور به په کښې جوړکړم آيا داشخص ددې ځمکې مالك وگرځيده او که نه ؟ او نور خلك په دغه ځای کښې له تصرف څخه منع کولې شی اوکه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: صرف په دبرو کيښودو مالك نه گرځی، که چيرې ځای جوړکړی او يا فصل ورباندې وکری نوبيا مالك گرځی، البته په دبرو كيښودو سره تر درې کالولپاره دده حق په نورو مقدم دې.

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ومن حجر الارض ای منع غيره منها بوضع علامة من حجر او غيره ثم اهملها ثلاث سنين دفعت الى غيره وقبلها هو احق بها وان لم يملكها لانه انما يملكها بالاحياء والتعمير لا بمجرد التحجير (رد المحتار ص۲۷۸ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۵ ربيع الثاني سنہ ۹۸ھ

## دپوزی (بوريا اوخاشاكو) جونگړه دملکيت مثبت نده

**سوال**: که يوشخص نقلی جونگړه له پوزی يا لوخو وغيره څخه جوړه کړی او د بل شخص په خوا کښې يې دوه يا درې کاله قيام وکړ او پس له هغې نه له دغه ځائ څخه منتقل شو اوبل کلی ته لاړو او ددغه نقلی جونگړې چې پوزی اودری وغيره وې دهغې نښې نښانې هم ختمې شی، پس له ځلوريا پنځو کالونه دوه خله راغې اودعوه يې وکړه چې دا ځمکه زما ملکيت دې ځکه چې زه يووخت دلته ديره ووم، آيا داشخص حق ددعوې لری اوکه نه ؟ اومالك دځمکې گرځی چې هرکله وغواړی تصرف پکښې وکړی او نورخلك له تصرف څخه منع کړی، آيا شخص مذکور ته داحق حاصل دی اوکه نه ؟ بينو اتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ملك دثبوت لپاره زراعت يا بناء دکور ضروری ده، دپوزی وغيره

دکور په جوړولو سره ملکیت نه ثابتیږي. والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۵ ربیع الثاني سنه ۱۳۹۸هـ

## دمختلفو حاکمانو له طرفه داحیاء د اذن حکم

**سوال**: که غیر آباده ځمکه دریو اشخاصو خانله آباده کړې وي، یوه ته تحصیلدار د آبادولو اجازه ورکړې وي، دویم ته نائب دتحصیلدار اودریم ته پټواری (جریبگر) اجازت ورکړې وي، اوس پوښتنه داده چې په دغو کښې دچا اذن معتبر دې اوکوم یونائب السلطان وګرځولې شي چې دهغه په اجازه داحیاء موات قول وکړل شي، ځکه چې مفتی به قول دادې چې داحیاء موات لپاره دامام یا نائب امام اجازه ضروری ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که چیرته درې واړو یوه قطعه ځمکه آباده کړې وی نو هغه درې واړه دهغې مالکان شول په دې شرط چې پټواری (جریبگر) ته قانونا داحیاء موات د اجازې ورکولو اختیار وی آوکه درې واړو په مختلفو اوقاتو کښې ځمکه آباده کړې وی یو ځای یې نه وی آباده کړې، نو چاچې مخکې آباده کړې وی هغه مالك شو، اوکه درې واړو جدا جدا قطعی (حصې) آبادې کړې وی نو هر یو دخپلې حصې مالك وګرځیده، پدې شرط چې پټواری ته د اجازې اختیار وی.
والله سبحانه وتعالی اعلم. ۵ رجب سنه ۹۸ هـ

## د ارض موات تعریف

**سوال**: ارض موات کومې ځمکې ته ویل کیږی؟ جامع تعریف یې ولیکئ، بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ارض موات هغه ده چې له ښار څخه بهر وی او د چا ملکیت هم نه وی او د چا مخصوص حق هم نه وی، او له مرافق البلد څخه هم نه وی.

قال ملك العلماء الکاسانی رحمه الله تعالی: فالارض الموات هی ارض خارج البلد لم تکن ملکا لاحد ولاحقا له خاصا فلایکون داخل البلد موات اصلا (وبعد اسطر) وهل یشترط ان یکون بعیدا من العمران وشرطه الطحاوی رحمه الله تعالی فانه قال وما قرب من العامر فلیس بموات و کذا روی عن ابی یوسف رحمه الله تعالی ان ارض الموات بقعة لو وقف علی ادناها من العامر رجل فنادی باعلی صوته لم یسمعه من العامر وفی ظاهر الروایة لیس بشرط حتی ان بحرا من البلدة وعلی قیاس روایة ابی یوسف رحمه الله تعالی وقول الطحاوی رحمه الله تعالی لاتکون والصحیح جواب ظاهر الروایة لان الموات اسم لما لاینتفع به فاذا لم یکن ملکا لاحد ولاحقا خاصا لم یکن منتفعا به کان بعیدا عن البلدة اوقریبا منها (بدائع ص ۱۹۴ ج ۶)

وقال فی الهندیة: فالارض الموات هی ارض خارج البلد لم تکن ملکا لاحد ولاحقاله خاصا فلایکون

داخل البلد موات اصلا و كذا ما كان خارج البلدة من مرافقها محتطبا لاهلها و مرعى لهم لايكون مواتا حتى لايملك الامام اقطاعها و كذلك ارض الملح والقار ونحوها مما لايستغنى عنها المسلمون ارض موات حتى لايجوز للامام ان يقطعها لاحد (عالمگيريه صفحه ۳۸۶ جه) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۰ شوال سنه ۹۸ هـ

## په مباح الاصل ځمکه کښې تعمير کول

**سوال**: زمونږ دکورونو گيرچاپيره کافی ځمکه خالی ده چی دچا دکور شاوخوا وی نو هغه پکښې تعمير وغيره کوی اوعرف هم همدا دې چی په دې کښې دهمده حق دې، اوس پوښتنه داده چی نيا په دغه ځمکه کښې دټولو کليوالو حق دې اوکه صرف ددغه شخص حق دې چی دچا دکور شاوخوا دا ځمکه ده؟

تاسو فتوی ورکړې ده چې دحکومت په اجازت سره يی تعمير کولې شی عرض دادې چی دا حکم خو د ارض موات (بنجر ځمکې) دې او ارض موات غالبا هغه وی چی له ښار څخه بهر وی، په داسې حال کښې چې دا ځمکه په کلی کښې دکورنو په خواو شا کښې ده، اويا په نژدې اطرافو کښې ده نو دا ځمکه به څنگه په ارض موات کښې داخله شی؟ مهربانی وکړئ مدلل او له حوالې سره جواب راکړئ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا ځمکه اگر چه موات ندې مگر په دې کښې تصرف کول دخلاف قانون کيدلو له وجی دحکومت په اجازه پورې موقوف دی. والله سبحانه وتعالی اعلم

۴ ربيع الثانی سنه ۱۳۹۹ هـ

## د ذمی احياء مثبت دملک دې

**سوال**: که چيرته ذمی دحکومت په اجازه شاړه ځمکه آباده کړی آيا دهغې مالک جوړيدې شی اوکه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: هو! مالك جوړيدلې شی

قال العلامة التمرتاشی رحمه الله تعالی: اذا احيی مسلم اوذمی ارضا غير منتفع بها وليست مملوكة لمسلم ولاذمی (الی قوله) ملكها ان اذن له الامام فی ذلك وقالا يملكها بلا اذنه وهذا لو مسلما فلو ذميا شرط الاذن اتفاقا (ردالمحتار صفحه ۲۷۸ جه) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۶ رمضان سنه ۱۴۰۰ هـ

## دحکومتی شاړی ځمکې اجاره کول مثبت دملک نشی گرځيدې

**سوال**: يوه مسلمان يا ذمی ته د پاکستان حکومت په سنه ۱۹۴۸ع کښې يوه قطعه شاړه ځمکه په دې شرط ورکړه چی د اوبو وغيره انتظام به يی په خپله کوی او آبادوی به يی تراسو کالو پورې

به داځمکه کری، اوپه دغه دوران کښې به حکومت ته مقرر شې ورکوی، لس کاله پس به دا ځمکه حکومت ته واپس ورکوی، ذکر شوی شخص ډیر پیسې مصرف کړې، ټیوب ویل ئې ولګاوه او ځمکه یې آباده کړه آیا داشخص دارض موات د آبادلو په وجه ددې ځمکښې مالك جوړیدې شی او که نه؟ اوهمدارنګه لس کاله پس دځمکې دبیرته ورکولو شرط شرعا صحیح دې اوکه نه؟آیا شرعا حکومت ته داحق شته چې له ده څخه آباده کړې ځمکه یادهغې څه حصه بیرته واخلی؟بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا د اجارې صورت دې. لهذا آبادونکې ددې ځمکې مالك نه ګرځی مګر غیر آباده ځمکه د آبادولو په شرط په ټیکه ورکول فاسده اجاره ده چې دهغې حکم دادې چې حکومت دکرل شوې ځمکې اجر مثل او اجر مقرر نه اقل اخستی شی.

قال الحصکفی رحمه الله تعالی: تفسد الاجارة بالسروط المخالفة لمقتض العقد (الی قوله) وکشرط طعام عبد وعلف دابة ومرمة الدار الخ (ردالمحتار ص۳۲ ج۵)

وقال: اوارضا بشرط ان یثنیها ای یحرثها اویکری انهارها العظام اویسرقنها لبقاء اثر هذه الافعال لرب الارض فلولم تبق لم تفسد.

ونقل ابن عابدین رحمه الله تعالی عن المنح تحت (قوله بشرط ان یثنیها) فان کان اثره یبقی بعد انتهاء العقد یفسد لان فیه منفعة لرب الارض والافلا اه (ردالمحتار ص۳۱ ج۵)

وقال الحصکفی: واعلم ان الاجر لایلزم بالعقد فلا یجب تسلیمه به (الی قوله اوالاستیفاء للمنفعة اوتمکنه منه (الی قوله) فیجب الاجر لدار قبضت ولم تسکن لوجود تمکنه من الانتفاع وهذا اذا کانت الاجارة صحیحة اما فی الفاسدة فلا یجب الاجر الابحقیقة الانتفاع الخ (ردالمحتار ص۶ ج۵)

وقال ایضا: وتفسد بجهالة المسمی کله اوبعضه کتسمیة ثوب اودابة اومائة درهم علی ان یرمها المستأجر لصیرورة المرمة من الاجرة فیصیر الاجر مجهولا وتفسد بعدم التسمیة (الی قوله) لابالتمکین بل باستیفاء المنفعة حقیقة کما مر بالغاما بلغ لعدم مایرجع الیه (الی ان قال) والا تفسد بهما بل بالشروط او الشیوع مع العلم بالمسمی لم یزد اجر المثل علی المسمی لرضاهما به وینقص عنه لفساد التسمیة الخ (رد المحتار ص۳۳ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۶ رمضان سنه ۱۴۰۰ هـ

# فصل فی الشرب

## په چینه کښې ټول خلق شریک دی

**سوال** یوه قدرتی چینه ده چی له هغې څخه ټول خلق استفاده کوی اوس دکلی یوه سړی دچینی سره خوا کښې ټینکۍ (داوبوذخیره) جوړه کړیده چی په هغې کښې دچینې اوبه جمع کیږی اوپه هغې صرف دا سړی خپله ځمکه اوبه کوی، اونور ټول خلك محروم شوی دی. نو آیا دده دغه کار جائز دې اوکه ناجائز؟ دا قدرتی چینه دپلار او نیکه نه مشترکه ده په دې کښې دچا خاص حق نه ګڼل کیده، ټولو خلکو به بلاتخصیص ترینه استفاده کوله. اوس دغه سړی دنورو له رضا څخه پرته دچینې په ټولو اوبو قبضه کړیده. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په قدرتی چینه کښې دټولو خلکو حق دې دخپلې فائدې لپاره ټینکۍ جوړول اونور خلك ترینه محروم کول ناجائز دی:

قال رسول الله صلی الله علیه وسلم: المسلمون شرکاء فی ثلاث فی الماء والکلاء والنار.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله فی کل ماء لم یحرز) اعلم ان المیاه اربعة انواع الاول ماء البحار ولکل احد فیها حق الشفة و سقی الاراضی فلا یمنع من الانتفاع علی ای وجه شاء والثانی ماء الاودیة العظام کسیحون وللناس فیه حق الشفة مطلقا وحق سقی سقی الاراضی ان لم یضر بالعامة (رد المحتار ص ۲۸۱ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۱ صفر سنه ۹۶هـ

## په نلکه (پایپ) کښې داوبو په راتلو سره ملکیت ثابتیږی

**سوال** یوه سړی له قدرتی چینې څخه نلکه راوستلې ده او اوبه یی پکښې راوستی دی له دې څخه یی جمات ته هم اوبه ورکولې بیایی دځه لمونځ کوونکو سره اختلاف راغې نو په جماعت باندې یی اوبه بندې کړې او وی ویل چی دا فسادګر خلك به زمانه روسته زما اولاد په تنګ (تکلیف) کړی آیا دا جائز دی اوکه نه؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** دده په نلکه کښې د اوبو راتللو سره هغه ددې اوبو مالك وګرځیده لهذا له هغه سره د اوبو بندولو اختیار شته دې. مګر له جماعت څخه اوبه بندول خلاف دمروت (غیرت) دی، البته براه راست له چینې څخه داوبو اخستل دهر چاحق دې دهغو دمنع کولو هیچا سره هم اختیار نشته، والله سبحانه وتعالی اعلم ۷ ربیع الاول سنه ۱۳۹۶هـ

## په هرځای کښې دهرچاحق دې

په متفرقات الحظر والاباحه کښې دامسئله تیره شوی ده.

## بیع الشرب (دپټی اوبه کولو د نوبت خرڅول)

**سوال:** دشدید ضرورت په وخت کښې بیع الشرب جائزدې اوکه نه؟ همدارنګه شرب په اجاره ورکول هبه کول، عاریت باندی ورکول جائزدی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** په دې ټولو معاملاتوکښې په ظاهر الروایة کښې عدم جواز دې بعضې مشائخ دجواز قائل دی، په وخت دسخت ضرورت کښې دهغوئ دقول په غوره کولو کښې ګنجائش شته.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: و کذا بیع الشرب وظاهر الروایة فسادہ الاتبعا خانیة وشرح وهبانیة وسنحققه فی احیاء الموات.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله و کذا بیع الشرب) ای فانه یجوز تبعا للارض بالاجماع ووحده فی روایة وهو اختیا مشائخ بلخ لانه نصیب من الماء درر ومحل الاتفاق ما اذا کان شرب تلك الارض فلو شرب غیرها ففیه اختلاف المشائخ کما فی الفتح والنهر.

(قوله وسنحققه فی احیاء الموات) حیث قال هو والمصنف هناك ولا یباع الشرب ولا یوهب ولا یؤجر ولا یتصدق به لانه لیس بمال متقوم فی ظاهر الروایة وعلیه الفتوی ثم نقل عن شرح الوهبانیة ان بعضهم جوز بیعه ثم قال ویفتی الحکم بصحة بیعه اه (ردالمحتار ص۱۱۸ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۲ ربیع الاول سنـــ۱۴۰۱ـهـ

## دشرب (دځمکې داوبو د نوبت) حصه بلې ځمکې ته منتقل کول

**سوال:** څه فرمایی علماء ددین مبین په دې مسئله کښې چې یو قناة له لسو نه ترپنځلسو پورې دنفرو ترمینځ شریك دې چې دهر شخص سهم مشخص دې حتی چې دساعتونه په سرتقسیم دې او له اول نه تر آخره پورې چې کارشوې دې څوك چې صاحب دنیم ساعت وو دنیم ساعت پیسی بی ورکړی دی اوڅوك چې ددوه ساعته مالك وو هغه ددوه ساعته پیسې ورکړی دی، په داسی حال کښې چې د دوه ساعته دمالك ځمکه کمه ده او اوبه یی زیاتې دی او دا سرې نوره ځمکه هم لری چې اوبه یی له دغه لښتی څخه نه دی اوهغه ځمکه له بل ځای څخه هم اوبه نه لری آیا دا شخص کولې شی چې زیاتې اوبه په دغه ځمکه باندې مصرف کړی اوکه نه؟ اوشریکان مانع دی چې موږ

زیاتي اوبه نه پریږدو چې دغه ځمکې ته یې بوزي، آیا دوئ حق دمنع کولو لري اوکه نه؟ په فتاوی قاضیخان ، باب دشرب کښې په حاشیه د عالمگیری ص۲۰۷ ج ۱ کښې لیکلي چې:

ولو کان له سدس الماء من نهر بین قوم اوعشر الماء اواقل اواکثر فاخذ نصیبه من ذلك النهر کان له ان یسوق نصیبه الی حیث شاء من الارضین لان ذلك لیس بشرب لاحد معین انتهی.

اوپه هدایه ج۴ کتاب الشرب اوپه نورو کتابونو کښې لیکلي دي.

ولیس لاحد من الشرکاء فی النهر ان یسوق شربه الی ارض له اخری لیس لها شرب فی ذلك لانه اذا تقادم العهد یستدل به علی انه حقه انتهی.

اوپه فکر داحقر له عبارت دفتاوی قاضی خان څخه فهم کیږي چې شریکان حق دمنع نلري اوله عبارت دنورو کتابونو څخه معلومیږي چې حق دمنع لري نو توضیح ددې به څنګه وي ؟ اومحمل ددغو عباراتو یودې اوکه نه فرق لري؟ عبارت دهدایې یومحمل لري او عبارت د قاضی خان بل محمل لري ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دلته دجواز اوعدم جواز مدار په ضرر دشرکاؤ حالي یا مآلي (آینده) دې چې په هغه دوئ راضي نه دي که په تقسیم داوبو کښې ځمکه په کومه درجه کښې هم ملحوظ شوې وي لکه چې دا عرف عام دې نو خارجي ځمکې ته اوبه بیول جائزندي ولوکان الماء مقسمابالایام، ځکه چې که خارجي ځمکه له نهر څخه ډیره ټیټه وي نو زیاتې اوبه جذبوي چې له دې وجې نه شریکان متضرر کیدل یقیني دي، علاوه له دې نه دتقادم دعهد په صورت کښې ددعوې دشرکت هم احتمال شته کما فی الهدایه، اوکه دا صورت حال د کومي داخلي ځمکې وي نو په اذن دشرکاؤ هیڅ حرج نشته او دغیر شریك ددعوې شرکت هم احتمال نشته اوکه دتقسیم په وخت کښې ځمکه بالکل نظر انداز شوې وي نو هر شریك کولې شي چې خپله معلومه حصه چې چیرته مصرفوي مصرف کولې یې شي دجزئي دخانیه دا محمل دې، فانهم رضوا بالضرر المذکور.

په پاکستان کښې په حکومتي اوغیرحکومتي عرف کښې د دویم شق هیڅ وجود نشته په هر حال به نهري اوبو کښې ځمکې ملحوظ کولې بلکه مخصوص کولې شي، البته په غیر حکومتي عرف کښې کوم شریك خپله حصه کله کله خارجي ځمکې ته هم بیولې شي اوکه شریکانو ته ضرر نه وي نو ددې تحمل کولې شي، په سرکاري قانون کښې په هر حال دا یو جرم دې . والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۹شعبان سنه ۱۴۱۲هـ

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿وَمَا تَوۡفِيقِيٓ إِلَّا بِٱللَّهِۚ عَلَيۡهِ تَوَكَّلۡتُ وَإِلَيۡهِ أُنِيبُ ۝٨٨﴾

# حریم القناة (دکاریز حریم یا حدود)

* دحریم القناة په مقام اومقدار کښې تحقیق
* دفقهاء کرامو رحمهم الله دمختلفو عباراتو تطبیق

*******
******
*****

## حریم قناة

* دقناة دحریم مقام
* دقناة دحریم مقدار
* اول جواب
* دوم جواب
* دریم جواب تصویب
* التحقیق المزید

## دقناة (كاريز) دحريم ابتداء

**سوال**: دقناة (كاريز) دحريم حد له كوم ځاى څخه شروع كيږي؟ آيا له هغه ځايه چې اوبه را ځوښيږي يا له هغه ځايه چې اوبه حركت كوي؟.
په دې باره كښې دفقهاء كرامو داقوال مختلفه ؤ ترمينځ دتطبيق يا ترجيح صورت څه دي؟ مفصل جواب راكړئ. شكرا.
ددې استفتاء په باركښې درې ځله دارالعلوم كراچي ته رجوع وشوه ليكن تشفي ونه شوه، لهذا درې واړه جوابونه ستاسي په خدمت كښې وړاندې كيږي په هغوكښې غور وكړئ اوفيصله اوفرمايئ، ډيره مهرباني به مو وي.

**الجواب ومنه الصدق والصواب**

**اول جواب**: دفقهاء كرامو دتصريح مطابق دقناة درې حصې معلوميږي:
۱. دقناة هغه پورتني مقام چې په هغې كښې اوبه وي.
۲. دقناة هغه لاندې مقام چې له هغې نه اوبه تيريږي.
۳. د قناة هغه مقام چې له هغه ځايه اوبه راوځي اودځمكې سطحې ته راكوزيږي.
داولنۍ حصې په باره كښې دعالمگيرى عبارت په ص ۳۸۸ ج ۵ كښې دادې.

**قال محمد في الكتاب القناة بمنزلة البئر فلها من الحريم ما للبئر**

يعنى كاريز په منزله دكوهى دې لهذا دقناة حريم به هم هغه وى كوم چې دكوهى دې يعنى څلويښت شرعى گزه او ددويمې حصې متعلق دعالمگيرى عبارت دادې.

**اما في الموضع الذي لا يقع الماء على الارض القناة بمنزلة النهر الا انه يجرى تحت الارض.**

يعنى هغه مقام چې هلته اوبه په ځمكه كښې دننه تيريږي هغه په منزله دنهر دې او هغه حريم دنهر دحريم په شان دې او د دريمې حصې متعلق دعالمگيرى عبارت دادې.

**القناة في المواضع الذي يظهر الماء منه على وجه الارض بمنزلة العين الفوارة فيكون لها من الحريم مثل ما للعين خمسمائة ذراع بالاجماع.**

يعنى دقناة هغه حصه له كوم ځايه چې اوبه راوزي اودځمكې سطحې ته راځى هغه دچينې په حكم كښې ده او دچينې حريم پنځه سوه شرعى گزه دې.

**ومثله في الخانية على هامش الهندية ص ۲۲۰ ج ۳ والبحر ص ۲۱ ج ۸.**

ديورته ذكر شوى تفصيل په رڼا كښې دقناة په باره كښې دفقهاء كرامو ترمينځ كوم حقيقى اختلاف نشته والله تعالى اعلم

## په ذکر شوی جواب دمستفتی اشکالات

د استفتاء جواب راورسیده لیکن تراوسه پورې په نظر د احقر مسئله قابل دتحقیق اوزیات توضیح ده په داسې صورت کښې چې تاسو جناب عالی د کاریز حریم له ځای دراوتلو داوبو له کاریز ځخه ثابت کړې دې او له اصل منبع نه مونه دې ثابت کړې، اوس څو اشکالونه واریدیږی چې دهغې حل ستاسې په ذمه لازم دې:

**اول**: داچې مسئله دقناة په اتفاق دائمه کرامو منصوص شرعی نده بلکه قیاسی ده.

**کما قال فی المعایه شرح الهدایة وقال فی الشامل القناة لها حریم مفوض الی رای الامام لانه لانص فی الشرع (ص۳۰۲ج۴)**

پس کله چې دامسئله قیاسی شوه نو له دوه حالتونو ځخه خالی نده: یابه په کوهی قیاسیږی او یا به په چینه باندې چې منصوص دی.

که په کوهی قیاس شی نو علت مشترکه چې شرط دقیاس دې په مینځ ددواړو مسئلو کښې نه لیدل کیږی ځکه چې کوهی یوځای ژور کندل کیږی او اوبه یی ولاړې وی اوقطره قطره راځی په شان دفواری، حرکت نه کوی اونه روانیږی اولښتې (ویاله) هم نه لری، په خلاف دقناة چې که له لاندې قطع کړې شی او یا یی سرلوڅ کړې شی په دواړه حالاتوکښې یی اوبه جاری وی، په شان دفواری له منبع نه حرکت کوی نه له ځای دبهر وتلو فصل ته اولښتی وغیره تشریفات لری.

البته که چیرته داپه چینه قیاس کړو لکه څنګه چې مشائخو کړې دې، علت مشترکه لیدل کیږی لیکن په دې صورت کښې باید مقتضای قیاس دمشایخو دا شی چې حریم دقناة له منبع اوبنګاه نه ونیول شی نه له ځای د وتلو د اوبو نه فصلونو ته، ځکه چې په اتفاق د ائمه رحمهم الله تعالی حریم دچینې له منبع ځخه دې نه له حوض اوانتها دلښتی دهغه نه، اوکه داسې ونه شی نو قیاس مع الفارق راځی کما فی صورة الاولی.

**دوم**: که مونږ قناة په دریو حصوتقسیم کړو په اوله حصه کښې دا اشکال راځی چې دکوهی اوبه تږل شوې او ولاړې دی او په شان دفوارې ندی په خلاف دقناة.

او په دریمه حصه کښې دا اشکال راځی چې هلته په حقیقت کښې اول اوبه دځمکې له لاندی ځخه نه راوزی بلکه دقناة له سرپوښ ځخه لاندې راوزی په شان دفواری. دلته هم موصوف نه ګرځی په خلاف دچینې چې حقیقتاً له ځمکې راوزی اوپه شان دفوارې ده، علت په دې وخت کښې هم مقصود ګرځی.

**دریم**: حریم باید یو معین حد وی که چیرته دقناة حریم د اوبو د راوتلو ځای له سرپوښ دکاریز ځخه شی نونه معین کیږی ځکه چې په وخت دکمیدلو د اوبو کښې قناة زیات ژوریږی هغه سرپوښ

شوې کاريز تيتيږي په يوه حالت نه پاته کيږي پس بايد هر کال نوې ځاى ورته حريم وګرځي.

**خلورم**: قناة چې کله کيندل کيږي مبادي يې له خولې څخه چې داوبو دراوتلو ځاى دې په مزارعو شروع کيږي او آخريې منبع ته رسيږي اوتماميږي، په مينځ ددې مسير کښې ډير کوهيان لپاره دکندلو دلښتې دقناة کندل شوي وي اوخلاصيږي اوقول دامام محمد محمول په همدغو کوهيانو دې چې منبع ته ندي رسيدلي چې هريو د دغوحکم دځاه لري اوکله چې آخر او منبع لره ورسيږي نو مشائخ رحمهم الله په قول د امام محمد باندې دا اضافه کړيده چې په هغه وقت کښې حکم دچينې لري، اوظاهره ده چې په پاى اومبادى کښې ندي بلکه په غايت اومنبع کښې دى اوامام اعظم هم همدارنګه فرمايلي دى لکه چې دقاضيخان په عبارت کښې تصريح ده.

**واما عند ابي حنيفة رحمه الله تعالى اذا فعل ذلك باذن الامام يستحق الحريم للموضع الذى يقع الماء فيه على وجه الارض (الى ان قال) والقناة الى ان يقع الماء على وجه الارض بمنزلة النهر الا ان فى القناة يجرى الماء تحت الارض واذا وقع الماء على وجه الارض يصير ذلك الموضع بمنزلة العين لان فى العين يخرج الماء من الارض ويسيل على وجه الارض (ص۲۲۰ بر حاشيه هنديه بيروتى)**

**پنځم**: هغه الفاظ چې فقهاى کرامو رحمهم الله په دغه مورد کښې استعمال کړي دى هغه دادى **يظهر على وجه الارض، يقع الماء على وجه الارض، يقع الماء فيه على وجه الارض، يسنح على وجه الارض، سنح على وجه الارض.**

دا وجه الارض هغه ځمکه ده په نظر داحقر چې په منبع اوبنګاه داوبو کښې ده نه هغه ځمکه چې ځاى د راوتلو داوبو دې مزارع ته، په دې لاندې قرائنو باندې:

قناة داوبو مجرى ته ويل کيږي چې لاندې له سرپوښ څخه وي اوهغه مختلف فيه دې په مينځ دامام صاحب اوامام محمد يا صاحبينو کښې چې امام صاحب هغه په شان دنهر ګرځولى اوحريم يې ندې ورکړې، مګر په شان دنهر او امام محمد يا صاحبينو هغه يعنى خوله دکاريزيې په منزله دکوهي ګرځولې اوکه نه نو په هغه ځاى کښې چې منبع د اوبو د راوتلوده په نزد دامام صاحب په منزله دچينې ده کما فى البحر **(ج۸ص۲۲۱ وفتح القدير وهداية ج۸ص۱۳۲)**

همدارنګه په هنديه کښې: **القناة فى الموضع الذى يظهر الماء منه على وجه الارض بمنزلة العين الفوارة.**

او دا موضع هماغه منبع اوبنګاه ده په ظاهر کښې نه بل څه. همدارنګه له پورته ذکرشوى دليل دقاضى خان نه ښکاره ده چې ويلي يې دى: **لان فى العين يخرج الماء من الارض ويسيل على وجه الارض.**

پس معلومه شوه چې دقناة حریم هماغه ځای دې چې اوبه دځمکې دلاندې نه دځمکې سرته راځي نه هغه ځای چې اوبه له سرپوښ ځخه راوځي.

اوهمدارنګه له عبارت دکتاب الخراج ځخه واضح دی چې: **قال ابویوسف رحمه الله تعالی واجعل للقناة من الحریم مالم یسنح علی وجه الارض مثل ما اجعل للابار فاذاظهر الماء وسنح علی وجه الارض جعلت حرمیه کحریم النهر بغایة (ص۲۰۳ج۴)**

یعنی ترهغه وخته پورې چې دکاریز اوبه په منبع کښې ولاړې وی اوجریان نه کوی حکم دهغې په مثل دحریم د کوهی دې اوکله چې اوبه په مسیل دقناة کښې روانې شی تر آخره پورې حکم دهغې په مثل دلښتی وی، معلومه شوه چې مسئله مختلف فیها په مابین دامام اوصاحبینو کښې همدغه مسیل اولښتې دې تر آخره پورې.

**شپږم**: خلاصه دعلتونو چې له نصوصو ځخه په مورد دحریم کښې معلومیږی دوه شیان دی: یو دفع دمضرت اودویم جلب دمنفعت.

اول علت په مالك او اوبو کښې مشترك دې. دویم فقط ترمالك پورې محدود دې، یعنی له نصوصو ځخه معلومیږی چې علت دحریم دادې چې له حافر اول نه ضرر دنقص یا د اوبو دفناء کیدو لرې کړې شی اوله هغه ځخه منع دتصرف له حریم نه هم جلوګیری وشی اوس ظاهره خبره ده چې که حریم له ځای دوتلو داوبو له سرپوښ ځخه شی اوپنځه سوه ګزه لرې دده ملکیت ورباندې قرار ونیسی فقط ده ته نفع دملك رسیږی . او دفع دضرر له اوبونه چې اصل علت دې نه لرې کیږی. ځکه که چیرې دلته څوك لرې یا نزدې یوبل کاریز وباسی نوچونکه منبع د اوبو ډیره لرې ده نوهیڅ اثر نه لری.

اوکه چیرې حریم له منبع ځخه مقرر کړې شی نو ضرر د قناة له اوبو او له صاحب د قناة دواړو نه لرې کیږی او انتفاع د ملك په دې حدودو کښې هم مالك ته پاتې کیږی، برابره خبره ده که هغه په واسطه د اوبو د قناة وی یا په واسطه د بوکې (دلو) وغیره وی . د قناة د څاه له خولې نه کولې شی چې په دحدودو د پنځه سوه ګزه کښې ملکًا استفاده وکړی. او دفع د ضرر هم له جلب منفعت ځخه وی، نو مقتضی ددغوعلتونو اوقواعدوهم همداده چې حریم له منبع اوبنګاه ځخه وی نه له ځای دبهر راوتلو داوبو له سرپوښ دقناة ځخه.

**خلاصه**: داچې لطفًا دې اشکال لره په تدبر تام سره نظر وکړئ اولخ شافی جواب ځخه مومستفید وګرځوئ اوله نورو مفتیانو ددغه ځای ځخه هم مشوره وغواړئ.

**دویم جواب**

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: دمنبع اوبنګاه متعلق چې تاسو کوم څه ویلی دی چې (ددې په

کوهی قیاس کول نه دی صحیح، دا خبره صحیح ده ځکه چی دعالمګیری داعبارت : **قال محمد رحمه الله تعالی فی الکتاب القناة بمنزلة البیر فلها من الحریم ما للبیر.**

دا د قناة دلاندینی حصې متعلق دې چی له کوم ځای څخه اوبه تیریږی، او دمنبع متعلق ندې لکه چی صاحب د درمختار په دې مسئله کښې دامام اعظم اختلاف هم نقل کړی دې، ظاهره ده چی اختلاف د امام صاحب اوصاحبینو په منبع کښې دقناة په دا لاندی حصه کښې دې چی له کوم ځای څخه اوبه تیریږی.

**کما فی الدر المختار (وللقناة) هی مجری الماء تحت الارض (حریم بقدر ما یصلحه) لالقاء الطین ونحوه وعن محمد رحمه الله تعالی کالبیر.**

**وفی الشامیة تحت (قوله وعن محمد رحمه الله تعالی کالبیر) قال الاتقانی قال المشایخ الذی فی الاصل ای من ان القناة کالبیر قولهما وعنده لاحریم له لانها بمنزلة النهر مالم یظهر ماؤها علی وجه الارض ولاحریم للنهر عنده فان ظهر کالعین الفوارة حریمها خمسمائة ذراع (ص۳۰۹ج۵)**

پس د دارالعلوم په سابقه فتوی کښې چی دقناة حریم دکوهی دحریم په شان لیکل شوې وو له هغه څخه رجوع کیږی، البته تاسو چی دا لیکلی دی چی د دریمې حصې (یعنی کوم ځای چی اوبه دځمکې سرته ظاهریږی په صورت دقیاس په چینه باندې علت مشترکه نه پیداکیږی ) داصحیح ندی ځکه چی په چینه کښې دوه شیان موندل کیږی.

**۱ـــخروج الماء من الارض.**

**۲ـــسیلان الماء علی وجه الارض.**

لکه چی دقاضی خان له عبارت څخه ظاهر دی

**والقناة الی ان یقع الماء علی وجه الارض بمنزلة النهر الا ان فی القناة یجری الماء تحت الارض فاذا وقع علی وجه الارض یصیر ذلك الموضع بمنزلة العین لان فی العین یخرج الماء من الارض ویسیل علی وجه الارض.**

**(الخانیة علی الهندیة ص۲۲۰ج۳)**

ددریمې حصې دقیاس کولو لپاره په چینه باندې دا ضروری نده چی په دې کښې د ځمکې له داخل نه اوبه را وه وځی.د قناة په ذریعه دلته نه وی راغلې.ځکه چې په دې صورت کښې خو بیا دغه عین چینه شوه بیا خویی په چینه باندې دقیاس کولو سوال هم نه پیداکیږی دچشمی حریم په اتفاق دائمه کراموله منبع څخه شمیرل کیږی له حوض څخه نه شمیرل کیږی او دا توقیفی دی.

**کما فی الهدایة : وان کانت عینا فحریمها خمس مائة ذراع لمارویناه وهو قوله علیه السلام حریم العین**

خمس مائة ذراع (الی ان قال) والتقدیر بخمسمائة بالتوقیف (ج۳ ص۱۸۱)

مګر دلته بحث دچینې نه دې بلکه دقناة د دریمې حصې متعلق دې، دا دریمه حصه په چینه قیاس شوې ده، دقناة حریم له دریمې حصی څخه دمقررولو په صورت کښې که حریم هر کال بدلیږی نو په هغه کښې څه حرج دی؟ لکه څنګه چی چینه که یو ځای بنده شی له بل ځای څخه راووزی نو په اتفاق دائمه کرامو له دې بل ځای څخه د چینې حریم شمیرل کیږی، هغه الفاظ چی فقهاء کرام یی ددې مسئلې لپاره استعمالوی لکه:

**یظهر علی وجه الارض**

**یقع الماء علی وجه الارض**

**یقع الماء فیه علی وجه الارض**

**یسنح علی وجه الارض**

**سنح علی وجه الارض.**

له هغو څخه مراد هغه مقام دې چی اوبه له هغه ځای څخه راځی او د ځمکښې په سطحه ظاهریږی، یعنی دقناة آخری حصه منبع اوبنګاه مراد ندی لکه چی دفقهې دکتابونو عبارتونه په هغې باندې صراحتاً دلالت کوی کما فی الخانیه : **والقناة الی ان یقع الماء علی وجه الارض بمنزلة النهر الا ان فی القناة یجری الماء تحت الارض فاذا وقع علی وجه الارض یصیر ذلك الموضع بمنزلة العین (الخانیة علی الهندیة ص۲۱۹ ج۳)**

دقاضیخان په عبارت کښې یی له دریمې څخه په وړاندینۍ حصې باندی دنهر اطلاق کړې دې ظاهره ده چی **(وقع الماء علی وجه الارض)** نه اولنی حصه (یعنی دقناة هغه پورتنی حصه چی په هغې کښې اوبه وی) مراد نشی کیدې څکه چی له هغې څخه مخکښې کوم نهر نه وی.

صاحب دغایة الاوطار د درمختار دعبارت (ولو ظهر الماء فکالعین) ترجمه کړې ده (یعنی دکاریز اوبه چی پورتنی حصه دځمکې څیرې کړی اوظاهرې شی نو دهغې حکم دچینې په شان دې) یعنی پنځه سوه ګزه به دهغې حریم وی ص۲۵۴ ج۴

له دې څخه داهم ظاهریږی چی له **(ظهور الماء علی وجه الارض)** دریمه حصه مراد دې منبع اوبنګاه مراد نه ده.

صاحب دعین الهدایه دهدایی دعبارت **(قالوا وعند ظهور الماء هو بمنزلة عین فوارة)** ترجمه کړې ده چی هغه دادې : (مشائخو فرمایلی دی کله چی دهغه اوبه په ځمکه باندې ظاهرې شی نو هغه په

منزله دجوش وهونکې چینه ده) یعنی پنځه سوه گزه حریم دې ورته مقرر کړې شی. صـ۳۷۳ جـ۴.
له دې څخه هم همدغه معلومیږی چی ظهور الماء علی وجه الارض نه هغه مقام مراد دې په کوم ځای کښې اوبه دځمکې په سطح ظاهریږی. والله اعلم وعلمه اتم واکمل.

## په دویم ځواب باندی دمستفتی اشکال

دویم ځواب دقناة په موضوع باندې را ورسیده اویو څه تشفی وشوه لیکن اوس هم یو اشکال باقی پاتې دې او هغه داچی تاسو حضراتو دقناة حریم له کوم ځای څخه چی اوبه دځمکې سطحې ته راوځی مقرر کړې او د فقهاء کرامو عبارات مو په هغه چسپان کړی دی.

په دی اشکال دادې چی آیا قناة ته له منبع اوبنگاه څخه هم یوبل حریم ورکول کیږی اوکه نه؟ که ورکول کیږی نو څومره ؟ لکه دکوهی حیرم اوکه لکه دچینی حریم ؟ اوکه نه ورکول کیږی نوستاسې ددې عبارت څه معنی ده ؟

(په دې صورت کښې خو هغه عین چشمه شوه دهغې دقیاس کولو په چشمې باندی سوال هم نه پیداکیږی.) اوکوم نصوص چی دچینې یا دکوهی دحریم په باره کښې راغلی په کومه وجه منبع له هغې څخه اودهغو له عام مصداق څخه خارج گرځول کیږی؟ سره ددې چی علت داستحقاق دحریم په اتفاق دفقهای کرامو یوحاجت دې په دوو طریقو سره.

اول دفع دحاجت له صاحب دمنبع (چینه) اوکوهی څخه. دویم دفع دضرر له اوبو دصاحب دحریم څخه. دغه دویم حاجت فقهای کرامو اصل علت گرځولې دې اوقیاس هم همدا غواړی ځکه چی نولې استفادې دصاحب چشمه یاکوهی د اوبو په وجود پورې موقوفې دی که اوبه نه وی نو هغه به څنگه استفاده وکړی.

اودا هم بالکل مشاهده ده چی که بل څوك ددې ځای گیرچاپیره کوم ځای چی اوبه دځمکې سطحې ته راوځی په ځمکه غور ځیږی دپنځه سوه نه په کمه فاصله کښې بلکه په شلو یا دیرشو گزوکښې دننه دننه بل کوهی یا چینه وکندی اول قناة ته هیڅ نقصان نه رسیږی دا بالکل مشاهده ده، زه خپله په دوه قناته کښې شریك اوصاحب دحال اوصاحب البیت یم.

اوصاحب دځمکې ته هم هیڅ ضررنه رسیږی.

ځکه چی کله اوبه دقناة دځمکې سطحی ته راوزی اکثر اواغلب پنځه سوه گزه کښې دننه دځمکې دتیټ والی اوجگوالی په وجه قابل داستفادې نه وی، بلکه اکثر اواغلب چی کوم قناتونه زمونږ په ملك کښې دی، زرگزه یا کم ازکم اوه سوه گزه نه پورته قابل داستفادې وی، نو دپنځه سوه گزه دحریم ورکولو سره دصاحب د ځمکې حاجت ته او یا له دفع دضرر نه له هغه څخه هغه ته څه فائده رسیږی اودنص اوقیاس څه نتیجه راووتله؟

البته دا بالکل مشاهده ده که دمنبع اوبنگاه دقناة سره گیرچاپیره فواره وار په ځمکه کښې راخوټیږی که بل څوك دهغې په پنځه سوه گزه کښې گیرچاپیره یا ددې نه کم بل قناة اول بالکل وچ شی اوناقابل داستفادې شی اودصاحب اول ټولې استفادی اوسرمایه بیکاره شی بلکه د نن سبا د آلاتواوماشینونو په دور کښې که په اوه سوه گزه یا زرگزه فاصله کښې یوماشین ولگول شی نو اول قناة وچیږی لهذا د احقر په نظر دواړه ځایه قناة ته حریم ورکول ضروردی، اوکه نه نو بیالازم دی چې دمنبع اوبنگاه څخه حریم ورکول شی ترڅو چې جامع دعین اوقناة موافق شی، اواصل علت حاجت اودفع ضرر دماء په خپل حال وگرځی اومصداق دنصوص عامه برحال وگرځی اوس ستاسی حضراتو دتحقیق انتظار دې:

**الجواب الثالث:**

الجواب: حامداً ومصلیًا: دقناة متعلق دفقهاء کرامو په عبارتونو کښې اودهغوئ په ماخذونو کښې دغور کولو وروسته چې کومه خبره ذهن ته راځی هغه داده چې دقناة پورتنی حصه چې دکوم ځای نه اوبه راوتل شروع کیږی چې له هغې څخه په استفاده کښې په منبع اوبنگاه تعبیر شوې متعلق دهدایه په حاشیه کښې شارح المواقف نه نقل شوی چې دقناة دپورتنی حصې څخه څو پورې مسیل یعنی نهر نوی ویستل شوې ترهغه وخته پورې دا کوهی دې اوکله چې ترینه نهر وه ویستل شو نو هغه مقام په نهر کښې شاملیږی، لهذا دقناة لوړه حصه او د قناة لاندې حصه له کوم ځای نه چې اوبه تیریږی د دغو دواړو ځایونو حریم شرعا مقدر او متعین نه دې دزمکې سختی اونرمی ته اعتبار دې ځومره چې حریم ته ضرورت وی هماغه اندازه به حریم وی لکه چې قاضی خان د قناة او مخرج ماء یعنی منبع لپاره حریم بقدر مایصلح مقرر کړځولې دې.

همدارنگه دفقهاء کرامو په اکثر کتابونو کښې دقناة ددوه حصودحریم ذکر صراحتاً پیدا کیږی اول دقناة هغه حصه چې له هغه ځای څخه اوبه دځمکې سطحې ته ظاهریږی چې دهغې حریم فقهای کرامو دچینې حریم مقرر کړې دې

**دویم:** دقناة هغه حصه چې دهغې اوبه په سطح دځمکې ظاهرې نه وی دهغې حریم فقهای کرامو دلښتی (نهر) حریم مقرر کړې دې. یعنی دځمکې سختی اونرمی ته اعتبار دې څومره چې ضرورت وی هماغه مقدار دهغې حریم وی.

فی حاشیة الهدایة: (قوله والقناة) قال الشارح المواقف ان لم یجعل مسیل فهو البیر وان جعل فهو القناة ونسبته الی الابار کنسبة العیون السیالة الی الراکدة (ص ۲۸۲ ج ۴)

وفی الخانیة علی هامش الهندیة: ولو حفر رجل قناة اذن الامام فی مفازة وساق الماء حتی اتی به ارضا فاحیاه فانه یجعل لقناته ولمخرج مائه حریما بقدر ما یصلح (ص ۲۲۰ ج ۳)

فقهاء كرامو چی ددریمې حصې دقناة حریم دچینې دحریم برابر مقرر کړې دې هغه صرف ددې مقصد لپاره ندې چی که څوك ددې حریم په دننه کښې بل قناة وباسی نو دهغه اوبو ته به نقصان نه وی بلکه چی دکوم مقصد لپاره یی قناة ویستلې دې لکه کښت وغیره دهغې هم اعتبار کړې شوې او دچینې دحریم په اندازه ورته حریم فقهاء کرامو مقرر کړې دی.

فی الهدایة: وان كانت عینا فحریمها خمسمائة ذراع لما روینا ولان الحاجة فیه الی زیادة مسافة لان العین تستخرج للزراعة فلابدمن موضع یجری فیه الماء ومن موضع یجمع فیه الماء ومن موضع یجری فیه الی الزراعة (ج۴ص۴۰۸) والله سبحانه وتعالی اعلم.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دریم خواب صحیح دې.

**التحقیق المزید:**

۱: قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی قال الاتقانی قال المشائخ الذی فی الاصل ای من ان القناة کالبئر قولهما وعنده لاحریم لها لانها بمنزلة النهر مالم یظهر ماؤها علی وجه الارض ولاحریم للنهر عنده فان ظهر کالعین لفوارة حریمها خمسمائة ذراع (رد المحتار ص۳۰۹ ج۵)

له دې څخه معلومیږی چی عندالامام دقناة دځمکې دلاندینی حصې حریم نشته اوعند الصاحبین دهغې حریم دکوهی دحریم په شان څلویښت ذراع دې مگر تحقیق دادې چی دامام صاحب په نزدهم دنهر حریم شته په دې کښې د امام اوصاحبینو په مابین کښې اختلاف نشته. بلکه بالاتفاق حریم شته

كما حرر الامام الحصكفی رحمه الله تعالی فی بحث حریم النهر وقرره العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: فقیاس الامام رحمه الله تعالی القناة علی النهر مثبت لحریمها کحریمه عنده ولذا قال صاحب التنویر وشارحه العلائی رحمهما الله تعالی وللقناة هی مجری الماء تحت الارض حریم بقدر مایصلحه لالقاء الطین ونحوه وعن محمد رحمه الله تعالی کالبئر (رد المحتار ص۳۰۹ ج۵)

۲– بئر عین فواره او د نهر دحریم دتحدید متعلق دحدیثو اوفقهی نصوص په حالات متوسطه مبنی دی، لهذا د اختلاف احوالونه حدود دحریم مختلف کیږی

قال فی العلائیة معزیا للقهستانی: وقیل والتقدیر فی بئروعین بماذکر فی اراضیهم لصلابتها وفی اراضینا رخاوة فیزاد لئلا ینتقل الماء الی الثانی وعزاه للهدایة وعزاه البرجندی للکافی فلیحفظ.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: وفی التاترخانیة عن ال...بیع ومن احتاج الی اکثر من ذلك یزید

علیه وکان الاعتبار للحاجة لاللتقدیر ولایکون فی المسألة خلاف فی المعنی اھ ونقل العلامۃ قاسم فی تصحیحه عن مختارات النوازل ان الصحیح اعتبار قدر الحاجة فی البئر من کل جانب.

وفی التنویر: وللقناة حریم بقدر مایصلحه.

وفی الشرح: لالقاء الطین ونحوه (الی قوله) وفی الاختیار فوضه لرای الامام ای لوباذنه والافلا شئ له ذکره البرجندی (ردالمحتار ص۳۰۹ ج۵)

وفی الخانیة: ولوحفر رجل قناة بغیر اذن الامام فی مفازة وساق الماء حتی اتی به ارضا فاحیاها فانه یجعل لقناته ولمخرج مائه حریما بقدر مایصلح. (خانیة علی هامش الهندیة ج۳ ص۲۲۰)

۳ــ علامه حصکفی رحمه الله له برجندی نه د اذن امام شرط نقل کړې دې او د قناة بلااذن امام لپاره حریم نشته او امام قاضی خان فرمایي چی قناة بلا اذن امام لپاره هم حریم شته دی.

دا اختلاف په دې اختلاف باندې مبنی دې چی دامام صاحب په نیزد باندې په احیاء الموات کښې اذن د امام شرط دې او د صاحبینو په نیزد شرط ندې د برجندی قول په قول د امام صاحب مبنی دې او دقاضی خان قول په قول دصاحبینو مبنی دې دا وجه دتوفیق بالکل ظاهره ده، سره ددې نه علامه ابن عابدین ددې تصریح هم کړې ده.

ونصه (قوله ای لوباذنه) ای لو کان الاحیاء باذن الامام لانه شرط عند الامام والافلایملك ما احیا ولایستحق له حریما (ردالمحتار ص۳۱۰ ج۵) والله تعالی اعلم.

رشید احمد ۲۳ جمادی الاخرة سنه ۱۴۰۹ھ

# كتاب الاشربة

## دچلم دڅښلو حکم

**سوال**: چلم څښل څه حکم لری؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: علامه ابن عابدین دچلم اباحت ثابت کړې دې او دکراهت په قول بی رد کړې دې، دشامی څوجملې نقل کولې شی، زیات تفصیل اوپه اباحت دلائل اودفریق مخالف تردید دې په شامیه کتاب الاشربه کښې وکتلې شی.

وللعلامع الشیخ علی الجهوری المالکی سالة فی حمله نقل فیها انه افتی بحله من یعتمد علیه من ائمة المذاهب الاربعة وقلت والف فی علمه ایضا سیدنا العارف عبد الغنی النابلسی رسالة سماها الصلح بین الاخوان فی اباحة شرب الدخان وتعرض له فی کثیر من تالیفه الحسان واقام الطامة الکبری علی القائل بالحرمة اوبالکراهة فانهما حکمان شرعیان لابدلهما من دلیل ولادلیل علی ذلك فانه لم یثبت اسکاره ولا تفتیره ولااضراره بل ثبت له منافع فهو داخل تحت قاعدة الاصل فی الاشیاء الاباحة وان ثبت له معافع فهو داخل تحت قاعدة الاصل فی الاشیاء الاباحة وان فرض اضراره للبعض لایلزم منه تحریمه علی کل احد فان العسل یضر باصحاب الصفراء الغالبة وربما امرضهم مع انه شفاء بالنص القطعی ولیس الاحتیاط فی الافتراء علی الله تعالی باثبات الحرمة اوالکراهة اللذین لابدلهما من دلیل بل فی القول بالاباحة التی هی الاصل (رد المحتار ص۲۹٦ ج۵)

مګر دا د بیکاره خلکو شیوه اوطریقه ده لهذا له دې څخه احتراز کول په کار دی، اوپه داسې طریقه استعمالول یی چی له خولې څخه بدبوی ځی حرام دی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۸ جمادی الاولی سنه ۱۳۷۲ھ

## بنګ حرام دی

**سوال**: یوشخص وایی چی په درمختار کښې دبنګو اباحت ذکر دې آیا دامسئله واقعی در مختار کښې شته، که وی نو څنګه مباح دی؟ بینوا بیانا شافیا توجروا اجرا وافیا.

**الجواب ومنه الصدق والصواب**: عن ام سلمة رضی الله تعالی عنها قالت نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن کل مسکر ومفتر (ابوداود)

عن جابر رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم کل مسکر حرام ان علی الله عهدا لمن

يشرب المسكرات (مسلم)، عن ابن عمر رضى الله تعالى عنهما انه قال صلى الله عليه وسلم ما اسكر كثيره فقليله حرام (احمدوابن ماجه والدارقطنى)، قال الحافظ العينى رحمه الله تعالى فى شرح الكنز: قال محمد والثلاثة رحمه الله تعالى كل ما اسكر كثيره فقليله حرام من اى نوع كان.

كوم سړې چې وايي چې په درمختار كښې بنګ مباح ليكل شوى هغه مفترى اوكذاب دې په درمختار كښې هم دبنګو حرمت په صراحتاً سره ذكر شوې دې، البته دبنګو په څښلو باندې دشرابو حد نشته بلكه تعزير دې لكه په متيازو اوغټو بولو څښونكو اوخوړونكو باندې حدنشته بلكه تعزير دې دبنګو هم بعينه همدا حكم دې.

قال العلامع الحصكفى رحمه الله تعالى: ويحرم اكل البنج والحشيشة وهى ورق القنب والافيون لانه مفسد للعلقل ويصد عن ذكر الله تعالى وعن الصلوة لكن دون حرمة الخمر فان اكل شيئا من ذلك لاحد عليه وان سكر منه بل يعزر بما دون الحد كذا فى الجوهرة (ردالمحتار ص۲۹۵ ج۵)

په درمختار كښې دحلت قول خو څه كوې بلكه په هغه كښې يې دحلال ګڼونكې دكفر فتوى نقل كړې ده.

ونصه: ونقل عن الجامع وغيره ان من قال بحل البنج والحشيش فهو زنديق مبتدع بل قال نجم الدين الزاهدى انه يكفر ويباح قتله.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى تحت (قوله وهى ورق القنب) نقل ابن حجر عن بعض العلماء ان فى اكل الحشيش مائة وعشرين مضرة دينية ودنيوية ونقل عن ابن تيمية ان من قال بحلها كفر قال وامره اهل مذهبه اهو سيأتى مثله عندنا اهـ

وقال ايضا تحت (قوله بل قال نجم الدين الزاهدى) لكن رايت فى الزواجر لابن حجر ما نصه وحكى القرافى وابن تيمية الاجماع على تحريم الحشيشة قال ومن استحلها فقد كفر قال وانما لم يتكلم فيها الائمة الاربعة لانها لم تكن فى زمنهم وانما ظهرت فى اخر المائة السادسة واول المائة السابعة حين ظهرت دولة التتار اهـ بحروفه فليتامل (ردالمحتار ج۵ص۲۹۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۷ربيع الاخر سنـــ۷۳ـــهـ

## دبنګو او الكحلو وغيره داحكامو تفصيل

**سوال**: دبنګو استعمال اكلاً يا خارجاً جائز دې اوكه نه؟ او دهغې په شارب باندې حد شته اوكه نه؟ او د اسپرټو (الكحل) استعمال څنګه دې؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دمسكراتو دوه قسمونه دي: سيال او جامد، دسيالو دوه قسمونه

دی: اول هغه چی دهغو په نجاست اوحرمت اتفاق دې دهغو بیا څلور قسمونه دی: اول د انګورو خام شراب. دویم دانګورو پاخه شراب. دریم د رطب شراب. څلورم: دزبیبو شراب.

۱. د دغو یوه قطره هم حرامه ده اګر چه له هغې څخه نشه نه وی، دهغو په دواء کښې استعمالول اکلا وخارجاً ممنوع دی. خواه په اصلی حالت وی یا په کوم قسم تصرف سره په بل هیئت کښې وګرځی.

۲. هغه اشربه چی په هغو کښې اختلاف دې یعنی اشربه اربعه مذکوره نه علاوه باقی ټول اشربه دا دشیخینو په نزد ظاهر دی اوله مقدارمسکرنه کم بلا لهو په غرض د تداوی وغیره حلال دی د امام محمد په نزد نجس اوحرام دی. اګرکه قلیل وی. بلا تداوی په غرض د لهو په اتفاق سره حرام دی اوپه قدر دمسکر بالاتفاق حد شته دې.

په دواګانو وغیره کښې استعمالیدونکی الکحل له انګوروا و کجورو (خرما) څخه نه جوړیږی لدې وجی نه دشیخینو دمذهب مطابق دهغو استعمال جائزدې.

د اصول فتوی له لحاظه قول دشیخینو ته ترجیح ورکول کیږی الا لعارض.

اګر چه فقهاء کرامو دفساد زمان دحکمت په بناء دامام محمد قول مفتی به ګرځولی مګر اوس دعموم بلوی اوضرورت تداوی په خاطر داصل مذهب مطابق دجواز فتوی ورکولې شی.

## دجامد مسکر حکم

جامد مسکرات لکه افیون وغیره دومره مقدار چی نشه پیداکوی یاپه هغه کښې شدید ضرر وی حرام دی. همدارنګه دنشی له مقدارنه کم صرف دلهوپه طوراستعمالول هم حرام دی. البته لږ مقدار چی حد دنشی نه کم وی ددواپه طور استعمالول جائزدی اودهغه پټئ لګول هم صحیح دی.

**دحد متعلق داتفصیل دی:** دانګور په کچه شرابو مطلقا حدشته مسکر وی اوکه نه وی له هغې څخه علاوه سیال مسکراتو کښې په مقدار مسکر باندې حدشته اوپه قلیل نشته په جامدو مسکراتو کښې په مقدار دسکر باندې هم حد نشته بلکه تعزیر دې.

قال فی الدر المنتقی: ویکره ای یحرم کما عبرفی النقایة شرب دردی الخمرای عکره والامتشاط لرجل للانتفاع به لان فیه اجزاء الخمر وقلیله ککثیره کما مرولکن لایحد شاربه عندنا لغلبة المنقل ولنفرة الطبة عنه واعتبرالکرمی رحمه الله تعالی الطعم بلاسکر ویه یحد باجماع العلماء.

ولایجوز الانتفاع بالخمر من کل وجه کما فی وغیرها لان الانتفاع بالمحرم حرام ولایداوی بها جرح ولادبردابة ولاتسقی ادمیا ولوصبیا للتداوی (الدر المنتقی بهامش مجمع الانهر ص۵۶۳ج۲)

وقال العلامة التمرتاشی رحمه الله تعالی: ویحدشاربها وان لم یسکر منها ویحد شارب غیرها (ای من

المائعات المحرمة) ان سکر. (ردالمحتار صـ۲۸۹ جـ۵)

وقال ایضا فی بیان المسکرات الجامدات من البنج والحشیشة والافیون: فان اکل شیئا من ذلک لاحد علیه وان سکر بل یعزر بما دون الحد.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله وان سکر) لان الشرع اوجب الحد بالسکر من المشروب لا الماکول اتفاقی (ردالمحتار صـ۲۹۵ جـ۵)

وقال ایضا: قوله ویحرم اکل البنج) هو بالفتح نبات یسمی فی العربیة شیکران یصدع ویسبت ویخلط العقل کما فی التذکرة للشیخ داود فما فی القاموس واخبثه الاحمر ثم الاسود واسلمه الابیض وفیه السبت یوم من الاسبوع والرجل الکثیر النوم والمسبت الذی لایتحرک وفی القهستانی هو احد نوعی شجر القنب حرام لانه یزیل العقل وعلیه الفتوی بخلاف نوع اخر منه فانه مباح کالافیون لانه وان اختل العقل به لایزول وعلیه یحمل ما فی الهدایة وغیرها من اباحة البنج کما فی شرح اللباب اھ اقول هذا غیر ظاهر لان ما یخل العقل لایجوز ایضا بلا شبهة فکیف یقال انه مباح بل الصواب ان مراد صاحب الهدایة وغیره اباحة قلیله للتداوی ونحوه ومن صرح بحرمته اراد به القدر المسکر منه یدل علیه ما فی غایة البیان عن شرح شیخ الاسلام اکل قلیل السقمونیا والبنج مباح للتداوی وما زاد علی ذلک اذا کان یقتل او یذهب العقل حرام اھ فهذا صریح فیما قلناه مؤید لما بحثناه سابقا من تخصیص ما مر من ان ما اسکر کثیره حرام قلیله بالمائعات وهکذا یقال فی غیره من الاشیاء الجامدة المضرة فی العقل او غیره یحرم تناول القدر المضر منها دون القلیل النافع لان حرمتها لیست لعینها بل لضررها وفی اول طلاق البحر من غلب عقله بالبنج والافیون یقع طلاقه اذا استعمله للهو وادخال الافات قصدا لکونه معصیة وان کان للتداوی فلا لعدمها کذا فی فتح القدیر وهو صریح فی حرمة البنج والافیون لا للدواء وفی البزازیة والتعلیل ینادی بحرمته لا للدواء اھ کلام البحر وجعل فی النهر هذا التفصیل هو الحق والحاصل ان استعمال الکثیر المسکر منه حرام مطلقا کما یدل علیه کلام الغایة واما القلیل فان کان للهو حرام وان سکر منه یقع طلاقه لان مبدا استعماله کان محظورا وان کان للتداوی وحصل منه الاسکار فلا فاغتنم هذا التحریر المفرد بقی هنا شیء لم ار من نبه علیه عندنا وهو انه اذا اعتاد اکل شیء من الجامدات التی لایحرم قلیلها ویسکر کثیرها حتی یاکل منها القدر المسکر ولا یسکره سواء اسکره فی ابتداء الامر اولا فهل یحرم علیه استعماله نظرا الی انه یسکر غیره او الی انه قد اسکره قبل اعتیاده ام لایحرم نظرا ال

الا طاهر مباح والعلة فی تحریمه الاسکار ولم یوجد بعد الاعتیاد وان کان فعله الذی اسکره قبله حراما کمن اعتاد اکل شئ مسموم حتی صار یاکل ما هو قاتل عادة ولا یضره کما بلغنا عن بعضهم فلیتامل نعم صرح الشافعیة بان العبرة لما یغیب العقل بالنظر لغالب الناس بلا عادة (ردالمحتار ص ۲۹۳ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۵ شوال سنه ۷۳ھ

## دالکحل لرونکو ماکولاتو او مشروباتو حکم

**سوال**: زمونږ په ملك کښې کوکاکولا، فانتا اودهغو په مثل نور مشروبات شائع دی اوپه کثرت سره استعمالیږی، دجوړونکو کارخانو څخه دتحقیق کولو په ترځ کښې معلومه شوه چې په دغه مشروباتو وغیره کښې الکحل اچول کیږی او د دغو الکحلو بعضې اقسام له عصر العنب څخه تیاریږی اوځینی اقسام یې له آلو، کوئله اوغنمو وغیره شیانو څخه جوړیږی، په یو بوتل کښې تقریبا نیمه قطره الکحل موجود وی اوظاهره خبره ده چې دا قسم مشروبات محض دتنعم او تلذذ په طور استعمالیږی.

دبهشتی زیور دنهمې حصې په دویمه ضمیمه کښې دا لاندې عبارت راغلې دې:

فالقسم الاول منه حرام ونجس غلیظا والثلاثة الاخیرة حرام ونجس خفیفا (وفی روایة نجس غلیظا کما فی الهندیة) وما عدا ذلك من الاشربة فهی فی حکم الثلاثة الاخیرة عند محمد رحمه الله فی الحرمة والنجاسة وعند ابی حنیفة وابی یوسف رحمهما الله تعالی یحرم منها القدر المسکر واما القدر الغیر المسکر فحلال الا اللهو.

له دې عبارت څخه معلومیږی چې عند الشیخین غیرخمرپه قلیل مقدار حلال دی، لهذا که غیر خمر قلیل مقدار په کوم خوراك یا دڅښاك په شی کښې مثلا بسکټ، کیك اومیټائی، کوکا کولا وغیره کښې استعمال شی نو د هغو شیانو خوړل اوڅښل به حلال وی.

زید وایی چې دشیخینو دمذهب په بناء که څوك دخوراك یاڅښاك په شیانو کښې غیرخمر الکحل واچوی نو هغه طعام یا شراب به جائز الاکل اوحلال وی.

لیکن عمرو وایی: هغوئ چې کوم قول کړې دې هغه په قید دعدم لهوسره مقید دې، بسکټ اوکیك، کوکاکولا وغیر اشیاء له غیر ضروری اشیاؤ څخه دی، اومحض دتنعم اوتلذذ لپاره استعمالیږی، لهذا دا په لهو کښې داخل دی اوحرام به وی، نو اوس ددوئ دواړونه دکوم یوه قول معتبر اوحق دی؟

زید داهم وایی چې کوکاکولا وغیره دومره په کثرت سره استعمالیږی چې اوس ابتلاء عام ګرځیدلې ده او دابتلاء عام حکم وربانديې لګولې شی په دې بناء که چیرې پدې کښې حرمت ثابت هم وی نو بیا هم هغه منتفی کیږی

عمرو وايي چې دلته دابتلاء عام حکم لګول ناقابل قبول دی ځکه چې دا شيان فقط دتنعيم اوتلذذ په درجه کښې استعماليږی دضروريات طعام څخه ندی همدارنګه نورشربتونه لکه دميوې شربت وغيره ددې قائم مقام پيداکيږی لهذا دعدم ضرورة اوحاجت له وجې ابتلاء عام نه شی ورته ويل کيدې، د دې دواړونه کوم يوپه حقه دی، زيد اوکه عمرو؟

دفقهی له کتابونو څخه دغير خمرو په باره کښې څه قدرې اختلاف معلوميږی دځينوعلماؤ په نزد قليل مقدار خارجاً او داخلاً استعمالول حلال دی، او د ځينی نورو په نزد دواړه قسمه استعمالول حرام دی. البته په حاشيه مذکوره د بهشتی زيور کښې فرمائی : **فالاولى ان لايتعرض للمبتلى به بشئ نعم من قدر على الاحتراز منه فليتحرز ماشاء.**

ددې په بناء زيد وائی چې قدر قليل غير له خمرونه شراب جائزالاستعمال دی، خارجاً وی اوکه داخلاً، البته اجتناب از روی تقوی اولی اوافضل دی.

عمرو دهغې دخلاف قائل دې چې دبهشتی زيور متن اوحاشيه په دې محمول ده چې دواءً حلال دی، نه تنعماً وتلذذا او دبهشتی زيور بل عبارت په استدلال کښې وړاندې کوی. (اودواءً په قدر دغير منشی داخلاً هم استعمالولې شی)

زيد ددواءً قيد اتفاقی ګنی اوپه استدلال کښې دبهشتی زيور دا عبارت وړاندې کوی (هر اسپرټ له اشربه اربعه څخه ندې دداسې اسپرټو دشيخينو په نزد استعمال جائزدی) دلته ددواءً قيد مفقود دې، معلومه شوه چې هلته قيد اتفاقی وو.

عمرو وايي : په دواړه ځايونو کښې ځان ځانته (جداجدا) مسئله بيان شوې ده، نو جناب ! تاسو فيصله وکړئ چې څوك صائب الرايه اونظر دې؟

نن سبا په ټولو دواګانو کښې الکحل اچول کيږی خصوصا په هوميوپيتهك دواګانو کښې به يوه دوا ددې څخه خالی نه وی، ددغو دواګانو استعمال جائزدې اوکه نه؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : له تحقيق څخه ثابته شوه چې په اشربه او ادويه کښې عصير العنب اوعصير الرطب نه اچول کيږی دنورو اشربه تفصيل دادې :

**قال العلامة الشلبی رحمه الله تعالى: (قوله فيما اذا قصدبه التقوى) على طاعة الله اواستمراء الطعام اوالتداوى فاما المسكر منه حرام بالاجماع اه اتقانی (حاشية الشلبی على التبيين ص۲۰۰ ج۶)**

**وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : (قوله بلا لهو وطرب) قال فی المختار الطرب خفة تصيب الانسان لشدة حزن وسرور اهـ قال فی الدرر وهذا التقييد غير مختص بهذا الاشربة بل اذا شرب الماء وغيره من المباحات للهو وطرب على هيئة الفسقة حرم اه (ردالمحتار ص۲۹۱ ج۵)**

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: والرابع المثلث العنبي وان اشتدوهو ماطبخ من ماء العنب حتى يذهب ثلثاه ويبقى ثلثه اذا قصد به استمراء الطعام والتداوي والتقوى على طاعة الله تعالى ولو للهو لايحل اجماعاحقائق (ردالمحتار صـ٢٩٢ جـ٥)

وقال في الهندية: (واما ما هو حلال عند عامة العلماء) فهو الطلاء وهو المثلث ونبيذ التمر والزبيب فهو حلال شربه ما دون السكر لاستمراء الطعام والتداوي وللتقوى على طاعة الله تعالى لاللتلهي والمسكر منه حرام وهو القدر الذي يسكره قول العامة (عالمگيريه صـ٤١٢ جـ٥)

وقال العلامة الكنوي رحمه الله تعالى: قلت اللهو والطرب نوعان نوع منهما مباح اذا كان خاليا عن معنى المعصية ومقدماتها ونوع منهما مكروهة اذا خلط بالمعصية اومقدماتها اوتكون وسيلة اليها وهذا هو المراد بقوله اللهو والطرب دون الاول (عمدة الرعاية حاشية شرح الوقاية صـ٦٦ جـ٤)

له پورتنيو عبارتونو څخه لاندې امور ثابت شول:

**اول**: دغير خمر اندرونی استعمال دحد سکر نه کم د تقوی اواستمراء طعام لپاره جائزدې په اوسنی زمانه کښې د معدی خرابی او دسوء هضم مرض عام دې، ددې لپاره مصلح معده اوهاضم طعام اشياء په لوازمو د طعام کښې داخل دی.

**دويم**: دنشاط اوطرب لپاره خوړل اوڅښل مطلقا ممنوع ندی، بلکه دفساقو په طريقه چه وخوړل شی اويا وڅښل شی له هغې نه ممانعت دې اوپه دې کښې دکوم خاص ماکول اومشروب تخصيص نشته بلکه ټولو دماکولاتو اومشروباتو همدا حکم دی.

**دريم**: هر لهو اوطرب حرام ندې بلکه په دې کښې چی دکوم حرام فعل ارتکاب وی يا مفضی الی الحرام وی نو هغه ناجائزدې د اول نمبر او دريم نمبر حاصل تقريبا يوشې دې.

له دې تفصيل څخه ثابته شوه چی په سوال کښې دمذکوره شيانو خوړل اوڅښل حلال دی. له دې څخه علاوه عموماً په داسې ماکولاتو اومشروباتو کښې الکحل دتعفن نه دحفاظت په غرض اچول کيږی.

له دی وجې نه دا استعمال په ضرورت کښې داخل دې نه په تلهی کښې.

دزيد استدلال دابتلاء عام نه صحيح ندې د ابتلاء عام نه حرام شئ نه حلاليږی، والله سبحانه وتعالی اعلم

۸ربيع الثانی ۱۴۰۳هـ

## په غوږ کښې شراب اچول

**سوال**: دماشوم له غوږ نه نو (زوې) راخی علاج مو وکړو ليکن فائده نه کيږی، يوشخص وايی

چې که په غوږ کښې دشرابو قطره واچول شی اویا دساندی (خادمئ) تیل نو زوې به یی ودرېږی، نو آیا داسی کول جائز دی؟ بینو ا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که شراب له انګورو څخه یاله خرما څخه جوړوی نو جائزندی او که له بل څه نه جوړوی نو اجتناب بهتر دی.

قال الامام قاضیخان رحمه الله تعالی: وقال محمد رحمه الله تعالی لا یظهر ابدا ویکره الاحتقان والا کتحال بالخمر و کذا الاقطار فی الاحلیل وان یجعل فی السعوط فالحاصل ان لا ینتفع بالخمر الا انها اذا تخلل فینتفع به سواء صار خلا بالمعالجة اوبغیر المعالجة خلافا للشافعی رحمه الله تعالی (خانیة بهامش الهندیة ص۲۲۶ ج۳) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۶ محرم سنه ۹۶ هـ

## له شرابو نه سرکه جوړه شوه

**سوال** : په شرابو کښې چی مالګه واچول شی سرکه ورنه جوړیږی او که نه؟ اوپاکیږی او که نه؟ که پاکیږی نو دهغه دلیل څه دی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : مشهوره خو همدا سې ده که واقعا سرکه ترینه جوړه شوه نو دماهیت دتبدیل له وجی پاک ګرځی لکه خوشایی وغیره چی په ایره کیدو سره پاک ګرځی.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: تحت قوله یجوز تخلیلها ولو بطرح شیء فیها: واذا صار الخمر خلا یطهر مایوازیها من الاناء واما اعلاه فقیل یطهر تبعا وقیل لا یطهر لانه خمر یابس الا اذا غسل بالخل فتخلل من ساعته فیطهر هدایة والفتوی علی الاول خانیة (ردالمحتار ص۲۹۰) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۴ شعبان سنه ۹۶ هـ

# کتاب الرهن

## رهن په دې شرط که ترمعین وخته پورې قرض اداء نشی نو مرتهن به مالک دمرهونې گرځی

**سوال**: څه فرمایی علماء ددین متین په دې مسئله کښې چې عمرو خپله ځمکه په گرو (رهن) زید ته ورکړه په مقابل دیوزر روپو کښې په دې شرط که په دریو قسطونو مذکوره روپئ په شپږو کالو کښې خواه ټولې یا بعضې په معلوم وخت اداء نکړی نو دمرهونه ځمکې مالك به زید وی اوس لس کاله تیرشوی دی، چې راهن مرتهن ته مبلغ مذکور ندې ورکړې آیا اوس ځمکه دزید گرځی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: زید دمرهونه ځمکې مالك نه گرځی، ځکه چې بیع دتعلیق بالشرط په وجه باطله ده:

قال العلامة التمرتاشی رحمه الله تعالی: ما یبطل بالشرط الفاسد ولا یصح تعلیقه به الخ.

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: کل ما کان من التملیکات او التقییدات کرجعة یبطل تعلیقه بالشرط.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله من التملیکات) کبیع واجارة (ردالمحتار ص۲۲۲ ج۴)

همدارنگه په بیع مذکوره کښې ثمن هم مجهول دی، ځکه چې پس له تیریدلو دمدت معین نه هرڅه چې له قرض څخه باقی پاتې وی په ذمه دمدیون باندې هغه عوض دمبیعې مقرر شوې دې او دهغه جهالت ظاهر دې اوجهالت دثمن سبب دفساد دبیعې دې. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۵ صفر سنه ۱۳۷۲ هـ

## د تیرشوی سوال په شان یو بل سوال

**سوال**: یوشخص په دې شرط څه شې رهن کیښودل که ترمعلومې نیټې پورې مالك رهن ورنه کړ نو دا مرهونه به په عوض دقرض کښې مبیعه متصور کیږی، آیا دا صورت دبیع صحیح دې اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دا بیع صحیح نه ده اورهن هم فاسد دې.

قال الامام ابن الهمام رحمه الله تعالی: لا یجوز تعلیق البیع کان یقول اذا دخلت الدار فقد بعتك کذا بمائة فقبل الاخر لا یثبت البیع عند الدخول (فتح القدیر)

وقال العلامة الخوازمی رحمه الله تعالی: عن الزهری ان اهل الجاهلیة کانوا یرهنون ویشترطون علی الراهن انه ان لم یقبض الدین الی وقت کذا فالمرهن مملوك للمرتهن فابطل رسول الله صلی الله علیه وسلم ذلك بقول

لا یغلق الرهن، وقیل لسعید بن المسیب اهو قول الرجل ان لم یات بالدین الی وقت کذا فالرهن بیع بالدین، فقال نعم. (کفایة مع فتح القدیر ص۱۰۶ ج۹)

وقال الامام ابن رشد المالکی رحمه الله تعالی: واما الشرط المحرم الممنوع بالنص فهو ان یرهن الرجل وهنا علی انه ان جاء بحقه عند اجله والا فالرهن له فاتفقوا علی ان هذا الشرط یوجب الفسخ وانه معنی قوله علیه الصلوٰة والسلام لا یغلق الرهن (بدایة المجتهد ص۲۰۷ ج۳)

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: کل حکم فی الرهن الصحیح فهو الحکم فی الرهن الفاسد کما فی العمادیة قال وذکر الکرخی رحمه الله تعالی ان المقبوض بحکم الرهن الفاسد یتعلق به الضمان وفیها ایضاً وفی کل موضع کان الرهن مالا والمقابل به مضموناً الا انه فقد بعض شرائط الجواز کرهن المشاع ینعقد الرهن لوجود شرط الانعقاد ولکن بصفة الفساد کالفساد من البیوع وفی کل موضع لم یکن الرهن کذلک ای لم یکن مالا اولم یکن المقابل به مضمونا لا ینعقد الرهن اصلا وحینئذ فاذا هلک هلک بغیر شیء بخلاف الفاسد فانه یهلک بالاقل من قیمته ومن الدین.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله فهو الحکم فی الرهن الفاسد) ای فی حال الحیوٰة والممات فلو نقض الراهن العقد بحکم الفساد واراد استرداد المرهون کان للمرتهن حبسه حتی یؤدی الیه الراهن ما قبض واذا مات الراهن وعلیه دیون کثیرة فالمرتهن اولی من سائر الغرماء وهذا کله اذا کان الرهن الفاسد سابقا علی الدین فلو کان بدین علی الراهن قبل ذلک لم یکن له حبسه لانه ما استفاد تلک الید بمقابلة هذا المال ویکون بعد الموت اسوة للغرماء لانه لیس علی المحل ید مستحقة بخلاف الرهن الصحیح تقدم او تأخر وتمامه فی العمادیة والذخیرة والبزازیة وقوله یتعلق به الضمان) صوابه لا یتعلق لان المنقول عن الکرخی رحمه الله تعالی فی العمادیة وغیرها انه یهلک امانة فی الذخیرة وروی ابن سماعة عن محمد رحمه الله تعالی انه لیس للمرتهن حبسه لانه اصرار علی المعصیة ولکن ما فی ظاهر الروایة اصح لان الراهن لما نقض فقد ارتفعت المعصیة وحبس المرتهن المرهون لیصل الی حقه لا یکون اصرارا لان الراهن یجبر علی تسلیم ما قبض فاذا امتنع فهو المصر الاتری ان فی الشراء الفاسد للمشتری الحبس الی استیفاء الثمن فهو المصر الاتری ان فی الشراء الفاسد للمشتری الحبس الی استیفاء الثمن اھ ملخصا (قوله ای ان لم یکن مالا) کالمدبر وام الولد فان للراهن اخذهما لان رهنهما باطل منح (قوله ولم یکن المقابل به مضمونا) کما لو رهن عینا بخمر مسلم فله اخذها منه والواو بمعنی او قال فی جامع الفصولین فلو فقد احدهما لم ینعقد اصلا (رد المحتار ص۳۳۸ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۲ جمادی الاولی سنہ ۷۳ھ

## تفصیل استیفاء الدین من المرهون

**السوال:** ماقولکم رحمکم الله فی ان المرهون اذا مضی علیه فی ید المرتهن سنة اوسنتان ولایفکه الراهن ولاولده ولاولد اولاده هل یصیر بعد المرافعة الی القاضی اوالحاکم المسلم ملکا قطعیا للمرتهن کما هو المعروف فی القانون الحاضر وهو المسمی فی اصطلاحهم زائد المیعاد وبالجملة ان اذان الحاکم هو شرعی ام من القانون العرفی؟ وبعد المرافعة الی الحاکم المسلم هل یجوز الانتفاع من ذلك المرهون شرعا ام لا؟ وان لم یجز له الانتفاع فکیف یستوفی دینه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** اذا حل اجل الرهن ولایؤدی الراهن دین المرتهن ولاورثته بعد موت الراهن قبل فکاك الرهن فان کانت ورثته فقراء یجبرهم القاضی ببیعه واداء دین المرتهن فان امتنعوا باعه القاضی وادی حقه ولایملك المرتهن نفس الرهن نعم لوکان الرهن دارا ولم یکن للمرتهن دار غیرها یسکنها لتعلق حق المرتهن بها.

وعلم بهذا ان لوکان المرتهن محتاجا الی نفس الرهن صار ملکا له باذن القاضی ان کانت قیمته مساویة للدین وجازله الانتفاع وان لم تکن مساویة فیرد کل واحد منهما الفضل الی صاحبه.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: مات الراهن باع وصیه رهنه باذن مرتهنه وقضی دینه لقیامه مقامه فان لم یکن له وصی نصب القاضی له وصیا وامره ببیعه لان نظره عام وهذا لو ورثته صغارا فلو کبارا خلفوا المیت فی المال فکان علیهم تخلیصه جوهرة (وبعد اسطر) ولایبطل الرهن بموت الراهن ولابموت المرتهن ولابموتهما یبقی الرهن رهنا عند الورثة (ردالمحتار ص۳۳۳ ج۵)

وقال ایضا: سلطه ببیع الرهن ومات للمرتهن بیعه بلامحضر وارثه غاب الراهن غیبة منقطعة فرفع المرتهن امره للقاضی لیبیعه بدینه ینبغی ان یجوز ولومات ولایعلم له وارث فباع القاضی داره جاز.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی تحت (قوله ینبغی ان یجوز) بقی اذا کان حاضرا وامتنع عن بیعه وفی الولوالجیة یجبر علی بیعه فاذا امتنع باعه القاضی اوامینه للمرتهن واوفاه حقه والعهدة علی الراهن اهملخصا وبه افتی فی الحامدیة وحرر فی الخیریة انه یجبره علی بیعه وان کان دارا لیس له غیرها یسکنها لتعلق حق المرتهن بها بخلاف المفلس (ردالمحتار ص۳۳۳ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲ رجب سنه ۸۸ هـ

## درهن شوې ځمکې کرل ندی جائز

**سوال** رهن شوې ځمکه که مرتهن وکری نو دهغې آمدن دمرتهن لپاره حلال دې اوکه نه؟ ارض رهن که په خپله راهن وکری او د آمدن څه حصه مرتهن ته مقرره کړی نو دا صورت شرعا

جائزدی او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مرتهن ته نفع اخستل جائز ندی، راهن دمرتهن په اجازه ترینه نفع اخستلې شی مګر مرتهن ته ترینه حصه مقررول جائزندی.

قال فی التنویر وشرحه: (لا الانتفاع به مطلقا) لا باستخدام ولا سکنی ولا لبس ولا اجارة ولا اعارة سواء کان من مرتهن اوراهن الا باذن کل للاخر وقیل لا یحل للمرتهن لانه ربا وقیل ان شرطه کان ربا والا لا وفی الاشباه والجواهر اباح الراهن للمرتهن اکل الثمار اوسکنی الدار اولبن الشاة المرهونة فاکلها لم یضمن وله منعه ثم افاد فی الاشباه انه یکره للمرتهن الانتفاع بذلك وسیجیئ اخر الرهن (رد المحتار ص۳۱۰ ج۵)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی تحت (قوله ولا یحل للمرتهن) قال قلت والغالب من احوال الناس انهم انما یریدون عند الدفع الانتفاع ولولاه لما اعطاه الدراهم وهذا بمنزلة الشرط لان المعروف کالمشروط وهو مما یعین المنع. والله تعالی اعلم اه (رد المحتار ص۳۱۱ ج۵)

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی معزیا للمضمرات عن التهذیب انه یکره للمرتهن ان ینتفع بالرهن وان اذن له الراهن قال المصنف وعلیه یحمل ما عن محمد بن اسلم من انه لا یحل للمرتهن ذلك ولو بالاذن لانه ربا قلت وتعلیله یفید انها تحریمیة فتامله (رد المحتار ص۳۳۶ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۲ ذی القعدة سنه ۱۸ھ

## درهن اجاره جائزه نده

**سوال**: درهن یوصورت داهم کیږی چې یو ایکړځمکه دپنځوزرورو پو په بدله کښې رهن کیږدی او د انتفاع لپاره داحیله اختیار کړی چې سالانه به لس روپئ وضع کوی آیا دا صورت جائزدې اوکه نه؟ اوکه دا شرط ولګوی چې دلسو کلونو په پوره کیدوسره به باقی روپئ اداء کړی اورهن به خلاصوی په دی صورت کښې که هغه له لس کاله مخکښې رهن خلاصول وغوښتل نو دلسو روپو د اداکولو له حسابه رهن خلاصولې شی یا دشرط مطابق لس کاله به پوره کوی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: سالانه لس روپئ وضع کول اجاره ده اومرهونه په اجاره ورکول جائز ندی او کله هم چې رهن خلاصول وغواړی خلاصولې یې شی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: لا الانتفاع به مطلقا لا باستخدام ولا سکنی ولا لبس ولا اجارة ولا اعارة سواء کان من مرتهن اوراهن الا باذن کل للاخر وقیل لا یحل للمرتهن لانه ربوا وقیل ان شرطه کان ربوا والا لا.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله وقیل لا یحل للمرتهن) قال فی المنح عن عبدالله محمد بن اسلم السمرقندی وکان من کبار علماء سمرقند انه لا یحل له ان ینتفع بشیء منه بوجه من الوجوه وان اذن له الراهن لانه اذن له فی الربوا لانه یستوفی دینه کاملا فتبقی له المنفعة فضلا فیکون ربوا وهذا امر عظیم قلت وهذا مخالف لعامة المعتبرات من انه یحل بالاذن الا ان یحمل علی الدیانة وما فی المعتبرات علی الحکم ثم رایت

فی جواهر الفتاوی اذا کان مشروطا صار قرضا فیه منفعة وهو ربوا والا فلا بأس اهـ ما فی المنح ملخصا واقره ابنه الشیخ صالح وتعقبه الحموی لان ما کان ربوا لا یظهر فیه فرق بین الدیانة والقضاء علی انه لا حاجة الی التوفیق بعد ان الفتوی علی ما تقدم ای من انه یباح اقول ما فی الجواهر یصلح للتوفیق وهو وجیه وذکر والنظیره فیما لواهدی المستقرض للمقرض ان کانت بشرط کره والا فلا وما نقله الشارح عن الجواهر ایضا من قوله لا یضمن یفید انه لیس بربوا لان الربوا مضمون فیحمل علی غیر المشروط وما فی الاشباه من الکراهة علی المشروط ویؤیده قول الشارح الآتی آخر الرهن ان التعلیل بانه ربوا یفید ان الکراهة تحریمیة فتامل واذا کان مشروطا ضمن کما افتی به فی الخیریة فیمن رهن شجر زیتون علی ان یاکل المرتهن ثمرته نظیر صبره بالدین قال قلت والغالب من احوال الناس انهم یریدون عند الدفع الانتفاع ولولاه لما اعطاه الدراهم وهذا بمنزلة الشرط لان المعروف کالمشروط وهو مما یعین المنع والله تعالی اعلم اهـ (رد المحتار ص۳۱۰ جه) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۹ جمادی الاولی سنـ۸۹ـهـ

## له رهن څخه انتفاع جائزه نده

**سوال**: زید له بکر سره په عوض دسلو روپو کښي خپل سیکل ګرو کیښوده نو آیا بکر ته دهغه استعمالول جائز دی او که نه؟ په داسي حال کښي چي زید په خوښئ سره د استعمال اجازه ورکړي ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: مرتهن ته دمرهون شی نه انتفاع اخستل مطلقا صحیح ندی که د راهن اجازه وی او که نه څکه دا معناً ربوا ده.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: تحت (قوله وقیل لا یحل للمرتهن لانه ربوا) قال فی المنح وعن عبدالله محمد بن اسلم السمرقندی رحمه الله تعالی وکان من کبار علماء سمرقند انه لا یحل له ان ینتفع بشیء منه بوجه من الوجوه وان اذن له الراهن لانه اذن له فی الربوا لانه یستوفی دینه کاملا فتبقی له المنفعة فضلا فیکون ربوا وهذا امر عظیم (وبعد اسطر) قال ط قلت والغالب من احوال الناس انهم انما یریدون عند الدفع الانتفاع ولولاه لما اعطاه الدراهم وهذا بمنزلة الشرط لان المعروف کالمشروط وهو مما یعین المنع والله تعالی اعلم اهـ (رد المحتار ص۳۱۰ جه) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۰ ذی القعدة سنـ۹۳ـهـ

# کتاب الجنایة والضمان

## یو اوښ بل اوښ قتل کړ د قاتل اوښ په مالک دضمان حکم

**سوال**: د لاندې مسئلو په باره کښې حکم شرعی مطلوب دې:

**اول**: دیوه سړی اوښ په ځنګل کښې څریده دبل سړی اوښ هغه مړکړ آیا د وژونکی اوښ په مالك ضمان شته او که نه؟

**دویم**: که د وژونکی اوښ مالك خپل نوکر ته تاکید کړې وی که چیرته زما اوښ کوم نقصان وکړ نو هغه به زه ستاڅخه اخلم په دې صورت کښې په نوکر ضمان شته او که نه؟ بینو اتوجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ددې صورتونه مختلف دی اوحکمونه یې هم مختلف دی:

**اول**: قاتل اوښ خپله خلاص شوې وی برابره خبره ده که دمالك په ځمکه کښې یې بل اوښ قتل کړې وی او که داجنبی په ځمکه کښې یا شارع عام کښې اویا په ارض مباح کښې.

**دویم**: اوښ مالك په خپله ځمکه کښې پریښی وی اوهغه په خپله اجنبی ځمکې ته تللې وی اوجنایت ئی کړې وی.

**دریم**: مالك په خپله ځمکه کښې پریښې وی اوپه همدغه ځمکه کښې یې جنایت کړې وی.

**څلورم**: دبل چا په ځمکه کښې دهغه په اجازت سره خپله تللې وی اواوښ یې پریښی وی. اذن دلالتًا هم کافی دې بحسب العرف ځنګل چې دچا ملك نه وی او دخلکو مالونه پکښې څریږی هغه هم په دغه صورت کښې داخل دې.

**پنځم**: دغیرپه ځمکه کښې دهغه له اذن نه صراحتاً یا دلالتاً بغیر خپله تللې وی او اوښ یې پریښې وی

په اولو څلورو واړو صورتونو کښې ضمان نشته اوپه پنځم صورت کښې ضمان شته. دقاتل اوښ دمالك په موقع موجودیدل اونه وجود برابر دی.

**شپږم**: مالك اوښ په شارع عام کښې پریښی وی یا یې بیوه او هغه په لاره کښې کوم نقصان وکړ په دې صورت کښې تفصیل دې چونکه دا صورت په سوال کښې داخل ندې نو دتفصیل هم دلته ضرورت نشته

په مذکوره صورتونو کښې هلته ضمان نشته کله چې دا اوښ دانسانانو په قتل کولو کښې مشهورنه وی اګر که دحیواناتو په قتل کښې یا په نقصان رسولو کښې شهرت لری.

**اووم**: که اوښ په قتل انسانی کښې مشهور وی نو په شرط دتقدم به ضمان وی. دتقدم تفصیل دادې چې داوښ مالك ته یا محافظ ته چاویلی وی، چې ستا اوښ خطرناك دی دا په کامل حفاظت

کښې وساته. که په تقدم شهادت موجود وی یا مالك یا محافظ د تقدم اقرار کولو، سره لدې بیاهم داوښ حفاظت یې نه کاوه اوښ په عامه لاره یا په خاصه لاره یا د غیر په ملك کښې دبلا اذن د داخلیدو په حالت کښې کوم جانی یامالی نقصان وکړ نو ضمان شته

۱ــ فی دیات شرح التنویر: انفلتت دابة بنفسها فاصابت مالا او ادمیا نهارا اولیلا لاضمان فی الکل لقوله صلی الله علیه وسلم العجماء جبار ای المنفلتة هدر.

وفی الشامیة: ولو فی الطریق اوملك غیره اتقانی (ردالمحتار ص۳۹۰ج۵)

۲ــ وفی جنایات الهندیة: فان دخلت فی ملك الغیر من غیر ادخال صاحبها بان کانت منفلتة فلاضمان علی صاحبها (عالمگیریة ص۵۰ج۶)

وفی الشامیة: سواء دخلت بنفسها اوادخلها بالاذن. وایضا فیها: فان کان الثانی فلاضمان علیه علی کل حال لانه لیس بمباشر ولامتسبب (ردالمحتار ص۳۸۷ج۵)

۳ــ وفی جنایات الهندیة: فان کانت فی ملك صاحب الدابة ولم یکن صاحبها معها فانه لایضمن صاحبها (الی قوله) وان صاحبها معها ان کان قائدالها اوسائقا لها فکذا لایضمن صاحبها فی الوجوه کلها (عالمگیریة ص۵۰ج۶)، وفی شرح التنویر: فلوحدثت المذکورات فی السیر فی ملکه لم یضمن ربها الا فی الوطء وهو راکبها لانه مباشر بقتله بثقله فیحرم المیراث. (ردالمحتار ص۳۸۷ج۵)

۴ــ وفی جنایات الهندیة: وان کان باذن مالکه فهو کما لو کان فی ملکه (عالمگیریه ص۵۰ج۶)

وایضا فیها: وان اوقف الدابة فی الفلاة لایضمن (عالمگیریة ص۵۱ج۶)

وایضا فیها: رجل ادخل بعیرا مغتلما فی دار رجل وفی الدار بعیر صاحبها فوقع علیه المغتلم فقتله اختلف المشائخ فیه منهم من قال لاضمان علی صاحب المغتلم.

وایضا فیها: وان کان اذا خلها باذنه فلاضمان وبه اخذ الفقیه ابو اللیث وعلیه الفتوی (عالمگیریة ص۵۲ج۶)

وفی شرح التنویر: ولوحدثت فی ملك غیره باذنه فهو کملکه فلایضمن کما اذالم یکن صاحبها معها.

وفی الشامیة: وان کانت الجنایة فی ملك غیر صاحبها فاما ان ادخلها صاحبها فیه اولا فان الثانی فلاضمان علیه علی کل حال لانه لیس بمباشر ولامتسبب (ردالمحتار ص۳۸۷ج۵)

۵ــ وفی جنایات الهندیة: وان دخلت بادخال صاحبها فصاحب الدابة ضامن فی الوجوه کلها سواء کانت واقفة اوسائرة وسواء کان صاحبها معها (الی قوله) اولم یکن معها (عالمگیریه ص۵۰ج۶)

وفي شرح التنوير: والا يكن باذنه ضمن ما اتلف مطلقا لتعديه.

وفي الشامية: وان كان الاول فعليه الضمان على كل حال سواء كان معها صاحبها او قائدها او راكبها اولا (رد المحتار ص۳۸۷ ج۵)

۶ـ قال في شرح التنوير عن الدرر: كلب يأكل عنب الكرم فاشهد عليه فيه فلم يحفظه حتى اكل العنب لم يضمن وانما يضمن فيما اشهد عليه فيما يخاف تلف بني ادم كالحائط المائل ونطح الثور وعقر كلب عقور فيضمن اذا لم يحفظه انتهى. قال المصنف ويمكن حمل المتلف في قول الزيلعي وان اتلف الكلب فعلى صاحبه الضمان ان كان تقدم اليه قبل الاتلاف والا فلا كالحائط المائل على الاذمي انتهى فيحصل التوفيق.

وفي الشامية: كأنه فهم من كلام الدرر انه لايضمن في الكلب غير الادمي وهذا غير مراد وانما معنى كلامه يخاف منه تلف الاذمي فالاشهاد فيه موجب للضمان اذا عاقبه تلف سواء كان المتلف مالا او ادميا وما لايخاف منه تلف الادمي بل يخاف منه تلف المال فقط كعنب الكروم فلا يفيد فيه الاشهاد الخ (رد المحتار ص۳۹۲ ج۵)

اقول: اما تفسير التقدم وتفصيله فمشروح في بيان الحائط المائل في الشامية ص۳۸۳ ج۵ وفي الهندية ص۳۶ ج۶ وفي الهداية والعناية مع الفتح ص۳۳۲ ج۸)

وايضا فيها: ولو اجله صاحب الدار او ابراه منها او فعل ذلك ساكنوها فذلك جائز ولا ضمان عليه فيما تلف بالحائط لان الحق لهم بخلاف ما اذا مال الى الطريق فاجله القاضي او من اشهد عليه لايصح لان الحق لجماعة المسلمين وليست اليهما ابطال حقهم وهكذا في شرح التنوير والهندية.

۲ - په صورتونو دضمان كښې په محافظ باندې ضمان شته.

قلت ويمكن ان يتوهم عدم الضمان على المحافظ مما في الشامية ونصها: ويؤخذ من عاقلة الواقف ان كان له عاقلة فيما تتحمله وان لم تكن له عاقلة او كان فيما لا تتحمله فلا يؤخذ من القيم."

وايضا فيها: فلو سقط حائط الصغير بعد الطلب من وليه كان الضمان في مال الصبي (رد المحتار ص۳۸۳ ج۵)

فاجاب عنه في العناية ونصها: فان قيل الوصي اذا ترك النقض بعد التقدم اليه الحق ضررا بمال اليتيم فكان الواجب ان يكون الضمان عليه اجيب بان في ترك النقض دفع مضرة متحققة وهي مضرة مؤنة النقض وبنائه ثانيا وفي نقضه دفع مضرة موهومة لجواز ان لايسقط وان سقط لايهلك به شي فكان تركه انظر للصبي فلا يلزم الوصي ضمان (عناية مع الفتح ص۳۳۳ ج۸) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲۳ رجب سنه ۷۴هـ

## که په میښه یې دخنزیر ګمان وکړ او مړه یې کړه نو ضمان شته

**سوال**: یوه شخص په کومه میښه دخنزیر ګمان وکړ او په ټوپک یې وه ویشته او مړه یې کړه، آیا په دې کښې ضمان شته او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې په قاتل ضمان واجب دې، داقتل خطاء دې چې له قتل تسبیب نه درایتاً او روایتاً هرقسم قوی دې او د قتل تسبیب په باره کښې دتضمین متعلق تصریحات موجود دی نو په قتل خطاء کښې خو به په طریقه اولی ضمان واجب وی

اما قوة القتل خطا على القتل تسبيبا دارية فلان الاول مباشرة والثانى تسبيب ولاريب فى قوة المباشرة على التسبيب واما رواية فلان فى الاول اثما زائدا على اثم الثانى ولان الاول يوجب حرمان الارث دون الثانى.

قال فى شرح التنوير: وموجبه (الخطاوما يجرى مجراه) الكفاية، والدية على العاقلة والاثم دون اثم القتل اذالكفارة تؤذن بالاثم لترك العزيمة.

وفى الشامية عن الكفاية: وهذا الاثم لان نفس ترك المبالغة فى التثبت ليس باثم وانما يصير به اثما اذا اتصل به القتل فتصير الكفارة للذنب القتل وان لم يكن فيه اثم قصد القتل.

وايضا فى الشرح: وموجبه (التسبيب) الدية على العاقلة لاالكفارة ولا اثم القتل بل اثم الحفر والوضع فى غير ملكه ولا يحرم وكل ذلك يوجب حرمان الارث الاهذا اى القتل بسبب لعدم قتله (ردالمحتار ص۳۳۲ ج۵)

دقتل تسبیبا ضمان دلاندې جزئیې څخه ثابت دی:

قال فى التنوير: فى باب ما يحدثه الرجل فى الطريق وغيره فان تلف به بهيمة ضمن (ردالمحتار ص۳۸۱ ج۵)

حائط مائل، کلب عقور، ثور نطوح، فرس کدوم په جنایاتو کښې بعد الاشهاد ضمان دمال شته دې حالانکه دا امور دقتل تسبیباً نه هم ضعیف دی چې په هغو کښې ضمان په اشهاد پورې موقوف دې

قال فى شرح التنوير: مال حائط الى طريق العامة ضمن ربه ما تلف به من نفس انسان اوحيوان اومال الخ (ردالمحتار ص۳۸۳ ج۵)

وفى الشامية عن المنية فى مسألة نطح الثور: يضمن بعد الاشهاد النفس والمال (ردالمحتار ص۳۸۹ ج۵)

وايضا فيها: ان ما يخاف منه تلف الادمى فالاشهاد فيه موجب للضمان اذا اعطبه تلف سواء كان المتلف مالا اوادميا (الى ان قال) فان الاشهاد فيه (الحائط المائل) موجب لضمان المال والنفس (الى ان قال) والذى فى الخير فالضمان بعد الاشهاد فى حصان اعتاد الكدم و كذا فى ثور نطوح قال وفى البزازية عن المنية فى

لطح الثور یضمن بعد الاشهاد النفس والمال (رد المحتار ص ۳۹۲ ج ۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۸ صفر سنہ ۷۵ھ

## په متسبب باندې ضمان شته دی

**سوال**: دیوې مدرسې مهتمم چې خالد نومیده یو عالم مدرس مقرر کړ چې زید نومیده، زید په معین تاریخ مدرسې ته په رسیدو له خالد سره عهد وکړ، زید دمدرسې طرفته راتلو چی په لاره کښې زید ته خط ورسیده چی په هغه کښې دخالد له طرفه لیکل شوی وو چی تاسو هیڅکله رانشئ، زید پریشان شو اوخپل اهل اوعیال یی په لاره کښې پریښوده خالد ته د تحقیق لپاره راغې، معلومه شوه چی خالد هیڅ قسم خط نه دې لیکلی، بلکه بل شخص (بکر) شرارت اوشیطانت کړې دې. اوس پوښتنه داده چی دبکر د شرارت دتحقیق کولو لپاره چې زید کومه خرچه وکړه آیا دا خرچه زید د شرعی حکم مطابق له بکر څخه اخیستې شی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په بکر باندې دخرچ ضمان لازم دې.

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: ومن ذلك تضمین الساعی مع مخالفته لقاعدة المذهب من ان الضمان علی المباشر دون المتسبب ولکن افتوایضا بضمانه زجرا بسبب کثرة السعاة المفسدین بل افتوا بقتله زمن الفترة. (رسائل ابن عابدین ص ۱۲۶ ج ۲)

وقال ایضا: قال فی المنح والفتوی الیوم بوجوب الضمان علی الساعی مطلقا (رد المحتار ص ۱۳۵ ج ۵)

## که نابالغ د ودیعت حفاظت ونه کړ نو په هغه ضمان لازمیږی

دامسئله په کتاب الودیعه کښې تیره شوې ده.

## دچا د داسې ونې قطع کول چی دهغې پرستش اوعبادت کیده

**سوال**: دیوې ونې عام عبادت کیده، جاهلانو به په هغې قسم قسم خرافات کول یوه موحد هغه دفتنې د دروازی بندولو په غرض قطع کړه اوس د ونې مالك دضمان طلب کوی آیا شرعا په قطع کونکی باندې ضمان شته اوکه نه، بعضی علماء دا په معازف باندې قیاس کوی اودقول مفتی به په بناء دسقوط ضمان قائل دی، اوبعضې یی له سندرغاړې وینځی سره تشبیه ورکوی اودضمان فتوی ورکوی، جانبین ستاسې په فیصله راضی دی، لهذا په جلتئ سره جواب عنایت کړئ او اختلاف رفع کړئ. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**

قال فی شرح التنویر: وضمن بکسر معزف بکسر المیم الة اللهو ولو لکافر ابن کمال قیمته خشبا منحوتا

صالحا لغیر اللهو وضمن القیمۃ لا المثل بإراقۃ سکر ومنصف وسیجیئ بیانہ فی الاشربۃ وصح بیعها کلها وقالا لا یضمن ولا یصح بیعها وعلیه الفتوی ملتقی ودرر وزیلعی وغیرها واقرہ المصنف واما طبل الغزاۃ زاد فی حظر الخلاصۃ والصیادین والدف الذی یباح ضربہ فی العرس فمضمون اتفاقا کالامۃ المغنیۃ ونحوها ککبش نطوح وحمامۃ طیارۃ ودیک مقاتل وعبد خصی حیث تجب قیمتها غیر صالحۃ لهذا الامر.

وفی الشامیۃ (قوله وقالا الخ) هذا الاختلاف فی الضمان دون اباحۃ اتلاف المعازف وفیما یصلح لعمل اخر والالم یضمن شیئا اتفاقا وفیما اذا فعل بلا اذن الامام والالم یضمن اتفاقا وفی غیر عود المغنی وخابیۃ الخمار والالم یضمن اتفاقا لانہ لولم یکسرها عاد لفعله القبیح وفیما اذا کان لمسلم فلو لذمی ضمن اتفاقا قیمته بالغا ما بلغ وکذا لو کسر صلیبه لانه مال متقوم فی حقه قلت لکن جزم به فی الاختیار ایضا ولعله اقتصر فی الهدایۃ علی ذکر المسلم لکونه محل الخلاف وبه یتحرر المقام فتدبر (رد المحتار کتاب الغصب ص۱۳۲ ج۵)

له مذکوره عباراتو څخه دا لاندې احکام مستفاد شول:

**اول**: د لهوې داسې آلات چې په غیر لهو کښې د استعمال صلاحیت نه لري په هغې کښې بالاتفاق ضمان نشته.

**دویم**: اوکوم آلات دلهوې چې په غیر کښې هم استعمالیدې شي دهغو په ضمان کښې د امام صاحب اوصاحبینو ترمینځ اختلاف شته. لیکن فتوی په عدم ضمان باندې ده.

**دریم**: سندرې ویونکې وینځه او دهغې امثالو کښې بالاتفاق ضمان شته.

په دویم او دریم قسم کښې په ظاهره دا فرق معلومیږي چې دنوع ثانی آلات دلهو لپاره مصنوع اوموضوع دی اونوع ثالث کښې موضوع لپاره دلهو ندی بلکه دکوم بل قسم صنعت نه استعمال شوی په لهو کښې دی. چنانچه دصاحبینو ددلیل څخه ((ان هذه الاشیاء اعدت للمعصیه فبطل تقومها کالخمر)) هدایه ص۳۸۶ ج۳. واضح کیږي چې دنوع ثانی نه داسې آلات مراد دی چې ابتداءً معد او موضوع لپاره دلهوې وي. له پورتنی تفصیل نه بعد هرسړې پوهیږي چې شجره مسئوله عنها په قسم ثالث کښې داخله ده. ځکه چې هغه موضوع اومصنوع لپاره دلهوې نده بلکه بغیر دځه صنعت نه پخپل حالت سابقه باندې دلهو لپاره استعمالیږي کالامۃ المغنیه ونحوها . والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۹ ذی القعده سنه ۱۳۷۶ھ

## دخپلې ونې دقطع کولو په وجه دبل چاونه راغورځیدل

سوال: یوشخص خپله ونه دکچورې قطع کړه دلویدلو په وخت کښې دبل چاپه ونه ورولویدله هغه یې چپه کړه په داسې حال کښې چې قاطع په وخت دقطع کولو کښې سعې وکړه چې ونه یې په

بله ونه باندې ونه غورځيږي مگر دده تروس خبره تيره شوه او دا نقصان وشو، آيا په قاطع باندې ضمان لازم دې اوکه نه؟ که څوك دونې قطع کونکی ته ووايي چې تاسو په وخت دپرې کولوکښې په خپله ونه کښې رسۍ واچوئ چې په بله ونه پرې نه وځي اونقصان ونه کړي هغه رسۍ ونه تړله ليکن ډير کوښښ يې وکړچې دغورځيدلوپه وخت کښې په بله کجوره ونه غورځيږي مگر خبره دهغه له قدرت څخه وه وتله اوبله ونه يې هم له ځانه سره وغورځوله ، نو د دې مسئلې حکم څه دې؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په قاطع ضمان نشته ليکن په صورت دتنبيه کښې ضمان لازم دې.

قال الامام قاضيخان رحمه الله تعالى: رجل مال حائط داره الى الطريق اوالى ملك انسان فسقط واتلف انسانا اومالا ان سقط قبل الاشهاد فلا ضمان عليه وان سقط بعد الاشهاد ضمن اذا لم يفرغ ذلك الموضع عن الحائط مع القدرة عليه فيصير جانيا ان تلف به انسان كانت الدية على عاقلته وان اتلف مال انسان كان ضمانه على صاحب الحائط في ماله (الى ان قال) وصورة الاشهاد اذا كان مائلا الى الطريق ان يقول له واحد من الناس ان حائطك هذا مائل الى الطريق اومخوف اومتصدع فاهدمه وان كان مائلا الى ملك الغير يقول له ذلك صاحب الدار وشرط وجوب الضمان على صاحب الحائط المطالبة بالاصلاح والتفريغ ولا يشترط الاشهاد حتى لو طولب بالتفريغ ولم يفعل مع القدرة عليه كان ضامنا (خانية بهامش الهندية ج۳ص۳۶۳) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۵ذى القعده سنـــ۸۷هـــ

## د بوسو دبارولو له وجې داوښ پښه ماتيدل

**سوال** : يوه سړي په اوښ واښه بارکړل اودلال ته يې حواله کړل چې دا ښارته يوسه اوخرڅ يې کړه، دلال اوښ روان کړ او د اخيستونکی سره يې خبره وکړه، اوښ يې اول د وښو سره وتله (وزن يې کړ) بيايې واښه کوزکړل يواځې واښه يې وزن کړل بيايې واښه په اوښ بارکړل او اوښ يې پاڅولو اوښ چې کله اوښ چې کله ودريده نو راوغورځيده چې د راغورځيدو له وجې يې پښه ماته شوه، په اوښ باندې دبارولو طريقه هرچاته نه وي زده، په غلط بارولو سره توازن برقرارنه پاتې کيږي او اوښ غورځيږي اونقصان ورته رسيږي، دا معلومه نده چې مالك د وښو دخلاصولو اوبيا دوباره بارولو اجازت ورکړې وو اوکه نه، اوس سوال دادې چې په دلال باندې د اوښ دنقصان ضمان لازم دې اوکه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که مالك دبار دخلاصولو اوکوزولو اوبارولو اجازه ورکړې وي يا د تجارانو ترمينځ دا تعامل وي چې بيا بيا بار اړولې اوبارولې شي نو بيا خو په دلال ضمان نشته لاذن المالك صراحتاً اودلالتاً، اوکه مالك صراحتا اجازه نه وي ورکړې اونه دا تعامل اوعرف وي

نو په دلال ضمان راځی، که دمالك اودلال ترمینځ اختلاف راشی نو په مالك باندې به بینه وی لادعائه الضمان معنًی وان کان منکراً لفظاً اوپه دلال باندې به حلف (قسم) وی لانکاره وجوب الضمان وان کان یدعی الاذن ظاهراً.

**تنبیه**: خرید اوفروخت کښې دحیوان وزن کول اوحساب لګول جائزندی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۷شعبان سنه۱۳۸۸ھ

## په ډاګ یا بلتی باندې دلیګل شوی مال ضمان به په چاوی

**سوال**: احقر دکتابونو تجارت کوی، احقر زید ته خط ولیږه چی مناجات مقبول، زادالسعید .اغلاط العوام، کمالات اشرفیه، پنځه، پنځه نسخی، او د نشرط الطیب، تعلیم الدین او حیات المسلمین څوڅو نسخې د ډاګ په ذریعه راولیږه، زید د اولو څلورو کتابونو پنځه، پنځه نسخې ور ولیږلې او دباقی دریو یی دچاڅلورویشت (۲۴) او د چا دوه دیرش (۳۲) او د چاپنځه دیرش (۳۵) نسخې راولیږلې اویوه نسخه شمائل ترمذی یی له خپل طرف نه دنمونې په طور مګرقیمتاً روالیږله اتفاقاً څوکتابونه ماته راورسیدل اوباقی نور کتابونه د ډاګ دخرابی یا د نامعلومو وجوهاتو له کبله ماته ونه رسیدل اوپه لارکښې ضائع شول، مازید ته خط ولیکه چی دومره په زیات مقدار کښې دې ولې راولیږل، نو هغه جواب راکړ چی ستاد الفاظو (څوڅو) مطلب مې دوسیع تعداد وګرځاوه نو ځکه مې زیات مال درولیږه، اوزید دټولو کتابونو دپیسو مطالبه کوی، اوس پوښتنه داده چې:

**اول**: د کومو کتابونو تعداد چې مامقررکړې دې له هغونه چی کوم کتابونه ماته ندی رسیدلی آیا دهغو قیمت زماپه ذمه واجب الاداء دې اوکه نه؟

**دویم**: دڅوڅونسخو په ځای چی دومره زیات کتابونه یی ما ته رالیږلی دی، په هغو کښې چی کوم ماته ندی رسیدلی دهغو دقیمت څه حکم دې؟ ځکه چی دڅوځخه زما مقصد پنځه پنځه یا اوه مراد وو، د وخت دکمښت له وجی می (څوڅو) ولیکل.

**دریم**: آیا دشمائل ترمذی قیمت زما په ذمه شته اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دتجارو له عرف نه اوخصوصاً له دې خبرې چی په ډاګ یا بلتی باندې لیږل شوې مال ضائع شی دضمان مطالبه یی لیږونکې کوی، غوښتونکې یی نه کوی، لدې ځخه دا معلومیږی چی ډاګ والا دبائع وکیلان دی نه دمشتری، لهذا په ډاګ کښې دضائع کیدونکی مال ضمان دهلاك قبل القبض له وجی په مشتری باندې نه وی.

کوم کتابونه چی ستا له طلب نه زائد دی او تاته رسیدلی دی که ته د هغو اخستونکې یی نو قیمت په تالازم دې اوکه نه نو کتابونه بیرته واپس کول لازم دی، والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۰جمادی الاولی سنه ۱۳۸۹ھ

## دحمله کونکی اوښ وژل

**سوال**: دزید اوښ دعمرو له اوښې سره څرېده، عمرو یوکومك کونکې (خالد) هم له ځان سره ملګری کړ خپله اوښه یې د زید له اوښ څخه جدا کوله، اوښ په غوصه شو خالد یې لاندې کړ مګر هغه په خوش قسمتی سره داوښ له سینې لاندې راښکې، دهغه د خیټې لاندې شو، خالد دکومك لپاره فریاد شروع کړ دکلی خلك ډیر زیات راجمع شول اوټولو اوښ په لرګیو اوتیږو وه واهه په دې دوران کښې اوښ دیو بل شخص پښه هم زخمی کړه، خلکو ټوپك والا مجبور کړ نو هغه اوښ په ټوپك وه ویشت اوهلاك یې کړ، اوس زید دهغه ضمان غواړی، آیا په دغه مامور شخص ضمان لازم دې اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دانسان ژغورل فرض دی، مدد کونکې دالله په نزد ماجور دې مګر اوښ دبل چا ملك وو اومامور په خپل فعل کښې مختار وو، لهذا مامور باندې ضمان لازم دې.

**قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی تحت (قوله ای حیوان) ان الجمل لوصال علی انسان فقتله فعلیه قیمته بالغا مابلغ لان الاذن فی قتل السبع حاصل من صاحب الحق وهو الشارع اما الجمل فلم یحصل الاذن من صاحبه (ردالمحتار ص۲۱۹ ج۲)**

که اوښ یې دمړکیدونه مخکې ذبح کړې وی نو مامور دضمان له وجی دغوښې وغیره مالك شو اوغوښه اوڅرمن وغیره خرڅولې شی.

دزیدلپاره بهتره داده چی ضمان وانه خلی، دصبر په کولو او د یومسلمان د ژغورلو په سلسله کښې دایثار نه په کار اخستو د آخرت د اجرعظیم نه علاوه په دنیا کښې هم دالله تعالی نه دنعم البدل امید دې ولری. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۳ربیع الاخرسنه ۱۳۹۴هـ

## دموټر دټکر څخه دزخمی حکم

**سوال**: یوه ډریور (موټروان) موټر چلاوه، موټر کافی اندازه تیز وو، مخامخ یوسړې ښکاره شو ډریور د ژغورلو ډیر کوشش وکړ مګر چی کوم طرفته به موټر تاویده هغه شخص به هم هغه طرفته مخې ته ورته راته، چنانچه موټر له هغه سره ټکر شو، ډریور له حکومت څخه دویرې په وجه وتښتیده، دامعلوم نشوه چی هغه شخص به ژوندې ژغورل شوې وی او که نه؟ اوس د ډریور په ذمه څه لازم دی اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د ډریور تیښته کول جائز نه وو، له تښتیدو وروسته دې بیا هم معلومات وکړی اودهغه مطابق عمل دې وکړی، که چیرته دصحیح کیفیت علم ونه شی نو صرف توبه او استغفار ورباندې لازم دې. ۲۷جمادی الثانیه سنه ۱۳۹۵هـ

## د وطئ بالدابة ((دحیوان د پامال کولو)) حکم

دامسئله په کتاب الحدود والتعزیر صـ ۵۰۳جـ ۵کښې د(حیوان سره بدفعلي) ترعوان لاندي تیره شوی ده.

## د امانت د ضائع کیدلو حکم

**سوال** : زید دیو مسجد امام دې اوله هغې سره دملحقه مدرسې مهتمم هم دې، دمسجد او مدرسی روپئ له هغه سره په طور د امانت ایښې وې، هغه وایی دحفاظت باوجود پیسې دده له کور څخه غلاشوی دی، او ددې خبرې اقرار کوی چی دا دهغه اوښی پټې کړی دی اوتښتیدلې دې له هغه څخه دپیسو د واپسی کوم امید نشته، اوس پوښتنه داده چی په دغه امام ضمان لازم دې اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : داپیسې امانت دی که مهتمم واقعاً ددې دحفاظت اهتمام کړې وی نو په هغه ددې پیسو ضمان نشته، والله سبحانه وتعالی اعلم ۱۸ربیع الثانی سنه ۱۳۹۶هـ

## دمؤذن دغلطی له وجی که له مسجد نه څه ورک شی نو هغه ضامن دې

**سوال** : په یوه مسجد کښې دمسجد دتعمیر لپاره دوه د لرګی بکسونه دجمعې په ورځ په مسجد کښې کیښودل کیږی، لمونځ کونکی په هغې کښې چنده اچوی، بکس دمسجد سره په خوا کښې په کمره کښې پروت وی، دشپی په وخت مسجد قلف وی، دمسجد ټولې کلیانې له مؤذن سره وی، دری څلورمیاشتې بعد منتظمین بکس خلاص کړی او پیسې وشمیری او رسید جوړوی ځو ورځی مخکښې دوه ځله دا بکس مات وموندل شو اوپیسې ترینه غلاشوې وې، په اول ځل انتظامې له مؤذن څخه پوښتنه وکړه نو هغه جواب ورکړ چی بکس دجمعې په وخت دمسجد په صحن کښې ایښې وو، کله چی جمعه ودریده نو ماشومانو دبکس کونډې ماتې کړې وې اوپیسې یی ترینه ایستلې وې، دده په قول یو لمونځ کونکی ماشومان په تیښته لیدلی وو، خبره اخوا دیخوا شوه له دې واقعی څخه نیمه میاشت وروسته مؤذن اطلاع ورکړه چی ما بکس مات وموندو دا واوریدل شو منتظمه کمیټئ ته حیرانی وشوه چی په شل کاله کښې کله هم داسې واقعه نده شوې، داخه خبره ده ددې نوی مؤذن په راتګ سره داسې کیږی، د انتظامیی په مؤذن شک شو د انتظامی یو رکن له مؤذن څخه یوڅوسوالونه وکړل.

۱- آیا تاپه دوران دهفتی کښې ولیدل چی څه حالت دې؟

۲- دجمعی په ورځ چی کله بکس پورته کیده نو څه پیسی پکښې معلومیدلې؟

همداشان څونور سوالونه هم ترینه وشول، مؤذن دهر سوال په جواب کښې دعدم علم اظهار

وکړ، د انتظامیې په مؤذن شك شو چې دا دده کار معلومیږی ځکه چې ده هیڅ یوتسلی بخش جواب ورنکړ، اوس پوښتنه داده چې آیا دمسجد دټول سامان حفاظت په انتظامیه دي، اوکه په مؤذن باندې؟ په داسې حال کښې چې دمسجد دټولو قلفونو کلیانی دمؤذن سره وی اوهمدا راز دسامان دغلا کیدو په صحت کښې ضمان راځی اوکه نه؟ که راځی نو په چا راځی ؟ په مؤذن اوکه په انتظامیه باندې ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په عرف عام کښې دمسجد اثاثه دمؤذن په تحویل کښې وی اوله هغه سره امانت وی که چیرته له مناسب حفاظت سره سره نقصان وشی نو په مؤذن ضمان نشته اوکه په حفاظت کښې غفلت ثابت شی نو په مؤذن ضمان لازم دې، په صورت مسئوله کښې دمؤذن غفلت ظاهر دې لدې وجی نه په مؤذن ضمان شته دې. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۴/ جمادی الاولی ، سنہ ۹۸ ھ

## په وکیل بالشراء ضمان نشته

**سوال** : زید بکر ته وویل چې ماته یوه دوا واخله اورایی وړه لیکن د دوا لپاره یې پیسی نه دی ورکړی، بکر دوا واخسته د دوا بوتل له هغه ځخه پریوت اومات شو، بکر دوباره بل بوتل واخیست، زید ته یی ورکړ اوس آیا بکر د دواړو بوتلونو دقیمت اخستوحق له زید ځخه لری؟ اوکه دیوه بوتل ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د دواړو شیشو قیمت په زید باندې دې، والله سبحانه وتعالی اعلم

۲۳شعبان سنہ۱۳۹۸ھ

## په سپاره سړی دضمان د وجوب تفصیل

**سوال** : یوه نوجوان هلك اسپه تیزه ګرځوله، اسپه دهغه له اختیار ځخه ووتله اویوه وزه یی له پښو لاندې کړه اوهغه مړه شوه، اوس دا هلك ضامن دنقصان دې اوکه نه ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : کله چې یوه سورلی، دمستی له وجی بی قابوشی یعنی سپور دهغه د را حصارولو ځخه عاجزشی نو په سپاره ضمان نشته، که ځانی نقصان وی اوکه مالی نقصان ځکه چې دلته د دابې فعل دسپاره طرفته نه منسوب کیږی اوکه دسپور په عجز کښې اختلاف راشی نو د اثبات عجز لپاره په سپور باندې بینه لازمه ده اوکه نه نو قول دخصم به مع الیمین معتبر وی، داحکم په هغه وخت کښې دې چې سپاره اسپه په معتاد رفتار چلوله اوکه په غیر معتاد رفتار سره یعنی په قمچینه وغیره سره یی ووهله یا سپاره عملا دخپل قدرت نه زیات په تیز رفتار سره وچلوله نو بیا په سپاره ضمان شته **لانه متعد کناحس الدابه**

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: او انفلتت دابة بنفسها فاصابت مالا او آدميا نهارا اوليلا لاضمان في الكل لقوله صلى الله عليه وسلم العجماء جبار اى المنفلتة هدر كما لو جمحت الدابة به اى بالراكب ولو سكران ولم يقدر الراكب على ردها فانه لايضمن كالمنفلتة لانه حينئذ ليس بمسير لها فلا يضاف سيرها اليه حتى لواتلفت انسانا فدمه هدر عمادية.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: وذكر الرملي انهما لواختلفا في عدم القدرة على ردها فالقول للخصم والبينة على مدعى العجز لان انكاره لاصل الضمان في ضمن الدعوى لايفيد بعد تحقق سببه تأمل اهـ ملخصا (ردالمحتار ص۳۹۰ ج۵) والله سبحانه وتعلى اعلم.　　　　۱۵ صفر سنه : ۹۹

## دحیوان په نقصان باندې ضمان

**سوال**: څه فرمائی علماء کرام په دې مسئله کښې که چیرته چاڅپل خر یا غوا یا اوښ په بیابان یعنی ځنګل کښې خوشی کړ دځړ لپاره بیا دا حیوان دیو چازراعت ته ولاړ او هغه یی نقصانی کړ لیکن یوځلې یی نقصان ندې کړی بلکه څو کرته راځی اودخلکو زراعت تلف کوی آیا په مالك یی ضمان لازم دې اوکه نه؟ که ضمان لازم وی نوجواب ددې حدیث چی (العجماء جرحها جبار) څه دې اودویم داچې اشهاد کول تنها په باره دتلف دمال کښې اعتبار لری اوکه نه؟ که لری یی نو د دې دعبارت د رد المحتار جواب څه دې؟

**ومالایخاف معه تلف الادمی بل یخاف معه تلف المال فقط کعنب الکروم فلایفید فیه الاشهاد (رد المحتار ص۳۹۲ ج۵ ص۶۱۱ ج۶)**

**ولوارسل بهیمة فافسدت زرعا علی فورها ضمن المرسل وان مالت یمینا اوشمالا وله طریق اخر لا یضمن لمامر (ردالمحتار ص۳۹۲ ج۵ ص۶۱۲ ج۶) بینوا توجروا.**

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په دې صورت کښې ضمان نشته، البته په حکومت لازم دی چی مالك ته تنبیه ورکړی که نه منع کیږی نو مناسبه سزادې ورکړی، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۱۷ شوال سنه ۱۳۹۹ھ

## په مشترک اجیر دضمان حکم

**سوال**: که شپون یا اجنبی ولیدل چی میږه یا غوا مری اوقریب الموت ده اوذبح یی کړه نو آیا په ذابح به ضامن وی اوکه نه؟ اوکه دشپون له لاسه میږه ورکه شوه ضامن به وی اوکه نه؟ اوپه ښونښارونو کښې داسې رواج دې چی روزانه دکلی له اوسیدونکو څخه یونفر دکلی میږې څروی

آیا دا یونفرپه حکم دراعی کښې دې په صورت د ذبح کولو اویا ورکیدلو د میږو کښې اوکه نه؟ او زمونږ په علاقه کښې راعی مشترك وی په مابین دڅوکسانو کښې، اوپه رد المحتار کښې داعبارت موجود دې.

**ولو ذبحها الراعی اوالاجنبی ضمن لو رجا حیاتها اواشکل امرها ولو تیقن موتها لا للاذن دلالة هو الصحیح**

(ردالمحتار ص۱۰۶ج۶)

او په مجمع الانهرکښې داسی دی: **فلوذبح الراعی اوالاجنبی شاة لایرجی حیاتها لایضمن وقال الصدر الشهید یضمن (مجمع الانهر ص۳۲۲ج۲)**

چونکه مسئله مختلف فیها ده، لهذا قول صحیح اومفتی به معلوم کول غواړو اوپه رد المحتار کښې موجود دی چی: **وبقولها یفتی.**

پس په نزد د صاحبینو اجیر مشترك په هر حال ضامن کیږی. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په تضمین داجیر مشترك کښې څلور صورتونه دی:

۱- په فعل داجیر هلاك شوې وی اوتعدی هم موجوده وی.

۲- په فعل داجیر هلاك شوې وی لیکن تعدی په کښې نه وی، په دغه دواړو صورتونو کښې په وجوب دضمان دحنفی علماؤ اتفاق دې.

۳- په فعل داجیر هلاك نه وی اوله هغه څخه احترازهم ممکن نه وی، په دې صورت کښې په عدم وجوب الضمان اتفاق دې.

۴- هلاك بفعل الاجیرنه وی، البته له هغه څخه احتراز ممکن وی، داصورت مختلف فیها دې په دې کښې څلور اقوال دی:

۱- دامام اعظم په نزد ضمان واجب نه دې ۲- دصاحبینو په نزد ضمان واجب دې. ۳- دمتاخرینو په نزد نصف قیمت واجب دې. ۴- ځینو دا تفصیل کړې دې که اجیر مصلح وی نو ضمان نشته اوکه غیر مصلح وی نو ضمان شته اوکه مستور الحال وی نو نصف قیمت واجب دې.

دا څلور واړه اقوال مصحح اومفتی بها دی په موقع اومحل غور وکړئ کوم قول چی مناسب وګنئ په هغه فتوی ورکړئ.

ددې تفصیل په نظر کښې نیولو سره دسوال په صورت کښې که په شهادت شرعیه یا اقرار دمالك سره موت ثابت شی نو اتفاقا ضمان واجب ندې اوکه نه نو دصاحبینو دقول مطابق ضمان به واجب وی. دمتاخرینو دبیان کړی تفصیل مطابق نصف قمیت او د پوره ضمان فتوی هم ورکولی شی، په نوبت څرونکې هم په حکم دراعی کښې دې:

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ولا يضمن الخ) اعلم ان الهلاك اما بفعل الاجير اولا، والاول اما بالتعدى اولا، والثانى اما ان يمكن الاحتراز عنه اولا، ففى الاول بقسميه يضمن اتفاقا، وفى ثانى الثانى لا يضمن اتفاقا، وفى اوله لا يضمن عند الامام مطلقا ويضمن عندهما مطلقا وافتى المتاخرون بالصلح على نصف القيمة مطلقا، وقيل ان مصلحا لا يضمن وان غير مصلح ضمن وان مستورا فالصلح اھ والمراد بالاطلاق فى الموضعين المصلح وغيره.

وفى البدائع: لا يضمن عنده ما هلك بغير صنعه قبل العمل اوبعده لانه امانة فى يده وهو القياس وقالا يضمن الا من حرق غالب اولصوص مكابرين وهو استحسان اھ قال فى الخيرية: فهذه اربعة اقوال كلها مصححة مفتى بها، وما احسن التفصيل الاخير والاول قول ابى حنيفة رحمه الله تعالى وقال بعضهم قول ابى حنيفة رحمه الله تعالى قول عطاء وطاؤس رحمهما الله تعالى وهما من كبار التابعين، وقولهما قول عمر وعلى رضى الله تعالى عنهما وبه يفتى احتشاما لعمر وعلى رضى الله تعالى عنهما وصيانة لاموال الناس، والله اعلم اھ وفى التبيين: وبقولهما يفتى لتغير احوال الناس، وبه يحصل صيانة اموالهم اھ لانه اذا علم انه لا يضمن ربما يدعى انه سرق اوضاع من يده.

وفى الخانية والمحيط والتتمة: الفتوى على قوله. فقد اختلف الافتاء وقد سمعت ما فى الخيرية، وقال ابن مالك فى شرح المجمع: وفى المحيط: الخلاف فيما اذا كانت الاجارة صحيحة فلو فاسدة لا يضمن اتفاقا، لان العين حينئذ تكون امانة لكون المعقود عليه وهو المنفعة مضمونة بأجر المثل اھ (رد المحتار ص ٣٠ ج ٥) والله سبحانه وتعالى اعلم.

١٧ شوال سنہ ٩٩ھ

## له دوبى سره دضائع شوى لباس (جامو) دضمان حكم

**سوال:** دوبى ته چى دوينځلو لپاره لباس ورکول کيږى که له هغه څخه لباس ضائع شى نو دوبى دهغه نيم قيمت مالك ته ورکوى آيا دقيمت اخستل مالك ته جائزدى اوکه ناجائز؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب:** هو! جائزدى، البته که ضياع متيقن وى نو جائزندى.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله ولا يضمن الخ) اعلم ان الهلاك اما بفعل الاجير اولا والاول اما بالتعدى اولا والثانى اما ان يمكن الاحتراز عنه اولا ففى الاول بقسميه يضمن اتفاقا وفى ثانى الثانى لا يضمن اتفاقا وفى اوله لا يضمن عند الامام رحمه الله تعالى مطلقا ويضمن عندهما رحمهما الله تعالى مطلقا وافتى المتاخرون بالصلح على نصف القيمة مطلقا وقيل ان مصلحا لا يضمن وان غير مصلح ضمن وان مستورا فالصلح اھ والمراد بالاطلاق فى الموضعين المصلح وغيره (رد المحتار ص ٣٠ ج ٥)

وقال ايضا: وحاصل ما في الطوري عن المحيط ان ضمان المشترك ما تلف مقيد بثلاثة شرائط ان يكون في قدرته رفع ذلك فلو غرقت بموج اوريح اوصدمة جبل لايضمن وان يكون محل العمل مسلما اليه بالتخلية فلو ركب المتاع اوو كيله في السفينة لايضمن وان يكون المضمون مما يجوز ان يضمن بالعقد فلا يضمن الادمي كما يأتي (ردالمحتار ص ۲۰ جه) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲ربيع الاول سنـــ ۱۴۰۰ هـ

## په ضما ن كښې قيمت له مثل څخه زيات اخستل جائز ندى

**سوال**: كه په دكان كښې كوم اخستونكې يا دهغه ماشوم څه نقصان وكړى نو دهغه شى قيمت له نفعې سره اخستل جائزدى اوكه نه ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د بازار دعام قيمت برابر اخستل جائزدى اوزائد ندى جائز ، والله سبحانه وتعالى اعلم. ۱۸جمادى الثانيه سنه ۱۴۰۰هـ

## په طبيب يا ډاكترباندې دضمان دوجوب تفصيل

**سوال**: دطبيب يا ډاكتر دعلاج نه كه څوك مړشى يا دهغه كوم اندام تلف شى آيا په طبيب يا ډاكتر ضمان واجب دې اوكه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دطبيب دوه قسمونه دى : ۱-حاذق ۲-جاهل

**دطبيب حاذق حكم**: دده لپاره علاج كول جائزدى اوله ده څخه د رفع ضمان لپاره دوه شرطونه دى. ۱-مريض يا دهغه ولى دعلاج اجازه وركړى وى ۲-علاج يى داصول طبيه مطابق كړې وى. كه له دې څخه كوم شرط مفقود وى اودمريض نقصان وشو نو ضمان واجب دې اوكه بلا اذن يى علاج كړې وى نو پوره ضمان واجب دې اوكه په اذن سره يى كړې وى نو په هغې كښې دا تفصيل دې:

دعلاج ټوله طريقه اوعمل دطبى اصولو خلاف وى : په دې صورت كښې كه مريض هلاك شى نو ټول ديت لازم دې اوكه كومه عضوه تلف شى نو دفقهاء كرامو دتفصيل موافق ضمان واجب دې

څه عمل د اصول طبيه موافق اوڅه مخالف وى، په دې صورت كښې كه مريض هلاك شى نو نيم ديت واجب دې اوكه عضو تلف شى نو پوره ضمان به واجب دې اوكه په عضو كښې نقصان راغلې وى نو دموضع معتاد نه دتجاوز په وجه چې څومره نقصان شوې وى په قدر دهغه ضمان راځى

**دطبيب جاهل حكم**: دده لپاره علاج كول جائز ندى اوپه هر صورت په ده باندې پوره ضمان واجب دې برابره خبره ده كه علاج داصول طبيه موافق وى اوكه غير موافق، دمريض يا دهغه دولى په اجازت يى علاج كړى يا بلا اجازته

**تنبيه**: وجوب ضمان په هغه صورت كښې دې چې په علاج كښې دطبيب يا ډاكتر خپل لاس

استعمال شوې وی مثلاً اپریشن یې کړې وی یا ستن (انجکشن) یې لګولی وی یا یې په خپل لاس دوا ورڅکلې وی او که دوایی جوړه کړې یا لیکلی وی او مریض ته یې ورکړې وی او مریض په خپل لاس دوا خوړلې وی نو بیا ضمان واجب ندې، البته تعزیر په هر صورت واجب دې

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولا ضمان على حجام وبزاغ اى بيطار وفصاد لم يجاوز الموضع المعتاد فان جاوز المعتاد ضمن الزيادة كلها اذا لم يهلك المجنى عليه وان هلك ضمن نصف دية النفس لتلفها بماذون فيه وغير ماذون فيه فيتنصف ثم فرع عليه بقوله فلو قطع الختان الحشفة وبرئ المقطوع تجب عليه دية كاملة لان لما برئ كان عليه ضمان الحشفة وهى عضو كامل كاللسان فان مات فالواجب عليه نصفها لحصول تلف النفس بفعلين احدهما ماذون فيه وهو قطع الجلدة والاخر غير ماذون فيه وهو قطع الحشفة فيضمن النصف ولو شرط على الحجام ونحوه العمل على وجه لا يسرى لا يصح لانه ليس فى وسعه الا اذا فعل غير المعتاد فيضمن عمادية وفيها سئل صاحب المحيط عن فصاد قال له غلام او عبد افصدنى ففصده فصدا معتادا فمات بسببه قال تجب دية الحر وقيمة العبد على عاقلة الفصاد لانه خطأ وسئل عمن فصد نائما وتركه حتى مات من السيلان قال يجب القصاص.

قال ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله لم يجاوز الموضع المعتاد)

اى وكان بالاذن قال فى الكافى عبارة المختصر ناطقة بعدم التجاوز وساكتت عن الاذن وعبارة الجامع الصغير ناطقة بالاذن ساكتة عن التجاوز فصار ما نطق به هذا بيانا لما سكت عنه الاخر ويستفاد بمجموع الروايتين اشتراط عدم التجاوز والاذن لعدم الضمان حتى اذا عدم احدهما او كلاهما يجب الضمان انتهى طورى وعليه ما يأتى عن العمادية (قوله فلو قطع الختان الحشفة) اى كلها قال فى الشرنبلالية وبقطع بعضها يجب حكومة عدل كما ذكره الاتقانى (قوله دية كاملة) قال الزيلعى هذا من اعجب المسائل حيث وجب الاكثر بالبرء والاقل بالهلاك (قوله تجب دية الحر) اى لو كان الغلام حرا وقيمة العبد لو كان عبدا قال حلاى فعله غير ماذون فيه حيث لم يعتبر اذنهما للحجر عليهما فى الاقوال (قوله لانه خطأ) اى من القتل خطأ اذلم يتعمد قتله والدليل عليه عدم مجاوزة الفعل المعتاد (قوله قال يجب القصاص) لانه قتله بمحدد ط اى وهو قاصد لقتله فكان عمدًا (رد المحتار ص۳۳ ج۵)

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: يمنع مفت ماجن يعلم الحيل الباطلة كتعليم الردة لتبين من زوجها او لتسقط عنها الزكوة وطبيب جاهل.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: قوله (وطبيب جاهل) بان يسقيهم دواء مهلكا واذا قوى عليهم

لایقدر علی ازالة ضررہ زیلعی (ردالمحتار ص۹۳ ج۵)

قال الامام ابوداود رحمہ اللہ تعالی: حدثنا محمد بن العلاء نا حفص نا عبدالعزیز بن عمر بن عبدالعزیز حدثنی بعض الوفد الذین قدموا علی ابی قال قال رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم ایما طبیب تطبب علی قوم لایعرف له تطبیب قبل ذلك فاعنت فهو ضامن قال عبدالعزیز اما انه لیس بالنعت انما هو قطع العروق والبط والکی .

(سنن ابی داود ص۲۸۲ ج۲)

قال العلامة السهارنفوری رحمہ اللہ تعالی: اما انه لیس بالنعت ای حکم الضمان لیس بالوصف باللسان وکذا حکم الکتابة فانه اذا وصف الدواء لانسان فعمل بالمریض فهلك لایلزم الطبیب الدیة انما هو ای حکم الضمان قطع العروق والبط ای الشق والکی بالنار (بذل المجهود ص۱۷۸ ج۶) واللہ سبحانه وتعالی اعلم.

۱۶ ذی الحجة سنہ ۱۴۱۶ھ

## دضمان په طور دعلاج مصارف اخستل

**سوال** : بکر را پاخیده او زید یې په چاقو اوواهه اوشدید یې زخمي کړ او هغه په هسپتال (روغتون) کښې ترعلاج لاندې دې ، د علاج، له ډاکترانو څخه دسرټیفکیټ (سند) اخستلو اوپه پولیس کښې د زید څو زره روپۍ مصرف شوې، اوس د صلحې په وخت کښې زید له بکر څخه د لسو زرو روپو مطالبه کوی آیا د زید لپاره دا روپۍ اخستل اوصلح کول جائزدی؟.بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : هو ! جائزدی ، والله سبحانه وتعالی اعلم.

۲۰ ذی الحجه سنه۱۴۱۶ھ

## د آلات معصیت په ماتولو د ضمان د وجوب حکم

دا مسئله په کتاب الحظر والاباحه کښې د ((آلات معصیت دماتو لو حکم)) ترعنوان لاندې تیره شوې ده.

# باب القود

## دقصاص دحق تفصیل

**سوال** : زید خالد لره په ناحقه قتل کړو، دوخت حکومت زید څوکاله په بندیخانه کښې قیدکوی او پریږدی یی یا زید اصلا دحکومت لاس ته نه ورځی، په غرونو کښې دي، حکومت دهغه له نیولو څخه عاجز دي، که په داسې حالاتو کښې دخالد ورور یا دهغه بل رشته دار یا دقوم بل شخص زید د خالد په عوض کښې قتل کړی، آیا دشریعت له نظره دخالد وارثانو ته دا حق شته چې له زید څخه دخالد قصاص واخلی، حکومت په هغه راضی ندي هغه وایی چې مونږ به په خپله فیصله کوو، دحکومت فیصله خو څوکاله قید وی، امید دي چې دمسئلې وضاحت سره دلائلو بیان کړئ اوعند الله ماجور وګرځئ . بینوا توجروا .

**الجواب باسم ملهم الصواب** : قال الله تعالی: ومن قتل مظلوما فقد جعلنا لولیه سلطانا فلا یسرف فی القتل انه کان منصورا.

۱ــ قال العلامة الالوسی رحمه الله تعالی: (ومن قتل مظلوما) بغیر حق یوجب قتله اویبیحه للقاتل حتی انه لایعتبر اباحته لغیر القاتل وقد نص علماؤنا ان من علیه قصاص اذا قتله غیر من له القصاص یقتص له ولایفیده قول الولی انا امرته بذلك الاان یکون الامر ظاهرا (فقد جعلنا لولیه) لمن یلی امره من الوارث اوالسلطان عند عدم الوارث واقتصار البعض علی الاول رعایة للاغلب (سلطانا) ای تسلطا واستیلاء علی القاتل بمؤاخذته باحد الامرین القصاص اوالدیة وقد تتعین الدیة کما فی القتل الخطا والمقتول خطا مقتول ظلما بالمعنی الذی اشیر الیه. (روح المعانی ص۶۹ج۱۵)

۲ــ وقال الامام ابوبکر الجصاص رحمه الله تعالی: القتل ینقسم الی اربعة انحاء واجب ومباح ومحظور ومالیس بواجب ولامحظور ولامباح (الی ان قال) واما المباح فهو القتل الواجب لولی الدم علی وجه القود فهو مخیر بین القتل والعفو (احکام القران للجصاص ص۳۰۶ج۲)

۳ــ وقال فی موضع اخر فی تفسیر قوله تعالی (ولاتقتلوا النفس التی حرم الله الابالحق) وقال الضحاك السلطان انه مخیر بین القتل وبین اخذ الدیة وعلی السلطان ان یطلب القاتل حتی یدفعه لایه. (احکام القران للجصاص ص۲۶۰ج۲)

۴ــ وقال ابوبکر بن العربی رحمه الله تعالی: وتحقیق ذلك ان الله تعالی اوجب القصاص ردعا عن الاتلاف

وحياة للباقين وظاهره ان يكون حقا لجميع الناس كالحدود والزواجر عن السرقة والزنا حتى لا يختص بها مستحق بيدان البارء تعالى استثنى القصاص من هذه القاعدة وجعله للاولياء الوارثين ليتحقق فيه العفو الذى ندب اليه فى باب القتل ولم يجعل عفوا فى سائر الحدود لحكمته البالغة وقدرته النافذة ولذا قال صلى الله عليه وسلم من قتل له قتيل فهو بخير النظرين بين ان يقتل او يأخذ الدية وكانت هذه كما تقدم ذكره خاصية اعطيها هذه الامة تفضلا وتفضيلا وحكمة وتفصيلا فخص بذلك الاولياء ليتصور العفو والاستيفاء لاختصاصه بالحزن (احكام القران صـ۱۹۳ جـ۳)

۵ــ ثم قال (قوله سلطانا) فيه خمسة اقوال (الى ان قال) اما طلبه حتى يدفع اليه فهو ابتداء الحق واخره استيفاؤه وهو القول الخامس. (احكام القران صـ۱۹۷ جـ۳)

۶ــ وقال الامام الخازن رحمه الله تعالى: (ومن قتل مظلوما فقد جعلنا لوليه سلطانا) اى قوة وولاية على القاتل بالقتل وقيل سلطانه هو انه يتخير فانه شاء استقاد منه وان شاء اخذ الدية وان شاء عفا (تفسير خازن صـ۱۷۳ جـ۳)

۷ــ وقال العلامة ابو البركات النسفى رحمه الله تعالى: (سلطانا) تسلطا على القاتل فى الاقتصاص منه (مدارك التنزيل بهامش الخازن صـ۱۷۳ جـ۳)

**نصوص الفقه**:

۱ــ قال الامام المرغينانى رحمه الله تعالى: ومن قتل وله اولياء صغار وكبار فللكبار ان يقتلوا القاتل عند ابى حنيفة رحمه الله تعالى وقالا رحمهما الله تعالى ليس لهم ذلك حتى يدرك الصغار (هداية صـ۵۶۵ جـ۴)

۲ــ وقال العلامة البابرتى رحمه الله تعالى: اذا كان اولياء القتيل صغارا وكبارا فاما ان يكون فيهم الاب اولا فان كان فلهم الاستيفاء عند علمائنا رحمهم الله تعالى بالاتفاق وان لم يكن فكذلك عند ابى حنيفة رحمه الله تعالى وقالا رحمهما الله تعالى ليس لهم ذلك حتى يدرك الصغار. (العناية بهامش الفتح صـ۱۶۲ جـ۹)

۳ــ وقال الامام الكاسانى رحمه الله تعالى: فان كان الكل كبارا فلكل واحد منهم ولاية استيفاء القصاص حتى لو قتله احدهم صار القصاص مستوفى (وبعد اسطر) وكذا اذا كان الكل حضورا لايجوز لهم ولا لاحدهم ان يوكل فى استيفاء القصاص على معنى انه لايجوز لهم ولا لاحدهم ان يوكل فى استيفاء القصاص علم على انه لايجوز للوكيل استيفاء القصاص مع غيبة الموكل لاحتمال ان الغائب قد عفا ولان فى

اشتراط حضرة الموكل رجاء العفو منه عند معاينة حلول العقوبة بالقاتل (بدائع صـ۲۴۳ جـ۷)

۴ــ وقال ايضا: وكذا اذا قتل من عليه القصاص بغير حق اوبحق بالردة والقصاص بان قتل انسانا فقتل به قصاصا يسقط القصاص ولا يجب المال لما قلنا (بدائع صـ۲۴۶ جـ۷)

۵ــ وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: من عليه التعزير لو قال لرجل اقم على التعزير ففعله ثم رفع للحاكم فانه يحتسب به قنية واقره المصنف ومثله في دعوى الخانية لكن في الفتح ما يجب حقا للعبد لا يقيمه الا الامام لتوقفه على الدعوى الا ان يحكما فيه فليحفظ.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله لا يقيمه الا الامام) وقيل لصاحب الحق كالقصاص وجه الاول ان صاحب الحق قد يسرف فيه غلظا بخلاف القصاص لانه مقدر كما في البحر عن المجتبى (رد المحتار صـ۱۸۱ جـ۳)

۶ــ وقال العلامة التمرتاشي رحمه الله تعالى: وللكبار القود قبل كبر الصغار.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله وللكبار القود الخ) اى اذا قتل رجل هل ولى كبير وصغير كان للكبير ان يقتل قاتله عنده لانه حق مشترك وفي الاصل ان كان الكبير ابا استوفى القود بالاجماع وان كان اجنبيا بان قتل عبد مشترك بين اجنبيين صغير و كبير ليس له ذلك وفي الكلام اشارة الى انه لو كان الكل صغارا ليس للاخ والعم ان يستوفيه كما في جامع الصغار فقيل ينتظر بلوغ احدهم وقيل يستوفي السلطان كما في الاختيار والقاضي كالسلطان والى انه لو كان الكل كبارا ليس للبعض ان يقتص دون البعض ولا ان يوكل باستيفائه لان في غيبة الموكل احتمال العفو فالقصاص يستحقه من يستحق ماله على فرائض الله تعالى ويدخل فيه الزوج والزوجة كما في الخلاصة والى انه لا يشترط القاضي كما في الخزانة والى انه لو كان القتل خطا لم يكن للكبير الا استيفاء حصة نفسه كما في الجامع قهستاني وقوله لا يشترط القاضي اى قضاؤه فمن له القصاص له ان يقتص سواء قضى به اولا كما في البزازية (رد المحتار صـ۳۴۷ جـ۵)

۷ــ وقال العلامة الرافعي رحمه الله تعالى (قوله وقيل ليستوفي السلطان) في منهوات الانقروى اذا كان الورثة كلهم صغارا فاستيفاء القصاص الى السلطان هو الاصح وجاز والمجنون والمعتوه كالصبي.
(التحرير المختار صـ۳۲۳ جـ۲)

۸ــ وقال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: ولو قال ولى القتيل بعد القتل اى بعد قتل الاجنبي كنت امرته لقتله ولا بينة له على مقالته لا يصدق ويقتل الاجنبي درر (رد المحتار صـ۳۴۷ جـ۵)

۹۔ وقال ایضا: وظاهره ان حق الولی یسقط راسا کما لو مات القاتل حتف انفه (حواله بالا)

۱۰۔ وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی معزیا للتتارخانیة: اذا قتل القاتل بحق اوبغیر حق سقط عنه القصاص بغیر مال وکذا اذا مات (ردالمحتار ص۳۸۳ ج۵)

۱۱۔ وقال ایضا: لواستوفاه بعض الاولیاء لم یضمن شیئا وفی المجتبی والدرر دم بین اثنین فعفا احدهما وقتله الآخر ان علم ان عفو بعضهم یسقط حقه یقاد والا فلا والدیة فی ماله (حواله بالا)

۱۲۔ وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: وعفو الولی عن القاتل افضل من الصلح والصلح افضل من القصاص (ردالمحتار ص۳۵۲ ج۵)

۱۳۔ وقال ایضا: الامام شرط استیفاء القصاص کالحدود عند الاصولیین وفرق الفقهاء اشباه.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله وفرق الفقهاء) ای بین القصاص والحدود فیشترط الامام لاستیفاء الحدود دون القصاص حموی قال فی الهندیة واذا قتل الرجل عمدا وله ولی واحد فله ان یقتله قصاصا قضی القاضی به اولم یقض اهـ (ردالمحتار ص۳۵۲ ج۵)

۱۴۔ وفی العلائیة عن الاشباه: الحدود کالقصاص الا فی سبع.

وفی الشامیة: (تنبیه) زاد الحموی ثامنة وهی اشتراط الامام لاستیفاء الحدود دون القصاص (ردالمحتار ص۳۵۲ ج۵)

۱۵۔ وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: ویسقط القود بموت القاتل لفوات المحل (ردالمحتار ص۳۵۶ ج۵)

۱۶۔ وقال ایضا: القود یثبت للورثة ابتداء بطریق الخلافة من غیر سبق ملك المورث لان شرعیة القود لتشفی الصدور ودرك الثار والمیت لیس بأهل له وقوله تعالی فقد جعلنا لولیه سلطانا نص فیه.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله القود یثبت للورثة) قال فی الخانیة یستحق القصاص من یستحق میراثه علی فرائض الله تعالی یدخل فیه الزوج والزوجة اهـ (ردالمحتار ص۳۶۳ ج۵)

له پورتنیو عبارتونو څخه لاندې امور مستفاد شول:

۱۔ که وارث په قاتل قادر نه وی نو په حکومت لازم دی چی قاتل ونیسی او د مقتول ولی ته یی حواله کړی.

۲۔ که کوم یوه وارث قاتل قتل کړ نو قصاص اداء شو باقی وارثانو ته حق داعتراض نشته، یعنی ترڅو پورې چی کوم وارث معاف کړې نوی دمعاف کولو تفصیل په نمبر ۱۳ او ۱۴ کښې راځی

۳۔ که په وارثانو کښې ځینې واړه وی او بعضې غټ نو په قتل عمد کښې دلویانو حق دقصاص شته د وړو وارثانو دبلوغ انتظار دې نه کیږی.

۴. که ټول وارثان واړه وی یا لیونیان یا معتوه وی نو هیڅ اجنبی سړی قاتل قصاصاً نه شی قتل کولې ورورا وتره که له وراثت څخه محروم وی هغه هم داجنبی په حکم کښې دی، په دې صورت کښې به حاکم قصاص اخلی.

۵. دقصاص د اخستلو حق دهغه چا دې چې هغوی ته له مړی څخه ترکه ورکول کیږی.

۶. په اولیاؤ کښې چې دمقتول والد موجود وی نو په وخت دقصاص اخستو کښې دنورو اولیاؤ وجود ضروری نه دې اوکه والد موجود نه وی نو دټولو اولیاؤ وجود ضروری دې.

۷. دتوکیل په صورت کښې په وخت دقصاص کښې دموکل وجود ضروری دې که دقصاص ولی څوك وکیل مقرر کړې وی اودې په خپله دقصاص له مجلس څخه غائب شی نو قصاص اخستل جائزندی.

۸. په قتل موجب دیت کښې به دیت وارثانو ته په قدر دحصو ورکول کیږی.

۹. قتل موجب دیت کښې که له وارثانو څخه ځینې واړه وی نو غټانو ته مکمل دیت اخستل جائزندی، هغوئ صرف خپله حصه اخستلې شی.

۱۰. که دمقتول ولی کوم اجنبی ته حکم وکړاوپه دغه حکم ورکولو باندې شاهدان موجود وو یا یې په خلکو کښې علی الاعلان حکم کړې وی نو هغه دولی په موجوګی کښې قاتل قتل کولې شی.

۱۱. که شاهدموجودنه وی او اجنبی قاتل قتل کړ بیاد مقتول ولی ووایی چې ما حکم ورنه کړی وو نو دده دا قول معتبر ندې بلکه له اجنبی څخه به قصاص اخستل کیږی.

۱۲. که کوم اجنبی قاتل قتل کړې وی اویا هغه مړشو نو دمقتول اول دوارثانو حق ساقط کیږی هغه دمقتول ثانی په وراثانو یا ترکه باندې هیڅ قسم دعوی نه شی کولې.

۱۳. که کوم وارث خپل حق دقصاص معاف کړی نو قصاص ساقطیږی باقی ورثه قصاص نه شی اخستې بلکه دیت به اخلی.

۱۴. که دکوم وارث دمعاف کولو باوجود نوروقصاص واخسته که قصاص اخستونکو ته دامعلوم وو چې دځینو وارثانو معاف کول مسقط دقصاص دی نوله قصاص اخستونکو څخه به قصاص واخستل شی او که ورته معلومه نه وی نو قصاص به نه ترینه اخستل کیږی بلکه دهغوی په مال کښې به دیت راځی.

۱۵. معاف کول افضل دی دصلح کولو نه اوصلح کول افضل دی دقصاص اخستونه ددغو امورو ذکر شویو نه دسوال جواب په خپله ظاهر شو. والله سبحانه وتعالی اعلم

۱۵ جمادی الاخره سنه ۱۳۸۸ھ

## په غير له توبې څخه دقتل ګناه نه معاف کيږي

**سوال**: زيد بکر لره قتل کړ که زيد دبکر وارثانوته څه پيسې ورکړي اوهغوئ راضي کړي نو آيا دآخرت له عذاب څخه به خلاص شي؟ اوکه وارثان راضي نه وي اوحکومت زيد ته لس کاله دقيد سزا ورکړئ په دې سره دده ګناه معاف کيږي اوکه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د آخرت له عذاب څخه د خلاصيدو لپاره توبه اواستغفار او د مقتول وارثان راضي کول دواړه ضروري دي، لهذا صرف دقيد سزا تيرولو سره يا صرف د وارثانو په رضا کولو سره ګناه نه معاف کيږي، دتوبې او د وارثانو له عاضي کيدلو نه بعد بياهم دقتيل حق نه ادا کيږي، بلکه هغه ته به په آخرت کښې دمطالبې حق وي.

قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله لاتصح توبة القاتل حتى يسلم نفسه للقود) اى لاتكفيه التوبة وحدها قال فى تبيين المحارم واعلم ان توبة القاتل لاتكون بالاستغفار والندامة فقط بل يتوقف على ارضاء اولياء المقتول فان كان القتل عمدا لابد ان يمكنهم من القصاص منه فان شاؤا قتلوه وان شاؤا عفوا عنه مجانا فان عفوا عنه كفته التوبة اه ملخصا وقدمنا انفا انه بالعفو عنه يبرا ف الدنيا وهل يبرا فيما بينه وبين الله تعالى هو بمنزلة الدين على رجل فمات الطالب وابراته الورثة يبرا فيما بقى اما فى ظلمة المتقدم لايبرا فكذا القاتل لايبرا عن ظلمه ويبرا عن القصاص والدية تتارخانية اقول والظاهر ان الظلم المتقدم لايسقط بالتوبة لتعلق حق المقتول به واما ظلمه على نفسه باقدامه على المعصية فيسقط به اتامل وفى الحامدية عن فتاوى الامام النووى رحمه الله تعالى مسالة فيمن قتل مظلوما فاقتص وارثه اوعفا على الدية اومجانا أهل على القاتل بعد ذلك مطالبة فى الاخرة الجواب ظواهر الشرع تقتضى سقوط المطالبة فى الاخرة اه وكذا قال فى تبيين المحارم ظاهر بعض الاحاديث يدل على انه لايطالب وقال فى مختار الفتاوى القصاص مخلص من حق الاولياء واما المقتل فيخاصمه يوم القيامة فان بالقصاص مخلص من حق الاولياء واما المقتول فيخاصمه يوم القيامة فان بالقصاص ما حصل فائدة للمقتول وحقه باق عليه اه وهو مؤيد لما استظهرته (رد المحتار ص ۳۵۲ ج۵) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۲ صفر سنه ۸۹هـ

## په سزا سره دقصاص حق اودصلحې حق نه ساقط کيږي

**سوال**: دوه کسانو په ګډه يو شخص قتل کړ، حکومت دواړو ته د بنديخانې اولويې جرمانې سزا ورکړه، له خلاصيدو بعد د مقتول وارثانو دقصاص او خون بها مطالبه وکړه آيا دحکومت د سزا نه بعد ددوئ مطالبه صحيح ده؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که حکومت دمقتول له وارثانو نه قصاص اوخون بها معاف کړی نه وی اونه یی له قاتلانو څخه خون بها اخستې وی نو د وارثانو مطالبه صحیح ده . والله سبحانه وتعالی اعلم. ۷جمادی الثانیه سنه ۱۳۹۱ھ

## په محارمو کښې دیو بل په قتلولو کښې دقصاص تفصیل

**سوال** : په لاندې صورتونو کښې حکم شرعی څه دې ؟

۱- زید خپل زوئ (بکر) عمدا یا خطاءً قتل کړ.

۲- بکر خپل پلار (زید) عمداً یا خطاءً قتل کړ.

۳- چاخپل سکه ورور عمداً یا خطاءً قتل کړ.

په دغه ټولو صورتونو کښې دپلار او زامنو او دوه ورونو په مینځ کښې دقصاص اودیت او وراثت په باره کښې حکم څه دی ؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** :

۱- په صورت دخطاء اوعمد دواړو کښې په پلار دیت واجب دې، په قتل خطا کښې دپلار په عاقله ؤ باندې اوپه عمد کښې دپلار په خپل مال کښې دیت واجب دې .

۲ - ۳ - دپلار او ورور دقاتل د عمد په صورت کښې قصاص اوپه صورت دخطاء کښې دهغه په عاقله ؤباندې دیت واجب دې .

په درې واړو صورتونو کښې چی قتل خطاء وي نو کفاره هم واجبه ده اوله میراث څخه به په هر صورت قاتل محروم وی، که قتل عمدا وی اوکه خطاءً .

قال العلامة الحصكفي رحمه الله تعالى: والفرع بأصله وان علا لا بعكسه خلافا لمالك رحمه الله تعالى فيما اذا ذبح ابنه ذبحا اى لا يقتص الاصول وان علوا مطلقا ولو اناثا من قبل الام فى نفس او اطراف بفروعهن واسفلوا لقوله عليه السلام لا يقاد الوالد بولده وهو وصف معلل بالجزئية فيتعدى لمن علا لانهم اسباب فى احيائه فلا يكون سببا لافنائهم وحينئذ فتجب الدية فى مال الاب فى ثلاث سنين لان هذا عمدا والعاقلة لا تعقل العمد (ردالمحتار صـ۳۴۳ جـ۵)

وقال ايضا: فى بيان القتل العمد: وموجبه الاثم والقود عينا لا الكفارة لانه كبيرة محضا (ردالمحتار صـ ۳۴۰ جـ۵) ، وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى : (قوله وكل ذلك) اى ماتقدم من اقسام القتل الغير المأذون فيه (ردالمحتار صـ۳۴۲ جـ۵)

وفى الهندية: وان كان الوالد قتل ولده خطأ فالدية على عاقلته وعليه الكفارة فى الخطأ (عالمگیریة صـ ۴)

والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۸ محرم سنه ۹۸هـ

## له عفوه کولو نه بعد دقصاص مطالبه کول جائزندی

**سوال**: دمقتول اولیاؤ د دوه شاهدانو په مخ کښې قاتل معاف کړ اوس هغوئ دوباره دقصاص دمطالبې حق لري او که نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: یوځل معاف کولو نه وروسته دقصاص حق دهمیشه دپاره ساقط کیږي اوس دوباره دقصاص مطالبه کول جائز ندی. والله سبحانه وتعالی اعلم. ۱۸ صفر سنه ۱۳۹۸هـ

## دقتل پلان دیوه سړی دقتلولو لپاره وؤ اوقتل بل کړې شو

**سوال**: عمرو په زید دقتل د پلان دعوی کوی او وایی چی زید څلوروکسانو ته د ده دقتلولو امر کړې وو هغوئ په ځای دده د هغه پلار قتل کړ، اوس پوښتنه داده چی په دې صورت کښې د آمر اومامورینو شرعا څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دقتل امر په خپله گناه کبیره ده برابره خبره ده چی په هغې سره قتل وشی اوکه ونه شی، لهذا په آمر باندې توبه او استغفار کول لازم دی اومامورین چونکه مباشرین دقتل دی له هغوئ څخه دې قصاص واخستل شی اگر که هغوئ غیر مقصود قتل کړې دې، ځکه چی دا قتل عمد دې، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۵ محرم سنه ۱۳۹۹هـ

## ضرب بالمثقل په قصد دقتل موجب دقصاص دی

**سوال**: امام ابوحنیفه رحمه الله دقتل شبه عمد تعریف داسې کړې دې چی: عمدا په داسې شی قتل کړې شی چی نه وسله وی اونه قائمقام دوسلې، کما فی هدایه ص۵۶۰ ج۴ او صاحبین دا تعریف کړې دې: ان یتعمد ضربه بما لا یقتل به غالبا (هدایة ص۵۶۱ ج۴)

دامام شافعی صاحب مذهب هم دصاحبینو مطابق دی.

لهذا په لویه ډبره یالوی لرگی سره قتل کول یا په ډیرو اوبوکښې غرق کول یا دغره نه راغورځول غرض دا چی په داسې شی چی اعضاء نه قطع کوی قتل کول دامام صاحب په نزد شبه عمد دې او دصاحبینو په نزد دا قتل عمد دې، امام صاحب اسلحه اونورشیان دقتل دنیت مظهر گرځولی دی، لهذا په وسله سره قتل به قتل عمد وی او په غیر سلاح سره قتل به قتل شبه عمد وی او دصاحبینو په نزد: مایقتل به غالبا قتل عمد دې اومالا یقتل به غالبا شبه عمد دې.

اوس پوښتنه داده چی په دې دور کښې دقتل بالمثقل واقعات په کثرت سره دی اوهمدارنگه قتل په آلهٔ جارحه سره روزمره معمول گرځیدلې، دامام صاحب قول ته که دملکی قانون شکل

ورکړل شی نو خطره ده چی دقتل په واقعاتو کښې به کثرت راشی ځکه چی دشبه عمد سزا دیت دې او اوس خوله خلکو سره روپۍ ډیرې دی، بیا په روپو ادا کولو کښې سهولت هم زیات دې چی اول خو به عاقله دیت اداء کړی او علاوه لا داچی تر دریو کلونو پورې مهلت هم شته.

ددی بالمقابل دصاحبینو تعریف ددې دور مناسب دې او د شرح عقود رسم المفتی دلاندې عبارت څخه واضحه ده چی دقضاء په معامله کښې دامام ابویوسف په قول دې فتوی ورکولې شی.

وفی القنیة من باب المفتی: الفتوی علی قول ابی یوسف رحمه الله تعالی فیما یتعلق بالقضاء لزیادة تجربته کذا فی البزازیة من القضاء. (شرح عقود رسم المفتی ص۲۹)

همدارنگه ددغه کتاب په ص ۱۷ صفحه کښې تصریح ده چی دصاحبینو قول په حقیقت کښې دامام صاحب ذکوم اصل فرع وی، خپله امام صاحب هم دقتل شبه عمد لپاره دا شرط لګولې دې چی د ضارب قصد صرف تادیب وی اتلاف نفس نه وی چی دهغه حاصل دادې چی که چیرته قصد د اتلاف نفس وی نو بیا قتل بالمثقل دهغه په نزد هم په عمد کښې داخل دې لکه چی په لاندې عبارت کښې ددې تصریح ده : یشترط عند ابی حنیفة رحمه الله تعالی ای فی شبه العمد ان یقصد التادیب دون الاتلاف (ردالمحتار ص۳۵۱ ج۵)

په اعلاء السنن کښې هم په ۸ جلد کښې قتل بالمثقل بقصد القتل باندې دوجوب قصاص ذکر موجود دې ددې تفصیل په نظر کښې نیولو سره که په دور حاضر کښې دصاحبینو په قول فتوی ورکړل شی نو دلاندې احادیثو به څه جواب ورکولې شی :

۱ــ قال رسول الله صلی الله علیه وسلم قتیل السوط والعصا شبه العمد.

۲ــ قال رسول صلی الله علیه وسلم الا ان قتیل خطأ العمد بالسوط والعصا والحجر فیه دیة مغلظة مائة من الابل فیها اربعون خلفة فی بطونها اولادها (احکام القرآن باب شبه العمد ص۲۲۹ ج۲) بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : د امام صاحب په نزد په شبه العمد کښې دقصد التادیب دون الاتلاف شرط نص دې پدې خبره چی ضرب بالمثقل بقصد الاتلاف عمد دې، بیا د علم قصد دوه صورتونه دی یو دا چی قاتل په خپله اقرار وکړی، او دویم داچی دقرائن ظاهره موجبه یقین موجود وی.

قال العلامة الرافعی رحمه الله تعالی: (قوله ای فی شبه العمد ان یقصد التادیب الخ) یوافقه ما قاله الزیلعی والمقاسمی هذا النوع شبه عمد لان فیه قصد الفعل لا القتل فکان عمدا باعتبار نفس الفعل وخطأ باعتبار القتل اه ویوافقه ما ذکره ایضا فی الاستدلال لمذهب الامام رحمه الله تعالی وعلی هذا اذا اقر بقصد قتله

عما ذكر يقتص منه عنده. (التحرير المختار ص۳۲۲ج۲)

په مذكوره جزئيه كښې اګر چه صرف اقرار دقصد مذكور دې مګر قرائن ظاهره هم په اثبات دقصد كښې موثر ګرځول شوي دي، كما في كتاب الطلاق، بلكه قرائن قاطعه خو موجب دحكم ګرځولې شوي دي.

په قرآن كريم كښې چې دقتل خطاء اوقتل عمد كومې سزاګانې ذكر شوي دي هغه په دې نص دي چې دغير محدد قتيل هم په قصد دقتل قتيل عمد دې، له دې څخه معلومه شوه چې په سوال كښې ذكر شوي احاديثو كښې قتل بلا قصد مراد دې، لهذا دقاضي په تحقيق كښې كه قصد دقتل ثابت شي نو د قصاص حكم دې وكړي. والله سبحانه وتعالى اعلم. ۳ربيع الاول سنـــ ۹۹هـ

## په آمر باندې قصاص نشته

**سوال**: د يوه مِل (فابريكې) مالك دځو بد معاشانو په ذريعه د مزدورانو مشرقتل كړ، آيا د مقتول وارثانو ته د مِل (فابريكې) دمالك يا دهغه دكوم زوئ وژل جائزدي اوكه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: اصل قاتل به په هغه معهودو شرائطوقتل كولې شي چې د «حق قصاص د تفصيل» ترعنوان لاندې تيرشول ، دقتل د امر وركونكي قتل كول نه دي جائز، والله سبحانه وتعالى اعلم ۵صفر سنـــ ۱۴۰۱هـ

## له غير وارث سره صلح كول مسقط د قصاص ندي

**سوال**: ديوه مقتول وارثان په لاندې ډول دي:

والده، ښځه، درې خويندې ، يو نابالغ زوئ اويو دماما د زوئ زوئ چې دمقتول اوښي هم دې دمقتول والدې اوښځې دده اوښي ته د قاتل سره د دعوې چلولو لپاره بحيثيت مدعي مختار نامه وركړه چې ته زمونږ له طرف مدعي يې، اوس كه چيرته له قاتل سره دصلح صورت راشي نو آيا دا مدعي بغير د رضامندي دنورو وارثانو صلح كولې شي اوكه نه؟ او له نورو ورثه و څخه كوم يو بغير د رضا دباقي وارثانو صلح كولې شي ؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دقصاص طلب د وارثانو حق دې لهذا كه له هغوئ څخه يې يو هم معاف كړي يا صلح ورسره وكړي نو قصاص ساقطيږي اوكوم ورثه چې راضي نه دي، دهغو دحصې په ديت وركوي.

په سوال كښې دمذكوره اشخاصو نه دماما دزوئ زوئ وارث ندې لهذا دهغه صلح كول يا معاف كول غير معتبر دي.

قال العلامة التمرتاشي رحمه الله تعالى: ويسقط القود بموت القاتل وبعفو الاولياء وبصلحهم على مال ولو

للیلا ویجب حالا ویصلح احدهم وعفوه ولمن بقی حصته من الدیة (رد المحتار ص۳۵۲ج۵)

قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله القود یثبت للورثة) قال فی الخانیة یستحق القصاص من یستحق میراثه علی فرائض الله تعالی یدخل فیه الزوج والزوجة اهـ (رد المحتار ص۳۶۳ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.    ۸ربیع الثانی سنـــ ۱۴۰۳هــ

## په وارثانو کښې که څوک نابالغ وی نو دقصاص حکم

**سوال**: که د مقتول په وارثانو کښې یویا دوه کسان نابالغ وی نو دقصاص اخستلو لپاره به دهغوئ تربلوغ پورې انتظار کولې شی اوکه فی الحال قصاص اخستل جائزدی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: فی الحال قصاص اخستل جائزدی، دماشومنو دبلوغ انتظار ضروری ندې.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: وللکبار القود قبل کبر الصغار خلاف لهما والاصل ان کل مالایتجزی اذا وجد سببه کاملا ثبت لکل علی الکمال کولایة انکاح وامان الا اذا کان الکبیر اجنبیا عن الصغیر فلا یملك القود حتی یبلغ الصغیر اجماعا زیلعی فلیحفظ.

وقال العلامع ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله خلافا لهما) فعندهما لیس لهم ذلك الا ان یکون الشریك الکبیر ابا للصغیر نهایة وقاساه علی ما اذا کان مشترکا بین کبیرین واحدهما غائب (قوله والاصل الخ) استدلال لقول الامام قال فی الهدایة وله انه حق لایتجزی لثبوته بسبب لایتجزی وهو القرابة واحتمال العفو من الصغیر منقطع ای فی الحال فیثبت لکل واحد کملا کما فی ولایة الانکاح بخلاف الکبیرین لان احتمال العفو من الغائب ثابت اهـ (رد المحتار ص۳۲۴ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم.    ۱۸ربیع الثنی سنـــ ۱۴۰۳هــ

## دحکومت له فیصلی نه بغیر قصاص اخستل

**سوال**: زمونږ په زمانه کښې حکومت داسلامی اصولو موافق فیصله نه کوی آیا دمقتول اولیاء دحکومت له فیصلې نه بغیر له قاتل څخه قصاص اخستلې شی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: د اولیاؤ په خپله قصاص اخستل په یو څوشرائطو مقید دی چې دهغو تحقق گران دې لهذا احتیاط لازم دې دهغو شرائطو تفصیل د،حق قصاص تفصیل، ترعنوان لاندې تیرشوې دې والله سبحانه وتعالی اعلم    ۶ذی القعده سنـــ ۱۴۰۹هــ

## دقاتل رشته دار قتلول جائز ندی

**سوال** : آیا دمقتول دوارثانو لپاره داجائزدی چی دمقتول په بدل کښې دقاتل له قریبانو څخه کوم یوقتل کړی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : نه ! دا جائزندی. والله سبحانه وتعالی اعلم.

۶ذی القعده سنه ۱۴۰۹هـ

## له امام څخه به هم قصاص اخستل کیږی

**سوال** : که امام یعنی خلیفه څوك قتل کړی نو آیا له ده څخه به قصاص اخستل کیږی اوکه نه؟ که قصاص وی نوله ده څخه به قصاص څوك اخلی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : له خلیفه څخه به هم قصاص اخستل کیږی او دهغه حق له ولی دمقتول سره دې. خلیفه به خپله ځان هغه ته حواله کوی اوکه نه نو دمقتول ولی دمسلمانانو په قوت سره له خلیفه څخه قصاص اخستلې شی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: والخلیفة الذی لاوالی فوقه یؤخذ بالقصاص والاموال لانهما من حقوق العباد فیستوفیه ولی الحق اما بتمکینه اوبمنعة المسلمین.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله اما بتمکینه) ای تمکین الخلیفة ولی الحق من الاستیفاء (رد المحتار صه۱۵۸ج۳)

وقال الامام ابن الهمام رحمه الله تعالی: تحت قوله (لایؤاخذبه الاالقصاص والمال) بخلاف حقوق العباد کالقصاص وضمان المتلفات لان حق استیفاءها لمن له الحق ویکون الامام فیه کغیره وان احتاج الی المنعة فالمسلمون منعة فیقدر بهم علی الاستیفاء فکان الوجوب مفیدا (فتح القدیر صه۵ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۳رجب سنه ۱۴۱۷هـ

## په قتل بالاکراه کښې قصاص په چاباندې دې؟

**سوال** : د اکرا ه په صورت کښې قصاص په چا باندې دې په مُکرِه اوکه په مُکرَه باندې؟ که مکرِه قاضی یاسلطان وی دهغه حکم هم دعام مکرِه په شان دې اوکه نه مختلف دې؟ بینوا توجروا

**الجواب باسم ملهم الصواب** : په اکراه ملجئ کښې قصاص په مکرِه یعنی په آمر باندې دې او په غیرم ملجئ کښې په مامور باندې دې، په سلطان اوغیرسلطان کښې کوم فرق نشته

قال العلامة الحصکفی رحمة الله تعالی: ویقاد فی القتل العمد المکره بالکسر لومکلفا علی مافی المبسوط

خلافا لما فی النهایة فقط لان القاتل کالآلة واوجبه الشافعی رحمه الله تعالی علیهما ونفاه ابویوسف رحمه الله تعالی عنهما للشبهة.

وقال العلامة الطحطاوی رحمه الله تعالی: قوله لان القاتل کالآلة) وهذا قول الامام ومحمد رحمهما الله تعالی قال فی التبیین لهما انه محمول علی القتل بطبعه ایثار الحیاته فیصیر آلة للمکره فیما یصلح ان یکون آلة له وهو الاتلاف دون الاثم وهذا لان الآلة هی التی تعمل بطبعها کالسیف فان طبعه القتل عند الاستعمال فی محله وکالنار فان طبعها الاحراق وکالماء فان طبعه الاغراق وباستعمال الآلة یجب القصاص علی المستعمل فکذا هذا اه (حاشیة الطحطاوی علی الدر ص۲۶۰ ج۴)

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله ویقاد فی القتل العمد المکره فقط) یعنی انه لایباح الاقدام علی الفعل بالملجئ ولو قتل اثم ویقتص الحامل ویحرم المیراث لو بالغا ویقتص المکره من الحامل ویرمها شرته لاحمیة (ردالمحتار ص۸۵ ج۵)

وقال رحمه الله تعالی ایضا: وحکمه اذا حصل بملجئ ان ینقل الفعل الی الحامل فیما یصلح ان یکون المکره آلة للحامل کانه فعله بنفسه کاتلاف النفس والمال ومالایصلح ان یکون آلة له اقتصر علی المکره کانه فعله باختیاره مثل الاقوال والاکل (ردالمحتار ص۸۰ ج۵) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۶ ذی الحجة سنة ۱۴۱۷ھ

## دعمد د جارحې آلې تحقیق

**سوال**: آیا دقتل عمد دتحقیق لپاره دقتل د آلې محددوالې اواوسپنه والې کیدل ضروری دی اوکه نه؟ تفصیل یې ولیکئ مهربانی به مووی ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دتحقیق قتل عمد لپاره د آلې اوسپنه والې شرط ندې، نورشیان لکه لرګی، ډبره اوبانس وغیره هم کافی دی، البته په اوسپنه یا بل معدنی شی کښې لکه پیتل وغیره کښې دمحدد کیدو شرط نشته اوپه لرګی وغیره کښې محدد کیدل ضروری دی همدارنګه اور هم جارحه آله ده.

قال العلامة ابوبکر بن علی الحداد رحمه الله تعالی: (قوله قال لعمد ما تعمد ضربه بسلاح اوما اجری مجری السلاح فی تفریق الاجزاء کالمحدد من الخشب والحجر والنار) العمد ما تعمد قتله بالحدید کالسیف والسکین والرمح والخنجر والنشابة والابرة والاشفاء وجمیع ما کان من الحدید سواء کان یقطع اویبضع اویرض کالسیف ومطرقة الحداد والزبرة وغیر ذلک سواء کان الغالب منها الهلاک ام لا ولایشترط الحد فی الحدید فی ظاهر الروایة

لانه وضع للقتل قال الله تعالى وانزلنا الحديد فيه بأس شديد وكذا ما يشبه الحديد كالصفر والرصاص والذهب والفضة سواء كان يبضع اويرض حتى لو قتله بالمثقل منها يجب عليه القصاص كما اذا ضربه بعمود من صفر اورصاص (قوله اوما اجرى مجرى السلاح فى تفريق الاجزاء) كالزجاج والليطة والحجر المحدد وكل ما كان يقع به الزكاة اذا قتله به ففيه القصاص (الجوهرة النيرة ص۲۰۳ ج۲) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۵ ذی الحجة سنـــ۱۴۱۷هـ

## په قصاص کښې دشهادت پټول جائز ندی

**سوال**: شاهد ته په مقدمه دقصاص کښې شهادت پټول جائزدی اوکه نه؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: که دمقتول له ولی سره څوك شاهدان نه وی نو دهغه له حقيقتا مطالبې څخه بغير هم شهادت ورکول واجب دی، اوپټول ئی جائز ندی، ليکن دا وجوب په اووه شرطونو مشروط دې.

۱- قاضی عادل وی.

۲- دشاهد استوګنه دمحکمې څخه دومره فاصله کښې وی چی سهار لاړشی نو ماښام بيرته خپل کورته رسيدلی شی.

۳- دشهادت دقبليدو يقين وی.

۴- دمدعی له طرفه دشهادت مطالبه وی يا حقيقتاً لکه چی شاهدته علم وی اويا حکما لکه چی شاهدته ددې علم نه وی او دعدم شهادت په وجه دمدعی دحق دضائع کيدوخطره وی.

۵- بل هيڅوك شاهدنه وی.

۶- شاهدته دمشهود به دبطلان علم نه وی.

۷- دشهادت علی الاقرار په صورت کښې د اقرار په وجه دخوف علم نه وی.

قال العلامة الحصكفی رحمه الله تعالى: ويجب اداؤها بالطلب ولو حكما كما مر لكن وجوبه بشروط سبعة مبسوطة فى البحر وغيره منها عدالة قاض وقرب مكانه وعلمه بقبوله اوبكونه اسرع قبولا وطلب المدعى لو فى حق العبد ان لم يوجد بدله اى بدل الشاهد لانها فرض كفاية تتعين لو لم يكن الا شاهدان لتحمل اواداء.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله كما) وهو قوله اوخوف فوت حقه (قوله وقرب مكانه) فان كان بعيدا بحيث لا يمكنه ان يغدو الى القاضی لاداء الشهادة ويرجع الى اهله فى يومه ذلك قالوا لا يأثم لانه يلحقه ضرر بذلك قال تعالى ولا يضار كاتب ولا شهيد بحر (قوله ان لم يوجد بدله) هذا هو خامس الشروط واما الاثنان الباقيان فهما ان لا يعلم بطلان المشهود به وان لا يعلم ان المقر اقر خوفا ح (ردالمحتار ص۴۰۰ ج۴) والله سبحانه وتعالى اعلم.

۲۵ ذی الحجة سنـــ ۱۴۱۷هـ

# کتاب الدیات والحدود

## ددیت اوعاقلې تفصیل

**سوال**: دقتل خطاء په صورت کښې دقاتل په عاقله دیت لازمیږی، اوس پوښتنه داده چې دیت په څومره وی؟ او د هغه د اداء کولو طریقه به څه وی؟ او له عاقلې څخه څه مراد دی؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: ددیت درې صورتونه دی:

**اول**: لس زره درهمه سپین زر یا دهغو قیمت، یو درهم «۳،۴۰۲» گرامه کیږی او لس زره درهمخ «۳۴،۱۲» کلوگرامه کیږی.

**دویم**: زر دیناره سره زر یا د هغې قیمت، یو دینار «۴،۸۶» گرامه کیږی او زر دیناره «۴،۸۶» کلوگرامه کیږی.

**دریم**: سل اوښان یا دهغې قیمت، اوښان په پنځه قسمه دی.

۱- یوکلنې شل جونگانې.

۲- یوکلن شل نران جونگیان.

۳- دوه کلنې شل جونگیانې.

۴- درې کلنې دیرش اوښې.

۵- څلور کلنې شل اوښې.

دامذکوره تعداد د نارینه دیت دې، دښځې دیت دهغې نیمایی دې، په دې کښې اختلاف دې چې د دیت له دغو انواعو څخه دیوه دتعین اختیار قاتل لره دې اوکه قاضی لره ؟ قول اول راجح معلومیږی له دې سره بیا هم که قاضی یی تعین وکړی نو جائزاونافذ به وی.

## دعاقلې تفصیل

که قاتل له اهل دیوان څخه وی نو دهغه عاقله اهل دیوان دی یعنی هغه عاقل اوبالغ سړی چې دهغوئ نوم په دولتی دفتر کښې ددې لپاره درج وی چې هغه ته دکوم خدمت په عوض کښې یا په وجه دضرورت له دولتی خزانې څخه تنخوا ورکول کیږی اوهغه ته له دې وجی نه اهل عطاء هم ویل کیږی، له ټولو ړومبی داهل دیوان هغه جماعت چې له هغه سره دقاتل تعلق دې ، ددیت په اخستلو کښې د آینده تفصیل مطابق که چیرته دا جماعت کافی نه وو نو ددغه څخه چې کوم پورته جماعت دې هغه به شاملولې شی بیاله هغه څخه پورته جماعت.

په اوسنی دورکښې په دولتی دفترونو کښې دښځوملازمت عام دې په نظر دتفقه په دیت کښې دغه دیوانی ښځې هم شاملول په کار دی.

دعاقلې مدار په تناصر باندې دې، په دې زمانه کښې تناصر په څو صورتونو باندې دې، مثلا سیاسی جماعتونه ، حرفت ، صنعتکاری ، دتجارت اومزدورانو تنظیمونه، لهذا که قاتل دکوم سیاسی جماعت یا دکوم تنظیم کارکن وی نو د هغه عاقله به داجماعت یا تنظیم وی.

که قاتل له اهل دیوان څخه نه وی اودکوم سیاسی جماعت کارکن هم نه وی نو دهغه عاقله دهغه عصبات دی اوپه هغو باندې ددیت وجوب په ترتیب د ارث باندی لازم دې، اول زامن بیا پلاران بیا ورونه بیا وریرونه بیا ترونه او دتره زامن .......

له قاتل څخه به هم ددیت حصه اخستلې شی که هغه له اهل دیوان څخه وی اوکه نه وی

**واضطربت اقوال الفقهاء رحمهم الله تعالى فى ذلك والصحيح ماحررنا.**

په ښځوپه لیونیانو وماشومانو دیت نشته اگرکه قاتل وی.

که دقاتل عاقله نه وی نو له بیت المال څخه به په دریو کالو کښې دیت ورکولې شی په دې شرط چی قاتل مسلمان وی او د هغه کوم وارث معروف نه وی، مثلا لقیط وی یا کوم حربی اسلام راوړې وی او راغلې وی که قاتل ذمی وی یا دهغه کوم معروف وارث وی اگر که څومره هم بعیدوی یا په وجه د رق یا کفر محروم وی، نو دیت به یی له بیت المال څخه نه وی بلکه دقاتل په خپل مال کښې به وی، همدارنگه ددیت د بیت المال نه دکیدو په صورت کښې که بیت المال موجود نه وی یا په هغه کښې ددې گنجائش نه وی نو دیت به دقاتل په مال کښې وی چی په درې کالو کښې به ترې اخستلې شی.

## د دیت د اخستلو طریقه

دیت به په دریو کالو کښې اخستلې شی، له یوه شخص څخه به په کال کښې یونیم (۱۱/۲-۱) درهم یا ((۴،۵۳۶)) گرامه نه زیات نه اخستل کیږی.

**قال الامام قاضيخان رحمه الله تعالى: ويدخل الاباء والابناء فى العاقلة. (خانيه بهامش الهنديه ص۴۲۹ ج۳)**

**وقال العلامة ابو السعود رحمه الله تعالى: (قوله فقيل يدخلون) لقربهم وقيل لايدخلون لان الضم لنفى الحرج حتى لايصيب كل واحد اكثر من ثلاثة اواربعة وهذا المعنى انما يتحقق عند الكثرة والاباء والابناء لايكثرون كذا فى الهداية والراجح لجزم قاضيخان بان القاتل وابنه من جملة العواقل ولم يحك فيه خلافا (فتح المعين ص۵۲۵ ج۳)**

**وقال العلامة قاضى زاده الافندى رحمه الله تعالى: (قوله وقيل لا يدخلون لان الضم لنفى الحرج حتى لايصيب كل واحد اكثر من ثلاثة واربعة وهذا المعنى انما يتحقق عند الكثرة والاباء والابناء لايكثرون) اقول**

فیه کلام وهو ان عدم کثرة الاٰباء مسلم واما عدم کثرة الابناء ککثرة الاخوة فممنوع کیف واخوته ابناء ابیه فاذا جاز ان یکثر ابناء ابیه فلم لا یجوز ان یکثر ابناء نفسه فتامل (نتائج الافکار ص۳۳۰ج۹)

وقال العلامۃ ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله واٰباء القاتل وابناؤه لا یدخلون فی العاقلة وقیل یدخلون (ردالمحتار ص۳۱۱ج۵)

وقال العلامة الرافعی رحمه الله تعالی: (قوله واٰباء القاتل وابناؤه لا یدخلون فی العاقلة وقیل یدخلون) قال الزیلعی رحمه الله تعالی واختلفوا فی اٰباء القاتل وابنائه قیل یدخلون لقربهم وقیل لا یدخلون لان الضم لدفع الحرج حتی لا یصیب کل واحد اکثر من اربعة وهذا المعنی انما یتحقق عند الکثرة والاٰباء والابناء لا یکثرون اه ولم یظهر التعلیل الثانی ثم رایته ف تکملة الفتح نظر فیه بان اخوته ابناء ابیه وجاز ان یکثروا فلم لا یجوز ان یکون ابناؤه کذلک اه (التحریر المختار ص۳۴۰ج۲)

وقال ملك العلماء الکاسانی رحمه الله تعالی: ثم الوجوب علی القاتل فیما تتحمله العاقلة قول عامة المشائخ وقال بعضهم کل الدیة فی هذا النوع تجب علی الکل ابتداء القاتل والعاقلة جمیعا والصحیح هو الاول لقوله فی اهله ومعناه فلیتحرر ولیؤد وهذا خطاب للقتل لا للعاقلة علی ولی ان الوجوب علی القاتل ولما ذکرنا ان سبب الوجوب هو القتل وانه وجد من القاتل لا من العاقلة فکان الوجوب علیه لا علی العاقلة وانما العاقلة تتحمل دیة واجبة علیه ثم دخول القاتل مع العاقلة فی التحمل مذهبنا وقال الشافعی رحمه الله تعالی لا یدخل معهم (بدائع ص۲۵۵ج۷)

وقال ایضا: ویدخل القاتل مع العاقلة ویکون فیما یؤدی کاحدهم لان العاقلة تتحمل جنایة وجدت منه وضمانا وجب علیه فکان هو اولی بالتحمل (بدائع ص۲۵۶ج۷)

وقال العلامۃ ابن عابدین رحمه الله تعالی: (قوله والقاتل عندنا کاحدهم) یعنی اذا کان من اهل العطاء اما اذا لم یکن فلا شئ علیه ومن الدیة عندنا ایضا ذکره فی المبسوط وعند الشافعی رحمه الله تعالی لا شئ علیه مطلقا معراج (ردالمحتار ص۳۱۲ج۵)

وقال العلامة الرافعی رحمه الله تعالی: (قوله ذکره فی المبسوط) وفی العنایة یعنی اذا کان القاتل من اهل الدیوان اما اذا لم یکن فلا شئ علیه عندنا من الدیة کما لا تجب عند الشافعی رحمه الله تعالی لکن تعلیل المسالة یفید الدخول مطلقا (التحریر المختار ص۳۴۰ج۲)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله فيشاركهم على الصحيح) تعدم فى القسامة انه اختيار المتاخرين ومشى فى الهداية هنا على عدم المشاركة قال فى الكفاية وهو اختيار الطحاوى وهو الاصح وهو اصل رواية محمد رحمه الله تعالى اهـ لكن ذكر فى العناية ان ماتقدم انما هو فيما اذا وجد القتيل فى دار امرأة فادخلها المتاخرون مع العاقلة لتقديرها قاتلة بسبب وجوب القسامة اما ما هنا هو فيما اذا كانت قاتلة حقيقة والفرق ان القسامة تستلزم وجوب الدية على المقسم اما بالاستقلال واما بالدخول فى العاقلة عندنا بالاستقرار وقد تحقق الملزوم فتحقق اللازم بخلاف القتل مباشرة فانه قد لايستلزم الدية اهـ ملخصاً وعليه فليس فى المسألة اختلاف تصحيح لاختلاف الموضوع فتامل. (ردالمحتار صـ۴۱۲ جـ۵)

قال فى الهندية: وليس على النساء والذرية ممن كان له عطاء فى الديوان عقل وعلى هذا لوكان القاتل صبيا اوامرأة لاشئ عليه من الدية كذا فى الكافى (عالمگيرية صـ۸۰ جـ۶)

قال العلامة الحصكفى رحمه الله تعالى: وتقسم الدية عليهم فى ثلاث سنين لايؤخذ فى سنة الادرهم اودرهم وثلث ولم تزد على كل واحد من كل الدية فى ثلاث سنين على اربعة على الاصح فان لم تسع القبيلة لذلك ضم اليهم اقرب القبائل نسبا على ترتيب العصبات.

وقال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: (قوله على الاصح) وقيل يؤخذ من كل واحد فى كل سنة ثلاث دراهم اواربعة كما فى الملتقى (ردالمحتار صـ۴۱۱ جـ۵) والله سبحانه وتعالى اعلم. ۲ محرم سنہ ۸۶ھ

## که ماشوم له مور لاندې شو او مړ شو

**سوال**: يوې زنانه خپل زوئ له ځان سره ويده کړې وو دخوب په وخت کښې په غيرشعوري طور ماشوم دهغې له اړخ نه لاندې راغلې وو او ساېې بنده شوې وه او وفات شوې وو، ددې ښځې لپاره څه حکم دې؟ بينوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: دهغې داحکامو تفصيل دا دې.

۱- مور د بې احتياطۍ له وجې سخته ګناه ګاره شوه په هغې توبه واجبه ده.

۲- کفاره: ديو مؤمن غلام آزادول، که په دې يې قدرت نه وي نو دوه مياشتې مسلسل روژې نيول، دقمرې مياشتې له اول تاريخ نه به يې شروع کړي نو دمياشتې له حساب څخه به دوه مياشتې حساب شي اوکه نه نو شپېته روژې دې پوره کړي

۳- مور دماشوم له ميراث څخه محرومه ده. ديت هم دماشوم په ميراث کښې داخل دې

۴- ددې په عاقله باندې ديت واجب دې. والله سبحانه وتعالى اعلم ۲ محرم سنہ ۱۳۸۶ھ

## د قتل خطاء حکم

**سوال** : د واده په یوه دستوره کښې څه خلکو هوائی ډزی وکړې، اتفاقا یوسړې په ګولئ ولګیده او مړ شو. ددې څه حکم دې؟ ددې دیت واجب دې اوکه نه ؟ که دټول دیت پرځای په پنځه لس زره روپو اتفاق راشی نو صحیح دې اوکه نه ؟ یو مولوی صاحب وایی چی په دیت یا په یو څه پیسو حکم هلته کیږی چی قصدا یی قتل کړې وی اوکه قصدا یی قتل کړې نه وی نو روپئ ورکول او اخستل جائزندی، نو په شریعت کښې ددې څه حکم دې؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : داقتل خطاء دیېچی دهغې احکام دادی :

۱- په عاقله باندې دیت دې.

۲- په قاتل باندې کفاره ده، یعنی د یومؤمن غلام آزادول، یا که ددې قدرت نلری نو دوه میاشتې مسلسل روژې نیول.

۳- توبه او استغفار کول.

په سوال کښې د ذکر شوې صلحې صورت جائزدې لیکن پیسې دصلح په مجلس کښې ورکول ضروری دی.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: وموجبه ای موجب هذا النوع من الفعل وهو الخطا وما جری مجراه الکفارة والدیة علی العاقلة والاثم دون اثم القتل اذا الکفارة تؤذن بالاثم لترک العزیمة (ردالمحتار ص۳۴۲ ج۵)

وقال فی الصلح: لوصالح بغیر مقادیره صح کیف ما کان بشرط المجلس لئلا یکون دینا بدین (رد المحتار ۴۷۶ ج۴) والله سبحانه وتعالی اعلم. غرة ذی القعدة سنة ۸۹ھ

## په قتل خطاء کښې له پلار څخه دیت اوکفاره نه ساقطیږی

**سوال** : لکه په قتل عمد کښې چی له پلار څخه قصاص ساقطیږی همداسې په قتل خطاء کښې ترینه دیت اوکفاره هم ساقطیږی اوکه نه ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: له والدینو څخه صرف قصاص ساقطیږی دیت او کفاره نه ساقطیږی

قال فی الهندیة: وان کان الوالد قتل ولده خطا فالدیة علی عاقلته وعلیه الکفارة فی الخطا (عالمگیریة ص۲ ج۶) والله سبحانه وتعلی اعلم. ۱۴ صفر سنــ۹۷ھـ

## قا ضی ته د دیت دتاجیل د ساقط کولو اختیار نشته

**سوال** : آیا قاضی په قتل خطاء یا شبه عمد کښې د درې کالو تاجیل ختمولې شی او دیت حالا واجب کولې شی اوکه نه؟ یوخو دا چې د مقتول د ولی نزدې رشته دارانو ته صدمه رسیدلی وی او

دویم دا چې هغه به دیت ته تر دریو کلونو پورې انتظارکوی، که گنجائش وی نو هغه راته ولیکئ ، بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دقتل خطاء په دیت کښې تاجیل په اجماع دصحابه کرامو ثابت دې لهذا قاضی ته دهغې داسقاط اختیار نشته، البته په قتل شبه عمد کښې د امام شافعی په نزد تاجیل نشته او دحنفی امامانو په تاجیل اتفاق دې، لهذا که قاضی شافعی المسلك وی اوهغه ددیت حالاً فیصله وکړی نو نافذه به وی.

قال الامام الکاسانی رحمه الله تعالی: واختلف فی شبه العمد والعمد الذی دخلته شبهة وهو الاب اذا قتل ابنه عمدا قال اصحابنا رحمهم الله تعالی انها تجب مؤجلة فی ثلاث سنین الا ان دیة شبه العمد تتحمله العاقلة ودیة العمد فی مال الاب وقال الشافعی رحمه الله دیة الدم کدیة العمد تجب حالا وجه قوله ان سبب الوجوب وجد حالا فتجب الدیة حالا اذالحکم یثبت علی وفق السبب هو الاصل الا ان التاجیل فی الخطا ثبت معزولا به عن الاصل لاجماع الصحابة رضی الله تعالی عنهم ایثبت معلولا بالتخفیف علی القاتل حتی تحمل عنه العاقلة والعامد یستحق التغلیظ ولهذا وجب فی ماله لا علی العاقلة ولنا ان وجوب الدیة لم یعرف الابنص الکتاب العزیز وهو قوله تبارك وتعالی ومن قتل مؤمنا خطا فتحریر رقبة مؤمنة ودیة مسلمة الی اهله والنص وان ورد بلفظ الخطا لکن غیره ملحق به الا انه مجمل فی بیان القدر والوصف فبین علیه الصلوة والسلام فی النفس المؤمنة مائة من الابل وبیان الوصف وهو الاجل ثبت باجماع الصحابة رضی الله عنهم بقضیة سیدنا عمر رضی الله تعالی عنه بمحضر منهم فصار الاجل وصفا لکل دیة وجبت بالنص (بدائع صـ ۲۵۶ جـ۷) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۳ ربیع الاول سنه ۹۹ھ

## په بس (گاډی وغیره) دوهل شوی شخص حکم

**سوال** : دبس یا بل موټر د وهلو له وجې چې څوك مړ شی نو دا به په قتل خطاء کښې شماریږی اوکه په بل کوم قسم کښې ؟ په ډریور کفاره اودهغه په عاقله دیت واجب دې اوکه دهغه حکم څه بل شان دې ؟ دعاقلې تفصیل نن سبا څه دې؟ بینو اتوجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا قتل خطاء دې په ډریور باندې کفاره اوپه عاقله باندې دیت واجب دې دعاقلې اودیت تفصیل د (دیت او عاقلې تفصیل ) تر عنوان لاندې تیرشوې دې، والله سبحانه وتعالی اعلم

غره ربیع الثانی سنه ۱۳۹۹ھ

## دلاس د قطع کولو نصاب

**سوال** : حکومت دا قانون جوړکړې دې چې دسارق (غله) د لاس پریکولو لپاره ۴،۴۵۷ گرامه

سره زر یعنی دنیمی تولې نه لږ څه کم مالیت ضروری دې، په دې باندی مونږ ته کافی اندازه تشویش پیداشوې دې چی د مروجه نوټ په اعتبار ددې تعداد اوحساب به څنګه وی ؟ هرشخص دهغه دمالیت اندازه نشی لګولې.

چونکه فقهای کرامو دقطع ید لپاره کم نه کم لس درهمه مقدار متعین کړې دې چی د دوه تو لو او اوه نیم ( ۱/۲ - ۷) ماشو دسپینوزرو برابردې کما حرره المفتی الاعظم رحمه الله تعالی فی کتابه (اوزان شرعیه) ص ۱۶نو آیا د فقهاء کرامو ددغې فیصلې په مقابل کښې دحکومت دا قانون جوړول جائزدی اوکه نه ؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : حکومت ته دخلاف شریعت قانون جوړولو هیڅ جواز نشته . دقطع ید نصاب لس درهمه یا یودینار دې درهم۳،۴۰۲ ګرامه سپین زردی او دینار ۴،۸۶ ګرامه سره زردی. دسرو او سپینو زرو قیمت کم اوزیات کیږی ددې وجی نه په نوټ سره دهغه دائمی تعین نشی کیدای، د درهم او دینار تحقیق دبنده په رساله (بسط الباع لتحقیق الصاع) کښې دې، والله سبحانه وتعالی اعلم. جمادی الاولی ۱۴سنه۱۳۹۹ھ

## حدود د سیئاتو (ګناهونو) کفاره نده

**سوال** : آیا حدشرعی مثلا حد قذف، حد شرب خمر، حد زنا جاری کولو نه بعد د جرم مرتکب د آخرت له مواخذې څخه برئ کیږی اوکه د هغه لپاره توبه او استغفار هم ضروری دی ؟

**الجواب باسم ملهم الصواب** : بغیر له توبې نه له اخروی مواخذی څخه نشی خلاصیدای، والله سبحانه وتعالی اعلم ۲۴جمادی الاولی سنه۱۳۹۹ھ

## دچاله لاسه ماشوم وغورځیده اومړشو

**سوال** : یوه شخص دشفقت اومحبت له وجی خپل زوئ سره لوبې کولې چی ناڅاپه یی ماشوم له لاسه وغورځیده اومړشو ، اوس شرعاً دهغه لپاره څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دا قتل جاری مجری دخطاء دې، ددې حکم دادې چې :

۱ ـ توبه. ۲ـ په عاقله باندې دیت. ۳ ـ کفاره. ۴ ـ حرمان عن الارث

## دهغې جماع حکم چې موجب د اسقاط د حمل وی

**سوال** : یوسړی له خپلې حاملې ښځې سره جماع کوله چی دهغې په وجه حمل ضائع شو حالانکه هغه ته معلوم هم وو چی له دې سره حمل ضائع کیږی، نو په دې شخص کفاره لازمه ده اوکه نه؟ په حامله هم کفاره شته اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : که جماع یی په معروفه طریقه کړې وی نو په هغه هیڅ ضمان نشته

اوکه په غیر معروفه طریقه یې کړې وي او زوجې کوم داسې حرکت کړې وي چې هغه عموماً موجب د اسقاط دحمل ګرځي اوپه نیت د اسقاط یې کړې وي نو په عاقله باندې یې ضمان د «غره» واجب دې چې دهغه مقدار دادې ۵۰۰ درهمه یا ۱،۷۰۱ ګرامه سپین زر په یوه کال کښې. حاصل داچې د ښځې دعاقلې دوجوب ضمان لپاره درې شرطونه دي

۱ - داسې حرکت یې کړې وي چې عموما مسقط دحمل وي

۲- بغیر د زوج له اجازې وي

۳- په نیت د اسقاط وي

اوکه زوج داسې حرکت کړې وي چې عموماً مسقط وي، نو دهغه په عاقله دغره ضمان واجب دې په دې کښې نیت داسقاط شرط ندې، والله سبحانه وتعالی اعلم. ۵جمادی الاخره سنه ۱۴۰۲هـ

## عوامو ته دحدودو جاری کولو اختیار نشته

**سوال** : زمونږ والد صاحب تقریبا نن نه شپاړس کاله وړاندې دافغانستان کمونست حکومت ونیوه، ترننه پورې یې هیڅ د ژوند اومرګ معلومات نه کیږي د والدصاحب دګرفتارۍ نه څه وخت بعد زمونږ له مورسره زمونږ تره د زنا ارتکاب وکړ چې هغه «تره» غیر شادي شده وو چې مور خپل ورور او د هغه ښځې اوخپلې لورته د دې خبرې اقرار کړې دې کله چې له تره څخه پوښتنه وشوه نو هغه وویل چې په کور کښې داسې کیږي، ددې زنا له وجې والده حامله شوه، زمونږ بل تره زمونږ مور ددې په بهانه چې زه له یوې نجلۍ سره واده کوم اوته له ما سره لاړه شه او هغه وګوره، دحمل دوضع څخه یې وروسته هغه قتل کړه، هغه اوس هم ددې اعتراف کوي او دا ډیر غټ جهاد بولي، مونږ ورته وویل چې تا خپل ورور ولې قتل نکړ؟ نو هغه وایي چې کله موقع په لاس راشي نوهغه به زه قتل کړم، حالانکه ده ته څو ځله موقع په لاس ورغلې ده اوس چونکه مونږ ځوانان شوي یو د والدې صاحبې د انتقام اخستو لپاره زمونږ د صبر کاسه نوره ډکه شوې ده، اوس مونږ ته دشریعت له نظره ددې زاني او قاتل قتلول جائزدي اوکه نه؟ بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب** : دحدودو د اجراء کولو اختیار له امام اویانائب سره وي عوامو ته دهغو اختیار نه وي.

قال الامام الکاسانی رحمه الله تعالی : واما شرائط جواز اقامتها فمنها ما يعم الحدود كلها ومنها ما يخص البعض دون البعض اما الذی یعم الحدود کلها فهو الامامة وهو ان یکون المقیم للحد هو الامام او من ولاه الامام وهذا عندنا (وبعد اسطر) وبیان ذلك ان ولایة اقامة الحد انما ثبت للامام لمصلحة العباد وهی صیانة انفسهم واموالهم واعراضهم لان القضاة یمتنعون من التعرض خوفا من اقامة الحد علیهم والمولی لا یساوی

الامام فی هذا المعنی لان ذلك یقف علی الامامة والامام قادر علی الاقامة لشوکته ومنعته وانقیاد الرعیة له قهرا وجبرا ولا یخاف تبعة الجناة واتباعهم لانعدام المعارضة بینهم وبین الامام وتهمة المیل والمحاباة والتوانی عن الاقامة منتفیة فی حقه فیقیم علی وجهها فیحصل الغرض المشروع له الولایة بیقین (بدائع الصنائع ص۷،ج۷) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۲۵ ربیع الثانی سنہ ۱۴۱۵ھ

## حدقذف په معاف کولو سره نه ساقطیږي

**سوال**: دقرآن کریم حکم دي چی کوم خلك په پاك دامنو ښځو تهمت ولگوی بیا څلورگواهان رانه ولی هغه اتیا درې اووهئ او دهغو شهادت مه قبلوئ، هغه خپله فاسقان دی اوکه څوك په پاکوسړیو تهمت ولگوی اوبیایی ثابت نکړی نو په هغه هم حد جاری کیږي.

آیا په دې صورت کښې سړیو ته دا حق شته چی عدالت ته فیصله یوسی؟ او آیا دا صحیح ده چی کله مقذوف عدالت ته راشی نو قاذف به مجبورولې شی چی الزام ثابت کړی او د نه ثابتیدو په صورت کښې به په هغه حد جاری کیږي او عدالت ته دراتگ نه وروسته یی نه عدالت معاف کولې شی اونه صاحب دمعاملې اونه په کوم مالی تاوان باندې معامله ختمیدې شی، نه په توبه کولو او معافی غوښتوله له سزا څخه خلاصیدې شی؟. بینوا توجروا.

**الجواب باسم ملهم الصواب**: په سوال کښې مذکور تفصیل صحیح دې سړیوته هم دحدقذف دطلب کولو حق شته د مقذوف یا عدالت په معاف کولو سره حد قذف نه ساقطیږي، البته دمقذوف دعفو په صورت کښې دصاحب حق له طرفه دعدم طلب له وجی حد نه شی ورکولې دعفومقذوف دعدم صحت مطلب دادې چی بعد العفو هم هغه ته د حد دطلب اختیار شته.

قال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: ولا ارث فیه خلافا للشافعی ولا رجوع بعد اقرار ولا اعتیاض ای اخذ عوض ولا صلح ولا عفو فیه وعنه نعم لو عفا المقذوف فلا حد لا لصحة العفو بل لترك الطلب حتی لو عاد وطلب حد شهنی ولذا لا یتم الحد الا بحضرته (ردالمحتار ص۱۶۳،ج۳) والله سبحانه وتعالی اعلم. ۵ ذی الحجه سنه ۹۳ھ

بسم الله الرحمن الرحيم

﴿ وَمَن يُشَاقِقِ ٱلرَّسُولَ مِنۢ بَعۡدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ ٱلۡهُدَىٰ وَيَتَّبِعۡ غَيۡرَ سَبِيلِ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ نُوَلِّهِۦ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصۡلِهِۦ جَهَنَّمَۖ وَسَآءَتۡ مَصِيرًا ﴿١١٥﴾ ﴾

# د ښځې دیت

**په دې رسال کښې له قرآن اوحدیث او د امت له اجماع څخه ثابته کړې شوې ده چې د ښځې دیت د سړي د دیت نیمایی دي**

افاضه: حضرت فقیه العصر دامت برکاتهم

تحریر: حضرت مفتی محمد ابراهیم صاحب صادق آبادی.

*********
********

## د ښځې دیت

دنوې تیرې په فتنو کښې دې فتنی ته هم هوا ورکولې شی چې د ښځې دیت د سړی د دیت برابر دې په دې رساله کښې د دې نظریې بطلان لیکل شوې دې او په قاطعو دلائلو سره ثابته شوې چې د ښځې دیت د سړی، د دیت نیم دې.

- قرآنی آیتونه.
- نبوی ارشادات.
- د صحابه کرامو رضی الله تعالی عنهم اجماع.
- د څلورو واړو امامانو رحمهم الله اجماع.
- د أمة اجماع.
- د ملحدینو دلائل

## د ښځې ددیت په باره کښې د اُمت اجماعی موقف

په دې عقل ورونکې گرانی په دورکښې چی کوم جنس ډیر ارزان او وړیا او ډیر دې هغه جنس دا جتهاد دې چی ددې غوښتل په دې ملك کښې تر ټولو زیات دی، د اجتهاد دمنصب په غاړه اخستلو دلته هیڅ قسم مشکل نشته او د اجتهاد د دائرې لپاره کوم حد بندی نشته.

ددغه تازه وارد شوی بساط اجتهاد ته د اجتهادی آس زغلولو میدان یی زیاتره هغه شرعی مسائل دی چی له اولې ورځې نه پرټول امت کښې متفق علیه را روان دی، په دې وخت کښې مونږ ته نه د هغو مسائلو فهرست وړاندې کول مد نظر دی او نه دهغو جواب ورکول، دهغو فهرست ډیر اوږد دې او په راتلونکی وخت کښې شاید کومه داسې یوه بنیادی مسئله نه وی چی ددوئ له لاس وهنې محفوظه پاتی شی.

په دې وخت کښې چی په کومه مسئله خبرې کول مقصود دی هغه دښځې ددیت مسئله ده، دې ته په اخبارونو کښې هوا ورکولې شی او په داسې رنگ کښې وړاندې کولې شی چی گویا دا یوه نوې پیښه شوې مسئله ده چی په دې کښې له اجتهاد کولو بغیر کومه چاره نشته، حالانکه دفقهې مبتدی طالب هم په دې پوهیږی چی دا یوه اجماعی مسئله ده.

که له دوئ څخه څوك پوښتنه وکړل شی چی د داسی طی شویو مسئلو له نوی سره په څیړلو به ستاسې ددین لپاره کوم خدمت سرته رسول وی ؟ نو دا نادان دوستان جواب ورکوی چې:

«زمونږ علماء دموجوده حالاتونه بې خبره دی اود داسې قسم مسائلو په عالمی سطحه داهل اسلام د بدنامی اودخلکو د اسلام څخه دلرې والی سبب گرځی، له دې وجی نه دمتمدنی دنیا موجوده حالات اوتقاضی مونږ مجبوره وی چی په داسې مسئلوله نوی سره اجتهاد وشی» . تر کومه ځایه چی د اسلامی تعلیماتو په جدید رنگ کښې د وړاندې کولو اوهغه دموجوده عالمی حالاتو او ظروفو هم آهنگ ثابتولو مسئله ده، نو دا فکر بیشکه لائق د ډیروې صفاتو دې، مگر دا لا کومه هوښیاری ده چی د اغیارو دبې بنیاده اعتراضاتونه مرعوب شی او دخپل دین حسینه چهره خرابه او گډه وډه کړی؟ دا د بد نامی ویره اوخوف او د اسلام د دشمنانو په مخ کښې سپر اندازی خو د ماتی خوړلیو ذهنونو او احساساتو آئینه داری ده.

**د دفاع مردانه طریقه خو داده چی:** داسلام د احکامو معقولیت اوپه فطرت باندې دبناء والی ثبوت وشی دهغه په پاکو تعلیماتو د اعتراض کونکو غلطی اودفطرت څخه بغاوت اوحماقت ثابت کړې شی.

که د اجماعی مسئلو قطع اوتراش کولو اودمعترضینو دخواهشاتو سره دهم آهنگ کولو دانوې طریقه اختیار کړل شی نو بیابه له ټول دین څخه لاس پسر کیدل ضروری وی، ځکه چی عناد پرست مخالفین خو په ذات دحضور صلی الله علیه وسلم کښې له پروپاگند او ضرر رسولو څخه نه منع

کیږی نو دهغه راوړې دین به کله معاف کړی ؟ دا یوڅومثالونه دې ملاحظه کړې شي.

۱- دهغه صلی الله علیه وسلم په دین کښې دښځې شاهدی دسړی په نسبت نیمه ده.

۲- دښځې دمیراث مسئله نیمه ده.

۳- اطاعت دمیړه لازم دې نه دښځې.

۴- په یوه وخت دڅلورو نکاحونو اجازه سړوته ده نه ښځوته.

۵. دطلاق اوظهار اوایلاء اختیار دسړی سره دې.

۶. دنکاح ولی سړې دې نه ښځه.

۷. ښځې دسړوپه نسبت په عقل اودین کښې ناقصې دی.

۸. دنکاح اجازت له اهل کتابو سره سړوته دې نه ښځوته.

۹. جمعه اوعیدین جهاد اوعامو اجتماعاتو ته وتل دسړو وظیفه ده دښځې دائراه دکار دکورتر څلورودیوالونو پورې محدوده ده.

۱۰. سړی په ښځو باندې حاکمان اونګرانان دی دښځې دحکومت په اسلام کښې هیڅ تصور نشته.

د اتمام مسائل د قرآن اوحدیثو دنصوصو څخه ثابت دی په دې کښې هره یوه مسئله ددښمن په نظر کښې له شاه تیر څخه کمه نده.

اوس اوفرمایی (کومه کومه مسئله صفا کوې اوددوئ په معیار به یی برابروې؟

داسی قسم اجتهاد د اسلام لپاره کوم تعمیری خدمت ندې بلکه دهغه دقصر مشید دکمزوری کولو یوه ناکامه هڅه ده.

**آهدم بوسر مطلب**: که عمدا څوك کوم مسلمان قتل کړی نو دهغه سزا قتل ده څکه چی د دبل چا د روح بدله روح ده مګر دقتل خطاء په باره کښې کفاره او دیت لازم دی.

دیت دمقتول سړی سل اوښان دی اوپه صورت دنغدو کښې واجب زر اشرفۍ (دینار) یالس زره درهم دی او د مقتوله ښځې دیت د سړی ددیت نیم دې، یعنی پنځوس اوښان یا پنځه سوه دیناره یا پنځه زره درهم.

نن سبا ددې اجماعی مسئلې په خلاف آوازونه پورته کیږی چی دا د سړی اوښځې ترمینځ امتیاز د اصول مساوات خلاف دې، په اصل کښې دا دمساوات نعره له اروپا څخه اخستل شوې د اودیو مستعار فکر نمونه ده، اوکه نه نو څوك نه پوهیږی چی په اسلام کښې د داسې رانده مساوات تر لرې لرې پورې کوم تصور هم نشته؟، په هر حال دښځې دنصف دیت مسئله یوه اجماعی مسئله ده بالاختصار دهغې دلائل وړاندې کیږی:

(۱) په قرآن کریم کښې ارشاد دې چې

۱ - ﴿وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌ﴾
یعنی د سړو لپاره د ښځو په مقابل کښې لویه درجه ده.

۲ - ﴿وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ مِمَّن تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ﴾ الایه (۲:۲۸۲)
او دوه کسان ستاسې له سړیو څخه ګواهان ونیسئ بیا که دوه سړی نه وی نو یو سړې اودوه ښځې له داسې ګواهانو څخه چی ستاسې خوښ وی.

۳ـ ﴿يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ﴾ (۴:۱۱)
یعنی الله تعالی تاسوته حکم کوی ستاسې د اولاد په باره کښې چی دهلك حصه به ددوه نجونو د حصې برابره وی.

۴- ﴿الرِّجَالُ قَوَّامُونَ عَلَى النِّسَاءِ﴾ الایه (۴ : ۳۴)
یعنی سړی حاکمان دی په ښځو باندې.

دا آتونه په ډیرو احکامو کښې د سړیو او ښځو ترمینځ فرق راولی په حکم د دیت کښې هم که دواړه متفاوت وی نو په دې کښې څه د اعتراض ځای دی؟.

۲ـــ عن عمرو بن شعیب عن ابیه عن جده رضی الله تعالی عنه قال قال رسول صلی الله علیه وسلم عقل المراة مثل عقل الرجل حتی یبلغ الثلث من دیتها. (سنن نسائی ج۲ص۲۴۷سنن کبری للبیهقی مصنف عبدالرزاق ج۹ص۳۹۶)

له عمروبن شعیب نه روایت دې هغه دخپل پلار څخه روایت کوی، هغه له خپل نیکه څخه روایت کوی چی رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد فرمایلی دې: (د ښځې دیت د سړی برابر دې تردې چی دریمې حصې ته ورسیږی.

۳ ـــ عن معاذ بن جبل رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم دیة المراة علی النصف من دیة الرجل (سنن کبری للبیهقی ص۹۵ج۸)

له معاذبن جبل رضی الله تعالی عنه نه روایت دې چی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی چی: د ښځی دیت د سړی د دیت نیمایی دی.

۴ـــ عن ابن شهاب وعن مکحول وعطاء رحمهم الله تعالی: قالوا ادرکنا الناس عن ان دیة المسلم الحر علی عهد النبی صلی الله علیه وسلم مائة من الابل فقوم عمر ابن الخطاب رضی الله تعالی عنه تلك الدیة علی اهل

القرى الف دينار اواثنى عشر الف درهم ودية الحرة المسلمة اذا كانت من اهل القرى خمسمائة دينار اوستة الاف درهم فاذا كان الذى اصابها من الاعراب فديتها خمسون من الابل ودية الاعرابية اذا اصابها الاعرابي خمسون من الابل، لايكلف الاعرابي الذهب ولا الورق (السنن الكبرى للبيهقي ص۹۵ج۸ مصنف عبدالرزاق ص۲۹۵ج۹ مصنف ابن ابي شيبه ص۳۰۰ج۹)

دامام ابن شهاب اومكحول اوعطا رحمهم الله څخه روايت دې چې مونږ خلك يعنى صحابه اوتابعين بلاخلاف په دې مذهب موندلې دي چې د آزاد مسلمان سړى ديت په عهد نبوت كښې سل اوښان مقرر وو بيا حضرت عمر ددې ديت دا قيمت مقرركړلو اووې فرمايل چې: «په كليوالو باندې زر ديناره يا دولس زره درهمه او د آزادې مسلمانى ښځې ديت كله چې هغه دهمدې كلى وى پنځه سوه ديناره او يا شپږ زره درهمه اوكه دهغې قاتل بدوى «باندچى» وى نو پنځوس اوښان دى اوكه دبدويه ښځى قاتل بدوى وى نو پنځوس اوښان ديت دي، بدوى «باندچى» دې په سرو اوسپينو زرو نشى مجبوره كولې.

۵ــ عن الشعبى رحمه الله تعالى ان عليا رضى الله تعالى عنه كان يقول جراحات النساء على النصف من دية الرجل فيما قل و كثر. (السنن الكبرى للبيهقي ص۹۶ج۸ مصنف ابن ابي شيبه ص۳۰۱ج۹)

له امام شعبى رحمه الله نه روايت دې چې حضرت على رضى الله عنه فرمايى: «دښځو د زخمونو ديت په قليل «لږ» اوكثير «زيات» كښې د سړى ددیت نيمايى دې.

۶ــ عن ابراهيم عن على بن ابى طالب رضى الله تعالى عنه انه قال عقل المراة على النصف من عقل الرجل فى النفس وفيما دونها (السنن الكبرى ج۸ص۹۶ مصنف عبدالرزاق ج۹ص۳۹۷).

حضرت ابراهيم رحمه الله له حضرت على رضى الله عنه نه روايت كوى چې هغه ارشاد اوفرمايلو: «چې دښځې ديت په روح اواعضاؤكښې دسړى ددیت نيمايى دې»

۷ــ وقال ابن مسعود رضى الله تعالى عنه الا السن والموضحة فانها سواء وما زاد فعلى النصف (السنن الكبرى ج۸ص۹۶ مصنف عبدالرزاق ج۹ص۳۹۷ مصنف ابن ابي شيبه ج۹ص۲۹۹)

اوابن مسعود رضى الله عنه فرمايى ( په غاښ اوموضحه كښې دهغه زخم چې هډوكښې ښكاره كوى په هغې كښې دسړى اوښځې ديت برابر دې اوله دې څخه په زيات كښې دښځې ديت د سړى د ديت نيمايى دې)

۸ ــ وكان زيد بن ثابت رضى الله تعالى عنه يقول دية المراة فى الخطا مثل دية الرجل حتى يبلغ ثلث الدية فما زاد فهو على النصف (مصنف ابن ابي شيبه ج۹ص۳۰۰ السنن الكبرى ص۹۶ج۸ مصنف عبدالرزاق ص۳۹۷ج۹)

اوحضرت زید بن ثابت رضی الله عنه فرمائی : «دښځې دیت په قتل خطاء کښې تر دریمې حصې پورې دسړی ددیت برابر دې بیا د دریمې حصې څخه په اضافه کښې دنارینه ددیت نیمایی دې.

۹ــ مالك عن يحيى بن سعيد عن سعيد بن المسيب رحمه الله تعالى انه كان يقول تعاقل المراة الرجل الى ثلث الدية (موطا مالك ص ۶۷۰)

امام مالك له یحی به سعید څخه او هغه له سعید بن المسیب څخه روایت کوی «تر د ریمې حصې دیت پورې دسړی اوښځې دیت یو شان دې»

۱۰ــ مالك عن ابن شهاب وبلغه عن عروة ابن الزبير انهما كانا يقولان مثل قول سعيد بن المسيب فى المراة انها تعاقل الرجل الى ثلث دية الرجل فاذا بلغت ثلث دية الرجل كانت على النصف من دية الرجل (موطا مالك ص ۶۷۰)

امام مالك رحمه الله له امام ابن شهاب اوله عروه بن زبیر څخه روایت کوی چی دواړه حضرات دسعید بن المسیب په شان فرمائی : «تر دریمی حصی دیت پورې دسړی او ښځې دیت برابر دې او کله چی دښځې دیت دسړی ددیت دریمې حصی ته ورسیږی نو دښځی دیت به دسړی ددیت نیم وی.

۱۱ــ كتب شريح الى هشام بن هبيرة رحمهما الله تعالى ان دية المراة على النصف من دية الرجل الا السن والموضحة (مصنف ابن ابي شيبة ص ۳۰۲ ج ۹ السنن الكبرى ص ۹۶ ج ۸ مصنف عبد الرزاق ص ۳۹۴ ج ۹)

قاضی شریح هشام ابن هبیره ته ولیکل : دښځی دیت دسړی ددیت نیمایی دې بغیر دغاښ اوموضحې «دهډوکی ښکاره کونکی زخم» نه.

۱۲ــ عن ابن عون عن الحسن رحمه الله تعالى قال ستوى جراحات الرجال والنساء على النصف، فاذا بلغت النصف فهى على النصف (مصنف ابن ابي شيبه ج ۹ ص ۳۰۱)

ابن عون له حسن بصری څخه روایت کوی «چی ترنصف دیت پوری دسړی اوښځې حکم یوشې دې اوکله چی نصف ته ورسیږی بیا دښځې دیت نصف دې»

۱۳ عن سعيد بن المسيب وعن مكحول عن عمر بن العزيز رحمه الله تعالى قال: يعاقل الرجل المراة فى ثلث ديتها ثم يختلفان. (مصنف ابن ابي شيبة ج ۹ ص ۳۰۳ مصنف عبد الرزاق ج ۹ ص ۳۹۶)

حضرت سعید بن المسیب اومکحول رحمهما الله دحضرت عمربن عبدالعزیز څخه روایت کوی «تر دریمې حصې دیت پورې دسړی اوښځې حکم برابردې له دې نه پس مختلف دې دښځې دیت به نصف وی»

په دې کښې بعضې روایات اگر چه سنداً ضعیف دی. مگر له هغو سره نورصحیح اومتصل

روایات موجود دی، همدارنګه دلویو صحابه کرامو اوتابعینو دبلا خلاف قبول عام دهغو په صحت د تصدیق مهر لګولې دې چې ددې په وجه دهغو ضعف منجبر (ختم) شوې دې، د دغو جلیل القدر صحابه کرامو اوتابعینو رحمهم الله بالمقابل دکوم صحابی یا تابعی یاقابل ذکر فقیه مذهب نه معلومیږي چې په هغه کښې یې دنصف دیت په خلاف قول کړې وی له دې څخه معلومه شوه چې په نصف دیت باندې قول د امت اجماعی موقف ګرځیدلې دې.

دامت مسلمه متفق علیهم ائمه اربعه رحمهم الله هم دښځې په نصف دیت باندې په یوه خوله دی، لاندې د هغوئ تصریحات وړاندې کولې شی.

۱- دفقه حنفی په یو ډیر مشهور کتاب (هدایه) کښې راغلی دی چې:

**(ودية المرأة على النصف من دية الرجل) وقد ورد هذا اللفظ موقوفاً على علي رضي الله تعالى عنه ومرفوعاً الى النبي صلى الله عليه وسلم (هداية ص۵۸۲ ج۲)**

(یعنی دښځې دیت دسړی ددیت نیمایی دې او دا حدیث په دغه الفاظو کښې دحضرت علی رضی الله عنه نه موقوفا او رسول الله صلی الله علیه وسلم نه مرفوعا منقول دی)

۲- دموطا په حواله سره دحضرت امام مالك نه دوه روایته وړاندې ذکر شول په موطا کښې دهغو تفسیر داسې دې.

**قال مالك وتفسير ذلك انها تعاقله في الموضحة والمنقلة ومادون المأمومة والجائفة واشباهها مما يكون فيه ثلث الدية فصاعدا، فاذا بلغت ذلك كان عقلها في ذلك النصف من عقل الرجل (موطا مالك ص۶۷۰)**

(امام مالك رحمه الله تعالى فرمايلی دی چې: (ددې تفسیر دادې چې دښځې دیت به دسړی ددیت برابر وی، په موضحه (چې په هغې کښې هډوکې ښکاره وی) اومنقله کښې چې هډوکې یې له خپل خای څخه خوزولې وی) په هغه زخمونو کښې چې مامومه یا جائفه (چې ګیډې ته رسیدلې وی) نه کم وی اوددې په شان نورو زخمونو کښې چې دریمې حصې دیت ته یا دریمی نه زیات وی) ددې نه په کمه درجه زخمونو کښې دښځې او سړی دیت برابر وی، بیا چې ددې حد دریمې یادهغې نه زائد وی) حد ته رسیږی نو دښځې دیت به دسړی نصف وی) المدونه الکبری ص ۳۱۹ ج۶ کښې همدا تفصیل مذکور دې چې په ثلث او زائد ددې کښې نصف دیت دې، شارح دموطا حضرت شیخ الحدیث مولنا زکریا صاحب دپورتنی ذکر شوی مقام په شرح کښې لیکی:

**قال ابن المنذر وابن عبدالبر: اجمع اهل العلم على ان دية المرأة نصف دية الرجل وحكى غيرهما عن ابن علية والاصم انهما قالا ديتها كدية الرجل لقوله صلى الله عليه وسلم في النفس المؤمنة مائة من الابل وهذا قول شاذ يخالف اجماع الصحابة وسنة النبي صلى الله عليه وسلم فان في كتاب عمرو بن حزم دية المرأة على**

النصف من دية الرجل وهي اخص مما ذكروه فيكون مفسر الماذكوره ومخصصا له (اوجز المسالك ج۵ ص۴۵۱)

امام ابن المنذر اوابن عبدالبر فرمایلی دی : «داهل علموپه دې اجماع ده چی دښځې دیت دسړی نیمای دې او د دغو دوو حضراتو نه علاوه نورو علماؤ د ابن علیه اواصم قول نقل کړی دی: دښځې دیت دسړی ددیت برابر دې، له دې وجی نه دحضور صلی الله علیه وسلم ارشاد گرامی دې چې : دنفس مؤمنه دیت سل اوښان دی»

لیکن دا یو شاذ قول دی چی د صحابه کرامو رضی الله عنهم له اجماع او د رسول الله صلی الله علیه وسلم دسنت خلاف دې له دې وجی نه دعمروبن حزم په کتاب کښې دی چی : دښځې دیت دسړی ددیت نیمایی دې او دا ارشاد دمذکور الصدر حدیث په نسبت اخص دې لهذا ددې لپاره مفسر اومخصص گرځیدلې دې.

۳ــ وقال الشافعي رحمه الله تعالى لم اعلم مخالفا من اهل العلم قديما ولا حديثا في ان دية المراة نصف دية الرجل وذلك خمسون من الابل (كتاب الام ص۱۰۶ ج۶)

امام شافعی رحمه الله فرمائی : زما په علم کښې د پخوا زمانې او جدیدې زمانی اهل علمو کښې هیڅ کوم شخص نشته چی ددې مسئلې مخالفت یی کړی وی چی دښځې دیت دسړی ددیت نصف دې چی پنځوس اوښان دی، لهذا په دې باندې دامت اجماع ثابته شوه.

۴- امام موفق الدین بن قدامه الحنبلی فرمایی : (ودية الحرة المسلمة نصف دية الحر المسلم) قال ابن المنذر وابن عبدالبر اجمع اهل العلم على ان دية المراة نصف دية الرجل (المغني ص۵۳۱ ج۹)

اود آزادې مسلمانی ښځې دیت د آزاد مسلمان سړی ددیت نیم دې ، امام ابن منذر اوابن عبد البر فرمایی په دې د اهل علمو اجماع ده چی دښځې دیت دسړی ددیت نصف ده .

د اختصار له وجی نه مونږ دځلورو واړو مذهبونو نه صرف یوه یوه مستنده حواله وړاندې کړه اوکه نه نو دتتبع نه په شلگونو حوالجات وړاندې کیدلې شی.

معروف اهل حدیث عالم علامه شوکانی رحمه الله هم په نیل الاوطار کښې ص ۲۲۴ ج۷ دمفصلو دلائلو سره دائمه اربعه په دې اجماع نقل کړې ده .

## له اجماع نه دمنکرینو دلائل

ددې اجماعی مسئلې خلاف چی ځای ځای نه آواز پورته کیږی ددې تولو ترشا دسړو اوښځو دمساوات مغرب زده ذهنیت والا خلك دی، دپورته یو شمیر قرآنی آیاتونو او د احادیثو په حواله سره مونږ ددی نظریی بې بنیاد والی اوباطل والی واضح کړې دې، کم ترکمه کوم مسلمان باید په دې فریب کښې مبتلاء نشی.

اوس مونږ د اجماع د مخالفینو د دلائلو جائزه اخلو:

۱- په سورة نساء آیت ۹۲ کښې حکم دیت (فدیة مسلمة الی اهله......) مطلق دې نو ددې حکم مطلق د تقیید لپاره دقرآن کریم نه بل آیت په کار دې، یا حدیث متواتر اومشهور وړاندې کول لازم دی یاکم نه کم صحیح السند خبر واحد راوړل پکار دی، حالانکه ددغو څخه یوهم وجود نلری، لهذا دقرآن کریم حکم مطلق په خپل اطلاق سره پریښودل ضروری دی.

**الجواب**: دسورة نساء د آیت متعلق دعموم یا اطلاق دعوه بې بنیاده ده د آیت دمتعلقه جملو ترجمه ده (اوکوم شخص که چیرې کوم مؤمن په غلطی سره قتل کړی نو په هغه یو مسلمان غلام یا وینځه آزادول اودیت دې چی دهغه خاندان ته به ورکولې شی مګر داچی هغه خلك یی معاف کړی)

د آیت کریمه اصل مدعا چی د آیت له ترجمی څخه ظاهره ده همدومره ده)

دقتل خطاء په صورت کښې په قاتل باندې کفاره اودیت لازم دی.

همدا تقاضا دانصاف اودیانت ده، ددې برعکس قاتل خاطئ په قصاص کښې قتل کول یا بالکل برئ الذمه ګرځول د اصول عدل اومساوات خلاف دی په قتل کولو کښې قاتل باندې ظلم راځی اوبلا کفاره او دیت پریښودلو کښې د مقتول د وارثانو حق تلفی لازمیږی له دې وجی نه قرآن کریم دا عادلانه فیصله صادره کړیده چی په هغې کښې دهر فریق پوره پوره رعایت شوې دې.

غرض دا چی پدې آیت کښې قرآن دنفس کفاری اودیت د وجوب بیان کوی، دمقدار دیت (چی هغه کل یا نصف) دې له دې آیت سره هیڅ تعلق نشته، البته دا ویلې شی چی آیت مجمل دې چی دهغې تفصیل په احادیثو کښې دتعامل دصحابه رضی الله عنهم بلکه داجماع الامت په رڼا کښې زمونږ مخی ته راځی.

۲- المسلمون تتکافأ دماءهم الحدیث (ابوداود، نسائی، ابن ماجة وغیرهم)

له دې حدیث څخه صفا معلومه شوه چی دتمامو مسلمانانو خون بها برابره ده، لهذا دقصاص په شان ددیت حکم هم دسړی اوښځې برابردې.

**جواب**: ددې حدیث هم دمخالفین اجماع دموقف سره کوم تعلق نشته بلکه ددې صاف اوستره مطلب دادې چې: دقصاص اودیت په باره کښې دتمامو مسلمانانو حکم یوشان دې چی بلا امتیازه قوی اوضعیف، شریف او وضیع، نارینه اوښځه، هر مسلمان قاتل، په صورت دعمد کښې دمسلمان مقتول په بدله کښې قتل کولې شی.

دا عالمګیر اوعادلانه قانون یی جاری کړ پدې سره حضورصلی الله علیه وسلم دجاهلیت ددې رسم بیخ کنی وفرمایله چی دسړی په بدله کښې یی ښځه قتل کوله مګر دښځې په بدل کښې به یی سړی ته هیڅ هم نه ویل، همدارنګه زورور به پریښودل کیده او کمزورې به نیول کیده، دا دغې

اوواړه اوشریف اووضیع دغه امتیازیی ختم کړ اوهغه صلی الله علیه وسلم ټول مسلمانان په یوه صف کښې ودرول.

**الغرض**: په دې حدیث کښې یی دقصاص اودیت دقانون په نفاذ کښې دبرابری اصول بیان کړی دی، د دیت له مقدار سره ددې هیڅ تعلق نشته.

امام ابوجعفر طحاوی رحمه الله فرمایی: **فتاملنا قول رسول الله صلی الله علیه وسلم: المؤمنون تتکافا دماءهم، فوجدنا اهل العلم جمیعا لا یختلفون فی تاویل ذلك انه علی التساوی فی القصاص والدیات وان ذلك ینفی ان یکون لشریف علی وضیع فضل فی ذلك وان ذلك کان ردا علی اهل الجاهلیة فی ترکهم قتل الشریف بقتله الوضیع وفی ذلك ما قد عقلنا ان النساء فی جری ذلك کالرجال ان الرجل یقتل بالمراة کما تقتل المراة بالرجل. (مشکل الاثار للامام الطحاوی رحمه الله تعالی ج۲ص۹۰)**

پس مونږ درسول الله صلی الله علیه وسلم په دی ارشاد گرامی کښې چی: ((**المسلون تتکافا دمائهم**)) کښې غوروکړو نوټول علماء موپه دې متفق وموندل چی دا ارشاد دقصاص اودیت په برابری محمول دې اودا ارشاد دا خبره نفی کوی چی کوم اعلی ته دې په ادنی باندې ترجیح وی اوپه دې کښې دزمانه جاهلیت ددې دستور تردید دې چی دلوړې درجی سړی به دټیټی درجی دسړیو په قتلولو پریښودل کیدل اوپه دې ارشاد کښې مونږ دا وفهموله چی ښځې هم په دې قانون کښې دسړو په شان دی، لهذا سړی به دښځې په بدله کښې قتل کولې شی لکه څنگه چی ښځه دسړی په مقابل کښې قتلولې شی.

نوروټولو شراحو ددې حدیث نه هم همدا مفهوم بیان کړې دې د اوږدوالې له ویرې څخه مونږ دهغو پوره عبارت نشو نقل کولی.

ملاعلی قاری فرمایی: **یرید به ان دماء المسلمین مساویة فی القصاص یقاد الشریف منهم بالوضیع والکبیر بالصغیر والعالم بالجاهل والمراة بالرجل ....... علی خلاف ما کان یفعله اهل الجاهلیة. (مرقاة المفاتیح ص ۲۵ج۷)، اشعة اللمعات ص ۲۳۳ج۳ نیل اوطار ص ۱۵۵ج۷ بذل المجهود ص ۲۸ج۵** کښې هم همدا تفصیل مذکور دې.

مولانا خلیل احمد صاحب قدس سره فرمائی: (وهذا بالاجماع) دا دټول امت اجماعی موقف دې، مگر منکرین اجماع په زور باندې خپل مطلب ترینه اوباسی آیا دوئ ویلې شی چی دحدیث راوی حضرت علی هم دحدیث دمفهوم څخه نا آشنا وو لکه چی دهغه دنصف دیت په باره کښې مذهب مونږ وړاندې مفصل ذکر کړې دیې

شعر

سرِّ خدا که عابد وزاهد کسی نه گفت　　درحیرتم که باده فروش از کجا شنید

۳- حضرت عمر، حضرت علی اوحضرت امام ابوحنیفه اوشافعی نه هم دسړی اوښځې ددیت دبرابری حکم منقول دې چنانچه قاضی ابوالولید الباجی رحمه الله تعالی فرمایی:

**قوله رضی الله عنه تعاقل امرأة الرجل الی ثلث الدیة اصبعها کاصبعه یرید ان ما دون ثلث الدیة علقلها فیه کعقل الرجل وهو معنی معقلها له حتی اذا بلغت فی عقل ما جنی علیها ثلث الدیة کان عقلها نصف عقل الرجل وبهذا قال من ذکرهم مالك من التابعین وهو قول زید بن ثابت وابن عباس رضی الله تعالی عنهم وما روی عن ابن مسعود رضی الله تعالی عنه تساویهما فی الموضح واختلف عن عمر بن الخطاب وعلی بن ابی طالب رضی الله تعالی عنهما فروی عنهما باسناد ضعیف انها علی دیة الرجل فی القلیل والکثیر وبه قال ابوحنیفة والشافعی رحمهما الله تعالی وروی عنهما مثل قولنا (المنتقی ص۸۰ج۷)**

دامام مالك رحمه الله ارشاد دې: دښځې دیت تر دریمی حصې پورې دسړی له دیت سره برابر دې دهغې گوته دسړی دگوتې په شان وی، دده مراد دادې چی تر دریمې حصې نه کم کښې دښځې دیت دسړی ددیت په شان دې، دښځی دسړی سره د برابری همدا معنی ده کله چی په ښځه باندې شوې جنایت دریمې حصې ته ورسیږی نو دهغې دیت دسړی ددیت نیم وی دا قول دې دهغه تابیعینو چی دهغو ذکر امام مالك کړې دې او دا د زید بن ثابت اوابن عباس رضی الله عنهما قول دې او د ابن مسعود رضی الله عنه نه روایت دې چی په موضحه کښې دسړی اوښځی دیت یوشان دې او دا قول د امام ابوحنیفه اوشافعی رحمهما الله دې او د حضرت عمر اوحضرت علی رضی الله عنهما نه دویم روّایت زمونږ د مذهب مطابق دې چی ددریمې حصې دیت نه پورته دښځې دیت د سړی د دیت نیمایی دې.

او دا استدلال هم یوه خندا راوستونکې مغالطه ده ددې استدلالّ ټول عبارت دیوه کاتب په غلطی ولاړ دې چی له هغه نه د (**انها علی نصف دیة الرجل**) په کتابت کښې لفظ دنصف پاتې شوې دې، دکاتب دسهوې نه منکرین اجماع په خوش فهمی کښې مبتلاء شوی دی، حضرت عمر اوحضرت علی رضی الله عنهما نه دا منقول اوضعیف روایت په نورو کتابونو کښې هم موجود دې چی هلته لفظ دنصف موجود دې سنن کبری للبیهقی کښې یی لیکلی دی.

**عن ابراهیم النخعی رحمه الله تعالی عن عمر بن الخطاب وعلی بن ابی طالب رضی الله تعالی عنهما انهما قالا عقل المرأة علی النصف من دیة الرجل فی النفس وفیما دونها (ص۹۶ج۸)**

داروایت په دغو الفاظو سره دامام محمد په کتاب الحجه علی اهل المدینه ص۲۸۴ج۴ کښې هم موجود دې

همدارنګه په مصنف ابن ابی شیبه کښې دحضرت علی نه په لاندې الفاظو سره نقل دي:

تستوی جراحات النساء والرجال فی کل شئ (ص۴۰۱ج۹)

دا روایت مونږ وړاندې مفصل نقل کړې دې که دهغوی حضراتو همدا مذهب وی چې د «المنتقی» له ناقصو عباراتو څخه اخذ کیږی نو کوم منکر اجماع دې دهغه ماخذ وړاندې کړی، صاحب عبارت قاضی ابوالولی خود پنځمې پیړۍ عالم دې آخر ترهغه پورې دعمر او علی رضی الله عنهما دا مذهب دچاپه ذریعه رسیدلې دې.

داخلك خو له جمهور امت څخه دقرآن دآیت یا متواتر یا مشهور صحیح السند حدیث مطالبه کوی او په خپله په یو ضعیف بلکه په غلط روایت دومره مصر دی، دیته ویلی شی «دیوانه به کارخویش هوشیاراست».

دحضرت امام ابوحنیفه او امام شافعی مذهب مونږ مخکې دهدایه اوکتاب الام په حواله نقل کړو دهغوی د مذهب په ټولو مستندوکتابونو کښې همدا لیکل شوی دی، لهذا هغوئ ته هم دمساوات دیت نسبت کول سراسر غلط دی.

دصاحب هدایه نقل کړې شوی الفاظ چې د حضرت علی طرفته یې منسوب کړی دی په هغودې دوباره غور وشی د دیت المراة علی النصف من دیت الرجل دا الفاظ خپله د «المنتقی» دعبارت سهو کیدل ښایی.

۴- په مقدمینوکښې دابوبکر الاصم اوامام ابن علیه مذهب هم دادې چې هغوئ دښځې او دسړی ددیت دمساوات قائل وو چنانچه په المغنی لابن قدامه ص ۵۳۲ج ۹ اونورو کتابونو کښې دهغه تصریح موجوده ده.

**الجواب**: دا استشهاد درست دې دهغوئ دواړو دا مذهب په متعددو کتابونوکښې منقول دې دلته یو څو خبرې قابل دغور دی.

**اول**: داچې ابوبکر بن اصم چې دهغه نوم عبدالرحمن بن کیسان دې چه د لسان المیزان ص ۳۴-۳۵ج۱ مطابق معتزلی دې دهغه ذکر دمعتزله په طبقاتو کښې موندل کیږی اودمعتزلهؤ گمراه کونکی عقائد له چا څخه پټ ندی

دابن علیه په نوم دوه سړی دی: یو اسماعیل بن علیه چې مشهور محدث او د امام شافعی وغیره استاذ دې.

دویم: دهغه زوی ابراهیم ابن علیه دا جهمی دې چې دهغه متعلق امام شافعی فرمائی «هوضال یضل الناس» دهغه حالات هم په لسان المیزان کښې دپورته حوالې په مقام کښې لیکل شوی دی.

داخیره په ظاهره دقیاس نه لرې ښکاری چې دمساوات دیت قول دې د امام اسماعیل بن علیه وی اوکه نه نو امام شافعی به دا څنګه فرمایل چې: (لم اعلم مخالفا من اهل العلم قدیما ولاحدیثا)

یعنی زما په علم کښې د پخوا زمانې او اوسنی زمانی کوم صاحب علم د نصف دیت مخالف نشته
د کتاب الام دا مکمل عبارت مونږ مخکښې نقل کړې دې
په ظاهره دا قول د ابراهیم بن علیه جهمی دې چی په هیڅ درجه کښې هم قابل د اعتناء نه دې او
بله خبره دا چی کوم خلك د جمهور امت نه صریح آیت قرآن یا صحیح حدیث مطالبه کوی دوئ خپله
ولې د داسې قسم د غیر ثقه او مجروح خلکو قول په دلیل کښې وړاندې کوی چی په علمی دنیا
کښې د یو بوس په اندازه حیثیت هم نه لری؟ **لقد صدق من قال: الغریق یتشبث بالحشیش**
حقیقت دا دې چی د داسی ساقط الاعتبار خلکو په مدد د کومې دعوې بنیاد کوم علمی
استدلال ندې بلکه دا خپله د خپل ځان د تردید مترادف دې.
دریمه خبره داده چی د المغنی لابن قدامه په حواله چی دا قول وړاندې کولی شی په هغې کښې
داهم لیکل شوی دی چې: **وهذا قول شاذ یخالف اجماع الصحابة رضی الله تعالی عنهم وسنة النبی صلی الله علیه وسلم (ص۳۲ج۹)**
(یعنی دا یو شاذ قول دې چی د اجماع الصحابه او سنت نبویه خلاف دیې) ددې تصریح نه بعد
بیا ددې څه حیثیت پاتې شو؟ والله الهادی الی سبیل الرشاد.

**محمد ابراهیم: نائب مفتی دارالافتاء والارشاد – ۱۹ جمادی الاولی سنه ۱۴۱۲ هـ**

## الاستدراک

په ددیت په باره کښې د سپینو زرو په مقدار کښې دوه روایته منقول دی: لس زره درهمه او دولس زره درهمه، امام بیهقی د دواړو په منځ کښې دا تطبیق نقل کړې دې:

**قال محمد بن الحسن رحمه الله تعالی بلغنا عن عمر بن الخطاب رضی الله تعالی عنه انه فرض علی اهل الذهب الف دینار وعلی اهل الورق عشرة الاف درهم.**

**(حدثنا) بذلك ابو حنیفة رحمه الله تعالی عن الهیثم عن الشعبی عن عمر بن الخطاب رضی الله تعالی عنه.**

**وقال اهل المدینة: ان عمر بن الخطاب رضی الله تعالی عنه فرض الدیة علی اهل الورق اثنی عشر الف درهم.**

**قال محمد رحمه الله تعالی قد صدق اهل المدینة ان عمر بن الخطاب رضی الله تعالی عنه فرض الدیة اثنی عشر الف درهم ولکنه فرضها اثنی عشر الف درهم وزن ستة (السنن الکبری للبیهقی ص۸۰ج۸)**

د امام محمد رحمه الله د تطبیق د فرمایلی ارشاد حاصل دا دې چې: د درهم دوه مختلف وزنونه رائج وو په هغې د دواړو کښې دا نسبت وو ۱۰ = ۱۲.

محمد ابراهیم ۹ رجب سنه ۱۴۱۳ هـ

**تمت بالخیر**

**د احسن الفتاوی شپږم جلد ختم شو ولله الحمد اولاً واخراً وظاهراً وباطناً**

**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی اله وصحبه وسلم اجمعین برحمتک یا ارحم الراحمین**

# د موضوعاتو فهرست

عنوان صفحه

**تمت بالخیر**

**تم فهرس الکتاب بعون الملک الوهاب**

**د احسن الفتاوی د شپږم جلد فهرست ختم شو ولله الحمد اولاً واخراً**
**وصلی الله تعالی علی خیر خلقه محمد وعلی اله وصحبه وسلم اجمعین برحمتک یا ارحم الراحمین**